مظاهر حق
د مشکوة المصابیح پښتو شرحه
تالیف
علامه نواب محمد قطب الدین خان دهلوی
مولانا عبدالله جاوید غازی پوری (فاضل دارالعلوم دیوبند)
پنځم جلد
۱. حدیثونو ته د اعراب سره
۲. ښت لفظي ترجمه
۳. حدیثونو تخریج
۴. د لغاتو حل
کتاب البیوع
کتاب الفرائض والوصایا
کتاب النکاح
صداقت کتب خانه
رګ بازار کندهار

# مظاهر حق جدید

د مشکوه المصابیح پښتو شرحه

پنځم جلد

۵

**تالیف**

علامه نواب محمدقطب الدین خان دهلوي رحمة الله علیه

**تزئین اوترتیب**

مولاناعبدالله جاوید غازي پوري (فاضل دارالعلوم دیوبند)

**ځانګړتیاوي**

۱: حدیثونه د اعراب سره.

۲: تحت لفظي ترجمه.

۳: د حدیثونو تخریج.

٤: د لغاتو حل .

**مباحث**

کتاب البیوع

کتاب الفرائض والوصایا

کتاب النکاح

صداقت کتبخانه

بسم الله الرحمن الرحيم

(د مشکٰوة المصابیح پښتو شرحه)

# مظاهر حق

**تالیف:** نواب محمدقطب الدین خان دهلوي رحمة الله علیه

**ترتیب او تزئین:** مولاناعبدالله جاوید غازي پوري (فاضل دیوبند)

**خپرندوی:** صداقت خپرندویه ټولنه

**پښتو ژباړه:** محمد رسول سعید

**تصحیح کوونکي:** بسم الله رحیمي، مولوي عبدالکریم کریمي، مولوي عبدالجبار

**لومړی چاپ:** ۱۳۹۲ش - ۲۰۱٤ ع.

**پنځم چاپ:** ۱۳۹۹ل. / ۲۰۲۰م.

**د خپرونو لړ:** ۱۸۳

**چاپ شمېر:** ۱۰۰۰ ټوکه

**د تر لاسه کولو ځایونه:**

**صداقت خپرندویه ټولنه**-کندهار

اوله ناحیه، نوی سړک- کریم اعتماد مارکېټ

Sadaqat.books@gmail.com / ۰۷۰۰۳۰۵۴۰۷

**کندهار:** صداقت خپرندویه ټولنه- ارگ بازار- قلم او کتاب مارکېټ **۰۷۰۰۳۰۹۲۴۴** .

**کابل:** صداقت خپرندویه ټولنه،کوټه سنگي مینه یار مارکېټ او **اکسوس کتاب پلورنځی**. **هلمند** :تاج منور خپرندویه ټولنه. **هرات:** صداقت کتاب پلورنځی- کوچه گدام. **جلال آباد:** مومند خپرندویه ټولنه.ننگرهار مارکېټ. **غزني:** نعماني کتاب پلورنځی. **پکتیکا:** مجاهد کتاب پلورنځی. **خوست:** اسلامي کتاب پلورنځی.

# د مظاهر حق پنځم جلد فهرست

| مضمون | صفحه |
|---|---|


| مضمون | صفحه |
|---|---|

بِسمِ اللّٰه الرَّحمٰنِ الرَّحِیم

# کِتَــابُ البُیُوعِ

## (د رانیولو او پلورلو بیان)

د اسلام له نظره د انساني کائناتو د عملي دور دوه محوره دي اول حقوق الله چي عبادات ورته وايي او دوهم حقوق العباد چي معاملات ورته وايي، دغه دوه اصطلاحات دي چي د انسان د ژوند د نظام د ټولو اصولو، قواعدو او قوانینو بنیاد دی، په دغه دواړو کي حقوق الله ته عمومیت حاصل دی ، ددې تعلق د کائنات انساني د هر فرد سره دی ځکه د کتاب مصنف مخکي دا بیان کړل او س ددغه ځای څخه د حقوق العباد یعني د معاملاتو بیان شروع کیږي چي د هغه تر ټولو اهم جز بیع ده .

**د بیع معنی** : د بیع معنی پلورل او خرڅول دي مګر کله ددې معنی د رانیولو هم وي ځکه د بیع زیاره په اصطلاحي توګه سره پر رانیولو او پلورلو باندي کیږي .

د فخر الاسلام وینا ده چي د شریعت په اصطلاح کي په خپل منځ کي په خوښۍ سره د مال په مال بدلولو ته بیع وايي .

**د بیع شرعیت** : د بیع یعني رانیولو او پلورلو شرعي کېدل د قرآن کریم ددغه آیت (واحل الله البیع وحرم الربوا ) : الله تعالی بیع حلاله کړې ده او سود یې حرام کړی دی، او د رسول الله ﷺ ددغه حدیث څخه چي وروسته به راسي ثابت دي .

**دبیع ډولونه** : په بیع یعني رانیولو او پلورلو کي په بنیادي توګه سره درې شیان دي اول عقد بیع یعني نفس معامله چي یو سړی یو شی پلوري او بل هغه رانیسي ، دوهم مبیع یعني هغه شی کوم چي پلورل کیږي، او دریم ثمن یعني قیمت ، ددغه درو شیان په اعتبار په فقهي توګه سره د بیع څو ډولونه دي ،د نفس معاملې او د هغه حکم (چي بیع صحیح ده که یا) په اعتبار د بیع څلور ډولونه دي، ۱: نافذ، ۲: موقوف، ۳: فاسد ، ۴: باطل .

بیع نافذ هغه بیع ته وايي چي په طرفینو کي مال وي (یعني د پلورنکي سره مبیع وي او د رانیونکي سره ثمن وي) او عاقدین یعني رانیونکی او پلورنکی دواړه عاقلان وي او هغوی دواړه بیع یا خو اصالةً وکړي یا وکالةً او دلالةً، په کومه بیع کي چي دغه درې شیان موجود سي نو هغه بیع بالکل صحیح او نافذ ده .

۲: بیع موقوف هغه بیع ته وایي چې په هغه کې یو سړی د بل چا شی د هغه د اجازې یا ولایت څخه پرته وپلوري، د دغه بیع حکم دادی چې تر څو پورې د اصل مالک اجازه او رضا تر لاسه نه سي هغه به صحیح نه وي او د اجازې څخه وروسته صحیح کیږي.
۳: بیع فاسد هغه بیع ده چې باصله یعني د معاملې په اعتبار صحیح وي مگر بوصفه یعني د یو خاص وجه په وجه صحیح نه وي.
۴: بیع باطل هغه بیع ته وایي چې نه خو باصله صحیح وي او نه بوصفه، د بیع فاسد او بیع باطل تفصیل او د هغه مثالونه به انشاء الله تعالی په باب المنهی عنها من البیوع کې راسي.
د مبیع یعني پلورنکي شي په اعتبار د مبیع څلورو ډولونه دي،۲: مقائضه، ۲: صرف، ۳: سلم، ۴: بیع مطلق.
۱: بیع مقائضه هغه دی چې مبیع هم مال وي او ثمن هم مال وي مثلا یو سړی جامه ورکړي او بل سړی د هغه په بدله کې هغه ته غله ورکړي یعني دا د بیع هغه صورت دی چې په اصطلاح کې د مال تبادله ورته ویل کیږي.
۲: بیع صرف داده چې د نقدو تبادله په نقدو سره وکړل سي مثلا یو سړی د روپۍ نوټ ورکړي بل سړی د هغه په بدله کې د یوې روپۍ پیسې ورکړي یا یو سړی اشرفۍ ورکړي او بل سړی هغه په بدله کې هغه ته روپۍ ورکړي یعني روپۍ وته کول یا د روپۍ مېده کول د بیع صرف یو ډول دی.
۳: بیع سلم داده چې پلورنکی د رانیونکي څخه د یو شی قیمت تر مخه واخلي او دا فیصله وسي چې رانیونکی دغه شی د دومره وخت مثلا یوې میاشتي وروسته اخلي.
۴: بیع مطلق داده چې د یو شی بیع د نقدو په عوض کې وکړل سي مثلا پلورنکی یو من غنم ورکړي او رانیونکی د هغه د قیمت په توگه دیرش روپۍ ورکړي.
د ثمن یعني قیمت په اعتبار د بیع څلور ډولونه دي ۱-: مرابحه، ۲: تولیت، ۳: ودیعت، ۴: مساومت.

د مرابحت صورت دادی چې پلورنکی مبیع خپل رانیونکی ته په گټه اخیستلو سره خرڅ کړي، د تولیت صورت دادی چې پلورنکی مبیع د هغه قیمت څخه هم په کم خرڅ کړي یعني په قیمت کې هغه خپله رانیولی وي او د مساومت صورت دادی چې پلورنکی او رانیونکی په خپلو کې په خوښې سره د یو شی رانیول او پلورل وغواړي په کوم قیمت چې یې وکړي او په هغه کې د خرڅونکی د قیمت څه لحاظ نه وي.

# بَابُ الْكَسْبِ وَطَلَبِ الحَلَالِ

## (د پاکي روزۍ او حلال کسب بيان)

د کسب او د حلال طلب مطلب دادی چي د خپل ژوند د ضروریاتو مثلا ډوډۍ، جامې وغیره د تر لاسه کولو لپاره ګټه کول او پاکه روزي او حلال کسب تر لاسه کول.
په دغه باب کي د کسب فضیلت ذکر سوی دیاو دا بیان سوی دی چي کوم کسب ښه دی او کوم خراب دی ، د فقهي په کتابو کي ددې تفصیل داسي دی چي تر ټولو غوره کسب جهاد دی او دهغه څخه وروسته تجارت بیا زراعت او بیا لاسي کار (مثلا کتابت او داسي نور)
کسب یعني ګټه کول فرض هم دي او مستحب هم همدارنګه مباح هم دي او حرام هم، دومره ګټه فرض ده چي ګټونکی او د هغه د کورنۍ د ژوند د اړتیاوو لپاره بس وي او که د هغه پر ذمه پور وي نو د هغه د ادا کولو لپاره بس سي تر دې زیات ګټل مستحب دي په شرط ددې چي په دې نیت سره زیات وګټي چي د خپل او خپل کورنۍ د اړتیاوو څخه څه پاته سي هغه به فقیرانو او مسکینانو او خپلو نورو قریبانو باندي خرڅ کړم همدارنګه د ژوند د اړتیاوو څخه زیات ګټل په هغه صورت کي مباح دي کله چي نیت د خپل شان او شوکت او د خپل وقار حفاظت وي البته محض د مال او دولت په جمع کولو سره د فخر او تکبر د اظهار لپاره زیات ګټل حرام دي که څه هم په حلاله ذریعه سره وي.
د ګټونکي لپاره ضروري دي چي هغه خپل ګټه پر خپل ځان باندي او خپل کورنۍ باندي داسي خرڅ کړي چي نه خو په اسراف کي اخته سي او نه په بخل او تنګۍ کي.
کوم څوک چي پر خپل روزۍ تر لاسه کولو باندي قادر وي نو پر هغه لازمه ده چي هغه وګټي او څرنګه چي کیدای سي په حلاله ذریعه سره د خپل او خپلي کورنۍ د عزتمند ژوند د ساتني لپاره د ژوند ضروریات تر لاسه کولو باندي پر ‌نورو بوج نه سي، هو کوم څوک چي د یو مجبورۍ او عذر په وجه پر ګټي باندي قادر نه وي نو بیا د هغه لپاره ضروري دي چي هغه د نورو څخه په سوال کولو سره د خپل ژوند ساتنه وکړي که په دغه صورت کي یو سړی محض په دې وجه چي د نورو په مخکي لاس غزول د هغه غیرت نه خوښوي نو هغه د چا څخه سوال ونه کړي تر دې چي لوږه او مفلسي د هغه ژوند ختم کړي نو نه یوازي دا چي هغه د خپل مرګ خپله ذمه دار دی بلکه د یو ګناه کار په مرګ به مړ کیږي او کوم څوک چي په خپله ګټه سره د خپل نس

مړولو څخه عاجز وي نو د هغه د حال څخه پر خبر كسانو باندي فرض دي چي د هغه معذور سړي خبر واخلي په دې توګه چي د هغه نس موړ سي يا هغه خپله پر دغه انساني فريضې ادا كولو باندي قادر سي نو يو داسي چا ته د هغه د مرستي سفارش وكړي چي د هغه پر مرسته كولو قادر وي.

حضرت مولانا شاه عبدالعزيز دهلوي رحمه الله د دغه آيت كريمه په تفسير كي:

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ كُلُواْ مِن طَيِّبَاتِ مَا رَزَقْنَاكُمْ:

ژباړه: اې مؤمنانو! تاسو يوازي هغه پاک او حلال رزق خورئ كوم چي موږ تاسو ته دركړى دى ليكلي دي: چي تر ټولو غوره كسب جهاد دى په شرط ددې چي د جهاد د ارادې پر وخت د غنيمت د مال تر لاسه كول په خپل زړه كي قطعا نه وي بلكه په نيت كي اخلاص وي، او ددې څخه وروسته د تجارت درجه ده په خاصه توګه هغه تجارت چي د يوه هيواد څخه بل هيواد ته يا د يوه ښار څخه بل ښار ته د مسلمانانو ضروريات وړى او راوړي، دا ډول تجارت كونكى كه چيري د ګټي تر لاسه كولو سره د مسلمانانو خدمت او د هغوى د اړتياوو پوره كول هم په نيت كي ولري نو د هغه تجارت به د عبادت يو ډول جوړ سي، د تجارت څخه وروسته د زراعت درجه ده د زراعت كسب هم د دنيوي ګټي څخه پر ته د اجر او ثواب لويه ذريعه جوړيږي كله چي په هغه كي د الله تعالى د مخلوق يعني انسانانو او حيوانانو د خوراک برابرولو نيت او د الله تعالى پر رحمت يعني باران او هواء باندي توكل او اعتماد وي.

ددغه درو كسبو څخه پر ته نور كسبونه څه فضيلت نه لري البته د كتابت كسب غوره درجه لري ځكه چي په دغه كسب كي نه يوازي د علم خدمت كيږي بلكه ديني علوم، شرعي احكام، د انبياؤ او بزرګانو احوال هم په ياد كيږي، د پورتنيو كسبو څخه وروسته د هغه كسبو درجې دي چي د عالم د بقاء او د ټولني او تمدن د اصل اړتياوو سره ژور تعلق لري مثلا معماري، خښته وهل، چونه جوړل، غوړي او تېل را ايستل، پمبه خرڅول، تارونه اوبدل، جامې ګنډل، اوړه كول او داسي نور دغه كسبونه هم حسب موقع دي په دې توګه چي د هغه په وجه د شريعت خلاف كارونه نه كوي نو په دې كي څه كراهت نه سته پر خلاف د هغه كسبو چي په هغه كي چټلي، نجاست او جعل سازي او د چم او غلا كارونه وي لكه ښاخونه وهل، د پوست پخول، كفن پلورل، دلالي، غزلي ويل، نقالي، جره بازي (په مخكي زمانه كي دا يو مستقل كسب وو چي يو چم باز به پر عام سړک باندي يو سړى ودروى چي پر لاره باندي تلونكي سړي ته به يې داسي

دوکه ورکړه چي هغه ته به هيڅ معلومات هم نه کيدی چي دا د چا کار دی هغه چي به پر دې حيران او پرېشان سو نو ټولو چمبازانو به پر هغه باندي په زوره خندل، دې ته جره بازي وايي)، دلالي او وکالت (چي په هغه کي د درواغو څخه کار اخيستل کيږي) امامت، اذان او د مسجد خدمت او د قرآن کريم د تلاوت او د تعليم معاوضه اخيستل او داسي نور ټول کسبونه مکروه دي. (شاه عبدالعزيز رحمة الله عليه).

په مغني الطالب کي ليکلي دي چي د کسب او د کسب کونکي فضيلت په حديثو کي ډېر نقل سوی دی همدارنګه کوم څوک چي پر کسب باندي د قادر کېدو سربېره د سستۍ له کبله کسب نه کوي بلکه د خپل ټېم پاسی لپاره ګرځي او دنورو څخه سوال کوي نو د هغه په اړه لوی وعيد بيان سوی دی مګر کوم څوک چي د الله تعالی پر رزاق کېدو باندي په يقين کولو سره د چا په مخ کي لاس نه غزوي او نه په خپل ديني بوختياوو او عبادت کي د خلل لوېدو په وجه کسب وغيره کوي نو په دغه وعيد کي هغه داخل نه دی په شرط ددې چي د خپل مرستي لپاره نورو خلکو ته د هغه زړه متوجه وي او نه د چا د مرستي او خدمت توقع ولري.

کوم څوک چي دومره زر او مال ولري چي د هغه د ژوند د اړتياوو لپاره بس وي يا د بلي لاري څخه هغه ته د ضرورت په اندازه روپۍ تر لاسه کيږي (مطلب دا چي په کور کي ناست وي او هغه ته په جائز وسيلې سره د ضرورت په اندازه آمدني راځي نو د هغه لپاره غوره ده چي هغه په عبادت وغير کي بوخت سي او خپل وخت په کسب وغيره کي بوخت نه کړي، همدارنګه ددیني علم تعليم ورکونکی مفتي، قاضي او داسي نورو خلکو لپاره هم دا حکم دی که دغه خلک د ضرورت په اندازه آمدني ولري نو هغوی ته په خپلو کارو کي بوخت کېدل پکار دي په کسب وغيره کي بوخت کېدل پکار نه دي.

کوم څوک چي يو کسب مثلاً تجارت وغيره اختيار کړي نو پر هغه فرض ده چي هغه يوازي حلال او جائز مال وګټي د حرامو څخه بالکل پرهيز وکړي او په خپل کسب او هنر کي د شرعي احکامو رعايت په هر صورت کي وساتي او په خپل کسب کي د ټولو محنت او کوښښ سربېره د الله تعالی پر ذات توکل او اعتماد ولري چي رزق ورکونکی يوازي الله تعالی دی او کسب محض د يو ظاهري وسيلې په درجه کي دی خپل کسب او هنر دي هيڅکله رزاق نه ګڼي ځکه چي دا شرک خفي دی، د حرام کسب په ذريعه د حاصلېدونکي مال څخه دي پوره پرهيز کوي ځکه چي په دې اړه رسول الله ﷺ څخه دا وعيد منقول دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کوم څوک چي د حرام مال څخه صدقه او خيرات کوي نو د هغه صدقه نه قبليږي او حرام مال په ځان پسي

يعني د مالک د مرګ څخه وروسته د دې څخه پرته نور هيڅ نه وي چي هغه د خپل مالک لپاره داسي د لاري خرابه تو بنه جوړيږي چي هغه د دوږخ اور ته رسوي.
ځيني خلک د ډېر حرام مال څخه پرهېز خو کوي مګر په لږ اندازه کي احتياط نه کوي حالانکه د حرام مال د لږ څخه تر لږ مقدار څخه هم داسي پرهېز کول پکار دي لکه څرنګه چي د ډېر مقدار څخه پرهيز ضروري دی، په دې باره کي دا احساس کول پکار دي چي د حرام مال هغه لږ اندازه په ټول حلال مال کي په يو ځای کېدو سره ټول مال مشتبه ګرځوي او د مشتبه مال او مشتبه کسب په باره کي دا مسئله ده چي د هغه څخه پرهېز کول غوره دي.
که سړي ته يو څوک د تحفې يا بل شي په توګه داسي مال ورکړي چي د هغه د حرمت او حلت په باره کي شک وي نو پکار دي چي هغه شی يا هغه مال په ښه انداز او نرمۍ سره بېرته هغه کس ته ورکړي که چيري په بېرته ورکولو سره هغه ناراضه کيږي نو بيرته ورکول نه دي پکار دا حکم د هغه مشتبه حال د تحقيق کولو هم دی که هغه مشتبه مال ورکونکی نه خفه کيږي نو بيا د هغه مال تحقيق کول پکار دی او که هغه په تحقيق کولو سره خفه کيږي نو بيا د هغه تحقيق کول نه دی پکار ځکه چي مسلمان خفه کول حرام دي او د مشتبه مال تحقيق کول تقوا ده او په دې باره کي مسئله داده چي د تقوا لپاره حرام کار کول نه دی پکار مګر د کوم مال په باره کي چي بالکل تحقيق وي چي هغه حرام دی نو بيا د هغه بېرته ورکول په هر صورت ضروري دي که هم ورکونکی خفه کيږي البته که چيري د هغه مال په بېرته ورکولو کي د فتنې بېره وي نو بيا دي يې بيرته نه ورکوي بلکه د هغه په اخيستلو سره دي يې يو غريب ته ورکړي او که خپله غريب وي نو په خپل استعمال کي دي يې راولي.
په کوم بازار کي چي د حرام مال تجارت کيږي د هغه بازار څخه پرهيز کول پکار دي چي په هغه کي دي رانيول او پلورل نه کوي تر څو چي دا معلومه نه سي چي فلانی مال حرام دی يا مشتبه دی د دې تحقيق او تفتيش ضروري نه دی ځکه د حرمت او شبه نه معلېدو په صورت کي هر ځای او د هر شي تحقيق او تجسس محض وسوسه ده.
د غير مشروع کسب مزدوري هم حرامه ده مثلاً د نارينوو لپاره د ريشم جامې اغوستل يا د خلکو لپاره د سرزور زيورات جوړول همدارنګه د غير مشروع څخه حاصليدونکې ګټه او مال هم حرام دی لکه محتکره (ذخيره سوې) غله خرڅول په ټولو تجارتو کي تر ټولو غوره تجارت د بزازۍ دی همدارنګه په ټولو کسبو کي تر ټولو غوره کسب مشک (ژی) جوړول او ګنډل دي، په رانيولو او پلورلو کي ناچله لوټ چلول قطعا جائز نه دی که چيري ناچله لوټ په لاس ورسي

نو هغه دي په څاه وغيره كي په غور ځولو سره ضائع كړي .

همدرانګه د هر تجار او دوكاندار لپاره ضروري ده چي هغه په معاملاتو كي د مكر او چم څخه كار وا نخلي پر هره خبره دي قسم نه اخلي كه په يو شي كي يو عيب وي نو د رانيونكي څخه دي يې نه پټوي د خپلو شيانو تعريف او توصيف دي د حقيقت څخه زيات نه كوي يو شی دي پر داسي سړي نه خرڅوي چي هغه يې په حرام كار كي استعمالوي مثلاً انګور دي پر شراب جوړونكي نه خرڅوي يا وسله وغيره دي پر غله وغيره باندي نه خرڅوي ، په ناپ او تول كي دي كمي نه كوي په چم او دوكه وركولو سره دي خپل لمن نه چټلوي هر وخت دي دا تصور كوي چي په ناجائزه طريقو او حرامو ذرائعو سره يوه روپي هم په جنت كي د داخلېدو څخه منع كوي پر لږ ګټه دي اكتفاء وكړي ، د نورو تجارتونو او كاروبار په ذريعه دي د زياتي ګټي حرص نه كوي بلكه پاته وختونه دي د آخرت په ښېګڼه كي صرف كړي ځكه چي يوازي ددغه فاني دنيا په عيش او راحت تر لاسه كولو كي ټول وخت لګول او د آخرت د همېشني ژوند د سعادتونو څخه بې پروا كېدل د عقل څخه ډېره ليري خبره ده .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د خپل لاس ګټه تر ټولو غوره ده

﴿۲۶۳۹﴾: عَنِ الْمِقْدَامِ ابْنِ مَعْدِيْكَرَبَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت مقدام بن معديكرب رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

وَسَلَّمَ مَا أَكَلَ أَحَدٌ طَعَامًا قَطُّ خَيْرًا مِنْ أَنْ يَأْكُلَ مِنْ عَمَلِ يَدِهِ وَإِنَّ نَبِيَّ اللّٰهِ

هيڅ خوراك چا تر هغه خوراك غوره نه دئ خوړلی څوك چي يې په خپل لاس سره وګټي او وه يې خوري او د الله تعالى نبي

دَاوُدَ عَلَيْهِ السَّلَام كَانَ يَأْكُلُ مِنْ عَمَلِ يَدِهِ . رواه البخاري .

داؤد عليه السلام به د خپل لاس ګټه خوړل . بخاري.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۳۰۳/۴، رقم: ۲۰۷۲.

**تشريح** حضرت داؤد عليه السلام د الله تعالى يو جليل القدر نبي وو او ددې سره سره الله تعالى ورته ددنيا سلطنت او پاچاهي هم وركړې وه د هغه په اړه منقول دي چي هغه به په خپل حكومت كي د

خلکو څخه په خپل اړه پوښتنه کول کوم چا چي به نه پیژندی د هغه څخه به یې پوښتنه کول چي داؤد څرنګه دی ؟ په خلکو کي د هغه سیرت او عادت د کومي درجې دي او د هغه په باره کي ستا څه تاثر دی، یوه ورځ داسي وسوه چي الله تعالی یوه ملائکه د سړي په شکل کي هغه ته راولیږل نو ده د هغې څخه هم دا ډول پوښتني وکړي ، هغې ورته وویل چي داؤد ﷺ خو ښه سړی دی مګر خبره داده چي هغه د بیت المال څخه روزي خوري ، ددې په اوریدو سره د حضرت داؤد ﷺ په زړه او دماغ کي د برق په ډول پلوشه راغله ، سمدستي یې د خپل پروردګار څخه دعاء وغوښتل چي اې الله ! ما د بیت المال څخه مستغني کړې او ماته یو داسي هنر راکړې چي په هغه سره زه خپل روزي وګټم ، الله تعالی دده دعاء قبوله کړه او د زغري جوړولو هنر یې ورکړی ، نقل سوي دي چي الله تعالی د هغه په لاسونو کي داسي خاصیت ایښی وو چي اوسپنه به یې لاس ته په رسېدو سره د موم په ډول نرمه سوه چي د هغه څخه به یې زغره جوړول او په څلور زره درهمه به یې خرڅول، بلکه ځیني علماء دا لیکلي چي حضرت داؤد ﷺ به هره ورځ یوه زغره جوړول او په شپږ زره درهمه به یې خرڅول او بیا هغه شپږ زره درهمه به یې داسي مصرف کول چي دوه زره به یې پر خپل ځان او خپلي کورنۍ باندي خرڅ کول او څلور زره به یې د بني اسرائیلو په فقیرانو او مسکینانو باندي د صدقې په توګه ویشل .

په هر حال رسول الله ﷺ د پورتني ارشاد په ذریعه دا وفرمایل چي کسب یعني خپل روزي په خپله ګټل د انبیاؤ علیهم السلام سنت دی لکه څرنګه چي د حضرت داؤد ﷺ د عمل څخه معلومه سوه ځکه تاسو هم د هغوی طریقه اختیار کړئ ، دلته رسول الله ﷺ د خپلي روزۍ په خپل لاس ګټلو سره ترغیب ورکړی دی ځکه چي په دې کي لوی لوی فائدې دي مثلا کوم څوک چي په خپل کسب سره ګټه کوي هغه نه یوازي دا چي خپل ځان ته ګټه کوي بلکه نورو ته هم د هغه کسب په ذریعه ګټه رسوي ، او بیا دا چي یو سړی په خپل کسب کي د بوختیا په وجه د خرابو خبرو او خرابو کارو څخه خوندي وي او په خپل لاس سره د کار کولو په وجه د نفس ماتېدل هم کیږي ځکه هغه د خپل نفس د سرکښۍ څخه خوندي کیږي او بیا تر ټولو لویه ګټه داده چي داسي سړی د هیچا محتاج نه وي د چا په مخکي د سوال لاس نه غزوي د چا په مخکي نه عاجزه کیږي او هغه یو عزتمند ژوند تېروي .

### د حلال مال خوړلو فضیلت او د حرام مال څخه د ساتني اثر

﴿۲۶۴۰﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللهَ

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله تعالي

طَيِّبٌ لَا يَقْبَلُ إِلَّا طَيِّبًا وَإِنَّ اللهَ أَمَرَ الْمُؤْمِنِينَ بِمَا أَمَرَ بِهِ الْمُرْسَلِينَ فَقَالَ يَا

پاک دی او پاک شيان قبلوي او الله تعالی و مؤمنانو ته هم د هغه شي حکم ورکړی دی چي د هغه حکم يې و خپلو رسولانو ته هم ورکړی دی لکه چي فرمايلي يې دي : اې

أَيُّهَا الرُّسُلُ كُلُوا مِنَ الطَّيِّبَاتِ وَاعْمَلُوا صَالِحًا إِنِّي بِمَا تَعْمَلُونَ عَلِيمٌ وَقَالَ

رسولانو ! پاک شيان خورئ او نيک کارونه کوئ، بېله شکه زه ستاسو په کړنو خبريېم او فرمايلي يې دي :

تعالی {يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُلُوا مِنْ طَيِّبَاتِ مَا رَزَقْنَاكُمْ} ثُمَّ ذَكَرَ الرَّجُلَ

اې ايمان لرونکو ! پاک حلال خوراکونه کوئ کوم چي موږ و تاسو ته در کړي دي بيا نبي کريم ﷺ د يوه سړي ذکر وکړ

يُطِيلُ السَّفَرَ أَشْعَثَ أَغْبَرَ يَمُدُّ يَدَيْهِ إِلَى السَّمَاءِ يَا رَبِّ يَا رَبِّ وَمَطْعَمُهُ حَرَامٌ

چي اوږد سفر وکړي تار په تار سر دوړو وهلی (ددې سفر څخه د حج سفر مراد دی)، او اوږده کړي خپل لاسونه آسمان ته وايي اې زما ربه! اې زما ربه! اې زما ربه! (دی په داسي حال کي لاسونه پورته کړي چي) خوراک دده حرام وي،

وَمَشْرَبُهُ حَرَامٌ وَمَلْبَسُهُ حَرَامٌ وَغُذِيَ بِالْحَرَامِ فَأَنَّى يُسْتَجَابُ لِذَلِكَ .

رواه مسلم .

څښاک دده حرام وي ، اغوستل دده حرام وي او پرورش يې په حرامو سوی وي نو څرنگه به دده دعاء قبوله سي . مسلم .

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\۷۰۳، رقم: ۶۵ - ۱۰۶۵.

**تشريح**: په دغه ارشاد کي د حلال مال گټلو فضيلت او د هغه د حکم په بيانولو سره دې ته اشاره سوې ده چي الله تعالی خپله پاک دی او حلال رزق ته د هغه په پاک ذات کي په دې وجه نسبت حاصل دی چي حلال رزق هم د حرمت د نجاست څخه پاک وي نو د عبوديت تقاضا داده

چي بنده حلال رزق وخوري چي د هغه پاک او حلال رزق په وجه هغه بنده ته د الله تعالی قرب حاصل سي.
ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ دا ښوولي دي چي د حرام مال څخه د پرهېز کولو اثر د دعاء نه قبلېدل دي نو دا خبره رسول الله ﷺ د يو مثال په ذريعه څرګنده کړې ده چي يو سړی د حج يا نورو عباداتو لپاره اوږد سفر کوي، هغه مقدسو ځايو ته په رسيدو کي پوره مشقت او کوښښ کوي چيري چي غوښتونکې دعاء د قبوليت دروازې ته رسيږي تر دې چي هغه مقاماتو ته ورسيږي چي هلته په رسېدو سره په هغه حال کي د سوال لاس پورته کوي چي د سفر د مشقت او اوږدوالي په وجه د هغه وېښتان ببر وي ټول بدن يې د ګرد او غبار څخه ډک وي او د عاجزۍ او زارۍ پوره کيفيت پر هغه خپور وي، څرګنده ده چي په داسي صورت کي د هغه دعاء په ظاهره قبلېدل پکار دي ځکه چي اول خو هغه يو عبادت کونکی بنده دی بيا هغه مسافر هم دی او د مسافر په باره کي دا معلومه سوې ده چي د هغه دعاء د قبوليت دروازې ته رسيږي، دوهم دا چي په هغه ځای کي دعاء غواړي چيري چي د هري غوښتونکي دعاء لحاظ ساتل کيږي غرض دا چي د دعاء قبلېدو ټولو آثار موجود دي مګر ددغه سړي دعاء نه قبليږي ځکه چي پوهېدونکي پوهيږي چي هغه د حرام مال څخه پرهيز نه کوي يعني د هغه ټول محنت او مشقت او د هغه ټول عبادت او حالت د هغه دعا ځکه مؤثر نه وي چي هغه حرام مال خوري حرامي جامې اغوندي او په کټه کي د حرامو څخه پرهيز نه کوي ددې څخه معلومه سوه چي د دعاء قبوليت پر حلال رزق باندي موقوف دی ځکه ويل سوي دي چي د دعاء دوې دروازې دي يو اکل حلال او دوهم صدق مقال يعني حلال خوړل او رښتيا ويل.

## يوه پيشګوئي

﴿۲۶۴۱﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ يَأْتِي عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ لَا يُبَالِي الْمَرْءُ مَا أَخَذَ مِنْهُ أَمِنَ الْحَلَالِ أَمْ مِنَ الْحَرَامِ. رواه البخاري.

د حضرت ابوهريره رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: پر خلکو باندي به يوه زمانه راسي چي په مال کي چي څه شي په لاس ورسي هغه به د هغه شی پروا نه لري چي دا حلال دي يا حرام (بخاري)

**تخريج:** البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۲۹۶/۱۱، رقم: ۲۰۵۹.

**تشريح**: د قيامت په نژدې زمانه کي چي دعامي گمراهی په وجه چي ډيري خرابی پيدا سي نو هلته به يوه لويه خرابي دا هم پيدا سي چي خلک به د حلال او حرام مال په مينځ کي تميز کول پريږدي چا ته چي کوم مال په لاس ورسي او په کومه ذريعه سره حاصل سي هغه دې د کتلو ځخه پرته چي دا حلال دی که حرام هضم کوي، ددې ځخه ځوک انکار کولای سي چي دغه پيشگويي په نن زمانه کي په پوره توگه ثابت ده نن داسي ځومره خلک دي چي د حلال او حرام مال په مينځ کي فرق کوي هر سړی د مال او زر په تر لاسه کولو کي اخته دی مال حرام دی که حلال ددې هيځ پروا نه کوي بس يوازي لاس ته راتلل پکار دي، يو چا ځومره ښه ويلي دي شعر:

هر چه آمد بدهان شان خورند وآنچه آمد بزبان شان گفتند

دا ددغه زمانې عام حالت دی چي هيځ ډوله او هيځ طبقه ځيني محفوظ نه ده.

## د مشتبه شيانو ځخه هم پرهيز کول پکار دي

﴿۲٦۴۲﴾: وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيْرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت نعمان بن بشير رضي الله عنه ځخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

اَلْحَلَالُ بَيِّنٌ وَالْحَرَامُ بَيِّنٌ وَبَيْنَهُمَا مُشَبَّهَاتٌ لَا يَعْلَمُهُنَّ كَثِيْرٌ مِنَ النَّاسِ

حلال ځرگند دي او حرام ځرگند دي مگر د دې دواړو په مينځ کي مشابه شيان سته چي د هغه ځخه ډېر خلک ناخبره دي

فَمَنِ اتَّقَى الشُّبُهَاتِ اسْتَبْرَأَ لِدِيْنِهِ وَعِرْضِهِ وَمَنْ وَقَعَ فِي الشُّبُهَاتِ وَقَعَ فِي

چا چي ځان وساتی د شبهې د شيانو ځخه هغه خپل دين پاک کړ او خپل عزت يې وساتی او ځوک چي د شبهې په شيانو کي اخته سو هغه اخته سو په

الْحَرَامِ كَالرَّاعِي يَرْعَى حَوْلَ الْحِمَى يُوْشِكُ أَنْ يَرْتَعَ فِيْهِ أَلَا وَإِنَّ لِكُلِّ مَلِكٍ

حرامو کي د هغه کيفيت د شپانه په شان دی چي په بيابان باندي خپل حيوانان ځروي او هر وخت د دې بېره وي چي يو درينده حمله پرې ونه کړي خبردار! دا چي د هر باچا

حِمًى أَلَا وَإِنَّ حِمَى اللّٰهِ مَحَارِمُهُ أَلَا وَإِنَّ فِي الْجَسَدِ مُضْغَةً إِذَا صَلَحَتْ صَلَحَ

يو حد ټاکل سوی دی او د خدای جل جلاله حد حرام شيان دي پوه سئ! د انسان په بدن کي يوه د

غوښو ټوټه ده ترڅو چي هغه ښه وي

الْجَسَدُ كُلُّهُ وَإِذَا فَسَدَتْ فَسَدَ الْجَسَدُ كُلُّهُ أَلَا وَهِيَ الْقَلْبُ. متفق عليه

نو ټوله بدن يې ښه وي او كله چي خرابه سي نو ټول بدن خراب سي چي هغه زړه دی. (بخاري او مسلم)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱\ ۱۲٦، رقم: ۵۲، ومسلم ۳\ ۱۲۱۹، رقم: ۱۰۷– ۱۵۹۱.

**تشريح**: حلال هم څرګند دي: ددې مطلب دادی چي ځيني شيان خو هغه دي چي د هغو حلال کېدل ټولو ته معلوم دي، په نېک کلام کي خبري، هغه مباح شيان چي د هغو کول يا هغو ته کتل صحيح دي لکه واده کول، ګرځېدل وغيره، همدارنګه حرام هم ظاهر دی ددې مطلب دادی چي ځيني شيان داسي دي چي د هغو حرام کېدل د نص په ذريعه بالکل په واضح توګه معلوم سوي دي لکه شراب، خنزير، مردار حيوان، جاري وينه، زنا، سود، درواغ، غيبت، چغلي، هلک او انجلۍ ته په بد نظر کتل او داسي نور، داسي ځيني نور شيان هم سته چي د هغو د حرمت يا حلت په باره کي د دلائلو د تعارض په وجه واضح حکم نه معلوميږي بلکه دا اشتباه کيږي چي دا حرام دي که حلال، داسي څومره شيان دي چي د هغو د حلال کېدو فيصله کول د هر سړي د توان خبره نه ده د هغه نتيجه دا کيږي چي د داسي شيانو حقيقت ډېر خلک نه پيژني البته هغه علماء چي د اجتهاد پر مرتبه فائز وي يا د هغوی علم ډېر وسيع او ژور وي د داسي شيانو په باره کي دواړو خواوو ته دليلونه د يوې خوا دليل خپل قوت اجتهاد او بصيرت فکر او نظر په ذريعه په راجح ګرځولو سره يو واضح فيصله کوي، په هر حال د مشتبه شي په باره کي د علماؤ درې قولونه دي۱: داسي شيان دي نه حلال ګڼل کيږي نه حرام او نه مباح، دا قول تر ټولو زيات صحيح دي او پر دې باندي عمل کول پکار دي، ددې مطلب دادی چي د داسي شيانو څخه پرهېز کول پکار دي، ۲: داسي شيان حرام ګڼل پکار دي، ۳: داسي شيان مباح ګڼل پکار دي، اوس دغه درې سره قولونه په ذهن کي په اېښودو سره د مشتبه مثال داسي وګڼئ چي يو سړي د يوې ښځي سره نکاح وکړل، يو بله ښځه راغله او وه يې ويل چي ما دغه دواړو ته خپل تی ورکړي دی په دغه صورت کي هغه منکوحه ښځه د هغه سړي په حق کي مشتبه سوه ځکه چي يوې خوا ته خو د ښځي بيان دی چي ما دواړو ته تی ورکړی دی ځکه نو دغه دواړه رضاعي ورور او خور سول او ظاهره ده چي د رضاعي ورور او خور په مينځ کي نکاح نه صحيح کيږي نو ددغه دليل تقاضا داده چي دغه نکاح ته قطعا ناجائز وويل سي مګر بلې خوا ته د نکاح د جائز کېدو دا دليل دی

چي دا يوازي د يوې ښځې خبره ده چي پر هغه باندي يو شرعي شاهد نه ستـه پر هغه به ځرنګه يقين وکړل سي چي دا ښځه صحيح وايي ، کيداى سي چي دا محض د بد نيتۍ په وجه دا خبره کوي چي د هغوى دواړو په مينځ کي بېلوالي راولي په دغه صورت کي به وويل سي چي نکاح جائز او صحيح ده ، ددليلونو ددغه اختلاف په وجه لامحاله دا حکم دى چي دا يو مشتبه مسئله ده د هغه سړي په حق کي به غوره دا وي چي دغه ښځه په خپل نکاح کي نه وساتي ځکه چي د مشتبه شي ځخه پرهېز کول غوره دى ، د مشتبه شي دوهم مثال دادى چي د يو سړي سره يو څه روپۍ دى چي په هغه کي ځيني جائز ګټه ده او ځيني ناجائز ګټه نو په دغه صورت کي ټولي روپۍ د هغه سړي په حق کي مشتبه دي نو ددغه روپو ځخه پرهېز کول پکار دي .

په حديث شريف کي حرامو شيانو ته د ممنوع سره تشبيه ورکړل سوې ده لکه ځرنګه چي يو حاکم يو خاص وابښه د نورو لپاره منع ګرځوي چي د هغه په نتيجه کي د خلکو لپاره ضروري وي چي هغوى خپل څاروي د هغه منع وښو ځخه ليري وساتي .

همدارنګه کوم شيان چي شريعت حرام کړي دي هغه دخلکو لپاره ممنوع دي نو د هغو ځخه پرهېز کول واجب او ضروري دي او په مشتبه شيانو کي اخته کېدلو ته يې د ممنوع وابښو په غاړه د عامو څارويو د ځرولو سره تشبيه ورکړې ده چي ځرنګه د شپانه لپاره ضروري ده چي هغه خپل څاروي د منع سوو وابښو ځخه ليري وځاري چي د هغه څاروي په منع وابښو کي داخل نه سي او که هغه خپل څاروي د منع وابښو پر څنډه ځروي نو بيا به ددې احتمال وي چي د هغه څاروي به منع سوي وابښو کي ننوځي چي د هغه په نتيجه کي به هغه مجرم وګرځول سي ، همدارنګه انسان ته پکار ده چي د مشتبه شيانو ځخه ليري اوسي چي په حرامو شيانو کي اخته نه سي ، ددې ځخه وروسته رسول الله ﷺ د پورته ذکر سوي تشبيه په وضاحت کولو سره وفرمايل چي پوه سئ د هر پاچا يوه داسي ممنوع سيمه وي چي په هغه کي څاروي ځرول جرم ګڼل کيږي همدارنګه د الله تعالى ممنوعه سيمه حرام شيان دي چي په هغو کي اخته کېدل د خلکو لپاره منع ګرځول سوي دي (نو ځوک چي په دغه منع سوي سيمه کي داخليږي يعني په حرامو شيانو کي اخته کيږي نو) هغه به د عذاب وړ وګرځول سي او بيا په دغه حرامو شيانو کي هم ځيني شيان خو داسي دي چي د هغه د کونکي بخښنه نه کيږي لکه شرک او ځيني شيان داسي دي چي د الله تعالى پر رضا موقوف دي که وغواړي نو وه به يې بخښي او که وغواړي نو نه به يې بخښي البته په ريښتوني زړه سره توبه او استغفار سره هر شى بخښل کيږي .

حضرت شيخ علي متقي رحمة الله عليه دلته ددغه ترتيب : مباح، مکروه، حرام او کفر قائمولو سره

لیکلي دي چي کله بنده د خپل معاشي، تمدني او ټولنیز ژوند په ټولو اړخونو کي پر دومره ضرورت باندي اکتفاء کوي چي په هغه سره د هغه وجود او د هغه عزت پاته سي نو هغه په خپل دین کي د هري خطرې څخه سلامت وي مګر کله چي د ضرورت د حد څخه د تېرېدو کوښښ کوي نو په مکروهاتو کي داخل سي تر دې چي حرص او هواء یې د مکروهاتو څخه د محرماتو په حد کي داخل کړي چي د هغه نتیجه دا سي چي د هغه اول قدم کفر ته ورسوي نعوذ باالله من ذالک ،

د حدیث په پای کي په انساني بدن کي د غوښي د هغه ټوټې اهمیت بیان سوی دی چي زړه ورته ویل کیږي نو فرمایي چي کله هغه ټوټه خرابه سي یعني د انکار، شک او کفر په وجه پر هغه تیاره خپره سي نو د هغه په نتیجه کي د ګناه او معصیت په وجه ټول بدن خراب سي نو هر عاقل او بالغ لپاره ضروري ده چي هغه خپل زړه ته متوجه وي او هغه په نفساني خواهشاتو کي د بوخت کېدو څخه منع کړي چي هغه په زیات مخته کېدو سره د مشتبه شیانو په حد کي داخل نه سي ځکه چي زړه کوم وخت نفساني خواهشاتو ته روان سي نو بیا د الله تعالی پناه پر هغه ټولو حدو باندي په ټوپ وهلو سره د ظلمت آخري حد ته رسیږي .

په پای کي په دې هم پوه سئ چي دغه حدیث دې ته اشاره کوي چي د بدن غوره والی او خیر پر حلال رزق باندي موقوف دی ځکه چي په حلاله غذا سره د زړه صفائي تر لاسه کیږي او د زړه په صفائي سره ټول بدن په ښه حالت کي وي په دې توګه چي د هغه د هر اندام څخه ښه اعمال کیږي او د ټولو اندامو خرابۍ ته میلان ختم سي .

اوس په دې خبره هم پوه سئ چي د علماء پر دې خبره اتفاق دی چي دغه حدیث د علم او وسائل د وسیع خزانې حامل دی او په کومو حدیثو کي چي د اسلام شرائعو او احکامو دار او مدار وي هغه درې دي یو خو : انما الاعمال بالنیات، دوهم من حسن اسلام المرء ترکه ما لا یعنیه، او دریم دغه حدیث دی : الحلال بین ... الخ .

## د زناکوونکي اجرت حرام دی

﴿۲۶۴۳﴾: وَعَنْ رَّافِعِ بْنِ خَدِيْجٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَمَنُ الْكَلْبِ خَبِيْثٌ وَمَهْرُ الْبَغِيِّ خَبِيْثٌ وَكَسْبُ الْحَجَّامِ خَبِيْثٌ . رواه مسلم

د حضرت رافع بن خدیج رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : د سپي قیمت حرام دي د زنا کاره مزدوري حرامه ده او د حجام (رګ خلاصونکي) اجرت حرام دی .(مسلم) .

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۳\۱۱۹۹، رقم: ۴۱- ۱۵۶۷.

**تشريح** تر ټولو مخکي په دې پوه سئ چي د خبيث لغوي معنی د ناپاک او خراب ده مګر په فقهي توګه د دې هيڅ معنی نه سته ، مجتهدين امامان او فقهاء حسب موقع او محل د دې معنی کله د حرام، کله د ناپاک او کله د مکروه وغيره اخلي .

امام شافعي رحمة الله عليه په (ثمن الکلب خبيث) کي د خبيث معنی د حرام اخلي او وايي چي د حديث څخه دا ثابتيږي چي د سپي د قيمت په توګه تر لاسه کېدونکی مال حرام دی ځکه د سپي رانيول او پلورل هم ناجائز دي سپی که تربيت يافته وي او که غير تربيت يافته وي، د امام ابو حنيفة رحمة الله عليه امام محمد رحمة الله عليه او نورو امامانو قول دادی چي د هغه سپيانو ، شرموښانو او درندګانو رانيول او پلورل جائز دي چي د هغو څخه ګټه تر لاسه کيږي که هغه تربيت يافته وي او که غير تربيت يافته ، دغه حضرات د ثمن الکلب خبيث په باره کي دا ويلي دي چي لفظ د خبيث پر محض حرمت باندي دلالت نه کوي چي د هغه واضح مثال د دغه حديث الفاظ (وکسب الحجام خبيث) دی که چيري د لفظ خبيث څخه يوازي حرام مراد وي نو د دې مطلب به دا وي چي د ويني کښونکي مزدوري حرامه ده حالانکه په اتفاق سره د ټولو علماؤ په نزد هغه حرام نه ده ، نو په ثمن الکلب خبيث کي د خبيث لفظ معنی د ناپاک ده او د دغه جملې مطلب دادی چي د سپي قيمت مکروه دی حرام نه دی .

په (کسب الحجام خبيث) کي د خبيث معنی د ناخوښه ده ځکه چي خپله د رسول الله ﷺ په باره کي ثابت دي چي د ويني کښونکی مزدوري يې ورکړې ده که چيري دغه مزدوري حرامه وای نو رسول الله ﷺ به خپله ولي ورکولای نو د دې جملې مطلب به دا وي چي وينه کښونکي د خپل مزدوري په توګه چي کوم مال تر لاسه کيږي هغه ناخوښه يعني مکروه تنزيهي دی .

### د سپي د قيمت مسئله

﴿۲۶۴۴﴾ : وَعَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ ثَمَنِ الْكَلْبِ وَمَهْرِ الْبَغِيِّ وَحُلْوَانِ الْكَاهِنِ . متفق عليه

د حضرت ابو مسعود انصاري رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د سپي قيمت څخه د زناکاره او د کاهن د اجرت څخه منعه فرمايلې ده . (بخاري اومسلم) (کاهن) د راتلونکي حالاتو بيانولو والا .(نجومي) : يعني فالګرته ويل کيږي .

**تخريج**: البخاري في الصحيح ۴\۴۲۶، رقم: ۲۲۳۷، ومسلم ۳\۱۱۹۸، رقم: ۳۹\۱۵۶۷.

**د لغاتو حل**: البغي: هو ما تاخذه الزانية على الزنا (زنا كاره ښځه چي د زنا په بدل كي روپۍ اخلي). حُلوان، اي يعطاه على الكهانة. (هغه چي د كهانت په بدل كي وركول كيږي).

**تشريح** د سپي د رانيول او پلورل او د هغه د قيمت په توګه تر لاسه كېدونكي مال په باره كي تفصيلي بحث ددې څخه مخكي سوى دى، په دغه حديث كي د سپي د قيمت د منع كېدو چي كوم حكم بيان سوى دى په دې باره كي حنفي علماء وايي چي دا حكم هغه وخت وو كله چي رسول الله ﷺ د سپيانو د وژلو حكم كړى وو او رسول الله ﷺ د سپيانو څخه د ګټي اخيستلو څخه هم منع كړې وه مګر بيا وروسته رسول الله ﷺ ددې اجازه وركړه چي د سپيانو څخه ګټه واخيستل سي تر دې چي دا هم منقول دي چي يو سړي د ښكار سپى وژلى وو نو رسول الله ﷺ هغه ته حكم وركړى وو چي د سپي مالك ته څلوېښت درهمه وركړي، همدارنګه يو بل سړي د رمې د ساتني سپى وژلى وو نو رسول الله ﷺ هغه ته حكم وركړى چي مالك ته د هغه سپي په بدله كي يو پسه وركړي.

علامه طيبي رحمة الله عليه فرمايي چي د جمهورو علماؤ مذهب دادى چي نه خو د سپي رانيول او پلورل جائز دي او نه د سپي وژونكي ته دا ضروري ده چي هغه ته د سپي قيمت وركړي كه سپى تربيت يافته وي او كه غير تربيت يافته وي، همدارنګه كه د هغه سپي ساتل جائز وي او كه ناجائز مګر امام ابو حنيفة رحمة الله عليه د هغه سپي رانيول او پلورل جائز ګرځولي دي چي د هغه څخه ګټه تر لاسه كول مقصد وي مثلا د كور ساتنه كوي، يا د رمې ساتنه كوي او داسي نور، امام ابو حنيفة رحمة الله عليه د داسي سپي د وژونكي لپاره دا ضروري ګرځولې ده چي د هغه سپي مالك ته د هغه قيمت وركړي.

د بد كاري ښځي د هغه مال حكم چي هغه يې د خپل بد كارۍ په سبب تر لاسه كوي په تېر حديث كي بيان سوى دى.

كاهن هغه سړي ته وايي چي د راتلونكي زمانې خبري ښيي همدارنګه د حلوان لغوي معنى كه څه هم د خواږه شي ده مګر په اصطلاحي توګه حلوان هغه مزدورۍ ته وايي چي كاهن يې د راتلونكو خبرو ښودلو په بدله كي تر لاسه كوي كه هغه د شيريني او طعام وغيره په صورت كي وي يا د جامو، نقدو وغيره په شكل كي وي، د كاهن مزدورۍ ته د حلوان ويلو وجه داده چي څرنګه شيريني خوړلو سره طبيعت ته خوشحالي محسوس كيږي همدارنګه كاهن د خپل مزدورۍ اخيستلو سره ډېره خوشحالي محسوس كوي ځكه چي هغه بېله مزدورۍ او

محنت څخه مال اخلي .

دا خبره خو معلومه ده چي ځرنګه کاهن ته تلل او د هغه څخه د راتلونکو خبرو حال معلومول حرام دي همدارنګه د پټو خبرو معلومولو لپاره نجومیانو غیره ته تلل او د هغه پر ښوولو خبرو باندي يقين كول حرام دي په دې باره كي د هيڅ عالم اختلاف نه سته ، ددې تفصيلي بحث به انشاء الله تعالى په باب السحر كي راسي .

## وينه خرڅول حرام دي

﴿۲۶۴۵﴾: وَعَنْ اَبِيْ جُحَيْفَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ ثَمَنِ

د حضرت ابو جحيفه رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ منعه فرمايلې ده د قيمت

الدَّمِ وَثَمَنِ الْكَلْبِ وَكَسْبِ الْبَغِيِّ وَلَعَنَ آكِلَ الرِّبَا وَمُوكِلَهُ وَالْوَاشِمَةَ وَالْمُسْتَوْشِمَةَ وَالْمُصَوِّرَ . رواه البخاري

څخه د ويني د سپي د قيمت څخه د زناكاري ښځي د اجرت څخه او پر سود خور، پر بدن باندي د خالو وهونكي (كه خپله وي او كه بل څوک وي) او پر عكسو جوړونكو باندي لعنت ويلى دى .(بخاري)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري):۴\ ۳۱۴، رقم: ۲۰۸۶،

**تشريح**: د ويني د قيمت څخه د منع كولو مطلب دادى چي رسول الله ﷺ د ويني د رانيولو او پلورلو څخه منع فرمايلې ده، وينه نجسه ده او د هغه رانيول او پلورل جائز نه دي او ظاهره ده چي د كوم شي رانيول او پلورل جائز نه وي نو د هغه قيمت هم ناجائز دى ، ځيني حضرات د ثمن الدم پر مزدورۍ محمول كړې دي په دغه صورت كي به د منع تعلق د مكروه تنزيهي سره وي ، د سپي قيمت او د بد كارۍ ښځي د مزدورۍ په باره كي په تېرو حديثو كي بيان سوى دى .

د خال وهلو صورت دادى چي د بدن پر يو اندام باندي يا پر ټول بدن باندي په ستن وهلو سره رانجه يا نيل وغيره لګوي چي په هغه سره د رانجو يا شين داغ لګيږي ، رسول الله ﷺ پر خال وهونكي باندي لعنت ويلى دى ځكه چي دا د فاسقانو او غير مسلمانانو كار دى، او په دې طريقه سره د الله تعالى د وركړل سوي بدن په اصل خلقت كي تغير او بد نمائي كيږي، كه د يو مسلمان پر بدن باندي د خال وهلو داغ وي نو د هغه په باره كي په تعليق القرار كي ليكلي دي

چي هغه دي دغه داغ په يو تدبير سره ليري کړي او که د زخم پېدا کولو څخه پرته په يو تدبير سره هغه خرابېدل ممکن نه وي نو بيا دي يې پرېږدي او د هغه د خرابولو لپاره د زخم وغيره تکليف وړلو ضرورت نه سته البته پر دغه بد کار باندي پښيماني او توبه کول پکار دي د توبې څخه وروسته به گناه کار نه وي.

رسول الله ﷺ پر مصور (عکس جوړونکي) باندي هم لعنت ويلی دی مگر د مصور څخه مراد د حيوان يا ساه لرونکي شيانو عکس جوړول مراد دی د ساه نه لرونکي شيانو مثلاً درخته، غر او داسي نورو شيانو عکسونه جوړول او لګول صحيح دي.

خطابي رحمة الله عليه فرمايي چي د عکس دوه ډوله دي ۱: يو خو دادی چي پر کوم شي باندي عکس جوړېږي هغه شی د عکس يو ضمني شی وي او عکس مقصود بالذات وي مثلاً کله چي عکس واخيستل سي يا پر کاغذ باندي جوړ کړل سي نو د هغه عکس د کاغذ حيثيت محض ضمني وي د اصل مقصد تعلق د عکس سره وي، دوهم ډول دادی چي پر کوم شي باندي عکس جوړ سوی وي هغه شی مقصد بالذات وي او عکس د هغه شي يو ضمني وصف وي مثلاً پر لوښو، ديوالو، چتونو، غاليو او داسي نورو شيانو باندي جوړ سوي عکسونه، نو د دوهم ډول عکس رانيول او پلورل جائز دي مگر د دواړو ډولو جوړول ناجائز دي.

## د حرام شيانو رانيول او پلورل هم حرام دي

﴿۲۶۴۶﴾: وَعَنْ جَابِرٍ اَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ عَامَ الْفَتْحِ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه د فتحي په کال چي وو هغه ﷺ په مکه کي دا واورېدل چي ويل يې:

وَهُوَ بِمَكَّةَ إِنَّ اللّٰهَ وَرَسُولَهُ حَرَّمَ بَيْعَ الْخَمْرِ وَالْمَيْتَةِ وَالْخِنْزِيرِ وَالْأَصْنَامِ

خداي جل جلاله او د هغه رسول ﷺ حرام کړي دي شراب خرڅول، د مردارو خرڅول، خنزير خرڅول او بتان خرڅول،

فَقِيلَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَرَأَيْتَ شُحُومَ الْمَيْتَةِ فَإِنَّهَا يُطْلَى بِهَا السُّفُنُ وَيُدْهَنُ بِهَا

يو چا پوښتنه وکړه يا رسول الله! د مردار د وازګي په باره کي څه حکم دي؟ هغه په کښتو

الْجُلُودُ وَيَسْتَصْبِحُ بِهَا النَّاسُ فَقَالَ لَا هُوَ حَرَامٌ ثُمَّ قَالَ عِنْدَ ذٰلِكَ قَاتَلَ

موړل كيږي په دې باندي پوستونه غوړ كيږي او خلک په دې سره اوربلوي نبي ﷺ فرمايل: ددې څخه فائده اخيستل جائز نه دي بلكه حرام دي تر دې وروسته نبي ﷺ وفرمايل:

اللهُ الْيَهُودَ إِنَّ اللهَ لَمَّا حَرَّمَ شُحُومَهَا اجْمَلُوهُ ثُمَّ بَاعُوهُ فَأَكَلُوا ثَمَنَهُ. متفق عليه

خدای تعالی دي پر يهودو باندي لعنت وكړي هر كله چي خداي تعالي د خنزير وازګه حرامه كړه نو هغوی به وازګه ويلي كول او خرڅول به يې او د هغې ګټه به يې خوړل. (بخاري او مسلم)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴\ ۴۲۴، رقم: ۲۲۳۶، ومسلم ۳\ ۱۲۰۷، رقم: ۷۱– ۱۵۸۱.

**تشريح** عطاء رحمة الله عليه ليكلي دي چي د شرابو په پورتني حكم كي باجه هم داخل ده او د هغه رانيول او پلورل هم جائز نه دي او كه څيري يو څوک د يو چا باجه تلف كړي نو پر هغه باندي ضمان يعني مالک ته د هغه قيمت ادا كول واجب نه دي.

د امام شافعي رحمة الله عليه مذهب دادی چي د مردار حيوان د وازګو رانيول او پلورل جائز نه دي مګر د هغه د وازګو څخه ګټه اخيستل يعني د هغه د خوړلو او پر بدن باندي د موږلو څخه پرته په بل كار كي استعمال جائز دی لكه پر كښتۍ يې وموږي يا څراغ په بل كړي يا داسي نورو كارونه.

همدارنګه د امام شافعي رحمة الله عليه د مذهب سره سم كوم غوړي يا زيتون چي د نجاست لوېدو په وجه نجس سوي وي نو هغه په څراغ كي بلول يا د هغه څخه صابون جوړول جائز دي، د جمهورو مذهب دادی چي څرنګه د مردار شي رانيول او پلورل ناجائز دي همدارنګه د هغو څخه ګټه اخيستل يعني هغه په يو شي كي استعمالول هم ناجائز دي ځكه چي د مردار شي حرمت په طريقه د عموم ثابت دي البته پخ سوی پوست ددې څخه مستثنی دی ځكه چي د هغه جواز په خاصه توګه ثابت دی.

امام ابوحنيفة رحمة الله عليه او د هغه پيروانو علماؤ د نجس تيلو د رانيولو او پلورلو اجازه وركړې ده البته د هغوی په نزد نجس تېل په څراغ كي بلوډل په خاصه توګه په مسجد كي مكروه دي.

د حديث په پای كي د يهوديانو يو خاص عيب ته اشاره سوې ده هغه دا چي كله الله تعالی د هغوی لپاره د مردار حيوان وازګه حرامه كړه نو هغوی دا حيله اختيار كړه چي هغوی به د وازګي په ويلي كولو سره خرڅول او بيا د هغه د قيمت په توګه تر لاسه سوی مال به يې په خپل استعمال كي راوستی او دا به يې ويل چي الله تعالی خو د وازګي خوړلو څخه منع فرمايلې ده او موږ خو وازګه نه خورو بلكه د هغه د قيمت په توګه تر لاسه سوی مال خورو، يعني هغوی جاهلانو د وازګي په ويلي كولو سره دا ګڼل چي موږ د وازګي حقيقت بدل كړی دی چي د ويلي

کېدو څخه وروسته هغه وازګه نه ده څکه نو په دغه صورت کي د الله تعالی د حکم خلاف ورزي نه کیږي، رسول الله ﷺ د هغوی ددغه چم په وجه هغوی د الله تعالی د لعنت مستحق وګرځول، ددې څخه دا خبره معلومه سوه چي داسي حیله اختیارول چي د هغه په سبب د حرام ارتکاب کیږي بالکل غلط دی، او دا حدیث ددې دلیل هم دی چي د داسي شي قیمت د حکم په اعتبار د هغه شي تابع دی که هغه شی حرام وي نو د هغه قیمت به هم حرام وي او کوم شی چي حلال وي نو د هغه قیمت به هم حلال وي.

## د یهودیانو یوه بدي

﴿۲۶۴۷﴾: وَعَنْ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قَاتَلَ اللّٰهُ الْيَهُودَ حُرِّمَتْ عَلَيْهِمُ الشُّحُومُ فَجَمَلُوهَا فَبَاعُوهَا. متفق علیه

د حضرت عمر رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: خدای تعالي دي یهودیان تباه کړي په هغو باندي مرداره وازګه حرامه کړل سوه نو هغوی وازګه ویلي کړه او خرڅول به ئې. (بخاري او مسلم)

**تخریج**: البخاري في الصحیح (فتح الباري): ۴\۴۱۴، رقم: ۲۲۲۳، ومسلم ۳\۱۲۰۷، رقم: ۷۲- ۱۵۸۲.

## د پیشي درانیولو او پلورلو مسئله

﴿۲۶۴۸﴾: وَعَنْ جَابِرٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰي عَنْ ثَمَنِ الْكَلْبِ وَالسِّنَّوْرِ. رواه مسلم.

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د سپي او د پیشي د قیمت څخه منع فرمایلې ده. (مسلم)

**تخریج**: مسلم في الصحیح: ۳\۱۱۹۹، رقم: ۴۲- ۱۵۶۹.

**د لغاتو حل**: السنور: حیوان الیف، من خیر ماکله الفار (پیشي).

**تشریح** علامه طیبي رحمه الله فرمایي چي د پیشي روپۍ په استعمال کي راوستل د نهي تنزیهي په توګه دي، تقریبا ټولو علماؤ د پیشي رانیول، پلورل، هبه کول او عاریتا ورکولو ته جائز ویلي دي البته حضرت ابوهریره رضی الله عنه او په تابعینو کي ځیني حضرات ددغه حدیث د ظاهري معنی سره سم ددې د جواز قائل نه وه.

## دويني کښلو مزدوري حلاله ده

﴿۲۶۴۹﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ حَجَمَ أَبُو طَيْبَةَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَمَرَ لَهُ بِصَاعٍ مِنْ تَمْرٍ وَأَمَرَ أَهْلَهُ أَنْ يُخَفِّفُوا مِنْ خَرَاجِهِ. متفق عليه.

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روايت دی چي ابو طيبه رضی الله عنه د رسول الله ﷺ رګ وواهه نو نبي کريم ﷺ د هغه لپاره د يوه صاع (يوه پيمانه) د خرماؤ ورکولو حکم وکړ او مالکانو ته يې وويل: چي د هغه څخه کم اجرت اخلي (بخاري او مسلم)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴\ ۳۲۴، رقم: ۲۱۰۲، ومسلم ۳\ ۱۲۰۴، رقم: ۶۲ - ۱۵۷۷

**تشريح**: د عربو دا عادت وو چي هغوی به خپل غلامان او مينزي په مختلفو کسبو کي لګول او د هغوی سره به يې دا فيصله کول چي د مزدورۍ په توګه تر لاسه سوي مال کي به دومره برخه زموږ وي او د پاته تاسو حقدار ياست، نو ابوطيبه چي د بني بياضه غلام وو د رسول الله ﷺ خدمت وکړ نو رسول الله ﷺ ډېر ځيني خوشحاله سو او د هغه مالکانو ته يې وويل چي تاسو خلک د ابو طيبه په ګټي کي چي کومه برخه اخلئ په هغه کي يو څه کمي وکړئ.

دا حديث ددې خبري دليل دی چي د ويني کښلو کسب يو حلال کسب دی او د هغه مزدورۍ اخيستل جائز دي او ددغه حديث څخه يو څو نور مسائل هم ثابتيږي اول دا چي علاج کول او علاج کونکي ته مزدوري ورکول مباح دي، دوهم دا چي د مالک لپاره جائز دي چي هغه په خپل غلام باندي کار وکړي او د هغه د ګټي څخه خپل برخه وټاکي، دريم دا چي صاحب حق او صاحب مطالبه ته سفارش کول جائز دي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د اولاد ګټه خوړل جائز ده

﴿۲۶۵۰﴾: عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَطْيَبَ مَا

د بي بي عائشي رضی الله عنها څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کوم شی چي تاسو خورئ نو

أَكَلْتُمْ مِنْ كَسْبِكُمْ وَإِنَّ أَوْلَادَكُمْ مِنْ كَسْبِكُمْ. رواه الترمذي والنسائي

په هغه ټولو کي افضله هغه دي چي په خپل کسب سره يې وګټئ او وې خورئ او ستاسو اولاد

هم ستا سو د کسب څخه شمیرل کیږي (یعني د اولاد ګټه هم خوړل و تا سو ته جائزدي). (ترمذي

وابن ماجة و في رواية ابي داؤد والدارمي ان اطيب ما اكل الرجل من كسبه

وان ولده من كسبه

، نسائي ابن ماجه) او د ابو داؤد او دارمي په روایت کي دا الفاظ هم سته: بهتر د هغه چي خوري یې سړی له کسبه یې وي او اولاد دده له کسبه دی .

**تخریج**: الترمذي في السنن ۳\ ۶۳۹، رقم: ۱۳۵۸، والنسائي ۷\ ۲۴۰، رقم: ۴۴۶۹ وابن ماجه في السنن ۲\ ۷۶۸، رقم: ۲۲۹۰، وابوداود في السنن ۳\ ۸۰۰، رقم: ۳۵۲۸، والدارمي ۲\ ۳۲۱، رقم: ۲۵۳۷.

**تشریح** اولاد ته ګټه په دې اعتبار ویل سوي دي چي هغوی د مور او پلار د نکاح په نتیجه کي پیدا کیږي، یعني ددغه ارشاد په ذریعه دې ته اشاره سوې ده که چیري مور او پلار د ګټي وړ نه وي نو د هغوی لپاره د اولاد ګټه خوړل جائز دي مګر که چیري مور او پلار په خپل لاس سره د خپل رزق لاره خپل لتولای سي نو بیا د هغوی لپاره دا جائز نه ده چي پر خپل اولاد باندي بار جوړ سي البته د اولاد ګټه خوړل جائز دي، د حنفي علماؤ دا قول دی.

علامه طیبي رحمة الله علیه فرمایي که چیري مور او پلار محتاج وي نو د هغوی د ژوند د اړتیاوو برابرول پر زامنو باندي واجب دي مګر د امام شافعي رحمة الله علیه په مذهب کي د دغه وجوب شرط دادی چي هغوی د ګټي څخه معذور وي او د نورو علماؤ په نزد دا شرط نه سته.

## د حرام مال حکم

﴿۲۶۵۱﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ عَنْ رَّسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

قَالَ لَايَكْسِبُ عَبْدٌ مَالَ حَرَامٍ فَيتصدق مِنْهُ فَيُقْبَلَ مِنْهُ لا ينفق منه

کوم بنده چي حرام وګټي او صدقه یې کړي او هغه دده څخه قبوله کړل سي (هغه هیڅ کله نه قبلیږي) او هغه حرام مال څخه چي څوک خپل ځان یا اولاد باندي څه خرڅ کړي

فیبارك له فیه وَلَا يَتْرُكُه خَلْفَ ظَهْرِهِ إِلَّا كَانَ زَادَهُ إِلَى النَّارِ إِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ

وروسته پرېږدي د هغه دپاره هغه د دوږخ توښه ده خداي تعالي

لَا يَمْحُو السَّيِّئَ بِالسَّيِّئِ وَلَكِنْ يَمْحُو السَّيِّئَ بِالْحَسَنِ إِنَّ الْخَبِيثَ لَا يَمْحُو الْخَبِيثَ . رواه احمد وكذا في شرح السنة .

بد په بد نه ليري كوي (گناهونه حرام مال سره نه ليري كوي) بلكه بدي په نيكي سره ليري كوي (يعني په پاک مال سره گناهونه ليري كوي) ناپاک مال ناپاكي نه ليري كوي .(احمد شرح السنة).

**تخريج**: احمد في المسند ۱\۳۸۷، شرح السنة ۸\۱۰، رقم: ۲۰۳۰.

**تشريح**: د مال او زر هوس انسان څومره ړوندوي چي هغه ددغه يو څو ورځي دنيا د جائز او ناجائز راحت له كبله د عافيت هيڅكله نه ختمېدونكى ژوند تباه كوي ، هغه ددې فكر نه كوي چي د كوم مال او زر له كبله هغه خپل ژوند د عزت او آبرو په لوى نيلام گاه كي دروي چي د هغه په نيتجه كي كله درواغ وايي كله مكر او چم څخه كار اخلي كله د نورو حق غصب كوي او كله د غريبانوويني څښني تر دې چي د خپل دين او ايمان سودا كوي، خپل عزت د لاسه وركوي او د انساني شرف تر ټول حد تېرى كوي په پاى كي د ټولو ذرائعو او حرامو طريقو سره گټلى هغه مال او زر خپل د گټونكي لپاره د مرگ څخه وروسته يو داسي توښه ذريعه جوړه سي چي هغه د جهنم اور ته ورسوي ځكه چي اول خو په حرامو سره د گټلو او بيا د هغه گټي څخه د فائدې اخيستلو گناه پر هغه وي .

ددې څخه پرته د مرگ څخه وروسته چي كوم حرام مال او زر پاته سي هغه د يو بل پسې د وارثانو ملكيت سي چي د هغه څخه د گټي اخيستلو په وجه هغوى ټول په گناه او معصيت كي اخته وي او د هغه پاى د هغه حرام مال په ذريعه تر قيامته پوري د صادرېدونكو گناهونو توروالى د هغه په عمل نامه كي داغداره كيږي .

ان الله لا يمحو السيئ ...الخ : دغه جمله مستانفه يعني يوه بېله جمله ده چي په منزله د تعليل عدم قبول يعني د حرام مال د صدقې د نه قبلېدو د علت بيانولو لپاره استعمال سوې ده ، ددغه جملې مطلب دادى چي د حرام مال څخه صدقه وركول د ثواب ذريعه خو څه بلكه دا خپله يوه گناه ده او الله تعالى خراب اعمال د خرابو په ذريعه نه ليري كوي يعني كه څوک غواړي چي خپل حرام مال څخه د الله تعالى په نامه په صدقه وركولو سره په خپلو گناهو كي د تخفيف سامان برابر كړي نو دا ناممكنه ده ځكه چي د حرام مال څخه صدقه وركول خپله گناه ده بلكه

ځيني علماء داسي وايي که د حرام څخه صدقه او خيرات ورکړي او بيا پر هغه باندي د ثواب اميد ولري نو هغه د کفر حد ته رسيږي او که يو فقير او مسکين ته دا معلومه سي چي هغه ته صدقه ورکونکی چي کوم مال ورکوي هغه حرام مال دی او دده سربېره هغه د صدقه ورکونکی لپاره دعاء کوي نو هغه هم د کفر حد ته رسيږي.

ولکن يمحو السيئ بالحسن: د دغه جملې تعلق هم د مخکني جملې سره دی، مطلب دادی چي په ګناهونو کي تخفيف يا د ګناهونو بخښنه د نيکو او ښو اعمالو په ذريعه کيږي مثلاً د حلال مال څخه د الله تعالی په لاره کي مصرف کول هغه ته به د هغه ثواب هم تر لاسه کيږي او د هغه ګناهونه به هم ختميږي، لکه چي په دغه خبره سره دغه آيت کريمه ته اشاره ده: ان الحسنات يذهبن السيئات، بېله شکه نيکۍ بدۍ ختموي.

او دغه ټولي جملې په اصل کي د حديث د آخري عبارت (ان الخبيث) د تمهيد او مقدمې په توګه دي.

## پر حرام مال خوړلو باندي وعيد

﴿۲۶۵۲﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ يَدْخُلُ [الْجَ]ـنَّةَ لَحْمٌ نَبَتَ مِنَ السُّحْتِ وَكُلُّ لَحْمٍ نَبَتَ مِنَ السُّحِتِ كَانَتِ النَّارُ أَوْلٰى [بِهِ] رواه أحمد والدارمي والبيهقي في شعب الإيمان

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: ولاړه به نسي جنت ته هغه غوښه چي په حرامو سره پالل سوي وي او کومي غوښي چي په حرام مال سره پالل سوي وي هغه غوښه د دوږخ مستحقه ده. (احمد دارمي بيهقي په شعب الايمان کي).

**تخريج**: احمد في المسند ۳\ ۳۲۱، والدارمي ۲\ ۴۰۹، رقم: ۲۷۷۶، والبيهقي في شعب الايمان ۵\ ۵۶، رقم: ۵۷۶۱.

**تشريح**: په حرام مال وده کونکی بدن په دوږخ کي داخليږي، دده څخه يا خو دا مراد دی چي داسي سړی په شروع کي د خلاصون تر لاسه کونکو خلکو سره به جنت ته نه داخليږي بلکه هغه چي څومره حرام مال خوړلی وي د هغه په اندازه سزا به خوري او بيا به په جنت کي داخل کړل سي، يا دا چي هغه سړی به د جنت په اعلی درجو کي داخل نه سي، او يا دا مراد دی چي هغه خلک به په جنت کي نه داخليږي کوم چي د حرام مال په حرام ګڼلو سره نه بلکه هغه حلال مال په

یقین کولو سره خوري ، یا دا چي ددغه مبارک ارشاد اصل مقصد د حرام مال خوړلو خرابي بیانول دي او ددې څخه مراد تهدید او سخت وعید دی.
کوم څوک چي د حرام مال خوړلو څخه وروسته پرخپل دغه بد فعل باندي په پښیماني سره توبه وکړي یا الله تعالی هغه بېله توبې په خپل فضل او کرم سره و بخښي او هغه چي د کومو خلکو څخه په حرامه طریقه مال اخیستی وي هغوی راضي کړي یا هغه ته د یو چا شفاعت تر لاسه ... نو هغه سړی به د دغه وعید څخه مستثنی وي.

## د شکمنو شیانو څخه ځان وساتئ

﴿۲۶۵۳﴾: وَعَنِ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ قَالَ حَفِظْتُ مِنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت حسن بن علي رضی الله عنه څخه روایت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا خبره یاد کړې ده

وَسَلَّمَ دَعْ مَا يَرِيبُكَ إِلَى مَا لَا يَرِيبُكَ فَإِنَّ الصِّدْقَ طُمَأْنِينَةٌ وَإِنَّ الْكَذِبَ رِيبَةٌ . رواه احمد والترمذي والنسائي و روى الدارمي الفصل الاول .

کوم شی چي تا په شک کي اچوي هغه پرېږده او د هغه شی ولور ته متوجه سه چي تا په شک کي نه اچوي ځکه چي حق او صداقت د زړه د پاره اطمینان وربخښي .او باطل د شک او تردد موجب دي . (احمد ترمذي نسائي دارمي)

**تخریج**: احمد في المسند ۱\ ۲۰۰، والترمذي في السنن ۴\ ۵۷۶، رقم: ۲۵۱۸، والنسائي في ۸\ ۳۲۷، رقم: ۵۷۱۱، والدارمي ۲\ ۳۱۹، رقم: ۲۵۳۳.

**تشریح**: د ارشاد مطلب دادی چي په شبهاتو کي د لوېدو څخه ځان وساتئ او کوم شیان چي په شبهاتو کي اخته کونکي وي د هغو څخه ځان وساتئ د ځیني علماؤ په نزد دا مطلب دی چي د اقوالو او اعمالو د کوم شي د حلت او حرمت په باره کي چي ستا ضمیر په شک کي وي نو د هغه په پرېښودو سره هغه شی اختیار کړه چي د هغه په باره کي ستا ضمیر په شک کي نه وي ځکه چي د انسان ضمیر غلطه رهنمائي نه کوي د یو شي په باره کي د ضمیر په شک کي اخته کېدل د هغه شي د غلط او باطل کېدو علامه ده او د یو شي په باره کي د ضمیر مطمئن کېدل د هغه شي د صحیح کېدو او حق کېدو علامه ده یعني د یو شي د صحیح کېدو او د هغه د حلال او حرام پیژندلو لپاره دا یوه قاعده ده مگر دا په ذهن کي کښېښول پکار دي چي دا خبره د هر چا لپاره حلاله نه وي بلکه دغه وصف یوازي د صالحینو بندگانو په نصیب وي چي د هغوی ذهن، فکر،

زړه او دماغ د تقوا او ایمان څخه جوړ وي.

## د نیکۍ او بدۍ پیژندنه

﴿۲۶۵۴﴾: وَعَنْ وَّابِصَةَ بْنِ مَعْبَدٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَا

د حضرت وابصه بن معبد رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل : اې

وابصة جِئْتَ تَسْأَلُ عَنِ الْبِرِّ وَالْإِثْمِ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ فَجَمَعَ أَصَابِعَه فضرب

وابصه! ته و پوښتني کولو ته راغلي یې چې نیکي څه ده؟ او ګناه څه ده؟ ما عرض وکړ: بلې هو! (په دې اوریدو سره) نبي کریم ﷺ خپلې ګوتي یو ځای کړې او زما سینه یې په ووهل

صدره وقال اسْتَفْتِ نَفْسَكَ اسْتَفْتِ قَلْبَكَ ثَلَاثًا الْبِرُّ مَا اطْمَأَنَّتْ إِلَيْهِ قلبك

ویې فرمایل: د خپل نفس څخه پوښتنه وکړه د خپل زړه څخه پوښتنه وکړه درې واره یې دا الفاظ و فرمایل (بیا یې وفرمایل) نیکي داده چې د هغې سره ستا و نفس ته ارام (سکون قرار اطمینان) حاصل سي او ستا زړه ته اطمینان ورسي

وَالْإِثْمُ مَا حَاكَ فِي النَّفْسِ وَتَرَدَّدَ فِي الصَّدْرِ وَإِنْ أَفْتَاكَ النَّاسُ. رواه احمد والدارمي.

او ګناه هغه ده چې ستا په نفس کي خلل پیدا سي او ستا د زړه تردد (پرېشاني) پیدا سي که څه هم خلکو د هغې (د جواز) فتوی در کړې وي. (احمد دارمي)

**تخریج**: احمد في المسند ۴\۲۲۸. والدارمي ۲\۳۲۰، رقم: ۲۵۳۳.

**تشریح**: په دغه حدیث شریف کي د نیکۍ او بدۍ او د ښه والي او بدوالي د پیژندو یو داسي واضحه علامه ښودل سوې ده چې هر صالح انسان یې په خپل هر قول او فعل سره جوړولای سي . پر کوم فعل او قول چې زړه مطمئن سي او زړه ته سکون محسوس سي نو پوهېدل پکار دي چې هغه قول یا عمل نیک او ښه دی او په کوم قول او عمل چې طبعیت کي شک او تردد محسوس سي نو پوهېدل پکار دي چې هغه قول یا فعل غلط او خراب دی .

د حدیث خلاصه داده چې د هر قول او فعل په باره کي د خپل ضمیر لارښوونه تر لاسه کړه د کوم شي سره چې رغبت پیدا کیږي او په زړه کي دا خلجان نه وي چې دا خراب دی نو پوه سه چې هغه

نیکي ده او د کوم شي سره چي رغبت نه پیدا کیږي او په زړه کي تردد پیدا سي نو پوه سه چي هغه ګناه ده که څه هم خلک د هغه شي په باره کي دا ونه وایي چئ دا صحیح او ښه دی او یو مفتي د هغه د صحیح کېدو فتوا ور نه کړي نو د هغوی پر وینا عمل مه کوه مثلا د یو سړي په باره کي تا ته دا معلومه وي چي د هغه سره حلال مال هم سته او حرام مال هم او هغه سړی تا ته د خپل مال څخه یو څه درکول غواړي نو که چیري ستا زړه پر دې مطمئن وي چي هغه تا ته کوم مال درکوي نو دا هغه مال دی کوم چي په حلاله طریقه ګټل سوی دی او ته یې واخلې او که چیري ستا زړه مطمئن نه وي او تا ته دا بېره وي چي دا هغه مال نه وي کوم چي په حرامه طریقه ګټل سوی دی نو ته د هغه څخه هیڅ مه اخله که څه هم هغه په خپله دا وایي چي ستا لپاره دغه مال اخستل جائز دي ځکه چي فتوا بېل شی دی او تقوا بېل شی دی پر تقوا باندي عمل کول پر فتوا باندي تر عمل کولو ډېر غوره دی .

د تېر حدیث په تشریح کي دا خبره هم ښودل سوې ده چي د ضمیر د صحیح لارښوونې جوهر هر سړي ته په برخه نه وي اوس دلته هم پوه سئ چي په حدیث کي د خپل زړه څخه د پوښتني کوم حکم سوی دی د هغه تعلق یوازي د صالحو خلکو سره دی چي د هغوی زړونه او نفساني خواهشات د چټلۍ څخه پاک وي او د تقوا او پرهېزګارۍ آخري حد ته رسیدلي وي ځکه چي د هغوی طبعیتونه او د هغوی زړونه یوازي ښېګڼې ته مائل وي او د بدۍ څخه بېزاره وي او خراب خلک په خپل نفساني خواهشاتو کي راګیر وي او د نیکۍ او خیر څخه یې بې اعتنائي اختیار کړې وي ، او څرګنده ده چي په دغه صورت کي هغوی ته د ضمیر صحیح لارښوونه نه سي تر لاسه کیدای ، دا خبره هم په ذهن کي ساتل پکار دي چي د خپل زړه څخه د پوښتنه کولو دغه حکم په هغه صورت کي دی کله د یو شي په باره کي یو واضح شرعي فیصله نه وي که چیري د یو شي په باره کي په قرآن کریم کي اختلاف وي نو واجب ده چي حدیث ته رجوع وکړل سي حدیث چي د کوم آیت مطابق فیصله وکړي په هغه آیت دي عمل وکړل سي که چیري په حدیثو کي هم تعارض وي نو بیا د علماؤ اقوالو ته رجوع کول واجب دي او که د علماؤ په قولو کي هم اختلاف وي نو ددې څخه وروسته د خپل زړه لارښوونه تر لاسه کړه او په هغه اقوالو کي د هغه قول مطابق عمل وکړه کوم چي ستا زړه یې مني او پر هغه مطمئن سي .

په پای کي دا ښودل هم ضروري دي چي کله حضرت وابصه رضی اللہ عنہ د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو نو هغه د خپل حاضرېدو مقصد خپله بیان نه کړ بلکه دا نبوي معجزه وه چي رسول الله ﷺ د خپل مکاشفې له مخي د هغه د زړه خبره بیان کړه او رسول الله ﷺ د خپل ګوتو په پورته

كولو سره د هغه سينه ځكه ووهل چي د رسول الله ﷺ د مباركو لاسونو په وجه هغه ته د رسول الله ﷺ د كلام پوره پوهه تر لاسه سي ، دوهم د هغه زړه ته اشاره كول هم مقصد وو چي دلته زړه دی د هغه څخه پوښتنه وكړه .

## د پوره پرهېزګارۍ درجه

﴿۲۶۵۵﴾: وَعَنْ عَطِيَّةَ السَّعْدِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَبْلُغُ الْعَبْدُ أَنْ يَكُونَ مِنَ الْمُتَّقِينَ حَتَّى يَدَعَ مَا لَا بَأْسَ بِهِ حَذَرًا لِمَا بِهِ الْبَأْسُ . رواه الترمذي وابن ماجة .

د حضرت عطيه سعدي ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : بنده تر هغه وخته پوري د پرهېزګارانو و درجې ته نسي رسېدلای تر څو چي هغه پرېنږدي هغه څه چي په هغه كي بدي نه وي لپاره ددې چي په دې طريقې سره د هغه شيانو څخه وساتل سي چي په هغه كي بدي ده . (ترمذي ابن ماجه)

**تخريج**: الترمذي في السنن ۴\ ۵۴۷، رقم: ۲۴۵۱، وابن ماجه في السنن ۲\ ۱۴۰۹، رقم: ۴۲۱۵.

**تشريح**: د شريعت له نګاه څخه متقي يعني پرهيزګار هغه څوک دی کوم چي خپل ځان د هغه شيانو څخه ليري وساتي چي د هغو اختيارول د الله تعالی د ناراضګۍ او د هغه د عذاب سبب وي، ځيني علماء وايي چي تقوا درې درجې لري: اول د شرک څخه پرهېز، ځکه چي کوم بنده د شرک څخه ځان وساتي نو هغه د دائمي عذاب څخه خلاصون تر لاسه کړي، په دغه آيت کريمه کي (الزمهم كلمة التقوى) او الله تعالی دغه مؤمنانو د پرهيزګارۍ پر خبره يعني پر توحيد باندي قائم وساتل، دوهم دا چي د هري ګناه څخه تر دې چي د کوچنيو ګناهو څخه هم پرهيز پکار دی ، د ځيني علماؤ په نزد د تقوا چي کومه مشهوره شرعي اصطلاح ده د هغه اطلاق پر دغه درجې باندي کيږي او په دغه آيت کريمه کي (ولو ان اهل القرى آمنوا واتقوا) که چيري ددغه کليو خلکو ايمان راوړی وای او پرهيزګاران سوی وای ....الخ، هم دا درجه مراد ده، دريم په هر شي کي پوره احتياط کول تر دې چي د ځيني مباح شيانو څخه هم د احتياط په وجه ځان ساتل ، خپل زړه په غير الله کي نه لګول او د غير الله څخه خپل توجه ليري کول او الله تعالی ته متوجه کېدل ، لکه چي په دغه آيت کريمه کي (اتقوا الله حق تقاته) اې مؤمنانو ! د الله تعالی څخه و بيريږئ لکه څرنګه چي د هغه څخه د بېرېدو حق دی، په پورتني حديث کي هم د تقوا دغه

كامله درجه مراد ده .

د حديث خلاصه داده چي هيڅ بنده تر هغه وخته پوري پوره متقي او پرهيزګار نه سي كيداى تر څو چي هغه دد غه بيري په وجه مباح شيان هم نه پرېږدي چي داسي نه دغه مباح شی د يو حرام يا مكروه يا مشتبه شي ته د رسيدو ذريعه جوړه سي مثلا كه هغه واده نه وي كړی نو د شهوت په غلبه او حرام كار كي د اخته كېدو د بيري څخه دي په ماړه نس ډوډۍ نه خوري (ځكه چي كله نس ډک سي نو د شهوت غلبه هم زياته سي) همدارنګه خوشبويي وغيره دي نه لګوي او نه دي داسي مباح شي استعمالوي چي په هغه سره په جذباتو كي جوش پيدا كيږي، په هر حال د حرام، مكروه او مشتبه شيانو څخه د پرهيز وروسته د احتياط له مخي د مباح شيانو څخه هم پرهيز كول د پرهيزګارۍ كامله درجه ده ، حضرت عمر فاروق رضي الله عنه به فرمايل چي موږ په حرامو كي د اخته كېدو د بيري څخه د لس حلالو شيانو څخه نهه برخي پرې ايښی دی همدارنګه د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه په باره كي نقل سوي دي چي هغه به فرمايل موږ خلكو به په حرامو كي د اخته كېدو د بيري څخه د مباح شيانو څخه اويا برخي پرېښودلې .

## د شرابو پر متعلقينو باندي لعنت

﴿۲۶۵۶﴾ : وَعَنْ اَنَسٍ قال لَعَنَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْخَمْرِ عَشْرَةً

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د شرابو په كاروبار كي په لسو كسانو لعنت ويلي دی

عَاصِرَهَا وَمُعْتَصِرَهَا وَشَارِبَهَا وَحَامِلَهَا وَالْمَحْمُولَةُ إِلَيْهِ وَسَاقِيَهَا وَبَائِعَهَا

:۱- د شراب پر نيبنتېرونكو ۲- د هغو دپاره چي نيبنتېرل كيږي . ۳- په څيښونكو باندي ۴- په پورته كونكي باندي ۵- په هغه چا باندي چي و هغه ته شراب وړل كيږي او ورته پورته كيږي ۶- په ساقي (چښلو والاؤ) باندي ۷ - په خرڅونكو باندي

وَآكِلَ ثَمَنِهَا وَالْمُشْتَرِي لَهَا وَالْمُشْتَرَاةُ لَهُ . رواه الترمذي وابن ماجة .

۸- د شرابو پر قيمت خوړونكو باندي ۹- په را نيونكو باندي ۱۰- او پر هغه چا باندي چي وهغه ته را نيول كيږي .(ترمذي ابن ماجه)

**تخريج** : الترمذي في السنن ۳\۵۸۹، رقم: ۱۲۹۵، وابن ماجه ۲\۱۱۲۲، رقم: ۳۳۸۱.

**تشريح** د نستېرونكي څخه مراد هغه سړی دی چي هغه د شراب جوړلو لپاره انګور نستېري

که د ځان لپاره یې جوړوي او که د بل چا لپاره، په هر صورت هغه د لعنت مستحق دی ، د پلورنکي څخه مراد هغه سړی هم دی چي خپله د تجارت په توګه شراب پلوري او هغه سړی هم مراد دی چي د بل چا لپاره شراب پلوري او کوم څوک چي پر شراب جوړونکي باندي انګور پلوري او د هغه انګورو قیمت خوري نو هغه هم د دغه لعنت مستحق دی .

﴿۲۶۵۷﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَعَنَ اللّٰهُ الْخَمْرَ وَشَارِبَهَا وَسَاقِيَهَا وَبَائِعَهَا وَمُبْتَاعَهَا وَعَاصِرَهَا وَمُعْتَصِرَهَا وَحَامِلَهَا وَالْمَحْمُولَةَ إِلَيْهِ . رواه ابوداؤد وابن ماجة

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : خدای تعالي لعنت ویلي دي :۱- پر شرابو ۲- د هغه په څیښونکو.۳- د هغه پر ساقي (څښونکي) ۴- د هغه پر خرڅونکي۵- د هغه پر رانیونکي ۶- د هغه پر جوړونکو ۷- او هغوی چي ور ته جوړیږي ۸- د هغه پر پور ته کونکو ۹- او پر هغه چا باندي چا ته چي پورته کیږي او وړل کیږي .(ابوداؤد ابن ماجه)

**تخریج**: ابوداود في السنن ۴\ ۸۱، رقم: ۳۶۷۴، وابن ماجه في السنن ۲\ ۱۱۲۱، رقم: ۳۳۸۰.

**تشریح**. پر شرابو باندي الله تعالی ځکه لعنت ویلی دی چي شراب ام الخبائث یعني د ټولو خرابیو رېښه ده او دا احتمال هم دی چي دلته د شرابو څخه مراد هغه سړی وي کوم چي د شرابو ګټه خوري .

## دویني کښلو مزدوري

﴿۲۶۵۸﴾: وَعَنْ مُحَيِّصَةَ أَنَّهُ اسْتَأْذَنَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي

د حضرت محیصه رضی الله عنه څخه روایت دی چي د رسول الله ﷺ څخه وینه کښونکي د اجرت

أُجْرَةِ الْحَجَّامِ فَنَهَاهُ فَلَمْ يَزَلْ يَسْتَأْذِنُهُ حَتَّى قال أَعْلِفْهُ نَاضِحَكَ واطعمه وَرَقِيقَكَ. رواه مالك والترمذي وابوداؤد وابن ماجة .

اخیستلو اجازت طلب کړ (یعني پوښتنه یې وکړه چي د دې مزدوري اخیستل جائز ده ) نبي کریم ﷺ هغه د دې څخه منعه کړي بیا یې د دویم وار لپاره اجازه وغوښتل تر دې پوري چي څو

واره يې پوښتنه وکړه نو نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل : د دې مزدوري په خپل غلام يا په خپل اوښ وخوره . (مالک ترمذي ابو داؤد ابن ماجه)

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۲\ ۹۷۴، رقم: ۲۸، وابوداود ۳\ ۷۰۷، رقم: ۳۴۲۲، والترمذي في السنن ۳ ۵۷۵، رقم: ۱۲۷۷، وابن ماجه في السنن ۲\ ۷۳۲، رقم: ۲۱٦٦.

**د لغاتو حل**: ناضِح: هو الجمل الذي يسقى به الماء (هغه اوښ چي اوبه پرې راکښل کيږي).

**تشريح** اکثرو صحابه کرامو به ډېر غلامان درلودل چي ځيني به يې د ويني کښلو پر کار لګول او بيا د هغوی ګټل سوی مال به يې په خپل استعمال کي راوستی ، يو صحابي حضرت محيصه رضي الله عنه د رسول الله ﷺ څخه دا معلومول وغوښتل چي ايا د ويني کښلو مزدوري جائز ده که يا ؟ او دا اجازه يې وغوښتل چي زما غلام د ويني کښلو مزدوري تر لاسه کوي د هغه څخه يو څه برخه زما ملکيت دی څنګه؟ ايا زه هغه زما برخه استعمال کړم که څنګه؟ رسول الله ﷺ ددې اجازه ور نه کړه، صحابه کرامو به د خپل ځينو غلامانو څخه د ويني کښلو د مزدورۍ څخه د خپل برخي په اخيستو سره خپل اړتياوي پوره کولې او هغه به يې خوښول، ځکه رسول الله ﷺ ددې اجازه ور نه کړه او محيصه رضي الله عنه ته په دې باره کي ډېر مشکل محسوس سو او په دې اميد سره چي کيدای سي رسول الله ﷺ هغه ته اجازه ورکړې هغه په وار وار اجازه غوښتل نو رسول الله ﷺ هغه ته دومره اجازه ورکړه چي هغه دغه روپۍ د اوښانو په واښو او پر خپلو غلامانو او مينزو باندي مصرف کړي او همدارنګه رسول الله ﷺ يوې خوا ته خو اشاره وفرمايل چي د ويني کښلو څخه کومي روپۍ تر لاسه کيږئ هغه که څه هم جائز دي مګر د ويني کښلو ګټه ده ځکه نو هغه د شريفانو لپاره استعمالول مکروه دي او د هغوی د شان خلاف کار دی ، او مينزي او غلامان د ازادو خلکو په مقابله کي دا شرف نه لري کوم چي ددغه کسب د سپکوالي خلاف وي ځکه د ويني کښلو روپۍ خوړل د هغوی د شان خلاف نه دي ، بلي خوا ته رسول الله ﷺ ددې په ذريعه د اولو العزمۍ او لوړ همتۍ ترغيب هم ورکړی دی چي شريفانو او باوقاره خلکو ته د خپل کسب او خپل لاس ګټي څخه خوړل پکار دي .

په هر حال د رسول الله ﷺ حضرت محيصه رضي الله عنه ته اجازه نه ورکول د نهي تنزيهي په توګه دي ، ددې مطلب دا نه دی چي د ويني کښلو مزدوري حرامه ده که چيري دا حرامه وای نو رسول الله ﷺ به هغه د خپلو څارويو په واښو ، مينځو او غلامانو باندي د مصرف کولو اجازه هم نه ورکولای ځکه چي د بادار لپاره دا جائز نه ده چي هغه په خپلو حيوانانو ، مينځو او غلامانو باندي حرام مال وخوري، د حديث خلاصه داده چي د ويني کښلو ګټه خوړل مکروه تنزيهي ده .

## د غزلو د مزدورۍ څخه منع

﴿۲۶۵۹﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ نَهٰي رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ثَمَنِ الْكَلْبِ وَكَسْبِ الزَّمَّارَةِ. رواه في شرح السنة.

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د سپي د قيمت څخه او د کسب د غزلچي د اجرت څخه منعه فرمايلې ده. (شرح السنة)

**تخريج**: شرح السنة ۸\ ۲۳، رقم: ۲۰۳۸.

**د لغاتو حل**: الزمارة: اى الزانية (زنا کوونکې).

**تشريح**: د ځينو علماؤ قول دی چي د زمارة څخه مراد هغه ښځه ده چي بدکاره وي همدارنګه د ځينو حضراتو وينا ده چي لفظ د زمارة مشتق دی د زمر څخه او ددې معنی ده د سترګو او ورزو په ذريعه اشاره کول او بدکاري ښځي خلک د خپل سترګو او ورزو په ښورولو سره په خپل جال کي راولي، ځکه په حديث شريف کي بدکاره ښځه په زمارة سره تعبير سوې ده.

## د سندري ويونکو درانيولو او پلورلو حکم

﴿۲۶۶۰﴾: وَعَنْ أَبِيْ أَمَامَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَبِيْعُوا

د حضرت ابو امامه رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: غزلچي مينزه مه خرڅوئ

الْقَيْنَاتِ وَلَا تَشْتَرُوْهُنَّ وَلَا تُعَلِّمُوْهُنَّ وَثَمَنُهُنَّ حَرَامٌ وَفِيْ مِثْلِ هٰذَا اُنْزِلَتْ

او مه يې اخلئ او نه مينزي ته غزلي ويل ښائي. ددې قيمت حرام دي او ددې په اړه دا ايت نازل سوي دي

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَشْتَرِيْ لَهْوَ الْحَدِيْثِ. رواه أحمد والترمذي وابن ماجه وقال الترمذي هذا حديث غريب وعلي بن يزيد الرواي يضعف في الحديث. وسنذكر حديث جابر: نهى عن أكل أهر في باب ما يحل أكله" إن شاء الله تعالى

و من الناس من يشتري لهو الحديث (او ځيني د خلکو څخه داسي دي چي د لوبو تهوکو خبري را نيسي) (يعني غزلي او قصې)(احمد ترمذي ابن ماجه) او په ترمذي کي دا حديث غريب ګڼل

سوي دي . علي بن يزيد راوي ضعيف دي او د جابر ﷺ حديث به موږ ژر تر ژره انشاء الله په مايحل اكله كي بيان كړو .

**تخريج**: الامام احمد في المسند ۵\ ۲۶۴، والترمذي في السنن ۳\ ۵۷۹، رقم: ۱۲۸۲، وابن ماجه في السنن ۲ ۷۳۳، رقم: ۲۱۶۸.

**تشريح** ځيني علماء د حديث د ظاهري الفاظو سره سم وايي چي غزل ويونكي مينزي پلورل جائز نه دي، او پاته ټول علماء وايي چي د هغوى پلورل جائز دي، دغه حديث كه څه هم ضعيف دى چي د هغه په وجه دا د يو مذهب دليل ګرځول مناسب نه دى مګر ددې سربېره د ثمنهن حرام تاويل دا كيږي چي ددغه حديث مطلب يوازي د هغو غزلو د مزدورۍ حرام كېدل دي يعني د هغوى په غزلو ويلو سره تر لاسه كېدونكى مال حرام دى لكه څرنګه چي پر شراب پلورنكي يا شراب جوړونكي باندي انګور پلورل حرام دي همدارنګه د غزل ويونكي مينزي هغه مزدوري چي هغوى ته د غزلو په وجه تر لاسه كيږي حرام مال دى چي هغه په يو حرامه ذريعه سره حاصليږي .

په آيت كريمه كي د لهو څخه مراد هغه غزلي او حرام آوازونه دي چي د الله تعالى د ذكر څخه سړى منع كوي او د ګناه او معصيت سبب جوړيږي، قصې، درواغ خبري، خرافات، پالتو د مسخرو خبري، موسيقي، او دا ډول نور ټول پالتو او لغو شيان هم په دغه حكم كي داخل دي.

ددغه آيت كريمه شان نزول دادى چي يو سړى چي نصرابن حارث نوميدى غزل ويونكي مينزي به يې ددې لپاره رانيولې چي د هغوى په ذريعه خلک د الله تعالى د لاري څخه ګمراه كړي ددغه كار په بدوالي كي دغه آيت كريمه نازل سو ، ځيني علماء وايي چي نصرابن حارث د نجوميانو ليكل سوي يو څو كتابونه رانيولي وه چي د هغه د درواغو قصو په ويلو سره به يې قريشو ته اورولې او ويل به يې چي محمد ﷺ خو ستاسو په مخكي د عاد او ثمود د قوم قصې بيانوي او زه تاسو ته د رستم او اسفنديار او د پاچاهانو قصې اوروم نو الله تعالى ددغه آيت په ذريعه د هغه بدي بيان كړه .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### حلاله ګټه فرض ده

﴿۲۶۶۱﴾: عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

طَلَبُ كَسْبِ الْحَلَالِ فَرِيْضَةٌ بَعْدَ الْفَرِيْضَةِ " . رواه البيهقي في شعب الإيمان

د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل : د فرضو څخه وروسته د پاک رزق ګټل فرض ده . (یعني د هغو فرضو څخه وروسته چې خدای ﷻ مقرر کړي دي حلاله ګټه هم فرض ده) . (بیهقي)

**تخريج** : البيهقي في شعب الايمان ٦\٤٢٠، رقم: ٨٧٤١.

**تشريح**. مطلب دادی چې د خپل ځان او خپل کورنۍ د ژوند د اړتیاو د کفالت لپاره د خپل لاس په محنت سره ګټل فرض دي مګر الله تعالی چې کوم فرضونه ټاکلي دي لکه لمونځ، روژه او داسي نور نو اول د هغو درجه ده چې ددغه فرضونو څخه وروسته د حلالي روزۍ ګټل فرض دي.
په دې اړه فقهي مسئله داده چې ګټل پر هغه چا باندي فرض دي چې د هغه ځان او د هغه کورنۍ د ګټي لپاره محتاج وي ،
په حدیث کي د کسب حلال یعني حلالي ګټي څخه مراد هغه روزي ده چې د هغه حلال کېدل یقیني وي ، یعني دلته د حلالي روزۍ اطلاق پر هغه مال باندي هم کیدای سي چې مشتبه وي ځکه چې په حدیثو کي د مشتبه څخه د پرهیز کولو حکم محض د احتیاط په توګه دی د فرض کېدو په توګه نه دی او دا خبره هم په ذهن کي راوستل پکار دي چې په دغه حدیث کي حلالي روزۍ ګټلو ته فرض ویل سوي دي ددې مخاطب هر څوک بذاته نه دی ځکه چې داسي ډېر خلک دي چې د هغوی د ژوند داړتیاو کفالت پر نورو واجب وي چې د هغه په وجه خپله هغه ته ګټل ضروري نه وي .

## د قرآن کریم د لیکني مزدوري جائز ده

﴿٢٦٦٢﴾ : وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّهُ سُئِلَ عَنْ أُجْرَةِ كِتَابَةِ الْمُصْحَفِ فَقَالَ لَا بَأْسَ إِنَّمَا هُمْ مُصَوِّرُوْنَ وَإِنَّهُمْ إِنَّمَا يَأْكُلُوْنَ مِنْ عَمَلِ أَيْدِيْهِمْ . رواه رزين

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دی چې د هغه څخه د قرانکریم د لیکلو د مزدورۍ په اړه پوښتنه وسوه نو هغه ورته وویل په دې مزدورۍ کي څه پروا نسته ځکه چې دا خلک (کاتب نقاش) په خپل لاس سره ګټه خوري . (رزین)

**تخريج** : رواه رزین.

**تشريح** پوښتنه کونکي د قرآن کریم د لیکني مزدوري اخستل او د هغه خوړل یې یوه لیري

خبره ګټل ځکه د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه د دې حکم وپوښتی ، ابن عباس رضي الله عنه په جواب کي ورته وویل چي کاتب (لیکوال) خو پر کاغذ باندي د الفاظو نقش جوړوي یعني د هغوی کار خو یوازي کتابت او لیکل دي چي د هغه مزدوري تر لاسه کوي که هغوی د قرآن کریم لیکنه کوي او که د بل کتاب دا د هغوی کسب او هنر دی چي د هغوی لپاره د حلالي روزۍ ذریعه ده .

**کوم کسب غوره دی؟**

﴿۲۶۶۳﴾ : وَعَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ قَالَ قِيلَ يَا رَسُولَ اللهِ أَيُّ الْكَسْبِ أَطْيَبُ ؟ قَالَ عَمَلُ الرَّجُلِ بِيَدِهِ وَكُلُّ بَيْعٍ مَبْرُورٍ " . رواه أحمد

د حضرت رافع بن خدیج رضي الله عنه څخه روایت دی چي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وسوه چي کوم کسب بهتر دي نو نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل : د انسان د خپل لاس ګټه او هر جائز تجارت . (احمد)

**تخریج** : الامام احمد في المسند ۴\۱۴۱.

---

**د شیدو د قیمت حکم**

﴿۲۶۶۴﴾ : وَعَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ أَبِي مَرْيَمَ قَالَ كَانَتْ لِمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِي كَرِبَ

د حضرت ابوبکر بن ابي مریم رضي الله عنه څخه روایت دئ چي د مقدام بن معدیکرب (صحابي) یوې

جَارِيَةٌ تَبِيعُ اللَّبَنَ وَيَقْبِضُ الْمِقْدَامُ الثَّمَنَ فَقِيلَ لَهُ سُبْحَانَ اللهِ أَتَبِيعُ

مینزي به شیدې خرڅولې او مقدام به ور څخه د هغه قیمت اخیستي یوه ورځ مقدام ته وویل سوه سبحان الله ! مینزه شیدې خرڅوي

اللَّبَنَ وَتَقْبِضُ الثَّمَنَ فَقَالَ نَعَمْ وَمَا بَأْسٌ بِذَلِكَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ

او ته یې قیمت ځیني اخلې.. مقدام ورته وویل چي هو ! په دې کي څه باک نسته ما د رسول الله ﷺ څخه اورېدلي دي چي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَيَأْتِيَنَّ عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ لَا يَنْفَعُ فِيهِ إِلَّا الدِّينَارُ وَالدِّرْهَمُ. رواه احمد .

په خلکو کي به داسي زمانه راسي چي په هغه کي به د درهم او د دينار پرته بل به هيڅ شی فائده نه ورکوي . (احمد)

**تخريج**: الامام احمد في المسند ۴\۱۳۳.

**تشريح** لکه خلکو چي حضرت مقدام ﷺ ته طعنه ورکړې وي چي ستا مينزه ستا د څارويو شېدې پلوري او ته د هغه شيدو گټه خوري حالانکه د شېدو په باره کي غوره داده چي هغه پر فقيرانو او مسکينانو باندي د صدقې او خيرات په توګه وويشل سي يا خپلو قريبانو او دوستان ته ورکړل سي ، شېدې پلورل او د هغه قيمت تر لاسه کول ستا د شان سره وړ نه دی ، ددې په جواب کي حضرت مقدام ﷺ وويل چي په دې کي څه پروا نه سته ځکه چي دا يو داسي معامله نه ده چي په دې کي يو شرعي تاوان دی شېدې پلورل او د هغه گټه خوړل حرام نه دي او نه مکروه دي او بيا زما دغه کار د حرص په وجه يا د مال او دولت په وجه نه دی بلکه زه د خپل ژوند د اړتياوو لپاره ددې محتاج يم، ددې څخه وروسته حضرت مقدام ﷺ په راتلونکې زمانه کي مال او زر ته د خلکو د سخت ميلان په باره کي د رسول الله ﷺ دا پېشګويي بيان کړه چي يوه داسي زمانه به راسي چي په هغه کي به د خلکو ټوله توجه او د کوښښونو مرکز يوازي مال او زر جوړ سي خلک به د خپلو اړتياوو دائره پراخه کړي او د اسبابو کموالي او ګراني به يې په هر ډول پريشانيو کي اخته کړي . نقل سوي دي چي صحابه کرامو به خپل مينځ کي ويل چي د تجارت او محنت په ذريعه دومره مال او زر خامخا ګټئ چي په هغه سره د عزتمند ژوند ساتنه وکړل سي او په ياد ولرئ چي يو داسي زمانه هم راتلونکې ده چي په تاسو کي څوک محتاج او مفلس وي نو تر ټولو مخکي به خپل دين او ايمان وخوري .

## د معاش ذريعه بېله سببه مه پرېږدئ

﴿۲۶۶۵﴾ : وَعَنْ نَافِعٍ قَالَ كُنْتُ أُجَهِّزُ إِلَى الشَّامِ أَوْ إِلَى مِصْرَ فَجَهَّزْتُ إِلَى

د حضرت نافع ﷺ څخه روايت دی چي ما د شام او مصر و لور ته سامان لېږي وروسته مي د

الْعِرَاقِ فَأَتَيْتُ أُمَّ الْمُؤْمِنِينَ عَائِشَةَ فَقُلْتُ لها يا أُمَّ الْمُؤْمِنِينَ كنت اجهز

عراق لور ته د مال لېږلو اراده وکړه او د بي بي عائشې ﷺ په خدمت کي د مشورې لپاره حاضر سوم عرض مي ورته وکړ چي اې د مؤمنانو مور! ما به مخکي د شام ولور ته مال لېږي

إِلَى الْعِرَاقِ فَقَالَتْ لاتفعل مَا لَكَ وَلِمَتْجَرِكَ فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ

او اوس مي اراده ده چي د عراق و خوا ته مال ولېږم هغې ورته وفرمايل : داسي مه كوه تا او تجارت ته څه پېښنه ده ما د رسول الله ﷺ څخه اورېدلي دي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِذَا سبب الله لاحدكم رزقا من وجه فَلَا يَدَعْهُ حَتَّى يَتَغَيَّرَ لَهُ أَوْ يَتَنَكَّرَ لَهُ . رواه احمد وابن ماجة .

هر كله چي خداى ﷻ ستا د رزق چيري اسباب برابر كړي نو هغه مه پرېږده تر څو پوري چي په هغه كي بدلون را نسي يا وهغه ته نقصان و نه رسيږي .(احمد ابن ماجه)

**تخريج**: الامام احمد في المسند ٦\٢٤٦، وابن ماجه ٢\٧٢٧، رقم: ٢١٤٨.

**تشريح**. د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب دادی چي د چا د رزق يو جائز ذريعه وي مثلا هغه د تجارت سامان يو ځاى ته استوي چي د هغه په ګټه سره هغه ته رزق تر لاسه كيږي نو هغه دي بلا سبب نه پريږدي مګر كه چيري يو داسي شی پيښ سي چي د هغه په وجه د هغه ذريعې ختمول ضروري وي مثلاً ګټه كول بند سي يا په اصل مال كي تاوان راسي نو په داسي صورت كي د هغه په پرېښودو كي څه پروا نه سته .

علامه طيبي رحمة الله عليه فرمايي چي په دغه حديث كي دې ته اشاره ده چي كوم څوک يو مباح شی تر لاسه كړي نو هغه ته پكار دي چي هغه د الله تعالى په نعمت ګڼلو سره پر هغه قائم اوسي او بېله يو قوي عذر څخه د هغه په پرېښودو سره د هغه غير طرف ته مائل نه سي .

## د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه احتياط او تقوا

﴿٢٦٦٢﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ لِأَبِي بَكْرٍ غُلَامٌ يُخْرِجُ لَهُ الْخَرَاجَ فَكَانَ أَبُو

د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه روايت دی چي د حضرت ابو بكر رضي الله عنه يو غلام وو چي د خپلي ګټي

بَكْرٍ يَأْكُلُ مِنْ خَرَاجِهِ فَجَاءَ يَوْمًا بِشَيْءٍ فَأَكَلَ مِنْهُ أَبُو بَكْرٍ فَقَالَ لَهُ الْغُلَامُ

څخه به يې خپل مالک ته څه ور كوله او حضرت ابو بكر رضي الله عنه به هغه ګټه خوړله يوه ورځ هغه غلام يو شی راوړ او حضرت ابوبكر رضي الله عنه د هغه سره وخوړه غلام ورته عرض وكړ

أَتَدْرِي مَا هَذَا فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ وَمَا هُوَ قَالَ كُنْتُ تَكَهَّنْتُ لِإِنْسَانٍ فِي الْجَاهِلِيَّةِ

تاسو ته معلومه ده چي دا څه دي ؟ حضرت ابو بكر صديق رضي الله عنه ورڅخه پوښتنه وكړه چي څه شي

دي ؟ نو غلام وويل : چي ما د جاهليت په زمانه كي يوه سړي ته د غيب خبر ښودلى وو

وَمَا أُحْسِنُ الْكِهَانَةَ إِلَّا أَنِّي خَدَعْتُهُ فَلَقِيَنِي فَأَعْطَانِي بِذَلِكَ فَهَذَا الَّذِي أَكَلْتَ

حالانكه زه د هغه فن څخه خبر نه وم ليكن چم مي ور سره وكړ د هغه سړي زما سره ملاقات وسو او دا شي يې راكړ او دا هغه څه دي كوم چي يې تاسو خورئ

مِنْهُ فَأَدْخَلَ أَبُو بَكْرٍ يَدَهُ فَقَاءَ كُلَّ شَيْءٍ فِي بَطْنِهِ . رواه البخاري .

بي بي عائشي رض وويل (په دې اوريدو سره) حضرت ابو بكر صديق رضي الله عنه خپل حلق ته لاس د ننه كړ او هر څه چي يې په نس كي وه (خوړلي يې وه) بيرته يې قى كړه . (بخاري)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۴۹/۷، رقم: ۳۸۴۲.

**تشريح**: دغه حديث د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه د ديني احتياط او د هغه د تقوا واضح مثال دى چي هغه ته څرنګه معلومه سوه چي نس ته يې يو شى تللى دى چي په حرامه ذريعه سره تر لاسه سوى دى نو سمدستي يې په قى كولو سره هغه د باندي راوكښى بلكه هغه شى د كهانت او د هغه سره د چم كولو په وجه د سخت حرمت حامل وو ځكه هغه په قي كولو سره نه يوازي پر هغه شي اكتفاء وكړه بلكه د هر هغه شي را ايستل يې ضروري وګڼل كوم چي په نس كي د ننه وه ځكه چي هغه ته بيره وه چي د دغه شي يو جز به په نس كي د نورو شيانو سره ګډ نه سي .

د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه د دغه فعل څخه امام شافعي رحمة الله عليه دا مسئله را ايستلې ده كه يو څوك يو حرام شى وخوري او د هغه د حرمت د علم سربيره يې خوړلى وي يا په ناخبرۍ كي يې خوړلى وي او وروسته ورته معلومه سوې وي چي هغه شى حرام وو نو پر هغه لازم دي چي سمدستي په قى كولو سره هغه شى د نس څخه د باندي را وباسي .

امام غزالي رحمة الله عليه په منهاج العابدين كي ليكلي دي چي د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه دغه فعل د ورع يعني تقوا او پرهيزګارۍ څخه دى او هغه ليكلي دي چي د ورع حكم دادى چي تاسو د يو چا څخه يو شى تر هغه وخته پوري مه اخلئ تر څو چي د هغه په باره كي پوره پلټنه ونه كړئ بيا د پلټني څخه وروسته دا يقين تر لاسه كړئ چي په هغه شي كي خو اشتباه نه سته كه د هغه شي په باره كي پوره پلټنه او دا يقين حاصل نه سي نو هغه شى سمدستي بيرته وركړئ .

## د حرام مال پر خوړلو باندي وعيد

﴿۲۶۶۷﴾: وَعَنْ اَبِيْ بَكْرٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لاَ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ جَسَدٌ غُذِيَ بِالْحَرَامِ . رواه البيهقي في شعب الايمان

د حضرت ابو بكر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :کوم بدن چي په حرام مال سره روزنه کړي وي هغه به جنت ته نه داخليږي .

**تخريج**: لم نجده في الشعب.

## د حضرت عمر رضي الله عنه تقوا او احتياط

﴿۲۶۶۸﴾: وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ أَنَّهُ قَالَ شَرِبَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ لَبَنًا وَأَعْجَبَهُ

د حضرت زيد ابن اسلم رضي الله عنه څخه روايت دی چي يو وار حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه شيدې وڅښلې چي هغه ته ډيري ښه معلومي سوې،

وَقَالَ لِلَّذِيْ سَقَاهُ مِنْ أَيْنَ لَكَ هٰذَا اللَّبَنُ فَأَخْبَرَهُ أَنَّهُ وَرَدَ عَلٰى مَاءٍ قَدْ سَمَّاهُ

نو هغه د هغه سړي څخه چي هغه شيدې يې په څښلي وې پوښتنه وکړه چي دا شيدې دي د کومه کړې ؟ نو هغه ورته وښودل چي هغه (يعني زه) د اوبو يوې چينې يا څاه ته تللی وم (د هغه چينې يا څاه نوم يې هم وښودی)

فَإِذَا نَعَمٌ مِّنْ نَعَمِ الصَّدَقَةِ وَهُمْ يَسْقُوْنَ فَحَلَبُوْا لِيْ مِنْ أَلْبَانِهَا فَجَعَلْتُهُ فِيْ

نو هلته ما وليدل چي د زکوٰة حيوانان اوبو څښلو ته راغلي وه او د هغه شپانه شيدې لوشلې او په خلکو يې څښلې نو هغه زما لپاره هم شيدې ولوشلې چي ما هغه په مشک کي واچولې او دا

سِقَائِيْ وَهُوَ هٰذَا فَأَدْخَلَ عُمَرُ يَدَهُ فَاسْتَقَاءَهُ . رواه البيهقي في شعب الإيمان

هغه شيدې دي، (د دې په اورېدو سره) حضرت عمر رضي الله عنه په خپل ستوني کي لاس دننه کړ او قی يې وکړ او هغه شيدې يې د نس څخه را وايستلې ( ځکه چي هغه د زکوٰة مال وو چي د هغوی لپاره جائز نه وو). بيهقي په شعب الايمان کي.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۵\۶۰، رقم: ۵۷۷۱.

**تشریح**: حضرت سید جمال الدین محدث رحمه الله علیه لیکلي دي چي دغه حدیث د مشکوة شریف په اکثرو نسخو کي ذکر سوی نه دی موږ چي د مشکوة شریف په کومه نسخه کي د خپل استاذ څخه دغه حدیثونه اوریدلي دي په هغو کي هم دغه حدیث نه سته البته د هغه په حاشیه کي لیکل سوي دي ځکه نو مناسب ده چي دغه حدیث د دغه باب څخه محذوف کړل سي.
په کومو نسخو کي چي دلته دغه حدیث ذکر سوی نه دی په هغو کي اول حدیث یعني د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه د روایت څخه وروسته دغه عبارت: رواهما البیهقي کي لیکل سوی دی.

## د حرام مال شیان پر عبادت اثر کوي

﴿۲۶۶۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ مَنْ اشْتَرَى ثَوْبًا بِعَشَرَةِ دَرَاهِمَ وَفِيهِ دِرْهَمٌ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دی څوک چي (مثلا) په لس درهمه سره کالي را نیسي او په هغه کي یو درهم

حَرَامٌ لَمْ يَقْبَلْ اللَّهُ لَهُ صَلَاةً مَادَامَ عَلَيْهِ ثُمَّ أَدْخَلَ أُصْبُعَيْهِ فِي أُذُنَيْهِ قَالَ

د حرام مال وي نو خداي تعالی تر هغه وخته پوري د هغه کس لمونځ نه قبلوي تر څو پوري چي هغه کالي یې د بدن څخه نه وي کښلي د دې په ویلو سره ابن عمر خپل دواړي ګوتي په غوږو کي ننه ایستلې او وه یې ویل:

صُمَّتَا إِنْ لَمْ يَكُنْ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمِعْتُهُ يَقُولُهُ. رواه احمد والبیهقي في شعب الایمان وقال اسناده ضعیف.

دا دواړه غوږونه دي کاڼه سي که دا الفاظ ما د نبي کریم صلی الله علیه وسلم څخه نه وي اورېدلي. (احمد او بیهقي) په بیهقي کي راغلي چي دا حدیث غریب دي.

**تخریج**: الامام احمد في المسند ۲\۹۸، والبیهقي في شعب الایمان ۵\۱۴۲، رقم: ۶۱۱۴.

**تشریح**: د حدیث خلاصه داده که د حرام مال لږ اندازه هم په بدن کي موجود وي نو د هغه څخه د عبادت نتیجه متاثره کیږي، دا خبره د مثال په توګه بیان سوې ده که یو څوک یوه جامه په لس درهمه رانیسي او په هغه لسو درهمو کي یو درهم داسي وي چي هغه په حرامه ذریعه سره حاصل سوی وي نو هغه جامه تر څو چي پر بدن وي د هغه لمونځ نه قبلیږي که څه هم د هغه د ذمې څخه فرضیت ساقط کیږي مګر د هغه لمونځ به ددې وړ نه وي چي هغه په ثواب سره

ونازول سي لکه څرنګه چي يو سړی پر غصب سوي مځکه باندي لمونځ کوي نو که څه هم د هغه د ذمې څخه فرض ساقط کيږي مګر هغه ته د لمانځه پوره ثواب نه تر لاسه کيږي.

د روايت د آخري الفاظو مطلب دادی چي کومه خبره ما کړې ده هغه زما خبره نه ده بلکه د رسول الله ﷺ هغه ارشاد دی کوم چي ما په خپلو غوږو سره اوريدلی دی که ما دغه حديث په خپلو غوږو سره اوريدلی نه وای او زه غلطه خبره کوم نو الله تعالی دي وکړي چي زما دواړه غوږونه کاڼه سي.

==========

# بَابُ الْمُسَاهَلَةِ فِي الْمُعَامَلَةِ

## (په معاملاتو کي د نرمۍ بيان)

په راکړه ورکړه کي او د رانيولو او پلورلو په معاملو کي نرمي اختيارول د ټولنيز اړيکو د استحکام او په خپل مينځ کي د تعاون او همدردۍ له مخي ډېر ضروري دي، په دغه باب کي د دغه موضوع سره اړوند حديثونه نقل کيږي.

### اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

**د نرمي کونکي لپاره د رسول الله ﷺ دعاء**

﴿۲۶۷۰﴾: عَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَحِمَ اللّٰهُ رَجُلًا سَمْحًا إِذَا بَاعَ وَإِذَا اشْتَرَى وَإِذَا اقْتَضَى. رواه البخاري.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: الله جل جلاله دي پر هغه سړي رحم وکړي کوم چي نرمي کوي کله چي رانيول او خرڅول او غوښتنه کوي. (بخاري)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ٦\٣٠٦، رقم: ٢٠٧٦، ومسلم ٣\١١٩٤، رقم: ٢٦- ١٥٦٠.

**تاسو د بل په معامله کي نرمي کوئ الله جل جلاله به ستاسو په معامله کي نرمي وکړي**

﴿۲۶۷۱﴾: وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ رَجُلًا

د حضرت حذيفه رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: يو سړی وو

كَانَ فِيمَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ أَتَاهُ الْمَلَكُ لِيَقْبِضَ رُوحَهُ فَقِيلَ لَهُ هَلْ عَمِلْتَ مِنْ

ستاسو څخه په مخکنيو خلکو کي کوم وخت چي د مرګ ملکه هغه ته د روح د قبضولو لپاره راغله نو د هغه څخه يې پوښتنه وکړه چي ايا تا يو نيک کار کړي دي ؟

خَيْرٍ قَالَ مَا أَعْلَمُ قِيلَ لَهُ انْظُرْ قَالَ مَا أَعْلَمُ شَيْئًا غَيْرَ أَنِّي كُنْتُ أُبَايِعُ النَّاسَ

نو هغه جواب ورکړ چي زما په ياد نه دي ملکي ورته وويل چي سوچ وکړه په ياد يې کړه نو هغه جواب ورکړ چي نور څه مي نه پياديږي خو دا خبره مي ياد ده چي په دنيا کي به مي د خلکو

فِي الدُّنْيَا وَأُجَازِيهِمْ فَأُنْظِرُ الْمُوسِرَ وَأَتَجَاوَزُ عَنِ الْمُعْسِرِ فَأَدْخَلَهُ اللَّهُ

سره په رانيولو او پلورلو کي د غوښتني په وخت کي مي ور سره احسان کوی يعني شتمن ته مي وخت ورکوي او اړ کس مي معافوي نو (د دې په برکت سره) جنت ته داخل کړل سو.

الْجَنَّةَ . متفق عليه وفي رواية لمسلم نحوه عن عقبة بن عامر وابي مسعود الانصاري فقال الله انا احق بذا منك تجاوزا عن عبدي .

(بخاري اومسلم) او د مسلم په يوه روايت کي راغلي دي چي خداي تعالي (د دغه بيان په اوريدو سره) وفرمايل : زه ستا څخه ډېر د معافولو حق لرم ملائکو ! تاسو زما دا بنده معاف کړئ.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ٦\ ٤٩٤، رقم: ٣٤٥١، ومسلم ٣\ ١١٩٤، رقم: ٢٦- ١٥٦٠.

**تشريح**: اتاه الملک : ددې څخه مراد دادی چي خپله حضرت عزرائيل عليه السلام د هغه د روح قبض کولو ته راغلی وو يا دا چي د هغه ملائکو څخه يوه ملائکه راغلې وه کوم چي د حضرت عزرائيل عليه السلام مرستياليان او ماتحت دي، مګر اغلب خبره داده چي خپله حضرت عزرائيل عليه السلام به راغلی وي . ځکه د روح په قبض کولو کي صحيح خبره داده چي د روح قبض کولو کار حضرت عزرائيل عليه السلام سرته رسوي لکه څرنګه چي الله تعالی فرمايي :

قل يتوفکم ملک الموت الذي وکل بکم : ورته ووايه چي تاسو ملک الموت حضرت عزرائيل عليه السلام وژنئ چي پر تاسو باندي د دغه کار لپاره ټاکل سوی دی .

کله چي حضرت عزرائيل عليه السلام روح قبض کړي نو کوم چي ښه روح وي هغه د رحمت ملائکي واخلي او کوم چي خراب روح وي نو هغه د عذاب د ملائکو په نګرانۍ کي را سي ،

مگر دا خبره دي په ذهن کي وي چي ملک الموت که عزرائيل عليه السلام وي يا بله يوه ملائکه د روح قبض کولو يوازي يوه ظاهري ذريعه جوړېږي کنه نو په حقيقت کي خو روح قبض کونکی او د مرګ خپرونکی الله تعالى دی لکه څرنګه چي فرمايي: الله يتوفى الانفس حين موتها : هر نفس د هغه د مرګ پر وخت الله تعالى وژني .

فقيل له (نو د هغه څخه پوښتنه وسوه) په دې باره کي هم دوه احتماله دي يا خو د هغه څخه دغه پوښتنه الله تعالى خپله وکړه يا ملائکو ځيني وکړه او د پوښتنه کولو د وخت په اړه صحيح خبره داده چي د هغه سړي څخه دغه پوښتنه د روح قبض کولو څخه مخکي سوې وه لکه څرنګه چي د حديث د لومړنيو الفاظو څخه فهمول کېږي مګر دا احتمال هم دی چي دغه سوال د روح قبض کولو څخه وروسته په قبر کي سوی وي لکه څرنګه چي د شيخ مظهر رحمة الله عليه قول دی ، او علامه طيبي رحمة الله عليه يو احتمال دا هم بيان کړی دی چي په اصل کي دغه سوال په قيامت کي کېږي .

په هر حال د دغه حديث څخه دا خبره معلومه سوه چي د مطالباتو په وصولی کي صاحب استطاعت ته مهلت ورکول او مفلس سړی معافول د ثواب کار دی .

## په رانيولو او پلورلو کي ډېر قسمونه مه اخلئ

﴿۲۶۷۲﴾: وَعَنْ اَبِيْ قَتَادَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِيَّاكُمْ وَكَثْرَةَ الْحَلِفِ فِي الْبَيْعِ فَإِنَّهُ يُنَفِّقُ ثُمَّ يَمْحَقُ . رواه مسلم .

د حضرت ابو قتاده رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : د اخيستلو او پلورلو په معاملاتو کي زيات قسمونه مه اخلي زيات قسمونه اخيستل رواج پيدا کوي او برکت ضائع کوي . (مسلم)

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۳\۱۲۲۸، رقم: ۱۳۲- ۱۶۰۷.

**تشريح**: مطلب دادی که څه هم په تجارتي معاملاتو کي د زياتو قسمونو په وجه په کاروبار کي پراخي راځي په دې توګه چي خلک پر قسم باندي په باور کولو سره زيات رانيولو ته مائل کېږي مګر زيات قسمونه په کاروبار کي خير او برکت ختموي ځکه چي د چا زيات قسمونه اخستل عادت وي د هغه څخه د دروغو قسمونه هم صادرېږي چي د هغه نتيجه دا سي چي يو خو په باطني توګه سره د هغه د تجارت څخه د خير او برکت روح وځي دوهم دا چي د هغه اعتبار ، باور او خلک د هغه سره په رانيولو او پلورل کي تامل کول شروع کوي .

﴿۲۶۷۳﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ الْحَلِفُ مُنَفِّقَةٌ لِلسِّلْعَةِ مُمْحِقَةٌ لِلْبَرَكَةِ. متفق عليه.

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اورېدلي دي چي په قسم سره سودا زر خرڅه سي خو برکت يې ځي. (بخاري او مسلم)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۳۱۵\۴، رقم: ۲۰۸۷، ومسلم ۱۲۲۸\۳، رقم ۱۳۱- ۱۶۰۶.

**تشريح**: د قسم څخه مراد د قسم زياتوب هم کيدای سي او د درواغو قسم هم مراد کيدای سي، خلاصه داده که چيري يو څوک زيات قسمونه اخلي که څه هم هغه قسمونه رښتيا وي يا د درواغو قسم اخلي نو د هغه په وجه په شروع کي د هغه په مال او اسبابو کي پراخي او زياتوب راځي مګر په پای کي دغه شی د هغه په مال او اسبابو کي د برکت ختمولو سبب جوړيږي، په دې توګه چي يا خو د هغه مال او اسباب ضائع سي يا هغه په داسي ځای کي مصرف سي چي د هغه څخه ګټه نه په دنيا کي تر لاسه سي او نه په آخرت کي د اجر او ثواب باعث وي.

## د درواغو قسم اخيستونکي لپاره وعيد

﴿۲۶۷۴﴾: وَعَنْ أَبِيْ ذَرٍّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ثَلَاثَةٌ لَا يُكَلِّمُهُمُ

د حضرت ابوذر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: درې کسان دي چي د قيامت

اللّٰهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلَا يَنْظُرُ إِلَيْهِمْ وَلَا يُزَكِّيهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ قَالَ أَبُو ذَرٍّ

په ورځ ورسره خدای تعالي خبري نه کوي نه به د هغوی لور ته ګوري او نه به هغوی د ګناهونو څخه پاک کړي او د هغوی لپاره دردناکه عذاب دي ابوذر رضي الله عنه پوښتنه وکړه يا رسول الله ﷺ!

خَابُوا وَخَسِرُوا مَنْ هُمْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ الْمُسْبِلُ وَالْمَنَّانُ وَالْمُنَفِّقُ سِلْعَتَهُ بِالْحَلِفِ الْكَاذِبِ. رواه مسلم

هغه بدبخته او د نيکي څخه محرومه او زيان کاران ؤسول څوک دي دوی ؟ نبي کريم ﷺ وفرمايل: ۱- يو خو اوږدې پائڅې (يعني د بجلکو لاندي پر توګ اغوستونکي، ۲- احسان کونکي، ۳- هغه څوک چي په قسم خوړلو سره خپل مال خرڅوي. (مسلم).

**تخریج:** مسلم في الصحیح ۱/۱۰۲، رقم: ۱۷۱ و ۱۰۶.

**د لغاتو حل:** المُسبِل: ای ازاره عن کعبیه والمطول سروالہ الی الارض کبرا واختیالا (هغه چي پایڅې یې تر بجلکو لاندي وي او یا اوږد پرتوګ جوړوي د تکبر له پاره).

**تشریح:** د پایڅو ځړونکي څخه مراد هغه سړی دی چي هغه د تکبر په وجه تر بجلکو لاندي **پرتوګ** زړوي، په دې کي هغه سړی هم داخل دی کوم چي تر بجلکو لاندي پوري قمیص اغوندي.

د احسان ښکاره ونکي څخه مراد دادی چي د چا سره د ښه چلن په کولو سره مثلا یو چا ته د یو شي په ورکولو سره یا د یو چا سره د مرستي یو معامله کولو سره هغه پر ژبه راوړي، کوم څوک چي د چا سره د مرستي او همدردۍ یو معامله وکړي بیا پر هغه احسان اچوي نو هغه د ثواب څخه محروم کیږي.

په دروغو قسم اخیستلو سره د تجارت زیاتونکي څخه مراد هغه تجار دی چي د زیاتي ګټي تر لاسه کولو لپاهر یا د خپل تجارتي مال زیاتولو لپاره د دروغو قسمونه اخلي، مثلا هغه یو شی په نیوي روپۍ رانیولی وي او د رانیونکي څخه د زیات قیمت تر لاسه کولو لپاره یا د هغه مالیت زیاتولو لپاره د دروغو په قسم اخیستلو سره ووایي چي قسم په خدای د غه شی ما په سل روپۍ رانیولی دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د امانت دار کاروباري فضیلت

﴿۲۶۷۵﴾: عَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ التَّاجِرُ

د حضرت ابوسعید رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل :سوداګر

الصَّدُوقُ الأَمِينُ مَعَ النَّبِيِّينَ وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَاءِ .رواه الترمذي والدارمي والدار قطني و رواه ابن ماجة عن ابن عمر وقال الترمذي هذا حديث غريب .

رښتیا ویونکی، امانت دار به د نبیانو شهیدانو او صدیقانو سره وي .(ترمذي دارمي دار قطني) ابن ماجه د ابن عمر رضی الله عنه څخه روایت کړي چي ترمذي وویل دا حدیث غریب دي .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\۵۱۵، رقم: ۱۲۰۹، والدار قطني ۳\۷، رقم: ۱۸.

**تشريح**: د كاروباري شخه مراد هغه سړی دی چي تجاري كاروبار او اجاره داري كوي ، او دا خبره هم په ذهن كي كښېنول پكار دي چي تر ټولو غوره كاروبار د كپړو تجارت دی او ددې شخه وروسته عطاري (عطر پلورل او جوړل).

د حديث شريف مطلب دادی چي كوم كاروباري سړي په رښتيا ، ديانت دارۍ او امانت په صفتو سره متصف وي نو د هغه ټول ژوند به د كماليه صفاتو شخه مزين وي او د هغه نتيجه به دا وي چي هغه به د حشر په ميدان كي د نبيانو ، صديقينو او شهيدانو سره وي لكه شرنګه چي هلته د سختي پر وخت به دغه درې طبقې د الهي رحمت په سايه كي وي همدارنګه دغه سړی به هم د الله تعالی د رحمت په خاص پناه كي وي يا دا چي هغه ته به په جنت كي د هغوی د ملګرتيا شرف حاصل سي نو هغه ته به د انبياؤ ملګرتيا د هغوی د اطاعت او فرمانبردارۍ په وجه تر لاسه وي ، د صديقينو سره د هغوی د خاص صفت يعني د صدق د موافقت په وجه به وي او د شهيدانو سره د ملګرتيا سعادت به هغه ته ځكه په برخه وي چي شهيدان به د هغه سړي د صدق او امانت شاهدي وركوي.

## د تجارت سره د صدقې او خيرات حكم

﴿۲۶۷۶﴾: وَعَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي غَرَزَةَ قَالَ كُنَّا نُسَمَّى فِي عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى

د حضرت قيس بن ابي غزوه رضي الله عنه شخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ په زمانه كي به موږ خلكو

اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ السَّمَاسِرَةَ فَمَرَّ بِنَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَمَّانَا

(تاجرانو) ته دلال ويل يوه ورځ نبي كريم ﷺ زموږ سره تير سو نو پر موږ يې داسي نوم

بِاسْمٍ هُوَ أَحْسَنُ مِنْهُ فَقَالَ يَا مَعْشَرَ التُّجَّارِ إِنَّ الْبَيْعَ يَحْضُرُهُ اللَّغْوُ

كښېښودي چي د مخكيني نوم شخه بهتره وو. نبي كريم ﷺ وفرمايل: اې د تاجرانو ډلې! په خرڅولو كي بې فائدې خبري او قسمونه پېښيږي

وَالْحَلْفُ فَشُوبُوهُ بِالصَّدَقَةِ. رواه ابوداؤد والترمذي والنسائي وابن ماجة.

تاسو د بيع سره خيرات يو ځاي كوئ (يعني صدقه خيرات وركوئ كوم چي د بې فائدې خبرو كفاره كيږي). (ابو داؤد ترمذي نسائي ابن ماجه)

**تخریج**: ابوداود في السنن ۳\ ۶۲۰، رقم: ۳۲۲۶، والترمذي ۳\ ۵۱۴، رقم: ۴، والنسائي ۷\ ۱۵، رقم: ۳۷۹۷، وابن ماجه في السنن ۲\ ۷۲۶، رقم:: ۲۱۴۵.

**د لغاتو حل**: فشُوبوه: ای اخلطوا. (یو ځای کول)

**تشریح**: لفظ د سماسره په اصل کي د سمسار د جمع صیغه ده او ددغه لفظ معنی د دلال یا د یو شي د مالک ده، په مخکي زمانه کي به تجارت کونکو ته سمسار ویل کیدل بیا رسول الله ﷺ دغه خلکو ته تر دې غوره نوم یعني تجار چي د تاجر د جمع صیغه ده وضع کړل، ددغه نامه د غوره کېدو وجه داده چي الله تعالی په قرآن کریم کي د رانیولو او پلورلو کاروبار په مدحیه توګه سره د تجارت په لفظ ذکر کړی دی لکه چي د یو آیت دغه ټوټه ده : هل ادلکم علی تجارة تنجیکم من عذاب الیم: ایا زه تاسو ته یو داسي تجارت وښیم چي تاسو ته د دردناک عذاب څخه خلاصون درکړي، په یو بل آیت کي دي : تجارة عن تراض : سوداګري په خپلو کي په خوښۍ سره، په یو بل آیت کي دي : تجارة لن تبور : تجارت کوئ په هلاکت کي مه لویږئ.

فشوبوه بالصدقة (تجارت د صدقې او خیرات سره یو ځای کوئ) ددې مطلب دادی چي په تجارتي ژوند کي په عامه توګه سره بې ګټې خبري او د درواغو او رښتیا قسمونه راځي او دغه دواړه شیان د الله تعالی د غضب او غصې باعث دي ځکه تاسو ددغه دواړو شیانو د کفارې په توګه خپل مال صدقه کوئ ځکه چي صدقه او خیرات د الله تعالی غضب او غصه لیري کوي.

## د تاجرانو لپاره وعید

﴿۲۶۷۷﴾: وَعَنْ عُبَيْدِ بْنِ رُفَاعَةَ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبید بن رفاعه رضی الله عنه د خپل پلار څخه او هغه د نبي کریم ﷺ څخه روایت کوي چي

قَالَ التُّجَّارُ يُحْشَرُوْنَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فُجَّارًا إِلَّا مَنْ اتَّقَى وَبَرَّ وَصَدَقَ. رواه الترمذي وابن ماجة والدارمي و روى البيهقي في شعب الايمان عن البراء و قال الترمذي هذا حديث حسن صحيح.

رسول الله ﷺ وفرمایل : د تاجرانو حشر فاجرانو (دروغجنو او نافرمانو )خلکو سره وي خو (هغه تاجران نه) چا چي پرهېزګاري اختیار کړي وي نیکي یې وکړه او رښتیا یې

وويل .(ترمذي ابن ماجه دارمي بيهقي شعب الايمان) په شعب الايمان کي د براء څخه روايت کړي چي ترمذي کي راغلي چي دا حديث حسن صحيح دي .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\ ۵۱۵، رقم: ۱۲۱۰، وابن ماجه في السنن ۲\ ۷۲٦، رقم: ۲۱۴۵، والدارمي ۲\ ۳۲۲، رقم: ۲۵۳۸. لم نجده في الشعب.

وهذا الباب خال من الفصل الثالث

په دغه باب کي دريم فصل نه سته.

==========

## بَابُ الْخِيَارِ (د خيار بيع بيان)

لفظ دخيار د اختيار څخه مشتق دی او معنی يې ده په دوو شيانو کي د يو ښه شي انتخابول ، او د فقهي په اصطلاح کي د يو تجارتي معاملې فسخ کولو يا د هغه د باقي ساتلو هغه اختيار چي رانيونکي او تجارته حاصل وي .

په تجارتي معاملو کي د اختيار څو ډولونه دي چي د هغو تفصيلي احکام او فقهي اختلاف د فقهي په کتابو کي مذکور دي بيا هم دلته د هغه ډولونه او تعريفونه ذکر کول ضروري دي :

خيار شرط: په تجارتي معامله کي د فيصله کولو څخه وروسته تاجر يا رانيونکي دواړو د معاملې د ختمولو يا باقي ساتلو حق ته خيار شرط ويل کيږئ مثلا تجار يو شی خرڅ کړی او رانيونکي رانيوي مگر ددغه رانيولو او پلورلو څخه وروسته تجار را نيونکي دا وويل چي ما ته به يوه ورځ يا دوې ورځي او يا تر درو ورځو پوري دا اختيار وي چي بيع باقي وساتل سي يا ختم کړل سي ، که په دغه موده کي بيع فسخ کړل سي او که ددغه وخت تر ختمېدو پوري بيع قائمه وي يا سکوت وکړي نو د وخت ختمېدو څخه وروسته به بيع پخه سي ، دا خبره بايد په ذهن کي وي چي د خيار شرط وخت د امام ابو حنيفة رحمة الله عليه په نزد تر درو ورځو پوري دی .

خيار عيب: د بيع کولو څخه وروسته په رانيول سوي شي کي د يو عيب معلومېدو وروسته د هغه شي د ساتلو يا بيرته ورکولو کوم اختيار چي رانيونکي ته حاصل وي هغه ته خيار عيب وايي مثلا تجار يو شی خرڅ کړي چي رانيونکي يې رانيسي اوس ددغه بيع څخه وروسته که رانيونکي ته معلومه سي چي ما کوم شی رانيولی دی په هغه کي دغه فلانی عيب دی نو هغه ته به اختيار وي که وغواړي هغه شي د ځان سره وساتي او که وغواړي نو پلورنکي ته يې بيرته

ورکړي او د هغه څخه خپل روپۍ تر لاسه کړي ، البته که چیري پلورنکي د هغه شي د پلورلو پر وخت رانیونکي ته دا ویلي وي چي په دغه شي کي یو عیب وي نو زه د هغه ذمه دار نه یم که ته یې اوس رانیسي او که یې نه رانیسي او ددې سربیره رانیونکي راضي سوی وي نو هر ډول عیب چي په رانیول سوي شي کي وي رانیونکي ته به د هغه د بېرته ورکولو اختیار نه وي .

خیار رویت: د یو شي د نه لېدلو په صورت د رانیولو څخه وروسته د هغه شي د ساتلو یا بیرته ورکولو چي کوم اختیار رانیونکي ته حاصل دی هغه ته خیار رؤیت ویل کیږي مثلا یو رانیونکي یو شی بېله لېدلو رانیسي نو دغه بیع به جائز وي مگر رانیونکي ته به دا اختیار حاصل وي چي هغه کله هغه شی ووینې چي د ځان سره یې وساتي او یا یې بیرته ورکړي.

خیار تعین : په څو شیانو کي د ځینو د ساتلو او د ځینو د بېرته ورکولو کوم اختیار چي رانیونکی ته حاصل وي هغه ته خیار تعین وایي، مثلا یو رانیونکي د یو تاجر څخه د کپړو یو څو تانه راوړي او په هغه کي د یوه د رانیولو خبره وکړي اوس هغه ته اختیار دی چي په هغه کي کوم یو تان خوښ کړي هغه واخلي او نور بېرته ورکړي .

ددغه ډولو څخه پرته په دغه باب کي د خیار یو بل ډول هم ذکر کیږي چي هغه ته خیار مجلس وایي ، ددې صورت دادی چي په یوه مجلس کي د تجار او رانیونکي په مینځ کي د رانیولو او پلورلو یو معامله کېدو څخه وروسته د هغه مجلس تر ختمېدو پوري تجار او رانیونکي دواړو ته دا اختیار حاصل دی چي په هغه کي هر یو معامله ختمولای سي ، د مجلس ختمېدو څخه وروسته دغه اختیار هیڅا ته نه حاصلیږي، مگر د خیار په دغه ډول کي اختلاف دی د حضرت امام شافعي او ځیني نور علماء ددغه خیار قائل دي مگر امام ابو حنیفة او ځیني نور علماء ددې قائل نه دي ، دا حضرات وایي چي کله دبیع ایجاب او قبول وسي یعني معامله پوره سي نو اوس هیڅا ته د هغه معاملې د فسخ کېدو اختیار نه سته او دا چي د معاملې پر وخت د خیار شرط فیصله سوې وي چي هغه ته خیارشرط وایي او د هغه وخت تر درو ورځو پوري دی تر درو ورځو وروسته د خیار شرط صورت هم ختمیږي .

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ (لومړی فصل)

### د خیار مجلس مسئله

﴿۲۶۷۸﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْمُتَبَايِعَانِ

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ و فرمايل : اخيستونكي او پلورونكي

كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِالْخِيَارِ عَلَى صَاحِبِهِ مَا لَمْ يَتَفَرَّقَا إِلَّا بَيْعَ الْخِيَارِ متفق

دواړو كي هر يو تر څو چي جلا سوي نه وي يو د بله سره اختيار لري (كه غواړي د را نيولو او خرڅولو معامله پاته وساتي خواه رد يې كړي يعني د هغه ځايه څخه د تللو وروسته خرڅول پوره كيږي او وروسته اختيار پاته نسي )خو د بيعي د اختيار څخه پرته چي په دې كي د جلا والي وروسته بيا هم اختيار پاته وي .(بخاري او مسلم)

عليه و في رواية لمسلم إِذَا تَبَايَعَ الْمُتَبَايِعَانِ فَكُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِالْخِيَارِ مِنْ

او په مسلم كي دا الفاظ هم سته هر كله چي اخيستونكي او خرڅونكي د رانيولو او خرڅولو معامله وكړي نو په هغوی كي هر يو په خپله معامله كي اختيار لري

بَيْعِهِ مَا لَمْ يَتَفَرَّقَا أَوْ يَكُونُ بَيْعُهُمَا عَنْ خِيَارٍ فاذا كان بَيْعُهُمَا عَنْ خِيَارٍ

تر څو پوري چي په هغوی كي يو د بله سره جلا نسي يا د هغوی بيعه (بيع الاخيار ) نه وي په دې

فَقَدْ وَجَبَ وفي رواية الترمذي البيعان بالخيار مَالَمْ يَتَفَرَّقَا أَوْ يَخْتَارَا في

المتفق عليه او يقول احدهما لصاحبه اختر بدل او يختارا .

صورت كي اختيار واجب دي او ترمذي كي دي چي په دوی كي يو كس خپل ملګري ته دا ويلاي سي چي تا ته اختيار دي په ځاي كي د (يختارا ) يعني دواړه اختيار لري .

**تخريج** : البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴\ ۳۲۶، رقم: ۲۱۰۷، ومسلم ۳\ ۱۱۶۳، رقم: ۴۳- ۱۵۳۱. والترمذي في السنن ۳\ ۵۴۷، رقم: ۱۲۴۵.

**تشريح** : د دغه حديث څخه په ظاهره د خيار مجلس جواز ثابتيږي مګر كوم حضرات چي د خيار مجلس قائل نه دي بلكه د بېلېدو څخه مراد د دواړو د تجارتي معاملې د خبرو پای ته رسيدو سره منقطع كېدل دي يعني تر څو پوري چي هغوی دواړه د هغه معاملې په اړه خبري كوي او ايجاب او قبول پوره سوی نه وي تر هغه وخته پوري په هغوی كي هر يوه ته دا اختيار وي كه هغوی غواړي نو معامله فسخ كړي او كه وغواړي نو باقي يې وساتي مګر كله چي ايجاب او قبول پوره سي يعني پلورنكی دا ووايي چي ما دغه شی پر تا باندي خرڅ كړ او رانيونكی

ووايي چي ما دغه شی رانیوی نو اوس ددې څخه وروسته په هغوی کي يوه ته هم د معاملې د فسخ کولو اختيار نه سته ، دغه حضراتو د بېلېدو د معنی اخيستلو په اړه ددغه آيت کريمه څخه استدلال کړی دی : وان يتفرقا يغن الله كلا من سعته : که هغوی دواړه بېل سي نو الله تعالی به په خپل فضل سره په هغوی کي هر يو بې پروا کړي .

په دغه آيت کريمه کي د بېلېدو مطلب د مجلس څخه بېلېدل نه دي بلکه د ښځي او خاوند په مينځ کي د طلاق په ذريعه بېلوالی مراد دی .

﴿۲٦٧٩﴾: وَعَنْ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت حکيم بن حزام رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل :

الْبَيِّعَانِ بِالْخِيَارِ مَا لَمْ يَتَفَرَّقَا فَإِنْ صَدَقَا وَبَيَّنَا بُورِكَ لَهُمَا فِي بَيْعِهِمَا وَإِنْ كَتَمَا وَكَذَبَا مُحِقَتْ بَرَكَةُ بَيْعِهِمَا . متفق عليه

رانيونکي او خرڅونکي تر څو پوري چي يو دبله سره جلا نسي اختيار لري که دواړه خپل مينځ کي رښتيا ووايي او د شی حقيقت څرګند کړي نو د هغوی په بيعي کي برکت اچول کيږي او که عيب پټ کړي او دروغ ووايي نو په بيعه کي يې برکت نه پاته کيږي .(بخاري او مسلم).

**تخريج** : البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴\۳۰۹، رقم: ۲۰۷۹، ومسلم ۳\۱۱٦۴، رقم: ۴۷- ۱۵۳۲.

## په رانيولو او پلورلو کي چم مه کوئ

﴿۲٦۸۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَجُلٌ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّي أُخْدَعُ فِي الْبُيُوعِ فَقَالَ إِذَا بَايَعْتَ فَقُلْ لَا خِلَابَةَ فَكَانَ الرَّجُلُ يَقُولُهُ . متفق عليه

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي يوه سړی نبي کريم صلى الله عليه وسلم ته عرض وکړ په بيعي کي ما ته دوکه را کول کيږي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : کله چي ته يو شی خرڅوې نو دا الفاظ وايه دوکه نسته (په دين کي) او هغه سړي به دا ويل .(بخاري او مسلم) .

**تخريج** : البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴\۳۳۷، رقم: ۲۱۱۷، ومسلم ۳\۱۱٦۵، رقم: ۴۸- ۱۵۳۳.

**د لغاتو حل**: خِلابة: ای غبن و خديعة. (چم).

**تشريح** فقل لا خلابة (ته ووايه چي فريب او چم نه سته) ددغه قول په مطلب کي د علماؤ

مختلف قولونه دي چا دد يو مطلب بيان کړی او چا بل مطلب ، ددغه قولونو تفصيل په نورو شرحو کي مذکور دي دلته د اختصار په وجه يوازي هغه مطلب بيانيږي کوم چي د توربشتي رحمة الله عليه پر قول مبني دی او علامه طيبي رحمة الله عليه هم خوښ کړی دی د توربشتي رحمة الله عليه د قول سره سم ددې مطلب دادی چي رسول الله ﷺ هغه سړي ته حکم ورکړی وو چي کله ته د يو چا سره د رانيولو او پلورلو معامله کوې نو مخکي هغه خبر کړه چي وروره ! زه د رانيولو او پلورلو په معاملو زيات نه پوهېږم ته داسي شی مه خوښوه چي په هغه سره زه تاواني سم او زموږ په دين کي ددې هيڅ ځای نه سته چي يو څوک دي يو سړی په چم او فريب کي واچوي ځکه نو مهرباني وکړه دوکه او چم مه را سره کوه .

دا د هغه زمانې خبره ده کله چي په عامه توګه سره خلک ديندار، امانتدار او د پرهيزګارۍ خاوندان وه ، د الله تعالی د مخلوق سره د همدردۍ او خير جذبه زياته وه هر مسلمان به د بل مسلمان لپاره هغه څه خوښول کوم چي به يې د خپل ځان لپاره خوښول په خاصه توګه که چا به يو څوک خبر کړ چي زما سره داسي چلن مه کوه چي په هغه سره ما ته تاوان او تکليف رسيږي نو بيا به هغه ددې په خاصه توګه خيال کوی چي هغه ته تاوان ونه رسوم ځکه رسول الله ﷺ هغه ته ددغه خبري تعليم ورکړ که هغه په خپل باره کي داسي خبر ورکوي نو خلک به د هغه د خيرخواهۍ خامخا خيال ساتي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### په کاروبار کي د فريقينو رضامندي

﴿۲۶۸۱﴾: عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

عمرو بن شعيب رضي الله عنه د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار ه څخه روايت کوئ چي رسول الله ﷺ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْبَيِّعَانِ بِالْخِيَارِ مَا لَمْ يَتَفَرَّقَا إِلَّا أَنْ يَكُونَ صَفْقَةَ خِيَارٍ

وفرمايل : را نيونکي او خرڅونکي تر څو پوري چي جلا نسي دواړه اختيار لري که بيعه

وَلَا يَحِلُّ لَهُ أَنْ يُفَارِقَ صَاحِبَهُ خَشْيَةَ أَنْ يَسْتَقِيلَهُ . رواه الترمذي و ابوداؤد والنسائي .

اختياري وي او په دواړو کي يوه ته هم دا خبره جائز نه ده چي په معاملو کولو سره د هغه ځايه ثخه ولاړ سي په دې خيال چي د دويم سړی د بيعي د فسخه کولو اختيار پاته نسي .(ترمذي ابو داؤد نسائي)

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\ ۵۵۰، رقم: ۱۲۴۷، و ابودارد في السنن ۳\ ۷۳۶، رقم: ۳۴۵۶، والنسائي ۷\ ۲۵۱، رقم: ۴۴۸۳.

---

﴿۲۶۸۲﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَفْتَرِقَنَّ اثْنَانِ إِلَّا عَنْ تَرَاضٍ . رواه ابوداؤد .

د حضرت ابوهريره ﷛ ثخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : رانيونكي او خرڅونكي دي تر هغه وخته پوري يو دبله نه جلاكيږي تر څو پوري چي دواړه په بيعي کي را ضي نسي .(ابوداؤد) .

**تخريج**: ابوداود في السنن ۳\ ۷۳۷، رقم: ۳۴۵۸.

**تشريح**: مطلب دادی چي دواړه رانيونكی او پلورنكی دي د يو تجارتي معاملې ثخه وروسته تر هغه وخته پوري د يو بل ثخه نه بېليږي تر څو چي د قيمت ادا كول او د رانيول سوي شی تر لاسه كول د دواړو تر منځ په رضا او رغبت ونه سي يا په عمل کي رانه سي، ځكه چي ددې ثخه پرته يو بل ته د تاوان رسيدو احتمال دی چي په شريعت کي منع دی ، يا ددې ثخه مراد دادی چي كله معامله و سي او دواړه كسان د هغه ځای ثخه د ولاړېدو اراده وكړي نو د دوهم كس ثخه دي دا پوښتنه وكړي چي ته راضي يې ، ددې ثخه وروسته كه هغه دوهم كس معامله فسخ كول غواړي نو فسخ دي يې كړي او كه هغه په معاملې سره راضي وي نو بيا دي سره بېل سي ، په دغه صورت کي دغه حديث د معنی په اعتبار د اول حديث موافق دی او دا خبره دي په ذهن کي وي چي دغه منع دنهي تنزيهي په توګه ده ځكه چي پر دې خبره د ټولو علماؤ اتفاق دی چي د يو بل د اجازې ثخه پرته بېلېدل جائز دي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د عقید بیع وروسته د فسخ اختیار

﴿۲۶۸۳﴾: عَنْ جَابِرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيَّرَ أَعْرَابِيًّا بَعْدَ الْبَيْعِ. رواه الترمذي وقال هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صحيح غَرِيبٌ.

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ يوه صحرائي ته تر خرڅولو وروسته اختيار ورکړ. (ترمذي) او په ترمذي کي دا حديث حسن صحيح غريب دي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۵۵۱، رقم: ۱۳۴۹.

=========

## بَابُ الرِّبو (د سود بيان)

سود يو تېولنيز لعنت دی چي د هغه اقتصادي تاوانونو همېشه د غريبانو په وينو سره د سرمايه دارۍ آبياري (اوبه کول) کړې ده او د غريب د زېلي بدن څخه يې د سرمايه دار هوس ته غذا بخښلې ده، په دغه لعنت کي اخته کسانو ته الله تعالی داسي خبرداری ورکړی دی:

فَإِن لَّمْ تَفْعَلُواْ فَأْذَنُواْ بِحَرْبٍ مِّنَ اللّٰهِ وَرَسُولِهِ (البقرة)

ژباړه: که چيري تاسو پر دغه (د سود پرېښودو پر حکم) عمل نه کوئ نو د الله تعالی او د هغه د رسوله له طرفه د جګړې اعلان واورئ.

اسلام په تجارت او پور دواړو کي سود حرام کړی دی او داسي کول يې لويه ګناه ګرځولې ده، کوم مسلمان چي د سود د حرام کېدو قائل نه وي نو د اسلامي قانون دا فيصله ده چي هغه کافر دی. دغه لعنت ډېر پخوانی دی د اسلام څخه مخکي د جاهليت په زمانه کي هم سود رواج وو د مکې په قريشو او د مدينې په يهودو کي هم سود عام رواج وو او په هغوی کي يوازي د شخصي اړتياوو مثلا پور وغيره لپاره نه بلکه د تجارتي مقاصدو لپاره هم سود کيدی، همدارنګه د سود تاوان د همېشه څخه منل سوی دی او ددې کونکی هيڅکله د تاواني اثرانو څخه منکر نه دی البته يوه نوې خبره دا سوې ده چي د کله څخه د يورپ دلالان د دنيا پر اقتدار او تجارت باندي واکمن سوي دي هغوی د لويو سوداګرو او يهوديانو دغه خاص کاروبار ته

نوي نوي شکلونه او نوي نوي نومونه ورکړي دي او ددې دائره يې دومره پراخه کړې ده چي هغه سود چي مخکي د انساني د ټولنيز ژوند يو عيب ګڼل کيدی نن د ټولني ، اقتصاد او تجارت د ملا تېر ګڼل کيږي او فکر لرونکو ته دا يقين سوی دی چي نن هيڅ يو تجارت يا صنعت يا يو بل ټولنيز نظام د سود څخه پرته پر مخ نه سي تللای که څه هم نن د يورپ څخه هغه خلک چي د تقليد محض او غصبيت څخه په لوړېدو سره په پراخ نظر د معاملاتو څارنه کوي او څوک چي د اقتصاد پراخ علم نه لري بلکه ددې پر عملي اړخونو ژور نظر هم لري په خپله د هغوی دا فيصله ده چي سود د ټولني او اقتصاد لپاره د ملا تېر نه دی بلکه يو داسي چينجی دی چي د ملا تېر ته ننوتلی دی او تر څو چي دا چينجی ونه کښل سي د دنيا په اقتصاد کي چي کوم اضطراب او پريشاني ده هغه نه ختميږي .

په دې کي شک نه سته چي نن په دنيا کي د سود کاروبار څومره پراخ سوی دی او ددنيا ددغه کونج څخه نيولې تر هغه کونج پوري په ټولو تجارتونو کي ددغه جال چي څومره فتنه خپره سوې ده د افرادو او اشخاصو څه حيثيت که يوه پوره ډله يا طبقه بلکه که يو پوره هيواد هم ددې څخه وتل غواړي نو هغه ته به ددې څخه پرته بل څه په لاس ور نه سي چي يا خو خپل تجارت د لاسه ورکړي يا به تاوان زغمي ، دا وجه ده چي اوس عام مسلمان تجار بېل سو هغه ديندار او پرهيزګار مسلمان تاجر چي د هغه اعتقادي او عملي ژوند ډېر پاک او مثالي دی اوس هغوی هم دا سوچ پرې ايښی دی چي سود چي يو حرام شی دی او بدترينه سرمايه ده ددې څخه څرنګه خلاصون تر لاسه کړي ، د هغه نتيجه دا ده چي په دغه ديندار او مسلمان کي او د يو خاص دنيا داره سود اکر په مينځ کي هيڅ فرق نه معلوميږي .

نو د سود د خپرېدو مطلب دا نه دی چي مسلمان ددغه عامي مجبورۍ په مرسته اخيستلو سره د دومره لوی لعنت څخه بالکل بې پروا سي او د هغه په زړه کي د ذرې په اندازه پريشاني پيدا نه سي چي هغه په څومره حرام شي کي اخته دی ، نن چي د سود په باره کي تاويلونه کيږي يا هغه ته چي کوم نوي شکلونه ورکول کيږي په ياد ولرئ ! دا ټول په هغه درجه حرام دي په کومه درجه کي چي خپله د سود حرمت دی ځکه د مسلمانانو فريضه ده چي هغوی خپل تجارتي معاملات په داسي طريقه صحيح کړي چي په هغه سره تر خپل وسه ددغه لعنت څخه خلاصون تر لاسه کړي ، که په اوسني اقتصادي نظام کي تر دغه حده پوري تبديلي د هغه په وس کي نه وي نو کم از کم خپل ژوند او معاملات خو دي سم کړي چي د سود د لعنت څخه که بالکل خلاصون تر لاسه نه کړي نو کم از کم په دې کي کمي خو به وسي او د مسلمان کېدو دغه ادنا

تقاضا په پوره کېدو سره هغه به تر خپل وس پورې د حرامو څخه د ځان ساتنې په فکر کې وي.

په هر حال په دغه باب کې د موضوع سره اړوند حديثونه ذکر کيږي چې د هغه په ضمن کې د موقع سره سم د سود احکام او مسائل بيانيږي مګر دا خبره ضروري ده چې د هر څه څخه مخکې د دغه موضوع سره اړوند يو څو بنيادي خبرې ښوول ضروري دي:

**د ربا (سود) تعريف**: د لغت په اعتبار د ربا معنى د زياتوب او لوړوالي ده او د شريعت په اصطلاح کې داسې زياتوب ته ربا وايي چې هغه د يو مالي معاوضې څخه پرته ترلاسه سي.

**په ربا او سود کې فرق**: په قرآن کريم کې چې کوم شی په لفظ د ربا سره حرام سوی دی د هغه ترجمه په پښتو ژبه کې په عامه توګه سره په سود کيږي چې د هغه په وجه خلک په غلط فهمۍ کې اخته دي او رواج سوی سود دواړه په عربي او پښتو کې د يوه شي دوه نومونه دي يعني کوم شي ته چې په عربي کې ربا ويل کيږي حالانکه داسې نه ده بلکه ربا د عام او وسيع مفهوم حامل دی او مروجه سود د ربا يو ډول دی، ځکه چې د مروجه سود معنى ده د روپو يو ټاکلې اندازه د يو ټاکلي وخت لپاره په پور ورکولو سره په ټاکلې سوې شرح سره ګټه يا زياتوب اخيستل بېله شکه د ربا په تعريف کې داخل دی مګر يوازې دغه يو صورت يعني پر پور باندې ګټې او زياتوب اخيستلو نوم ربا نه دی بلکه د ربا مفهوم تر دې هم وسيع دی ځکه چې رسول الله ﷺ د وحې په رڼا کې د ربا مفهوم ته په وسعت ورکولو سره د رانيولو او پلورلو د معاملاتو ځينې داسې صورتونه هم بيان کړي دي چې په هغو کې د شيانو په خپلو کې د ورکړې راکړې يا د هغوی د يو تر بله رانيولو او پلورلو کې کمي او زياتوب کول هم ربا ده او په هغه کې د پور کاروبار کول هم ربا ده که څه هم په دغه پور کې پر اصل اندازه باندې زياتوب نه وي بلکه برابر په برابر واخستل سي او ورکړل سي.

**د ربا ډولونه او د هغو احکام**: د ربا د پورتني وسيع مفهوم سره سم فقهاؤ چې د ربا کوم ډولونه ترتيب کړي دي په هغو کې په عامه توګه سره پنځه ډولونه بيانيږي.

۱: رباء قرض، ۲: رباء رهن، ۳: رباء شراکت، ۴: رباء نسيه، ۵: رباء فضل.

۱: رباء قرض: ددې مطلب دادی چې د پورړوي څخه د ټاکلي وخت څخه وروسته د خپل اصل مال څخه زيات اخيستل، ددې مثال د مروجه سود صورت دی يعني يو څوک يو چا ته د خپلو روپو ټاکل سوی مقدار تر يو ټاکلي وخت لپاره په دې شرط په پور ورکړي چې دومره روپۍ به د مياشتنې سود په حساب سره راکوې او اصل روپۍ به پر خپل حال پاته وي، د سود دغه صورت بالکل حرام دی او په دې کې د هيڅ شک او شبې ګنجائش نه سته.

۲: رباء رهن: ددې مطلب دادی چي بېله يو مالي معاوضې هغه ګټه چي مرتهن ته د راهن څخه يا د مرهونه شي څخه تر لاسه سي ، ددې مثال دادی چي يو سړی (يعني راهن) خپل يو ملکيت مثلا سرای بل سړي (يعني مرتهن) ته د امانت په توګه په اېښودو سره د هغه څخه يو څو روپۍ په پور واخلي او هغه مرتهن د هغه ګرو سوي شي څخه ګټه تر لاسه کړي مثلا په هغه سرای کي اوسيږي يا په کرايه يې ورکړي يا دا چي د هغه ګرو سوي شي څخه ګټه نه تر لاسه کوي بلکه د راهن څخه يې تر لاسه کوي په دې توګه چي په پور ورکړي روپو باندي سود حاصل کړي ، د رهن دغه دواړه صورتونه حَرام دي .
۳: رباء شراکت: ددې مطلب دادی چي په يو مشترک کاروبار کي يو شريک د بل شريک ګټه وټاکي او د ټولو تاوانو او ګټو خپل ځان مستحق وګرځوي، دا هم حرام دی .
۴: رباء نسيه: ددې مطلب دادی چي د دوو شيانو په تبادله کي يا دوو شيانو په رانيولو او پلورلو کي پور کول که په هغه پور کي پر اصل مال باندي زياتوب واخيستل سي او که وانه خيستل سي ، مثلا يو څوک يو چا ته يو من غنم ورکړي او بل سړی د هغه په بدله کي هغه ته يو من غنم ورکړي مګر يوه يا دوې ورځي يا يوه يا دوې مياشتي وروسته يې ورکړي دا دهغه صورت مثال دی چي په دوو شيانو کي تبادله وکړل سي که دغه تبادله لاس په لاس و نه سي بلکه د يوې خوا څخه په نقدو او د بلي خوا څخه په پور معامله وسي او په دغه پور کي پر اصل مال باندي زياتوب او کمي ونه سي ، په کمۍ او زياتوب سره د راکړي او ورکړي مثال دادی چي يو څوک به بل سړي ته يو من غنم ورکړي، د رباء نسيه دا هغه صورت دی چي د جاهليت په زمانه کي هم رواج وو او اوس هم په مروجه سود کي موجود دی او په يوه اعتبار سره دا د رباء قرض په ډول کي هم داخل دی .
۵: رباء فضل : ددې مطلب دادی چي په دوو شيانو کي په کمي او زياتوب سره لاس په لاس راکړه ورکړل کول، مثلا يو سړی يو چا ته يو من غنم ورکړي او د هغه څخه د خپل يو من غنم په بدله کي يونيم من غنم واخلي ، د رباء دغه دواړه ډولونه يعني نسيه او فضل کي دوه بنيادي صورتونه دي او د ناخبرۍ په وجه په عامه توګه سره خلک په دې کي د سود پيدا کېدونکي حکم څخه ناخبره دي ځکه نو مناسب ده چي د هغه د احکامو بيانولو څخه مخکي يو څو خبري د مقدمې په توګه بيان کړل سي چي پر دغه احکامو باندي په پوهېدو کي تکليف نه وي .
۱: د راکړي او ورکړي او تجارت معامله چي د کومو شيانو متعلق ده د هغو درې ډوله دي ۱: يا خو په وزن سره وي، ۲: يا په يو لوښي يعني ناپ سره وي، ۳: نه په وزن سره وي او نه په يو

لوبني سره ، د اول او دوهم ډول مثال غله ده چي غله يا خو په تللو سره خرڅيږي او يا په لوبني سره په اندازه کولو سره خرڅيږي، په پلورلو او رانيولو کي چي کوم شيان تلل کيږي هغه ته موزون وايي او کوم شيان چي په ناپ سره اندازه کيږي هغه ته مکيل وايي ، او مکيل د يو شي موزون يا مکيل کېدو صفت ته د فقهي په اصطلاح کي قدر ته وايي ، دغه لفظ د قدر هم په ذهن کي وساتئ .

۲: د هر شي يو حقيقت وي، د غنمو غنم کېدل، د سپينو زرو سپين زر کېدل او د کپړې کپړه کېدل ، دغه حقيقت ته جنس وايي ، دغه لفظ د جنس هم په ياد ولري .

۳: د کومو شيانو چي سودا کيږي هغه کله په قدر کي متحد او مشترک وي او په جنس کي مختلف وي مثلا غنم او نخود ، دغه دواړه شيان په قدر کي مشترک دي ځکه چي دواړه موزون دي يا مکيل دي مګر په جنس کي مختلف دي ځکه چي د يوه حقيقت غنم دی او د بل حقيقت نخود دي، او کله داسي هم کيږي چي د کومو دوو شيانو سودا کيږي د هغوی جنس متحد وي مګر په قدر کي يو ډول نه وي مثلا د ململ د ململ سره تبادله چي د دواړو جنس يو دی مګر دواړه موزون يا مکيل نه دي ، ځکه نو کله چي دغه دواړه قدر نه وي نو په قدر کي به يو ډول څرنګه وي ، يا د پسه په پسه سره تبادله چي د دواړو جنس يو دی مګر موزون او مکيل نه دی ځکه نه قدر دی او نه د قدر اتحاد او کله داسي هم کيږي چي د کومو دوو شيانو سودا کيږي د هغوی جنس هم يو وي او په قدر کي هم مشترک وي لکه د غنمو په غنمو سره تبادله چي د دواړو جنس هم يو دی او قدر هم يو دی ، او کله داسي کيږي چي د کومو دوو شيانو سودا کيږي په هغو کي نه جنس يو وي او نه قدر لکه روپۍ او ټوکر ، يا روپۍ او غله چي نه په هغو کي جنس يو دی او نه قدر يو دی ، نو يو تر بله سودا کېدونکي شيان پر څلور ډوله سول ۱: متحد القدر والجنس (يعني د دواړو قدر هم يو وي او جنس هم يو وي) ۲: متحد القدر غير متحد الجنس (يعني د دواړو قدر خو يو وي مګر جنس يو نه وي)، ۳: متحد الجنس غير متحد القدر (يعني د دواړو جنس يو وي مګر قدر بېل بېل وي)، ۴: غير متحد الجنس والقدر (يعني د دواړو جنس هم يو نه وي او قدر هم يو نه وي) ،

په دغه شيانو باندي د پوهېدو وروسته د شيانو د سودا کولو او تجارت کي په هغه قاعده باندي پوه سئ که چيري دا په ذهن کي وي نو نه يوازي دا چي د دغه باب په احکامو او مسائلو باندي په پوهېدو کي به اساني وي بلکه په خپل اصلي ژوند کي به هم د رباء او سود د ګناه څخه ځان ساتل اسان وي، هغه قاعده داده چي کوم دوه شيان متحد القدر والجنس وي د هغوی يو

تر بل سودا او په تجارت کي په شرعي توګه سره دوه شیان ضروري دي يو خو دا چي هغه دوه شیان په وزن یا پیمانه کي برابر وي ، دوهم دا چي دواړه لاس په لاس وي، مثلا که يو څوک غنم په غنمو بدلول غواړي نو په هغه کي کمي او زیاتوب صحیح نه دي یعني دا صحیح نه ده چي يو سړی يو سير غنم ورکړي او بل سړی پاو بالا يو سير غنم ورکړي بلکه دواړو ته يو سير غنم ورکول ضروري دي ، او دا هم صحيح نه ده چي يو خو يې په لاس ورکړي او بل يې سبا يا بله ورځ يا لږ وخت وروسته ورکړي، بلکه په يوه مجلس کي او په يوه وخت کي دواړو ته خپل حق اخیستل او ورکول لازم دي ، او کوم شیان چي متحد القدر او غیر متحد الجنس وي یا متحد الجنس غیر متحد القدر وي او د دواړو حکم يو وي هغه دا چي د هغوی په خپلو کي سودا کي کمي او زیاتوب خو جائز دی مګر پور جائز نه دی مثلا غنم په نخود سره بدل غواړي چي د دواړو جنس بېل بېل دی مګر قدر يو دی ځکه نو ددغه دواړو په تبادله کي پور جائز نه دی .

همدارنګه يو پسه د بل پسه سره بدلول غواړي چي د هغه دواړو جنس يو دی مګر قدر يې يو نه دی ځکه چي قدر خو موزون یا مکیل کېدو ته وايي او پسه نه مکیل دی او نه موزون، نو په دې کي هم کمي او زیاتوب جائز نه دی چي يو سړی يو پسه ورکړي او بل د هغه په بدله کي دوه پسونه ورکړي مګر د هغه په تبادلې کي هم پور جائز نه دی او کوم شیان چي نه متحد الجنس وي او نه متحد القدر وي په هغو کي کمي او زیاتوب هم جائز دی او د نقد او پور فرق هم جائز دی مثلا د روپو او غلې په خپلو کي تجارت چي ددغه دواړو نه خو جنس يو دی او نه د دوی قدر يو دی نو که يو سړی د روپو په ورکولو سره غله رانیول غواړي نو په دغه صورت کي کمي او زیاتوب هم جائز دی او که غواړي د يوې دوه دې په بدله کي سير غله واخلي او که د يوې روپۍ په بدله کي دوه سيره غله واخيستل سي همدارنګه په دغه صورت کي پور هم جائز دی چي لاس په لاس سودا وکړل سي او که د پور په صورت کي وي ، اوس ددغه قاعدې خلاصه څلور قاعدې سولې :

۱. د متحد القدر او متحد الجنس شیانو په سودا کي برابري او لاس په لاس کېدل واجب دي .
۲. د متحد القدر او غیر متحد الجنس شیانو په سودا کي نه برابري واجب ده او نه لاس په لاس کېدل واجب دي .
۳. د متحد الجنس او غیر متحد القدر شیانو په سودا کي لاس په لاس کېدل واجب دي مګر برابري ضروري نه ده .
۴. د متحد القدر او غیر متحد الجنس شیانو په سودا کي لاس په لاس کېدل ضروري دي مګر

برابري ضروري نه ده .
د دغه ټولو بنيادي خبرو په ذهن کي کښېښولو څخه وروسته اوس د سود هغه دواړه اقسام يعني د نسيه او فضل احکامو ته راسئ چي د هغو يادونه په پيل کي سوې وه .
که چيري سودا کول د داسي دوو شيانو وي چي په هغو کي اتحاد د جنس هم وي او اتحاد د قدر هم يعني هغه دواړه متحد الجنس هم وي او متحد القدر هم نو د امام ابوحنيفة رحمه الله په نزد په دغه سودا کي رباء نسيه هم حرامه ده او ربا فضل هم او دا خبره مخکي ښوول سوې ده چي د جنس څخه مراد د هغه شي حقيقت او د قدر څخه مراد د هغه شي مکيل يا موزون کېدل دي لکه څرنګه چي په سودا کي او په تجارتي معاملاتو کي شرعي معيار د کيل يا وزن دی ، دلته دا خبره هم په ذهن کي راوستل پکار دي چي شارع کوم شي ته مکيل ويلي دي هغه به موزون نه وي که څه هم په عامه اصطلاح او رواج کي هغه موزون وي همدارنګه کوم شي ته چي يې موزون ويلي دي هغه به مکيل نه وي که څه هم په عامه اصطلاح او رواج کي هغه مکيل وي ، مثلاً غنم شارع په هغه شيانو کي شمېرلي دي چي د هغو پلورل او رانيول په پيمانه سره کيږي ځکه د غنمو په غنمو سره سودا د وزن په ذريعه وي ځکه چي د غنمو په غنمو سره سودا کول د وزن په ذريعه جائز نه دي همدارنګه سپينو زرو او سرو زرو ته شارع موزون ويلي دي ځکه نو د سپينو زرو په سپينو زرو او د سرو زرو په سروزرو سره سودا کول د کيل په ذريعه جائز نه دي ، د دغه حکم وجه دا ده چي په يو معامله کي د شارع واضح حکم د عرف او رواج څخه ډېر قوي او غوره دی مګر د کومو شيانو په باره کي چي شارع نه مکيل ويلي دي او نه موزون نو د هغه شيانو په سودا کي د عام رواج اعتبار دی مګر دا خبره په ذهن کي ساتل پکار دي چي په حنفيه حضراتو کي امام ابويوسف رحمه الله په مطلقه توګه باندي د رواج اعتبار کړی دی د هغه په نزد د دغه شيانو سودا د وزن په ذريعه جائز ده کوم ته چي شريعت مکيل ويلي دي په شرط د دې چي په عام رواج کي د وزن په ذريعه د هغه سودا کيږي ، کمال رحمه الله د امام ابويوسف رحمه الله قول ته ترجيح ورکړې ده او له همدې کبله هغه نقود مسکوکه (يعني د سپينو او سرو زرو سکه) مثلاً اشرفۍ او داسي نورو په ذريعه د پور په توګه سودا کول يا د اوړو د وزن په ذريعه رانيول او پلورل جائز ګرځولي دي ، او په کافي نامي کتاب کي هم دا ليکلي دي چي د حنفيه په نزد په دې باره کي د امام ابويوسف رحمه الله پر قول فتوا ده ، د دې مطلب دا دی که څه هم شارع غنمو ته مکيل ويلي دي مګر د هغه سودا د وزن په ذريعه ښله شکه جائز ده ځکه چي نن سبا په عامه توګه سره د هغه سودا د وزن په ذريعه کيږي، په هر حال اتحاد جنس او اتحاد قدر والا شيانو د سودا په باره کي معلومه

سوه چي په دې کي رباء نسيه هم حرامه ده او رباء فضل هم، همدرانگه که چيري سودا د داسي دوو شيانو وي چي په هغه کي د جنس او قدر اتحاد نه وي مثلا هغه متحد الجنس خو وي مگر متحد القدر نه وي که چيري متحد الجنس نه وي نو د هغه په باره کي دا حکم دی چي د داسي شيانو په سودا کي رباء نسيه حرامه ده مگر رباء فضله حرامه نه ده نو که چيري د غنمو په غنمو سره يا د نخودو په نخودو سره يا د چونې په چونې سره يا د سرو زرو په سرو زرو سره يا د اوسپني په اوسپني سره سودا وکړل سي نو په دغه صورت کي فضل (يعني کموالی او زياتوب کول او لاس په لاس اخستل او ورکول) حرام دي او نسيه هم حرام دي ځکه چي دلته اتحاد قدر هم موجود دی او اتحاد جنس هم او که چيري د غنمو په نخود سره او د سرو زرو په سپينو زرو يا د اوسپني په مسو سره سودا وکړل سي نو په دغه صورت کي فضل حلال دی مگر نسيه حرام دی ځکه چي دلته يوازي اتحاد د قدر موجود دی په دې توگه چي د غنمو او نخودو سودا هم په کيل يا وزن سره کيږي او د اوسپني او مسو سودا هم په وزن سره کيږي او د سپينو زرو سودا هم په وزن سره کيږي مگر دلته اتحاد د جنس موجود نه دی ، که چيري د يوه ټوکر يوه ټوټه د هغه ټوکر د بلي ټوټې سره يا د آس په آس سره سودا وکړل سي نو په دغه صورت کي به فضل حلال وي او نسيه به حرامه وي ځکه چي دلته اتحاد د جنس موجود دی مگر اتحاد د قدر نه سته په دې توگه چي ټوکر نه مکيل دی او نه موزون او نه آس مکيل او موزون دی ، حال دا چي شرعي معيار مکيل يا موزون دی گز وغيره شرعي معيار نه دی .

که چيري سودا کول د داسي دوو شيانو وي چي په هغو کي نه اتحاد دقدر وي او نه اتحاد د جنس نو په دې باره کي حکم دادی چي د داسي شيانو په سودا کي فضل او نسيه دواړه حلال دي مثلا که چيري د غنمو د سپينو زرو يا اوسپني سره سودا وکړل سي نو په دغه صورت کي فضل او نسيه دواړه جائز دي ځکه چي دلته نه اتحاد جنس سته او نه اتحاد قدر، په دې توگه چي غنم مکيل دي او سپين زر يا اوسپنه موزون دي .

همدارنگه د اوسپني د سرو زرو سره يا د سرو زرو د اوسپني سره سودا کولو کي هم فضل او نسيه دواړه جائز دي ځکه چي دلته هم نه اتحاد د جنس سته او نه اتحاد د قدر په دې توگه چي د سرو زرو د تللو ډبره بېله وي او د اوسپني د تللو ډبره بېله وي ، د غنمو په چونې سره د سودا کولو هم دغه حکم دی ځکه چي په هغه کي هم دا صورت دی چي د غنمو د سودا کولو پيمانه بېله وي او د چونې د تللو پيمانه بېله وي . (مگر دا د هغه سيمو صورت دی چيري چي د غنمو او چونې رانيول او پلورل په وزن سره نه بلکه په پيمانه سره کيږي ) .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### پر سود اخيستونكي او وركونكي لعنت

﴿۲۶۸۴﴾: عَنْ جَابِرٍ قَالَ لَعَنَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آكِلَ الرِّبَا وَمُؤْكِلَهُ وَكَاتِبَهُ وَشَاهِدَيْهِ وَقَالَ هُمْ سَوَاءٌ. رواه مسلم.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ پر سود خوړونكي باندي او پر سود اخيستونكي باندي د سود پر وركونكي باندي د سود كاغذ ليكونكي باندي لعنت ويلي دي او فرمايلي يې دي چي هغوی ټول په (ګناه) كي برابر دي . مسلم .

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۳\۱۲۱۹، رقم: ۱۰۶\۱۵۹۸.

**تشريح** د سود د كاروبار پر منشي او د هغه پر شاهدانو باندي ځكه لعنت ويل سوی دی چي دوی په يو غير شرعي كار كي مرسته كونكي دي ، ددې څخه دا خبره واضحه سوه چي د سود منشي توب كول او د هغه شاهد جوړېدل حرام كار دی .

### د سود صورت

﴿۲۶۸۵﴾: وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عباده بن صامت رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

الذَّهَبُ بِالذَّهَبِ وَالْفِضَّةُ بِالْفِضَّةِ وَالْبُرُّ بِالْبُرِّ وَالشَّعِيرُ بِالشَّعِيرِ وَالتَّمْرُ

د سرو زرو په بدله كي شره زر او د سپينو زرو په بدله كي سپين زر او د غنمو په بدله كي غنم او د اوربشو په بدله كي اوربشي ، د خرماؤ په بدله كي

بِالتَّمْرِ وَالْمِلْحُ بِالْمِلْحِ مِثْلًا بِمِثْلٍ سَوَاءً بِسَوَاءٍ يَدًا بِيَدٍ فَإِذَا اخْتَلَفَتْ هَذِهِ الْأَصْنَافُ فَبِيعُوا كَيْفَ شِئْتُمْ إِذَا كَانَ يَدًا بِيَدٍ. رواه مسلم .

خرما د مالګي په بدله كي مالګه برابر برابر لاس په لاس خرڅ كړئ او كله چي دا جنسونه مختلف وي نو څرنګه چي غواړي خرڅ يې كړئ خو په دې شرط چي معامله لاس په لاس وي . (مسلم)

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۳\۱۲۱۱، رقم: ۸۱\۱۵۸۷.

**تشريح**: دا هغه حديث دى چي د رباء مفهوم ته په وسعت كولو سره د رانيولو او پلورلو ځيني معاملې يې سود ګرځولي دي، ددغه حديث شريف مطلب دادى چي دلته كوم شپږ شيان ذكر سوي دي كه چيري ددغه شيانو تبادله يا ددغه شيانو يو تر بله رانيول او پلورل وكړل سي نو دا ضروري ده چي برابر برابر به هم وي او لاس په لاس به هم وي، د برابر مفهوم دادى كه يو څوك يو چا ته خپل غنم د تبادلې په توګه وركړي نو د هغه څخه دي دومره غنم اخلي څومره چي يې خپله وركړي دي، دلاس په لاس مطلب دادى چي په كوم مجلس كي معامله وسي په هغه مجلس كي دي دواړي ډلي خپل خپل حق د يو بل څخه د بېلېدو مخكي په خپل قبضه كي واخلي. دا نه ده پكار چي يو سړي نقد وركړي او دوهم دا وعده وكړي چي زه به يې وروسته دركړم او كه چيري ددغه حكم پر خلاف وي چي يا خو راكړه وركړه برابر نه وي يا لاس په لاس نه وي نو په دغه صورت كي هغه معامله په سود كي داخله سي، اوس سوال دا پيدا كيږي چي په حديث كي د كومو شپږو شيانو ذكر سوى دى ايا د سود حكم ددغه شپږو شيانو سره مخصوص دى او كه دغه شيان د مثال په توګه بيان سوي دي او نور هم داشي شيان په دغه حكم كي داخل دي كه چيري نور شيان هم په دغه حكم كي داخل وي نو د هغو قاعده څه ده؟

د مجتهدينو امامانو فيصله داده چي په حديث كي د كومو شپږو شيانو ذكر سوى دى هغه يوازي د مثال په توګه دي او هغوى په خپل اجتهاد سره ځيني نور شيان مثلا اوسپنه، چونه او داسي نور جنسونه هم پر دغه شپږو شيانو باندي قياس كړي دي او په دې اړه د يوې قاعدې جوړولو لپاره هر يوه په خپل اجتهاد سره په دغه شپږو شيانو كي د سود علت بېل بېل متعين كړى دى چي تفصيل يې دادى:

د امام مالک رحمة الله عليه په نزد په دغه شپږو شيانو كي د سره زرو او سپين زرو د سود علت ثمينت دى (يعني د يو شي د قيمت كېدو صلاحيت دى) او په پاته څلورو شيانو كي د سود علت قوت مذخر (يعني محفوظ كېدونكې غذا ده)، په دغه اعتبار سره ددغه شپږو شيانو څخه پرته هم په كومو شيانو كي چي ثمنيت وي يا كوم شيان چي قوت مذخر وي په هغو ټولو كي سود حرام دى. نو د امام مالک رحمة الله عليه په مذهب كي په شنګياوو، ميوو او د خوراک په داسي شيانو كي چي تر ډېره وخته پوري ذخېره كيدلاى نه سي دا هغه شيان دي چي د هغوى په تبادله او رانيولو پلورلو كي سود يعني په كمي او زياتوب سره اخيستل او وركول جائز دي.

د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد په سرو زرو او سپينو زرو كي د سود علت ثمنيت دى مګر په پاته څلورو شيانو كي د سود علت محض قوت (يعني غذائيت) دى نو دده په مذهب كي په

شنګیاوو، میوو او داسي نورو شیانو کي د سود حکم جاري دی چي ددغه شیانو په تبادله کي برابر په برابر اخیستل او ورکول خو جائز دي مګر په کمي او زیاتوب سره پلورل او رانیول جائز نه دي، همدارنګه د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد اوسپنه، مس، چونا او داسي نور شیان هغه شیان دي چي د هغو په تبادله کي د سود حکم نه جاري کیږي مثلا د یوې پیمانۍ چونې په بدله کي دوې پیمانې چونه اخیستل صحیح دي همدارنګه د یوه سېر اوسپني په بدله کي د یوه سېر اوسپني اخیستل یا د یوه سېر مسو په بدله کي دوه سېره مس اخیستل جائز دي.

د امام ابو حنیفة رحمة الله عليه په نزد په اصولي توګه سره د ربا علت قدر مع الجنس دی له همدې کبله په حنفي مذهب کي په سرو زرو او سپینو زرو کي د سود علت وزن دی ځکه چي نو د هر هغه شي په تبادله کي د سود حکم جاري دی کوم چي موزون وي یعني د وزن په ذریعه رانیول او پلورل کیږي لکه اوسپنه، مس او داسي نور، او په پاته څلورو شیانو کي د سود علت مکیل دی ځکه نو د هر هغه شي په تبادله کي د سود حکم جاري دی کوم چي مکیل (یعني د پیمانې په ذریعه اندازه کیږي) وي لکه چونه او داسي نور، دا خبره مخکي ښوول سوې ده چي شریعت د کوم شي د مکیل یا موزون کېدو حکم په صراحت سره بیان کړی دی په هغه کي تبدیلي جائز نه ده مثلا سپین زر او سره زر شریعت په هغه شیانو کي شمېرلي دي کوم چي د وزن په ذریعه رانیول کیږي او پلورل کیږي ځکه نو دغه دواړه د موزون په حکم کي دي که څه هم عام رواج ددې پر خلاف وي، همدارنګه غنم، اوربشي، خرما، مالګه او داسي نور شیان شریعت په هغه شیانو کي شمېرلي دي کوم چي د پیمانې په ذریعه رانیول کیږي او پلورل کیږي ځکه نو دغه شیان د مکیل په حکم کي دي که څه هم عام رواج ددې پر خلاف وي، نو د سرو زرو او سپینو زرو په تبادله کي به د وزن او کیل اعتبار وي که چیري سره زر د سرو زرو په بدله کي یا د سپینو زرو په بدله کي واخستل سي نو د وزن برابر کېدل ضروري دي او په وزن کي کموالي او زیاتوب به قطعا جائز نه وي، همدارنګه د پاته څلورو شیانو په تبادله کي د کیل اعتبار دی که څه هم د عام رواج مطابق ددغه شیانو تبادله د کیل په اعتبار سره کیږي مګر په شرعي توګه دغه شیانو د مکیل په حکم کي دي ځکه که یو سړی یو چا ته د یو من غنمو په بدله کي یو من غنم ورکړي نو دا تبادله جائز نه ده تر څو چي د دواړو له خوا د غنمو پیمانې برابري نه وي (دا خبره هم مخکي ښوول سوې ده چي په حنفیه حضراتو کي د امام ابو یوسف رحمة الله عليه په نزد مطلقا د هر شي په مکیل یا موزون کېدو کي د عام رواج اعتبار دی) او د حنفیه په نزد پر دې عمل دی، د اوربشو، خرما او مالګي هم دغه حکم دی، هو د کومو شیانو موزون یا مکیل کېدل چي شریعت په

وضاحت سره نه وي بيان کړي د هغو په باره کي د عام رواج اعتبار دی که هغه شيان د عام رواج سره سم د وزن په ذريعه پلورل کيږي او رانيول کيږي نو د تبادلې پر وخت د وزن برابر کېدل ضروري دي او که چيري په وزن کي کموالي يا زياتوب وسي نو دا به د سود په حکم کي وي.

﴿۲۶۸۶﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

الذَّهَبِ بِالذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ بِالْفِضَّةِ وَالْبُرِّ بِالْبُرِّ وَالشَّعِيْرِ بِالشَّعِيْرِ وَالتَّمْرِ

سره زر د سرو زرو په بدله کي خرڅوئ د سپينو زرو په بدله کي سپين زر او د غنمو په بدله کي غنم او د اوربشو په بدله کي اوربشي د خرماؤ په بدله کي

بِالتَّمْرِ وَالْمِلْحِ بِالْمِلْحِ مِثْلًا بِمِثْلٍ يَدًا بِيَدٍ فَمَنْ زَادَ اَوِ اسْتَزَادَ فَقَدْ اَرْبَى الْاٰخِذُ وَالْمُعْطِي فِيْهِ سَوَاءٌ. رواه مسلم.

خرما د مالګي په بدله کي مالګه برابر برابر لاس په لاس خرڅوئ ليکن چاچي زيات ورکړ يا يې زيات واخيستل نو هغه سود واخيستی او سود اخيستونکی او سود ورکونکی دواړه په ګناه کي برابر دي. مسلم.

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۳\ ۱۲۱۱، رقم: ۸۲\ ۱۵۸۴.

## د سرو او سپينو زرو حکم

﴿۲۶۸۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَبِيْعُوا الذَّهَبَ

د حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د سرو زرو په بدله

بِالذَّهَبِ اِلَّا مِثْلًا بِمِثْلٍ وَلَا تُشِفُّوْا بَعْضَهَا عَلٰى بَعْضٍ وَلَا تَبِيْعُوا الْوَرِقَ

کي سره زر مه خرڅوئ خو بالکل برابر او ځيني پر ځينو مه زياتوئ او مه د سپينو زرو په بدله کي

بِالْوَرِقِ اِلَّا مِثْلًا بِمِثْلٍ وَلَا تُشِفُّوْا بَعْضَهَا عَلٰى بَعْضٍ وَلَا تَبِيْعُوْا مِنْهَا غَائِبًا

سپين زر مګر برابر او ځيني پر ځينو مه زياتوئ او مه يې داسي خرڅوئ چي يو موجود وي او

بِنَاجِزٍ . متفق عليه و في رواية لا تبيعوا الذهب بالذهب ولا الورق بالورق الا وزنا بوزن .

بل نه وي . (بخاري او مسلم) او په يوه روايت كي دا الفاظ دي چي سره زر د سرو زرو په بدله كي او سپين زر د سپينو زرو په بدله كي مه خرڅوئ بلكه دواړه برابر وي .

**تخريج**: البخاري في الصحيح : ۴\۳۷۹، رقم: ۲۱۷۷، ومسلم ۳\۱۲۰۸، رقم: ۷۵- ۱۵۸۴.

**د لغاتو حل**: لاتبيعوا : اى لاتفضلوا (يعني زياتوب مه كوئ).

**تشريح**: دغه حديث شريف ددې خبري دليل دى چي كه چيري يو څوک د سرو زرو زيورات په سرو زرو سره يا د سپينو زرو زيورات په سپينو زرو تبادله كړي نو په دغه صورت كي هم د دواړو په وزن كي برابر كېدل ضروري دي .

### د هم جنسو شيانو تبادله

﴿۲۶۸۸﴾: وَعَنْ مَعْمَرِ بْنِ عَبْدِاللهِ قَالَ كُنْتُ اَسْمَعُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ الطَّعَامُ بِالطَّعَامِ مِثْلًا بِمِثْلٍ . رواه مسلم .

د حضرت معمر بن عبد الله رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي فرمايل يې خوراک په خوراک مثل په مثل دئ .مسلم

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۳\۱۲۱۴، رقم: ۹۳- ۱۵۹۲.

### د هم قدره شيانو تبادله

﴿۲۶۸۹﴾: وَعَنْ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الذَّهَبُ بِالذَّهَبِ

د حضرت عمر رضي الله عنه څخه روايت دى، چي رسول الله ﷺ وفرمايل : سره زر د سرو زرو په بدله كي

رِبًا إِلَّا هَاءَ وَهَاءَ وَالْوَرِقُ بِالْوَرِقِ رِبًا إِلَّا هَاءَ وَهَاءَ وَالْبُرُّ بِالْبُرِّ رِبًا إِلَّا هَاءَ وَهَاءَ

سود دي كه لاس په لاس خرڅ نه كړل سي او سپين زر د سپينو زرو په بدله كي سود دي كه لاس په لاس خرڅ نه كړل سي او غنم د غنمو په بدله كي سود دي كه لاس په لاس خرڅ نه كړل سي او

وَالشَّعِيرُ بِالشَّعِيرِ رِبًا إِلَّا هَاءَ وَهَاءَ وَالتَّمْرُ بِالتَّمْرِ رِبًا إِلَّا هَاءَ وَهَاءَ . متفق عليه

اوربشي د اوربشو په بدله کي سود دي که لاس په لاس خرڅ نه کړل سي او خرما د خرماؤ په بدله کي سود دي که لاس په لاس خرڅ نه کړل سي .(بخاري او مسلم) .

**تخریج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۴\۳۴۷، رقم: ۲۱۳۴، ومسلم ۳\۱۲۰۹، رقم: ۷۹- ۱۵۸۶.

**تشریح** په هم جنسو شیانو کي د یو بل سره د تبادلې د معاملې درې صورتونه دي ۱: یا خو دواړه شیان موزون وي یا مکیل وي، ۲: دواړه شیان نقد وي یا دواړه په پور وي، ۳: یوې خوا ته نقد وي او بلې خوا ته د یو څو ورځو لپاره یا د زیاتو ورځو لپاره پور وي .

په دغه درو صورتو کي د اول صورت مطابق رانیول او پلورل جائز دي په شرط ددې چي دواړو خواوو ته مقدار برابر په برابر وي که چیري هغه دواړو شیان موزون وي نو په وزن کي به برابر وي او که مکیل وي نو په پیمانه کي به برابر وي، او دا چي دواړو خواوو ته نقد شیان وي، د دوهم او دریم صورت مطابق یعني دواړو خواوو ته پور یا یوې خوا ته د پور کېدو په صورت کي د تبادلې معامله جائز نه ده که څه هم د مقدار په اعتبار دواړه هم جنس شیان برابر وي .

**د ښه او خرابو شیانو تبادله**

﴿۲۶۹۰﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ وَّ اَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو سعید رضي الله عنه او حضرت ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ یو سړی د

اسْتَعْمَلَ رَجُلًا عَلَى خَيْبَرَ فَجَاءَهُ بِتَمْرٍ جَنِيبٍ فَقَالَ أَكُلُّ تَمْرِ خَيْبَرَ هٰكَذَا

خیبر عامل مقرر کړ هغه د نبي کریم ﷺ په خدمت کي د ښو خرماؤ سره حاضر سو نبي کریم ﷺ ور څخه پوښتنه وکړه چي ایا د خیبر ټولي خرماوي داسي دي ؟

قَالَ لَا وَاللّٰهِ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّا لَنَأْخُذُ الصَّاعَ مِنْ هٰذَا بِالصَّاعَيْنِ وَالصَّاعَيْنِ

هغه وویل : نه، اې رسول الله ﷺ ! په خدای تعالي دي مي قسم وي یو صاع دا خرماوي په دوو صاعو خرماؤ سره اخلو او دوه صاع خرماوي

بِالثَّلَاثِ فَقَالَ لَا تَفْعَلْ بِعْ الْجَمْعَ بِالدَّرَاهِمِ ثُمَّ ابْتَعْ بِالدَّرَاهِمِ جَنِيبًا وَ

په درو صاعو خرماؤ په بدل کي اخلو نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل : داسي مه کوه هر ډول خرماوي په جمعه سره خرڅي کړه په دراهمو او بیا یې رانیسه په دراهمو ښه خرماوي

قَالَ فِي الْمِيْزَانِ مِثْلَ ذَالِكَ . متفق عليه

او ويلي دي ده ﷺ په ميزان (تول) كي په مثل ددې . (بخاري او مسلم)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴\۳۹۹، رقم: ۲۲۰۱، ومسلم ۳\۱۲۱۵، رقم: ۹۵- ۱۵۹۲.

**د لغاتو حل**: جنيب: نوع جيد من انواع التمر (يو ډول ښه خرما).

**تشريح** د حديث شريف د آخري جملې مطلب دادى چي څرنګه د خرما او د هغه شيانو په باره كي چي په كيل يعني پيمانې سره رانيول كيږي او پلورل كيږي دا حكم بيان سوى دى همدارنګه د هغه شيانو په باره كي هم چي د وزن په ذريعه رانيول كيږي او پلورل كيږي لكه د سپينو زرو او سروزرو هم دغه حكم دى ، كه په دغه شيانو كي د داسي دوو هم جنسو شيانو تبادله وسي چي په هغو كي يو ښه وي او بل خراب نو په دغه صورت كي هم دا جائز نه دي چي ښه شى كم وركړل سي او د هغه په بدله كي خراب شى زيات وركړل سي بلكه په دغه صورت كي دا طريقه اختيارول پكار دي چي مخكي دي خراب شى د درهم يا روپو په عوض كي خرڅ كړي بيا دي په هغه روپو سره ښه شى رانيسي .

﴿۳﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ جَاءَ بِلَالٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِتَمْرٍ

حضرت سعيد رضي الله عنه څخه روايت دى چي بلال رضي الله عنه د ښو ډولو خرماؤ سره د نبي كريم ﷺ په

بَرْنِيٍّ فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ أَيْنَ هَذَا قَالَ بِلَالٌ كَانَ عِنْدَنَا

خدمت كي حاضر سو نبي كريم ﷺ ورڅخه پوښتنه وكړه چي دا دي د كوم ځاي څخه راوړې ؟
حضرت بلال رضي الله عنه ورته وويل : زما سره كمزوري خرماوي وې نو

تَمْرٌ رَدِيٌّ فَبِعْتُ مِنْهُ صَاعَيْنِ بِصَاعٍ فَقَالَ أَوَّهْ عَيْنُ الرِّبَا عَيْنُ الرِّبَا لَا تَفْعَلْ

ما دهغو څخه دوه صاعه وركړه او يو صاع دا خرماوي مي ځيني واخيستلې رسول الله ﷺ ورته فرمايل : آه دا خو سود دى داسي مه كوه

وَلَكِنْ إِذَا أَرَدْتَ أَنْ تَشْتَرِيَ فَبِعْ التَّمْرَ بِبَيْعٍ آخَرَ ثُمَّ اشْتَرِهِ . متفق عليه

كه تا ته ضرورت وي نو اول خپلي خرماوي خرڅي كړه او بيا وروسته د هغو په قيمت سره نوري خرماوي واخله . (بخاري او مسلم)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴\۱۴۹۰، رقم: ۲۳۱۲، ومسلم ۳\۱۲۱۵، رقم: ۹۶- ۱۵۹۴.

**د لغاتو حل**: آوه: كلمة تحسر وندامة. (دپښېماني او افسوس لفظ).

## د يوه غلام په بدله کې دوه غلامه

﴿۲۶۹۲﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ جَاءَ عَبْدٌ فَبَايَعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چې يو غلام د نبي کريم ﷺ پر هجرت کولو باندې بيعت وکړ

الْهِجْرَةِ وَلَمْ يَشْعُرْ أَنَّهُ عَبْدٌ فَجَاءَ سَيِّدُهُ يُرِيدُهُ فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ

نبي کريم ﷺ ته معلومه نه سوه چې هغه غلام دی د هغه مالک د هغه په تلاش راغلی رسول الله ﷺ وهغه ته وفرمايل:

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعْنِيهِ فَاشْتَرَاهُ بِعَبْدَيْنِ أَسْوَدَيْنِ وَلَمْ يُبَايِعْ أَحَدًا بَعْدُ حَتَّى يَسْأَلَهُ أَعَبْدٌ هُوَ أَوْ حُرٌّ. رواه مسلم.

دی پر ما خرڅ کړه نو نبي کريم ﷺ دوه تور رنګي غلامانو په ورکولو سره هغه رانيوی. او بيا يې وروسته د هيڅ يوه سره بيعت نه کوی تر څو پوري چې پوښتنه به يې وکړه چې هغه ازاد دی او که غلام. (مسلم)

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۳\۱۲۲۵، رقم: ۱۲۳- ۱۶۰۲.

**تشريح**: د دغه حديث شريف څخه معلومه سوه چې يو غلام د دوو غلامانو په بدله کې رانيول او پلورل جائز دي او همدارنګه دغه حديث ددې خبري دليل دی چې کوم شيان په سود کې داخل نه دي د هغو تبادله په داسي ډول کول چې يوې خوا ته کم وي او بلي خوا ته زيات وي جائز دي، په شرح السنه کې ليکلي دي چې علماؤ پر دغه بنياد باندې دا مسئله بيان کړې ده چې يو حيوان د دوو حيوانانو په بدله کې لاس په لاس رانيول او پلورل جائز دي که څه هم د دواړو خواوو څخه د يوه جنس حيوان وي يا د مختلفو جنسو، البته په دې باره کې د علماؤ اختلافي قولونه دي چې ايا حيوان د حيوان په بدله کې په پور ورکول جائز دی که يا، په صحابه کرامو کې يو ډله د عدم جواز قائل وه او حضرت ابن ابی رباح رحمه الله هم ددې قائل وو، او د امام ابوحنيفة رحمه الله هم دا مذهب دی د هغوی دليل دادی چې د رسول الله ﷺ څخه نقل سوي دي چې

رسول اللہ ﷺ حیوان د حیوان په بدله کي په پور رانیولو او پلورلو څخه منع فرمایلې ده، مګر ځیني صحابه کرام ددې د جواز قائل وه او د امام شافعي رحمه الله په مذهب کي هم دا جائز دي.

## د هم جنسو شیانو په تفاوت سره راکړه او ورکړه جائز نه ده

﴿۲۶۹۳﴾: وَعَنْهُ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ الصُّبْرَةِ مِنَ التَّمْرِ لَا يُعْلَمُ مَكِيلَتُهَا بِالْكَيْلِ الْمُسَمَّى مِنَ التَّمْرِ. رواه مسلم.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول اللہ ﷺ منع کړې ده له خرڅولو د ډیري (چي غټه کوټه خرماوي یو ځای پرتې وي) د خرماوو چي معلومه نه وي اندازه د هغه په پیمانه معین سره له خرماؤ څخه. مسلم.

**تخریج**: مسلم في الصحیح ۳\۱۱۶۲، رقم: ۴۲- ۱۵۳۰.

**تشریح**: رسول اللہ ﷺ د رانیولو او پلورلو ددغه صورت څخه منع فرمایلې ده چي یوې خوا ته د خرماوو د غیر معین اندازې کوټه وي او بلي خوا ته د خرماوو د معین مقدار مثلاً لس یا شل پیمانې کوټه وي ځکه چي په دغه صورت کي د هغه خرماوو مقدار غیر معلوم دي کیدای سي چي دغه کوټه د هغه بلي کوټې د مقدار څخه کم سي یا زیات سي، ځکه نو په دغه دواړو صورتو کي د سود شکل پیدا سو، مګر دا باید په خیال کي وي چي د رانیولو او پلورلو دغه صورت په خپلو کي د تبادله کېدونکو داسي دوو شیانو په مینځ کي منع دی چي د یوه جنس څخه نه وي لکه څرنګه چي مخکي د خرماوو مثال ورکړل سوی دی، هو د مختلف الجنس شیانو په رانیولو او پلورلو کي دغه صورت منع نه دی ځکه چي د مختلف الجنس شیانو په تبادله کي کمي او زیاتوب هم جائز دی.

## د سرو زرو مسئله

﴿۲۶۹۴﴾: وَعَنْ فَضَالَةَ بْنِ عُبَيْدٍ قَالَ اشْتَرَيْتُ يَوْمَ خَيْبَرَ قِلَادَةً بِاثْنَيْ عَشَرَ

د حضرت فضاله بن ابي عبید رضي الله عنه څخه روایت دی چي ما د خیبر د جګړې په کال کي یو امیل په دوولس دیناره رانیوي

دِينَارًا فِيهَا ذَهَبٌ وَخَرَزٌ فَفَصَّلْتُهَا فَوَجَدْتُ فِيهَا أَكْثَرَ مِنْ اثْنَيْ عَشَرَ دِينَارًا

چي په هغه کي سره زر هم وه او غمي هم وروسته مي د امیل څخه دواړه شیان جلا کړه نو سره زر

د دوولسو دينارو څخه زيات سوه

فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ ﷺ فَقَالَ لَا تُبَاعُ حَتَّى تُفَصَّلَ . رواه مسلم .

ما د هغه ذكر رسول الله ﷺ ته وكړ نو نبي كريم ﷺ راته وفرمايل : تر څو پوري چي سره زر او غمي جلا جلا نسي داسي اميل پلورلاي نسي . مسلم

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۳\ ۱۲۱۳، رقم: ۹۰- ۱۵۹۱.

**تشريح**: ددغه حديث شريف څخه معلومه سوه كه چيري د سود په مال كي د داسي دوو هم جنسو شيانو سودا وكړل سي چي په هغو كي يو شی د غير جنس څخه وي نو دا جائز نه دي مثلا يو څوك په زرو پريولل سوي زيورات د زرو په عوض كي رانيسي يا و پلوري كه هغه د اشرفيو په صورت كي وي يا په بل شكل وي نو لازمه ده چي مخكي د هغه زيوراتو څخه غمی وغيره بېل كړي او بيا د هغه زيوراتو خالص زر په برابر وزن واخستل سي دغه حكم د سپينو زرو په باره كي هم دی كه چيري د سپينو زرو يو داسي زيور وغيره وي چي په هغه كي يو بل جنس هم ګډ وي نو د سپينو زرو په بدله كي كه هغه د روپو په صورت كي وي يا په بل شكل وي نود رانيولو او پلورلو په صورت كي ضروري ده چي د هغه زيوراتو څخه د سپينو زرو په بېلولو سره د بلي خوا د سپينو زرو سره وزن برابر كړل سي ، دا حكم ځكه دی چي هم جنس شيان په كموالي او زياتوب سره د رانيولو او پلورلو په وجه د سود صورت پيدا نه سي مګر كه چيري په سرو زرو باندي پريولل سوي زيورات وغيره د سپينو زرو په بدله كي رانيول سي يا وپلورل سي كه هغه سپين زر د روپو په صورت كي او كه په بل شكل كي وي يا دد‌ې برعكس وي چي په سپينو زر سره پريولل سوي زيورات د سرو زرو په بدله كي رانيول سي يا وپلورل سي كه هغه سره زر د اشرفۍ په صورت كي وي او كه د بل شي په صورت كي نو په دغه صورت كي د هغه زيوراتو څخه غمی وغيره ايستل ضروري نه دي ځكه چي د مختلف جنس شيانو په سودا كولو كي كمي او زياتوب جائز دی او په د‌ې كي په كمي او زياتوب سره د سود صورت نه پيدا كيږي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د سود په اړه د رسول الله ﷺ پيشګوئي

﴿۲۶۹۵﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عن رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيَأْتِيَنَّ

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : را به سي يوه زمانه

عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ لَا يَبْقَى أَحَدٌ إِلَّا آكِلُ الرِّبَا فَإِنْ لَمْ يَأْكُلْهُ أَصَابَهُ مِنْ بُخَارِهِ وَ

پر خلكو باندي چي پرته له سود خوړو څخه به بل څوک پاته نسي كه يو څوک پاته سي نو هغه ته به يې اثر رسيږي

يُرْوَى مِنْ غُبَارِهِ. رواه احمد و ابوداؤد والنسائي و ابن ماجة.

او په يوه بل روايت كي دي چي هغه ته به د سود ګرځ رسيږي. (احمد ابو داؤد نسائي ابن ماجه)

**تخريج**: احمد في المسند ۲\ ۴۹۴، وابوداود في السنن ۳\ ۶۲۷، رقم: ۳۳۳۱، والنسائي ۷\ ۲۴۳، رقم: ۴۴۵۵، وابن ماجه في السنن ۲\ ۷۶۵، رقم: ۲۲۷۸.

**تشريح**: د بخار يا غبار څخه مراد د سود اثر دی مطلب دادی چي د سود د عام كېدو په زمانه كي كه يو سړی په ښكاره د سود د سودا څخه ځان وساتي نو بيا به هم هغه په يو صورت كي د سود تر اثر لاندي وي مثلا هغه به د يو سود خوړونكي مزدوري يا منشي وي يا به د يو سودي كاروبار شاهد وي يا به د سودي كاروبار په مينځ كي رابطه پيدا كونكی وي يا د هغه خپل نور ذاتي او تجارتي معاملات به د سود خوړونكي سره وي.

همدارنګه دغه سړی هم بالواسطه د سود په مال سره خپل مال چټلوي يا دا چي د سود د دائرې په پراخېدو سره د تجارت او معيشت پر هر كونج باندي حاوي وي نو بيا د سود مال به هر سړي ته په يو صورت كي خامخا رسيږي، د مثال په توګه په نن زمانه كي تاسو يو پرهيزګار سړی وينئ چي دومره ديندار او پرهيزګار وي چي د هغه د اعتقادي او عملي ژوند هيڅ يو اړخ داسي نه دی چي د ذرې په اندازه كوږوالی هم معلوم نه سي او د دغه سړي پاكي او پرهيزګاري يو مثالي حيثيت لري مګر كله چي دغه سړی د خپلو بچيانو لپاره يو شی رانيسي نو ايا هغه سړی په خپله هم دا تصور كوي چي زه دغه شی په خپلو بچيانو باندي خورم يا يې خپله خورم دا معلومه نه ده چي دغه شی د څومره سودي ذرائعو او څومره سودي كاروبار د مرحلو څخه په تېرېدو سره زما لاس ته رارسيدلی دی ، د حديث مفهوم دادی چي په راتلونكې زمانه كي به د سود لعنت دومره پراخ سي چي هر سړی په شعوري او غير شعوري توګه سره په دې كي اخته وي څوک چي به بلاواسطه سود خوري او څوک به بالواسطه د دې كونكی وي او څوک به بالكل په غير شعوري توګه سره د دې تر اثر لاندي وي.

## د مختلف الجنس شیانو لاس په لاس راکړه ورکړه

﴿۲۶۹۶﴾: وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

د حضرت عباده بن صامت ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

لاَ تَبِيْعُوا الذَّهَبَ بِالذَّهَبِ وَلاَ الْوَرِقَ بِالْوَرِقِ وَلاَ الْبُرَّ بِالْبُرِّ وَلاَ الشَّعِيْرَ

سره زر د سرو زرو په بدله کي مه خرڅوئ نه سپین زر د سپینو زرو په بدله کي نه غنم د غنمو په بدله کي نه اوربشي

بِالشَّعِيْرِ وَلاَ التَّمَرَ بِالتَّمَرِ وَلاَ الْمِلْحَ بِالْمِلْحِ إِلاَّ سَوَاء بِسَوَاءٍ عَيْنًا بِعَيْنٍ يَدًا

د اوربشو په بدله کي نه خرماوي د خرماؤ په بدله کي او نه مالګه د مالګي په بدله کي مګر بالکل برابر پر برابر به یې خرڅوئ د نغدو په بدله کي نغد او لاس

بِيَدٍ وَلٰكِنْ بِيْعُوْا الذَّهَبَ بِالْوَرِقِ وَالْوَرِقَ بِالذَّهَبِ وَالْبُرَّ بِالشَّعِيْرِ وَالشَّعِيْرَ

په لاس یې خرڅوئ او سره زر د سپینو زرو په بدله کي او سپین زر د سرو زرو په بدله کي او غنم د اوربشو په بدله کي او اوربشي

بِالْبُرِّ وَالتَّمَرَ بِالْمِلْحِ وَالْمِلْحَ بِالتَّمَرِ يَدًا بِيَدٍ كَيْفَ شِئْتُمْ . رواه الشافعي

د غنمو په بدله کي او خرما د مالګي په بدله کي او مالګه د خرما په بدله کي لاس په لاس خرڅوئ څنګه چي تاسو غواړي خرڅوي یې. (شافعي)

**تخریج**: الشافعي في ترتیب المسند ۲\۱۵۸، رقم: ۵۴۶.

**تشریح**: د حدیث شریف خلاصه داده که چیري د داسي دوو شیانو سودا وکړل سي (لکه غنم د غنمو په بدله کي) نو په دغه صورت کي برابر کېدل او لاس په لاس کېدل ضروري دي او که چیري د داسي دوو شیانو سودا وکړل سي چي هم جنس نه وي بلکه بېل بېل جنسونه وي (لکه غنم د اوربشو په بدله کي) نو په دغه صورت کي یوازي لاس په لاس کېدل ضروري دي او برابر کېدل ضروري نه دي.

## دوچو او تازه ميوو مسئله

﴿۲۶۹۷﴾: وَعَنْ سَعْدِ بْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت سعد بن وقاص رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما واورېدل چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه

وَسَلَّمَ سُئِلَ عَنْ شِرَیٰ التَّمْرِ بِالرُّطَبِ فَقَالَ اَيَنْقُصُ الرُّطَبُ إِذَا يَبِسَ فَقَالَ

د وچو خرماؤ په بدله کي د تازه خرماؤ اخيستلو په اړه پوښتنه وسوه نو نبي کريم صلی الله علیه وسلم ورته وفرمايل: ايا د وچو خرماؤ وزن د لندو خرماؤ په مقابل کي کمېږي؟ ورته وويل سوه.

نَعَمْ فَنَهَىٰ عَنْ ذَٰلِكَ. رواه مالك و الترمذي و ابوداؤد والنسائي وابن ماجة.

بلې هو! نو نبي کريم صلی الله علیه وسلم ددې د خرڅولو څخه منعه وکړه. (ترمذي مالک ابوداؤد نسائي ابن ماجه).

**تخريج**: مالک في الموطا ۲\ ۶۲۴، رقم: ۲۲، والترمذي في السنن ۳\ ۵۲۸، رقم: ۱۲۲۵، وابوداود في السنن ۳\ ۶۵۴، رقم: ۳۳۵۹، والنسائي في السنن ۷\ ۲۶۸، رقم: ۴۵۴۵، وابن ماجه ۲\ ۷۶۱، رقم: ۲۲۶۴.

**تشريح**: رسول الله صلی الله علیه وسلم د وچو او تازه خرماوو د سودا څخه ځکه منع فرمايلې ده چي په دغه صورت کي د برابر کېدو شرط فوت کيږي چي د هغه په وجه د سود کاروبار کيږي، د امام مالک، امام شافعي، امام احمد او نورو اکثرو علماؤ څخه پرته په حنفيه کي امام ابويوسف او امام محمد هم پر دغه حديث عمل کړی دی، او امام ابوحنيفة رحمه الله د هم جنس وچو او تازه ميو سودا جائز ګرځولې ده په شرط ددې چي دواړو خواوو ته ميوه په مقدار يا وزن کي برابر وي، دغه حديث د نسيه پر صورت محمول کړی دی يعني د امام ابوحنيفة رحمه الله په نزد په حديث کي د ذکر سوي منع تعلق په هغه صورت کي دی کله چي يوې خوا ته نقد وي او بلې خوا ته د پور وعده وي نو د پورتني حديث څخه امام ابوحنيفة رحمه الله چي کوم مراد اختيار کړی دی ددې تائيد د يو بل روايت څخه هم کيږي چي رسول الله صلی الله علیه وسلم د تازه خرماوو په بدله کي د وچو خرماوو سودا کول د پور په صورت کي منع کړی دی او په دغه مسئله کي چي حکم د وچو او تازه خرماوو دی دا حکم د نورو ميوو مثلا انګورو وغيره هم دی او د وچو او تازه غوښو معامله هم په دغه حکم کي داخله ده.

## د غوښو او حيوانانو تبادله

﴿۲۶۹۸﴾: وَعَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ مُرْسَلاً اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

وَسَلَّمَ نَهٰى عَنْ بَيْعِ اللَّحْمِ بِالْحَيَوَانِ قَالَ سَعِيْدٌ كَانَ مِنْ مَيْسِرِ أَهْلِ الْجَاهِلِيَّةِ. رواه في شرح السنة

د حضرت سعید بن مسیب رضي الله عنه څخه مرسلا روایت دی چي رسول الله ﷺ غوښه د حیوان په بدله کي خرڅولو څخه منعه کړې ده د سعید بیان دي چي دا طریقه د جاهلیت د خمار څخه وه. شرح السنة

**تخریج**: شرح السنة ۸\۷٦، رقم: ۲۰٦٦.

**تشریح**: د جاهلیت په زمانه کي د خمار څخه مراد دادی چي څرنګه د خمار په صورت کي په غلطه طریقه سره د خلکو مال خوړل کیږي همدارنګه دلته هم دغه صورت پیدا کیږي که څه هم د طریقې په اعتبار دواړه صورتونه مختلف دي ځکه چي په هغه کي خمار کیږي او په دې کي معامله کیږي.

امام شافعي رحمه الله فرمایي چي دغه حدیث شریفددې خبري دلیل دی چي د څارویو په بدله کي د غوښي معامله حرامه ده که څه هم غوښه د هغه څاروي د جنس څخه وي یا د بل څاروي د جنس څخه وي او که څه هم هغه څاروی خوړل کیږي یا نه خوړل کیږي ، د امام ابو حنیفة رحمه الله په نزد دا معامله جائز ده د هغه دلیل دادی چي په دغه معامله کي د یو موزون شي تبادله د یو غیر موزون شي سره کیږي چي په هغه کي دواړو خواوو ته د شیانو برابر کېدل ضروري نه دي او ظاهره ده چي د تبادلې او رانیولو او پلورلو دغه صورت جائز دی، مګر په دغه صورت کي سودا کول لاس په لاس کېدل ضروري دي ځکه په حدیث کي د ذکر سوي منع تعلق په اصل کي د غوښو او د څارویو په مینځ کي سودا په هغه صورت کي ده کله چي سودا لاس په لاس نه وي بلکه یوې خوا ته نقد وي او بلي خوا ته پور وي.

### د دوو حیوانانو تبادله

﴿۲٦۹۹﴾: وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ نَهٰى عَنْ بَيْعِ الْحَيَوَانِ بِالْحَيَوَانِ نَسِيْئَةً. رواه الترمذي و ابوداؤد والنسائي وابن ماجة والدارمي

د حضرت سمره بن جندب رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د حیوان په بدله کي حیوان په وعده یعني قرض خرڅولو څخه منعه فرمایلې ده. (ترمذي ابو داؤد نسائي ابن ماجه دارمي)

**تخريج**: الترمذي في السنن ٣\٥٣٨، رقم: ١٢٣٧، وابوداود في السنن ٣\٦٥٢، رقم: ٣٣٥٦، والنسائي ٧\٢٩٢، رقم: ٤٦٢٠، وابن ماجه ٢\٧٦٣، رقم: ٢٢٧٠، والدارمي ٢\٣٣١، رقم: ٢٥٦٤.

## د غير مثلي شي د پور اخيستلو مسئله

﴿۲۷۰۰﴾: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن عمرو بن عاص ﷻ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ

أَمَرَهُ أَنْ يُجَهِّزَ جَيْشًا فَنَفِدَتِ الْإِبِلُ فَأَمَرَهُ أَنْ يَأْخُذَ قِلَاصِ الصَّدَقَةِ فَكَانَ

هغه ته د فوج سامان د ترتيبولو امر وكړ او كوم وخت چي د اوښانو كمي سوه نو يې وفرمايل: د صدقې د اوښانو په بدله كي قرض واخله

يَأْخُذُ الْبَعِيرَ بِالْبَعِيرَيْنِ إِلَى إِبِلِ الصَّدَقَةِ. رواه ابوداؤد

نو عبد الله به يو اوښ د دوو اوښانو په بدله كي د صدقې له اوښانو په وعده رانيول. (ابو داؤد)

**تخريج**: ابوداود في السنن ٢\٦٥٢، رقم: ٣٣٥٧.

**د لغاتو حل**: قلائص: جمع قلوص وهو الفتى من الابل (ځوان اوښ).

**تشريح**: د حديث په مطلب باندي د پوهېدو څخه مخكي په يو بنيادي خبره باندي پوه سئ چي يوازي د هغه شي پور اخستل صحيح دي چي خپل مثل لري په دې معنى چي داسي شی پور وركونكي ته بېرته وركول كيداى سي لكه غله، هګۍ، غوښه، روپۍ او داسي نور دغه شيانو ته مثلي ويل كيږي او كوم شيان چي داسي وي چي د هغه شي پور وروړي ته وركول مشكل وي نو د هغه پور صحيح نه دى لكه ميوه، څاروى او داسي نور شيان چي دې ته غير مثلي وايي.

اوس حديث شريف ته راسئ، حضرت عبدالله ﷻ ته د رسول الله ﷺ دغه حكم چي هغه دي په زكوة كي د اوښ په بدله كي اوښ واخلي، ددې مطلب دادى چي هغه دي د يو چا څخه په دې شرط د پور په توګه اوښ اخلي كله چي په زكوة كي حاصليدونكي اوښان راسي نو هغه به د هغه پور ادا كړي، د امام ابوحنيفة رحمه الله په نزد د غير مثلي شي پور اخستل جائز نه دي او اوښ هم غير مثلي دى ځكه چي د دغه حديث په باره كي حنفيه وايي چي رسول الله ﷺ حضرت عبدالله ﷻ ته دا حكم هغه وخت وركړى وو كله چي د غير مثلي شي پور اخستل هم جائز وه مګر وروسته د غير مثلي شي د پور اخستلو جواز ختم سوى دى ځكه نو دغه حديث منسوخ دى.

شیخ عبدالحق رحمه الله د دغه حدیث حکم پر بیع باندي په محمول کولو سره وایي چي د دغه حدیث څخه دا معلومیږي چي څاروي د څارویو په بدله کي په پور رانیول او پلورل جائز دي ، حال دا چي زموږ (یعني حنفي) علماؤ د حضرت سمره رضي الله عنه د حدیث (چي مخکي تېر سوی دی) مطابق دا منع ګرځولي دي ، تورپشتي رحمه الله وایي چي د حضرت عبدالله ابن عمرو رضي الله عنه دغه روایت ضعیف دی او د حضرت سمره رضي الله عنه روایت تر دې زیات قوي دی ځکه حنفیه د حضرت سمره رضي الله عنه پر حدیث باندي عمل کوي ، یا دا چي رسول الله ﷺ دغه حکم هغه وخت ورکړی دی کله چي د دوو هم جنسو شیانو سودا د رباء په حکم کي داخل نه وه مګر کله چي د سودا دغه صورت سود وګرځیدی نو د دغه حدیث دغه حکم هم منسوخ وګرځیدی .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### په پور کي د سود مسئله

﴿۲۷۰۱﴾: عَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَلرِّبَا فِي النَّسِيْئَةِ . وفي رواية قال : " لا ربا فيما كان يدا بيد . متفق عليه .

د حضرت اسامه بن زید رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : سود په قرض کي دي او د بل یوه روایت دا الفاظ دي په هیڅ شی کي سود نسته چي لاس په لاس (سودا) وي . (بخاري او مسلم)

**تخریج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴\۳۸۱ ،رقم: ۲۱۷۸، ومسلم ۳\۱۲۱۸ ،رقم: ۱۰۳-۱۵۹۶.

**تشریح**: د پور په کاروبار کي د سود مطلب دادی چي د سود په صورت کي داسي معامله پیدا کیږي چي په هغه کي د دوو هم قدر شیانو یو تر بله تبادله کي د پور شکل وي چي یوې خوا ته نقد ورکړي او بلي خوا ته د پور سودا وي که څه هم د دواړو شیانو جنس مختلف وي او برابر برابر وي مثلا یو څوک یو چا ته اوربشي ورکړي چي د هغه څخه غنم واخلي نو په دغه سودا کي کمي او زیاتوب هم جائز دی په شرط ددې چي لاس په لاس معامله وي که د یوې خوا څخه پور وي نو بیا دغه معامله جائز نه ده او د سود صورت به وي همدارنګه په هغه معامله کي سود نه وي کوم چي لاس په لاس وي مطلب دادی چي د داسي دوو شیانو تبادله وکړل سي چي د یوه جنس وي او برابر وي او دواړي خواوي خپل شی په هغه مجلس کي په خپل قبضه کي واخلي نو دا جائز دي او د سود صورت نه دی او که چیري دواړه شیان د یوه جنس څخه وي نو بیا په کمي

او زیاتوب سره په معامله کي هم دا معامله جائز ده او د سود صورت به نه وي په شرط ددې چي معامله لاس په لاس وي.

## پر سود خوړلو باندي وعید

﴿۲۷۰۲﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ حَنْظَلَةَ غَسِيْلِ الْمَلَائِكَةِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ

د حضرت عبدالله بن حنظله غسیل ملائکه رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دِرْهَمُ رِبَا يَأْكُلُهُ الرَّجُلُ وَهُوَ يَعْلَمُ أَشَدُّ مِنْ سِتَّةٍ

د سود یو درهم چي څوک قصدًا وخوري د شپږ دېرش زناګانو څخه زیاته ګناه لري.

وَثَلَاثِيْنَ زنيه. رواه أحمد والدارقطني وروى البيهقي في شعب الإيمان

عن ابن عباس وزاد: وقال من نبت لحمه من السحت فالنار أولى به

(احمد دارقطني) او په بیهقي په شعب الایمان کي د ابن عباس رضی الله عنه څخه دا روایت نقل سوي دي او دا الفاظ یې زیات کړي دي نبي کریم ﷺ وفرمایل: کومه غوښه چي نش و نمو یې په حرام مال سره سوي وي هغه د دوږخ لائقه ده.

**تخریج**: الامام احمد في المسند ۵\ ۲۲۵، والدار قطني ۳\ ۱۶، رقم: ۴۸، البیهقي في شعب الایمان ۴\ ۳۹۳، رقم: ۵۵۱۸.

**تشریح**: په حدیث شریف کي ذکر سوی وعید د هغه سړي په باره کي دی چي د سود مال په دې پوهېدو سربېره خوري چي دغه مال د سود په ذریعه حاصل سوی دی، همدارنګه ددغه وعید تعلق د هغه سړي سره هم دی چي هغه په ناخبرتیا کي د سود مال خوري په شرط ددې چي هغه په ناخبرتیا کي خپله د هغه د کوتاهۍ او لاپرواهۍ دخل وي.

علماء کرام وایي چي د سود خوړلو ګناه ته د زنا د ګناه څخه سخته او لویه ګناه ځکه ویل سوي دي چي د سود خوړونکي په حق کي الله تعالی ځومره سخت او غضبناک تنبیه فرمایلې ده دومره سخت او غضبناکه تنبیه یې نه د زنا په باره کي فرمایلې ده او نه د بلي ګناه په باره کي، سود خوړونکی الله تعالی داسي متنبه کړی دی:

فاذنوا بحرب من الله ورسوله: د الله تعالی او د هغه د رسول له خوا د جنګ اعلان واورئ. په دې خبره هر د شعور خاوند پوهېږي چي د چا پر خلاف د جنګ د اعلان څه مطلب دی، ظاهره ده

چي الله تعالى او د هغه رسول د كوم چا پر خلاف د جنګ اعلان وكړي يا كوم څوک چي د الله تعالى او د هغه د رسول سره په جنګ سي نو د هغه محرومي، شقاوت، بدبختي او د دنيا او آخرت د تباهي او بربادۍ څه اندازه لګيدلای سي.

علماء كرام دا هم وايي چي د سود خوړونكي په حق كي دومره سخت وعيد او دومره سختوالى سبب دادی چي د سود په باره كي په عملي توګه سره د ګمراهۍ صدور نه كيږي بلكه د سود پيژندل مشكل كېدو په وجه په عامه توګه په اعتقادي ګمراهۍ كي هم خلک اخته كيږي د هغه نتيجه دا سي چي اكثر خلک سود حرام نه ګڼي بلكه د هغوی ذهن او فكر باندي د ګمراهۍ او كوږوالي دومره تياره خپره سوې وي چي هغوي سود حلال ګڼي او دا هم معلومه ده چي د سود د حرمت اعتقاد درلودلو سره د هغه كونكی په عملي ګمراهۍ يعني ګناه كبيره كي دی چي پر هغه باندي معافي هم ممكن ده، مګر د سود د حرمت اعتقاد نه درودل بلكه دا حلال ګڼل اعتقادي ګمراهي ده چي د هغه نتيجه كفر دی او د هغه معافي او بخښنه ناممكن ده، او حال دا چي زنا يو داسي كار دی چي د هغه د حرمت او خرابۍ څخه هيڅوک انكار نه سي كولای كوم څوک چي په دغه فعل كي اخته وي هغه هم ددغه خرابۍ په هر صورت اعتقاد لري تردې چي يوازي اسلام نه بلكه دد نيا په هر مذهب كي زنا يو خراب كار تصور كيږي او هيڅوک دا حلال او جائز نه ګڼي.

او س پاته سوه دا خبره چي د شپږ د ېرش عدد په خاصه توګه ولي ذكر سوی دی نو كيدای سي چي ددې مقصد محض د سود د حرمت اهميت بيانول وي چي الله تعالى او د هغه رسول ښه په پوهيږي.

﴿۲۷۰۳﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلرِّبَا سَبْعُوْنَ جُزْءًا أَيْسَرُهَا أَنْ يَنْكِحَ الرَّجُل أمه.

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ و فرمايل: د سود د ګناه او يايمه برخه د دې ګناه دا سي ده لكه څوک چي د خپلي مور سره نكاح وكړي.

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\ ۷۶۴، رقم: ۲۲۷۴. البيهقي في شعب الايمان ۴\ ۳۹۴، رقم: ۵۵۲۱.

﴿۲۷۰۴﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الرِّبَا وَإِنْ كَثُرَ فَإِنَّ عَاقِبَتَهُ تَصِيْرُ إِلٰى قُلٍّ. رواهما ابن ماجه والبيهقي في

شعب الإيمان . وروى أحمد الأخير .

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د سود مال په ظاهره زياتيږي ليکن پاى يې کم وي . دا دواړه حديثونه ابن ماجه او بيهقي روايت کړيدي او دويم حديث احمد روايت کړى دى.

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\ ۷۶۵، رقم: ۲۲۷۹، واحمد في المسند ۱\ ۳۹۵، البيهقي في شعب الايمان ۴\ ۳۹۲، رقم: ۵۵۱۱.

**تشريح**: په سودي کاروبار سره تر لاسه کېدونکى مال په ظاهره خو ډېر زيات معلوميږي مگر په سودي مال کي د خير او برکت هيڅ جز نه وي ځکه نو په پاى کي هغه مال داسي تباه او برباد سي چي د هغه نوم او نښان هم نه پاته کيږي، دا محض يوه وعيدي خبره نه ده بلکه دا يو داسي حقيقت دى چي هره ورځ معلوميږي دغه حقيقت قرآن کريم هم په دغه الفاظو کي واضح کړى دى : يمحق الله الربا و يربي الصدقات: الله تعالى سود ختموي او صدقات زياتوي .

د دغه آيت کريمه مطلب دادى چي انسان کوم مال په سود سره تر لاسه کوي الله تعالى هغه ختموي ، په دغه آيت کريمه کي د سود او صدقې په يو ځاى ذکر کولو سره چي د کوم مال په کټلو سره هغه د الله تعالى په لاره کي خرڅ کړل سي هغه الله تعالى زياتوي يعني په دغه آيت کريمه کي سود او صدقه يو ځاى ذکر کولو سره دا واضحه سوې ده چي د دغه دواړو په حقيقت کي تضاد دى او د دغه دواړو په مينځ کي د تضاد ښوونه هم سوې ده ، د دواړو په حقيقت کي تضاد دادى چي په صدقه کي بېله معاوضې او بېله طمع انسان خپل مال محض د الله تعالى د رضا لپاره نورو ته ورکوي او په سود کي بېله يو معاوضې انسان محض د مال او زر د هوس او د دولت د زياتوب د جذبې لپاره مال تر لاسه کوي ، همدارنگه د دواړو د کونکو نيت او غرض بېل بېل وي چي صدقه کونکى محض د الله تعالى د رضا او د آخرت د ثواب لپاره د خپل مال د ختمولو يا کمولو د فيصلې په کولو سره يوه لويه قرباني کوي او سود کونکى محض د دنياوي حرص او طمع په وجه د الله تعالى او د هغه د رسول د غصې او ناراضگۍ څخه په بې پروا کېدو سره په خپل او سني مال کي د زياتوب خواهش لرونکى وي ، دا خو د سود او صدقې د حقيقت تضاد وو د دواړو د نتائجو تضاد دادى چي کوم مال د الله تعالى د ناراضگۍ د پروا کولو څخه پرته په ناجائزه طريقه يعني سود سره تر لاسه کيږي الله تعالى هغه ختموي يا د هغه څخه برکت پورته کوي د دې پر خلاف کوم څوک چي د الله تعالى د رضا او خوښۍ لپاره خپل مال نورو ته

ورکوي الله تعالی د هغه مال زیاتوي په دې توگه چي د هغه په اوسني مال کي خیر او برکت اچوي،

د دغه آیت کریمه په ضمن کي د دوارو په نتائجو کي د تضاد مطلب مفسرینو داسي بیان کړی دی چي د سود نیست او نابود کولو او د صدقې د زیاتولو تعلق د آخرت سره دی یعني سود خور ته د هغه مال په آخرت کي هیڅ گټه نه رسوي بلکه د عذاب سبب گرځي او د صدقه کونکي مال په آخرت کي د هغه لپاره د ابدي سعادتونو او راحتونو ذریعه جوړېږي، او د سود ختمېدل او د صدقې زیاتېدل د آخرت سره تعلق او د هغه آثار په دغه دنیا کي معلومېږي سود چي په کوم مال کي گډ سي ځیني وختونه هغه مال داسي تباه او برباد سي چي د هغه وهم او گمان هم نه کیږي لکه څرنگه د سود په بازارونو کي په عامه توگه لیدل کیږي چي لوی لوی کروړ پتیان او سرمایه داره خلک ډیوالي سي که څه هم په بې سوده کاروبار کي هم د گټې او تاوان احتمال وي او په دې وجه ځیني وختونه بې سوده تجارت کونکي ته هم په تجارت کي تاوان رسیږي مگر داسي تجار چي پرون کروړ پتي وو او نن د یوې روپۍ محتاج دی دا یوازي د سود په کاروبار کي پېښیږي.

په هر حال څرنگه چي مخکي ښوول سوي دي چي د سودي مال زیاتېدل او په آخر کي برباد کېدل محض د یو شرعي وعید د درجې خبره نه ده بلکه تجربه هم پر دې شاهده ده چي د سود مال هر څومره زیات سي مگر هغه عموما تر پایه نه وي چي د هغه گټه نسلونو ته ورسیږي داسي یو صورت خامخا پېښیږي چي سودي مال ختم یا کم کړي.

## د سود خوړونکي په ظاهري خوشحالۍ مه خطا کیږئ

نن سبا د سود کاروبار عام دی ځای پر ځای د سود کاروبار جاري دی د هغوی په نزد په ظاهري توگه سره د دولت زیاتوب معلومیږي د عیش او عشرت اسباب هري خوا ته معلومیږي ځکه چي په عامه توگه سره خلکو ته شبه کیږي چي نن سبا خو سود خوړونکو ته ډېر راحت تر لاسه دی هغوی د بنگلو، او لوړو لوړو ماڼیو خاوندان دی، خادمان او د شان او شوکت ټول سامان ورسره موجود دی ځکه نو دا څرنگه ویل کیدای سي چي سود خوړونکي ته په دنیا کي راحت نه تر لاسه کیږي او د هغوی مال او زر د هغوی ملگرتیا نه کوي حالانکه که غور او فکر وکړل سي نو دا خبره څرگندیږي چي د راحت په سامان او راحت کي ډېر فرق دی د راحت سامان خو تاسو د کارخانو او بازار څخه تر لاسه کولای سئ هغه د سرو زرو او سپینو زرو په بدله کي تر لاسه کیدای سي مگر د کوم شي نوم چي راحت دی هغه نه په یو کارخانه کي جوړیږي او نه په یو بازار کي خرڅیږي بلکه هغه د یو داسي روحاني اطمینان او د زړه د یو داسي سکون نوم دی چي

د الله تعالی د رحمت په صورت کي انسان ته ورکول کیږي چي ځیني وختونه بې سرمایې او بې سامانه انسان او حیوان ته تر لاسه کیږي او ځیني وختونه په زرګونو د عیش او عشرت د اسباب او د راحت د سامان درلودلو سربېره نه سي ترلاسه کېدای ، خوب ته فکر وکړئ دا خوب څه شی دی د یو راحت او سکون نوم دی ددې د تر لاسه کولو لپاره تاسو دا کولای سئ چي یو ښه د خوب ځای جوړ کړئ چي په هغه کي د هواء او رڼا پوره انتظام وي په لوړه کچه پلنګونه وي په زړه پوري بسترې او بالښتونه وي مګر تاسو په خپله ووایاست ایا ددغه سامانو په تر لاسه کېدو سره د خوب راتلل لازمي دی ؟ که تاسو ته په خپله ددې تجربه نه وي نو هغه په زرګونو خلک به ددې جواب په نفي کي ورکړي کومو ته چي د یو وجه څخه خوب نه ورځي د هغوی لپاره دغه سامان بې ګټې دی تر دې چي کله خوب کوي نو دواوي هم جواب ورکړي د خوب لپاره سامان خو یې د بازار څخه راوړ مګر خوب په هیڅ قیمت نه سي راوړل کیدای، همدارنګه نور لذتونه او خوندونه ددې اسباب خو په روپو تر لاسه کیدای سي مګر ددغه راحتونو او لذتونو تر لاسه کېدل ددغه اسباب د موجود کېدو سربېره هم ضروري نه دي ، په دې خبره باندي د پوهېدو څخه وروسته د سود خوړونکو حال ته فکر وکړئ نو د هغوی سره به تاسو هر څه ووینئ مګر د راحت او اطمینان نوم به هم پیدا نه کړئ هغوی په خپل حرص او هوس کي د خپل خوښو د کولو او د خپل یو کروړ د یو نیم کروړ او دوه کروړه جوړلو کي داسي مست معلومیږي چي نه د هغوی ته د خپل خوراک او څښاک هوش وي او نه د خپل کورنۍ خیال او فکر ، په ایمان سره ووایاست ایا اطمینان او راحت داسي تر لاسه کیږي چي د سهار څخه تر ماښام پوري او د ماښام څخه تر سهار پوري د مالت او دولت په بازارو کي د خپل ځان فنا کولو نوم راحت دی ، څومره بې عقله دي هغه خلک چي هغوی د راحت د اسبابو نوم راحت ایښی دی او کوم چي حقیقي راحت دی د هغه څخه په مېلونو لیري دي .

## سود خوړونکي ته حقیقت عزت نه تر لاسه کیږي

یو شتمن انسان د مال او دولت انبار ځکه جمع کوي چي هغه ته د دنیا اطمینان، سکون او راحت تر لاسه سي او هغه په ټولنه کي د عزت او وقار ژوند تېر کړي مګر د سود خوړونکي د ر احت حال خو معلوم سو چي د هغه په نزد په ظاهري توګه سره د مال او دولت زیاتوالي او د عیش او عشرت او راحت او ارام ټولو اسبابو د موجود کېدو سربېره دغه بد بختو ته د حقیقي راحت او اطمینان دولت په برخه نه وي او د زړه او دماغ سکون چي د الله تعالی د لوی نعمت نوم دی دهغه څخه بالکل محروم دی ، اوس د عزت او وقار معاملې ته راسئ سود خوړونکی د سود په

لعنت كي په پرله پسې اخته کېدو په وجه په طبعي توګه سره بې رحم او په زړه تنګ وي او د هغه کسب دا وي چې هغه د مصيبت وهلي او مفلس خلکو د مصيبت او مفلسۍ څخه د ګټې اخيستلو او د هغوی د ويني په څښلو سره خپل ځان وپالي ددغه مقصد لپاره هغه د لوږي څخه د فرياد کونکو بچيانو د لاس څخه د وچې ډوډۍ ټوټه اخيستلو او د غريبي حياداري ښځي د بدن څخه د جامې اخيستلو څخه هم منع نه کوي ددغه شقاوت او سخت زړه والي کي دا څرنګه ممکن کيدای سي چې د خلکو په زړو کي د سود خوړونکي عزت او وقار پيدا سي تاسو د خپل سيمي تر ټولو لوی سود خوړونکي ته فکر وکړئ د هغه کڅوړه د سرو او سپينو زرو او د روپو د څومره لويو ذخيرو څخه ډکي وي د هغه په کور کي د مال او دولت څومره خزانې خوندي وي مګر ايا د خلکو په نظر کي د هغه ادنا عزت هم وي ؟ بي کسه او مجبور خلک د خپل ضرورت او احتياج په وجه د هغه په مخکي لاس غزوي مګر د هغوی په زړونو کي د هغه لپاره د عزت او احترام ادنا جذبه هم نه وي ، په ټولنه کي د هغه حيثيت د هغه درنده په اندازه هم نه وي کوم چې د ځان لپاره د انسانانو د بدن څخه د غوښو د ټوټې په پرېکولو سره هغوي د هډوکو په غالب بدلوي ، ددې نيتجه دا سي چې هغه د انسانانو په هره طبقه کي د هغه انساني شرف او احترام څخه محروم وي کوم چي يو انسان د بل انسان په مخکي د عزت او وقار شخصيت جوړلو سره وړاندي کوي .

## د نن بې ارامي او اقتصادي بدحالي د سود له کبله ده

د سود خوړلو پر يو بل اړخ باندي هم نظر واچوئ ، لوی مصيبت دادی چې ساينسي ارتقاء او مادي عروج انسان ته د ژوند تېرولو طريقه څرنګه وښودل چې د سوچ او پوهېدو تر طريقو پوري بدل سوي دي د نن انساني ذهن او د فهم او فراست د پختګۍ د دعوو سربېره د غور او فکر يو مخصوص طرز څخه مخته سوي نه دي د نن دنيا چې د انسان چاپيره په خالص مادي غالب کي اچول سوي د نوي ذهن د مصنوعي نظرياتو چې کوم حصار راغلی دی هغه د سوچ او فکر ټولو صلاحيتونه د مال او زر په يو خاص ماحول کي مقيد کړی دی او د فکر او نظر د احساساتو د حقيقي نيکۍ او بدۍ د قوت د امتياز څخه په محروم کولو سره يوازي د دنيا د ظاهري ګټو او راحتونو بنديان يې جوړ کړي دي ځکه نو نن د همېشه تسليم سوي صداقتونه د انکار وړ سوي دي او د زرګونو کلونو حقيقي نظريات د ماتي وړ ګڼل کيږي د اسلام دا يو پوخ حقيقت دی چې سود حرام دی د هر فرد لپاره د هري طبقې لپاره او د هري زمانې لپاره او په هر حالت کي مګر ځيني خلک داسي هم دي چې په ظاهره خو پوه وي مګر د اوسنۍ زمانې

مصنوعي افکارو او نظریاتو هغوی د دین او شریعت د حقیقي لاري څخه لیري ساتلي دي او د هغوی پر ذهن او فکر باندي د اوسني دور خاص تاپې هغوی د جهالت په تیارو کي گمراه کړي دي د هغوی په نزد نه یوازي د سود د حرمت حقیقت په نن زمانه کي یو د عمل نه وړ شی دی بلکه د مادي خوشحالیو او د تجارتي کامیابیو په لارو کي یو خنډ هم دي د هغوی په نظر د اوسني اقتصادي نظام چي د سود په پنجو کي راگیر دی یوازي د یوه فرد، یوه قوم او یوه هیواد لپاره نه بلکه د ټولي دنیا اقتصادي استحکام او د انسانیت د اقتصادي خوشحالۍ ضامن دی هغه لوی لوی سرمایه دار هیوادونه چي هغوی د سود په شکل کي د غریبو قومونو او پس پاته هیوادونو د اقتصاد او معیشت د روح په کښلو سره هغوی یې د دنیا فقیران گرځولي دي د دغه لیونیانو په نظر کي د انسان اقتصاد کامیابي د هغوی د اقتصادي اطمینان یوازینۍ ذریعه ده دا خلک په دغه خوش فهمۍ کي اخته دي چي سرمایه دار طاقتونه د غریبو هیوادونو او د بدحالۍ د ښکار قومونو لپاره د خپلو خزانو خولې چي خلاصوي هغوی په حقیقت کي د عالمي ورورولۍ او بین الاقوامي اقتصادي خوشحالي پوري د هغوی د حقیقي جذباتو، ایثار او همدردۍ مظهر دی حالنکه که لږ هم د فکر او غور څخه کار واخستل سي نو دغه حقیقت د ورځي په ډول ځلانده کیږي چي دا هر څه د دغه هوس او عیارۍ د ترقي یافته لاره ده چي پر هغه باندي په تللو سره مخکي خو یو انسان د بل انسان وینه څښلې ده او اوس پر دغه لاره باندي تلونکی یو قوم او یو هیواد د نورو قونومو او نورو هیوادونو وینه څښي بس فرق دومره دی چي مخکي یو فرد یا یوه طبقه د سود د اقتصادي تباهۍ ښکار سوې وه او دا یې محسوس کول مگر نن پوره پوره هیوادونه او پوره پوره قومونه د سود د اقتصادي تباهۍ په غیر محسوس توگه سره په ښکار کېدو سره خپل وقار یې د سود خوړونکو سره گرو کړی دی.

د کوم پوهاند نظر چي د دنیا د دغه اقتصادي منصوبو باندي دی چي تر هغه لاندي سرمایه دار هیوادونه پس مانده قومونو او ترقي کونکو هیوادونو ته هر کال د اربونو ډالر مرسته په پور ورکوي هغوی پوهیږي چي دغه هیوادونه څرنگه چي د سود په شکل کي د دغه غریبو هیوادونو اقتصادي دولت په دواړو لاسونو لوټ کړي او خپل د هیواد خزانې ډکي کړي د دغه حقیقت څخه یو هوښیار او باخبر انسان انکار نه سي کولای چي د دغه سود خوړونکو هیوادونو سود خوړل د دنیا د هغه ټولو غریبو هیوادونو په اقتصادي نظام کي چي د بدبختۍ څخه خپل وسائل او د خپل لاس پر قوت او محنت باندي په باور نه کولو سره د سرمایه داره هیوادونو په چم کي را نغښتي دي غربت او مفلسي یې داسي زهرجن کړي دي ي دغه ټول اقتصادي غالب یې پر خپل

ځای پرې ایښی دی او د اقتصادي مرګ پر دروازه باندي را رسیدلي دي ، دغه صورت حال د دنیا امن او سکون هم په لړزه کړی دی نن به تاسو داسي ځومره هیوادونه وینئ چي د هغوی د سیاسي او ملکي فلانونو واګي ددغه سود خوړونکو هیوادونو په لاس ګرو سوي دي ددغه هیوادونو هغه مسائل او معاملات چي پر هغه باندي د ټولي نړۍ د امن او سکون دار او مدار دی د خپل هیواد د مدبرینو څخه محض په دې وجه وتلي دي او د سود خوړونکو د فلانونو ښکار سوي دي چي د هغوی د اقتصادي ژوند ټول دار او مدار ددغه سود خوړونکو پر مرسته او پور باندي دی ددغه مسائلو حل د هغوی د سیاسي او اقتصادي فلانونو خلاف دی ځکه هغوی دوی پر دنیا باندي داسي معلق کړي دي چي نن د هغوی په وجه د قومونو قومونه او د هیوادونو هیوادونه د خپل داخلي بې تابۍ او نا امیدۍ په ښکار کېدو سره د مرګ او ژوند په جال کي راګیر دي ، ځکه نو ویل کیږي چي نن پر ټوله نړۍ باندي د سیاسي بې اطمینانۍ او اقتصادي بې ارامۍ چي کومه د هیبت څخه ډکه وریځ خپره سوې ده هغه په اصل کي د سود خوړونکو مسلط کړل سوې ده چي په هغه سره رپېدونکې برق هم په یوه لمحه کي د انسانیت پوره وجود ختمولای سي .

## د سود په باره کي یوه شبه او د هغې جواب

ځیني پوهان خلک هم په دغه شبه کي اخته دي چي قرآن کریم کوم سود حرام کړی دی هغه د یو خاص ډول سود دی چي د جاهلیت په زمانه کي رواج وو چي یو غریب او مصیبت زده به د خپل مصیبت لیري کولو لپاره د یو چا څخه پور اخیستی او پور ورکونکي به د هغه څخه ټاکلې ګټه د سود په توګه اخستل دا ښکاره د یو سخت زړه خبره ده چي یو سړی د یو چا په مشکل کي د مرسته کولو پر ځای د هغه د مشکل څخه ګټه اخلي ، قرآن کریم د سود دغه صورت حرام کړی ، زیات تر زیات دا ویل کیدای سي چي ددغه حرمت اطلاق په نن زمانه کي هم د سود پر هغه صورت کیدای سي چي د لویو سوداګرانو او نورو سود خوړونکو په نزد په شخصي او انفرادي توګه سره رواج دی چي یو اړ او غریب کس د خپل ضرورت پوره کولو لپاره د هغوی څخه پور اخلي او پر هغه د شرط او تعین سره سود اداء کوي مګر نن سبا د ټولو تجارتونو ، بانکونو او اجتماعي ادارو په ذریعه چي کوم سودي کاروبار کیږي ددې صورت بالکل مختلف دی چي د هغه په وجه اوس سود ورکونکي مصیبت وهلي خلک نه وي بلکه شتمن او سرمایه دار تاجران دي چي د غریبانو څخه د سود اخیستلو پر ځای یې خپله هغوی ته ورکوي ، ظاهره ده چي په دغه صورت کي د غریبانو ګټه ده چي لږ سرمایې لرونکو د پورتنیو ذرائعو څخه یو څه لاس ته

راوړي نو د اوسنۍ زمانې پر تجارتي سود باندې د حرمت اطلاق کېدل نه دي پکار ؟

د جواب څخه مخکې په يو بنيادي خبره باندې پوهېدل پکار دي چې د شريعت د هر حکم تعلق د اصول او کليې سره دی د جزئياتو او اقسامو اختلاف د هغه حکم پر نفاذ باندې اثر نه اچوي ، شريعت چې کوم شی په اصولي توګه سره حرام ګرځولی دی هغه شی به د خپلو ټولو اجزاوو او اقسامو سره حرام وي دا حق به هيچا ته تر لاسه نه وي چې هغه د الله تعالی په حکم کې د هغه شی څخه يو جز يا يو ډول محض په خپل خيال سره مستثنی کړي يا د هغه حکم اطلاق بېله يو شرعي دليل څخه مقيد او محدود کړي که يو سړی داسې کوي نو هغه ګويا په قرآن کريم کې تحريف کوي او د الله تعالی د حکم څخه منحرف کيږي مثلا شراب حرام ګرځول سوي دي که يو څوک دا ويل شروع کړي چې د دغه حرمت تعلق د هغه شرابو سره دی کوم چې په مخکې زمانه کې په خرابو لوښو کې په خرابېدو سره جوړېدل اوس خو د پاکوالي ډېر اهتمام کيږي د ماشينانو په ذريعه ټول کار کيږي او د غوره درجې شراب جوړيږي د اوسنۍ زمانې پر شرابو باندې د حرمت اطلاق کول نه دی پکار نو څرګنده ده چې دا خبره هغه سړی کولای سي چې د اسلامي شريعت د ذرې علم هم نه لري يا د اسلامي شريعت د مزاج څخه بالکل نا خبره وي ددې څخه پرته پر دې باندې هم فکر وکړئ چې استثناء يا د قران کريم احکام د خپل خيالاتو د تابع کولو دروازه به خلاصه سي نو بيا به د کوم شی حرمت پاته سي خمار ، غلا ، زنا او فواحش په دې کې کومه خرابي داسې ده چې هغه په اوسنۍ صورت کې د مخکې زمانې د صورت څخه مختلف نه وي ، ددې مطلب خو به دا وي چې دغه ټولو خرابيو ته به جائز ويل پکار وي ، کله چې د يو سړي د شکل په بدلېدو سره د يو سړي حقيقت نه بدليږي نو هيڅ يوه بدي که په هر صورت کې وي د هغه حکم هم په هيڅ حالت کې نه بدليږي .

په دغه خبره باندې د پوهېدو وروسته اوس پر سود باندې نظر واچوئ نو معلومه به سي چې په قرآن کريم کې د سود د مخالفت ذکر په يو ځای کې نه بلکه په مختلفو صورتو کې په څو آياتو کې راغلی دی او تر څلوېښت څخه زيات حديثونو کې په مختلفو عنوانو سره ددې حرمت بيان سوی دی چې په هغو کې يو ځای هم په يوه لفظ کې دا اشاره نه سته چې د حرمت دغه حکم د يو خاص صورت يا يو خاص مصلت سره سم دی د سود حرمت د هيڅ يو آيت يا هيڅ يو حديث څخه هم دا اشاره نه ثابتيږي چې دغه حرمت يوازې د هغه سود دی کوم چې د شخصي مقاصدو لپاره اخيستل کيږي او تجارتي سود ددې څخه مستثنی دی بلکه پر دغه مسئله باندې که په تاريخي توګه سره فکر وکړل سي نو معلومه به سي چې دا خيال بالکل غلط دی چې د قرآن کريمَ

د نازلېدو په زمانه کي د سود یوازي دغه صورت رواج وو چي یو مصیبت وهلي او غریب سړي به د خپل ضرورت پوره کولو لپاره په سود سره د پور معامله کول او د تجارتي معاملو لپاره د سود د روپو اخیستل او ورکول رواج نه وه بلکه د آیت کریم د شان نزول څخه معلومېږي چي د سود حرمت کله نازل سوی دی نو هغه وخت د شخصي مقاصدو لپاره د سودي کاروبار څخه پرته د تجارتي معاملاتو لپاره هم د سود کاروبار مروج وو ځکه چي عرب او په خاصه توګه قریش تجاران وه چي د تجارتي مقاصدو لپاره به یې د سود کاروبار کوی ، د حضرت عباس او حضرت خالد ابن ولید رضي الله عنهما په باره کي امام بغوي رحمه الله لیکلي دي چي دوی دواړو په شراکت سره کاروبار کوی او د دوی راکړه ورکړه د د طائف د بنوثقیف سره وو ، د حضرت عباس رضي الله عنه ډیري روپۍ د سود په توګه پر بنو ثقیف باندي پاته وې هغوی د بنو ثقیف څخه د خپل پخوانۍ روپیو غوښتنه وکړه نو رسول الله ﷺ د قرآن کریم ددغه حکم سره سم چي سود حرام ګرځول سوی دی خپل اکا حضرت عباس رضي الله عنه ته د سود خپل روپۍ پرېښودو لپاره حکم ورکړ چي د هغه اعلان رسول الله ﷺ د حجة الوداع په خطبه کي داسي وفرمایه :

وربا الجاهلیة موضوع واول ربا اضع من ربانا ربا عباس بن عبدالمطلب : د جاهلیت د زمانې سود پرېښودل سوی دی او تر ټولو اول سود چي هغه زه د خپل سود څخه پرېږدم د عباس ابن عبدالمطلب سود دی .

ددې څخه پرته نوري ډېر داسي واقعې نقل سوي دي چي د هغو څخه ثابتېږي چي د یوې قبیلې د بلي قبیلې سره او د یوې کورنۍ سره سودي کاروبار وو ، بیا ددې سره دا خبره هم د فکر وړ ده چي د کومو قبائلو یا کورنیو تر مینځ د کاروباري سود ذکر منقول دی هغه د یو سمدستي ضرورت یا مصیبت په وجه د پور اخیستلو په حیثیت سره نه وو بلکه په دې توګه وو چي د هغوی په مینځ کي دغه راکړه ورکړه د کاروباري او تجارتي حیثیت سره پرله پسې جاري وه لکه یو تجار چي د بل تجار سره یا یوه کمپنۍ د بلي کمپنۍ سره معامله کوي بلکه سود کاروبار کونکي خلک ربا هم یو ډول تجارت ګڼي چي د هغه تردید قرآن کریم ته پرېښودل سو او د رانیولو او پلورلو معاملات د سود د یو ډول ګټونکو کسانو لپاره سخت تهدید او وعید نازل سو .

اوس پاته سوه دا خبره چي د بانکونو په سودي کاروبار کي عامو خلکو ته ګټه ده په دې توګه چي هغوی ته پر خپلو روپو باندي څه نا څه ګټه ورکول کیږي ، نو په یاد ولرئ چي دا هغه حسین فریب دی چي د هغه پر بنیاد یوړپي قومونه د سود په ډول بد او د همېشه لعنت کاروبار ته یوه ښکلې جامه اغوستې ده او د عوامو په دغه فریب کي په اخته کېدو سره د سود د یو څو

برخي په دوکه ورکولو کي خپله سرمایه بانکونو ته حواله کړي همدارنګه د ټول قوم د سرمایې په را ټولېدو سره بانکونو ته راغلی او بیا دغه سرمایه لوی لوی تاجرانو او کاروباریانو ته د بانکونو څخه د پور په توګه اخیستلو سره خپل کاروبار ته وسعت ورکړ او ددې څخه چي کومه لویه ګټه تر لاسه سوه او د هغه څخه د یو لږ برخي بانک ته په ورکولو سره یې دپاته روپو څخه خپل جیبونه ډک کړي او بانکو والا د هغه برخي څخه یو لږ برخه د ټول قوم په هغه خلکو کي وویشي کومو چي خپله سرمایه بانک ته حواله کړې ده همدارنګه سرمایه دار په خپلو لسو زرو روپو سره یو لک روپۍ وګټلې او د غریبانو په برخه کي څه راغله یوازې یو لږ برخه اوس ددغه بانکونو څخه اصل ګټه چا ته تر لاسه سوه شتمنو کسانو ته او که غریبانو ته ؟ غریب خو د هغه متوقع ګټي څخه هم محروم سو کوم چي هغه د خپل سرمایې بانک ته د حواله کولو پر ځای په یو کوچني تجارت کي په لګولو سره تر لاسه کړې وای هغه ته خو دومره اسانتیا هم تر لاسه نه سوه چي هغه د بانک څخه د ډېرو روپو په اخیستلو سره کاروبار کړی وای ځکه بانک خو غریب ته د روپو د ورکولو څخه پاته سو هغه خو لوی لوی شتمنو کسانو ته پور ورکوي مګر ددې پر خلاف سرمایه دار چي د بانک څخه کومه ګټه تر لاسه کړه هغه د بانک څخه د ډېرو روپو اخیستلو سره د پور په نامه واخستلې او په هغه روپو یې د تجارت او صنعت پر لویو لویو منډیو باندي خپل اجاره وکړه پر هر ډول کاروبار باندي قابض سو کمي سرمایې والا یې د مقابلې او مسابقت په ذریعه د تجارت په میدان کي نه پرېښودل او ددې پای دا سو چي د تجارت کاروبار چي د ټول قوم لپاره ګټور او د پرمختګ ذریعه وه په یو څو خاصو خلکو کي په محدود کېدو سره پاته سو او په پای کي ددغه سودي کاروبار پر غریبانو داسي اثر ولوېدی چي د تجارت پر اډو باندي خاص سرمایه دارانو ځان واچوی نو د شیانو قیمت هم د هغوی حواله سو چي نتیجه یې دا سوه چي نن په هر ځای کي لیدل کیږي چي د معیشت په سامان کي ورځ په ورځ ګراني راځي او د شیانو قیمت دومره لوړېږي چي د حکومت د ټولو کوښښونو سربېره هغه په واک کي نه راځي او پای ددې غریبو عوامو ته د سود په نامه یو معمولې برخه تر لاسه سوې ده چي د هغه په نتیجه کي د معیشت سامان دوه برابر یا درې برابر پورته سوی دی نو ددغه غریبانو د جیب څخه د سود هغه معمولي برخه د نور سود په اخیستلو سره ووتل او بیا د هغه سرمایه دار جیب ته ورسیدل نو د بانکونو او تجارتي ادارو د سودي کاروبار ددغه فریب د پردې په پورته کولو سره وګورئ نو معلومه به سي چي د سودي کاروبار عامه نتیجه د هیڅ یو غریب په حق کي ګټوره نه ده بلکه دا په حقیقت کي د ټول قوم د غربت او مفلسۍ او د یو څو

سرمایه دارانو د بې پایه زیاتوب ذریعه ده او دا هغه معاشي بې اعتدالي او اقتصادي بربادي ده چي د ټول قوم او ټول هیواد د تباهۍ سبب ګرځي ځکه نو اسلام د سود هره طریقه او هره ذریعه باندي بندیز لګولی دی که هغه د انفرادي او شخصي مقاصدو لپاره د پور اخیستلو په صورت کي وي یا د اجتماعي تجارت او د بانکونو د کاروبار په شکل کي وي ځکه په دغه دواړو صورتو کي د غریب وینه د سود خوړونکي غذا جوړیږي.

﴿۲۷۰۵﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَيْتُ

د حضرت ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د معراج په شپه زه د یو

لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِي عَلَى قَوْمٍ بُطُوْنُهُمْ كَالْبُيُوْتِ فِيهَا الْحَيَّاتُ تُرَى مِنْ خَارِجِ

داسي قوم سره تېر سوم چي د هغوی نسونه دلوئ سرایو په شان وه او نسونه یې د مارانو څخه ډک وه کوم چي د دباندي څخه معلومېدل

بُطُوْنِهِمْ فَقُلْتُ مَنْ هٰؤُلَاءِ يَا جِبْرَائِيلُ قَالَ هٰؤُلَاءِ أَكَلَةُ الرِّبَا . رواه احمد وابن ماجة .

ما د حضرت جبرئیل علیه السلام څخه پوښتنه وکړه چي دا څوک دي؟ هغه په جواب کي وویل چي دا سود خواره دي. (احمد ابن ماجه)

**تخریج**: الامام احمد في المسند ۲\۳۵۳، وابن ماجه ۲\۷۶۳، رقم: ۲۲۷۳.

## پر سود خوړونکي لعنت

﴿۲۷۰۶﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ اَنَّهُ سَمِعَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَعَنَ آكِلَ الرِّبَا وَمُوكِلَهُ وَكَاتِبَهُ وَمَانِعَ الصَّدَقَةِ وَكَانَ يَنْهَى عَنِ النَّوْحِ . رواه النسائي

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه وا وریدل پر سود خور سود ورکونکي د سود کاغذ لیکونکي د سود حساب ساتونکي او صدقه منعه کونکي باندي لعنت ویلي دي او نبي کریم ﷺ پر ویر کولو هم منع فرمایلې ده. (نسائي)

**تخریج**: سنن النسائي ۸\۱۴۷، رقم: ۵۱۰۳.

**تشريح**: د صدقې څخه د منع کونکو څخه مراد يا خو هغه سړی دی چي بل څوک د صدقې او خيرات څخه منع کوي ، رسول الله ﷺ پر داسي سړي باندي لعنت ويلی دی ، يا ددې څخه هغه سړی مراد دی چي واجب صدقه يعني زکوة وغيره نه ادا کوي .
د يو مړه سړي په يادولو سره په چغو چغو ژړلو ته نوحه وايي دا يو ډېر نازيبا او د وقار خلاف کار دی ځکه شريعت ددې څخه منع کړې ده .

## د سود تشريح

﴿۲۷۰۷﴾: وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ إِنَّ آخِرَ مَا نَزَلَتْ آيَةُ الرِّبَا وَإِنَّ رَسُولَ

د حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه څخه روايت دی چي اخيري شی چي په رسول الله ﷺ باندي نازل سوې دي هغه د ربوا (سود) ايت وو

اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُبِضَ وَلَمْ يُفَسِّرْهَا لَنَا فَدَعُوا الرِّبَا وَالرِّيبَةَ . رواه ابن ماجة والدارمي .

او رسول الله ﷺ وفات سو او د دې ايت تفسير يې موږ ته و نه فرمايل نو په دې وجه تاسو سود او هغه شی چي په هغه کي د سود شک وي پرېږدئ . (ابن ماجه دارمي)

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\ ۷۶۴ ، رقم: ۲۲۷۶ ، والدارمي ۱\ ۶۴ ، رقم: ۱۲۹ .

**تشريح**: دا خبره مخکي بنوول سوې ده چي د سود رواجي شکل يعني په پور باندي د ټاکل سوي ګټي اخستل د اسلام څخه مخکي د جاهليت په زمانه کي هم رواج وو او په خلکو کي دا ډول سود ډېر رواج وو ، قرآن کريم چي د سود حرمت بيان کړ او د ربا آيت نازل سو نو رسول الله ﷺ د حرمت دغه حکم نه يوازي د هغه وخت پر رواجي او متعارف سود باندي نافذ کړ بلکه د ربا مفهوم ته په وسعت ورکولو سره د نورو شيانو په کاروبار او رانيولو پلورلو کي ځيني صورتونه د ربا په حکم کي داخل کړل چي د هغه تفصيل په تېرو حديثو کي ذکر سوی دی ، مګر صورت دا سو چي د آيت کريمه د نازلېدو څخه وروسته رسول الله ﷺ په دنيا کي ډېر لږ وخت تشريف فرما وو په دغه لږ وخت کي په نورو ديني او ضروري مصروفياتو کي دومره بوخت وو چي رسول الله ﷺ د کاروبار هغه صورتونه په زيات تفصيل سره بيان نه کړل تر دې چي رسول الله ﷺ وفات سو ، د حضرت فاروق رضي الله عنه په دغه ارشاد کي د تفصيل څخه مراد د هغه صورتونو تشريح او تفصيل دی کوم چي رسول الله ﷺ په شپږو شيانو (سره زر، سپين زر، غنم، اوربشي،

خرما او مالګه) په کاروبار کي ځيني صورتونه د ربا په حکم کي داخل کړي وه ايا دغه حکم ددغه شپږو شيانو سره مختص دی او که دغه شيان يې د مثال په توګه فرمايلي دي او پاته شيان يې پر قياس او اجتهاد باندي موقوف کړل ، همدا وجه ده چي وروسته راتلونکو مجتهدينو امامانو امام ابوحنيفة، امام شافعي، امام مالک او امام احمد بن حنبل رحمة الله عليهم هر يوه دخپل خپل اجتهاد سره سم ددغه شيانو يوه قاعده جوړه کړې ده او نور شيان هم ددغه قاعدې لاندي په حکم کي داخل کړي دي ، ددې تفصيل هم مخکي تېر سوی دی .

خلاصه دا چي د قرآن کريم د آيت د نازلېدو څخه د سود يو خاص معامله يعني پور ورکولو سره پر هغه ګټه اخيستل په عربي ژبه کي د ربا په لفظ سره پيژندل کيدی او په ټولو عربو کي ددې رواج وو ، عربو يوازي دغه معاملې ته ربا ويل او په پوهېدل چي دغه ربا قرآن کريم حرامه کړل، نو د ربا په دغه صورت کي ابهام نه وو ځکه کله چي قرآن کريم د ربا د حرمت ذکر وکړ نو چا ته ددې په پوهېدو کي څه تکلف نه وو او نه چا ته پر دې باندي په عمل کولو تردد وو البته کله چي رسول الله ﷺ د وحي الهي په ذريعه د رباء په مفهوم کي د نورو معاملاتو زياتوب وکړ نو هغه معاملات د عربو د پيژندل سوي مفهوم څخه بېل او د هغوی د رواج سوي سود څخه يو بېل شی وو او د اتفاق خبره ده چي رسول الله ﷺ د رباء ددغه وسيع مفهوم د تفصيلاتو په پوره تشريح سره بيانولو څخه مخکي ددې دنيا څخه تشريف يوړ ځکه نو ددې په تشريح کي حضرت عمر فاروق ﷺ ته اشکال پيدا سو ، په پای کي هغه په خپل اجتهاد سره د احتياط په اختيارولو سره وفرمايل چي د رباء کوم صورتونه بالکل واضح او ټاکل سوي وي لکه رواجي سود يا د شيانو د تبادلې هغه صورتونه کوم چي رسول الله ﷺ بيان کړي دي هغه هم ترک کړئ او د هغه څخه پوره پرهېز وکړئ او په کوم شي کي چي د سود شبه او شک وي نو د تقوا او احتياط له کبله هغه هم پرېږدئ او پرهيز ځيني وکړئ .

**يوه شبه او يوه غلط فهمي** : د سود په اړه ځينو خلکو د حضرت عمر فاروق ﷺ دغه ارشاد خپل پناه ګرځوی کوم چي د سود د هغه خاص ډول په باره کي وو چي د هغه د رواجي سود سره هيڅ تعلق نه سته يعني د شپږو شيانو په بيع او شراء کي هغه خلکو ددغه ارشاد دا نتيجه واخستل چي د رباء حقيقت مبهم پاته سوی دی ، ددې سره اړوند علماؤ او فقهاؤ چي څه ليکلي دي هغه يوازي د هغوی خپل اجتهاد وو .

مګر څرنګه چي اوس پورته وښودل سول چي حضرت عمر فاروق ﷺ ته يوازي د رباء په دغه ډول کي تردد وو کوم چي د قرآن کريم د الفاظو څخه ثابت نه وو بلکه رسول الله ﷺ د خپل

ارشاد په ذریعه د هغه حرمت بیان کړی وو او هغه د شپږو شیانو په خپل مینځ کي معامله ده ، کوم سود چي نن سبا رواج دی او کوم چي د جاهلیت په زمانې کي عام وو ددې سره د حضرت عمر رضی الله عنه ددغه ارشاد هیڅ تعلق هم نه وو او څرنګه کیدای سو کله چي د جاهلیت د زمانې سره ددغه معاملاتو رواج او جاري وو بیا دغه ارشاد چي ددغه شپږو شیانو د سود په باره کي حضرت عمر رضی الله عنه ته کوم تردد وو هغه هم په دغه خبره کي نه وو چي هغه ته ددغه شپږو شیانو په معامله کي د سود حرام ګڼلو تردد وو بلکه اشکال یوازي دا وو چي دغه حکم کیدای سي تر شپږو شیانو پوري محدود نه وي بلکه ددغه حکم دائره ددغه شپږو شیانو څخه پرته تر نورو شیانو پوري هم وسیع وي ، په دغه صورت کي کیدای سي چي خلک په دا خیال کولو سره چي رسول الله صلی الله علیه وسلم یوازي ددغه شپږو شیانو په باره کي دغه حکم فرمایلی دي د نورو شیانو په معامله کي د هغه صورتونو په اختیارولو سره په سود کي اخته سي کوم چي رسول الله صلی الله علیه وسلم د شپږو شیانو لپاره په واضح توګه سره رباء ګرځولې ده ، ددغه تردد سره سم حضرت عمر رضی الله عنه خلکو ته حکم ورکړ چي د سود سره سره د هغه شیانو څخه هم پرهیز وکړئ په کوم کي چي د سود شبه وي ، نو دا به ظلم نه وي چي حضرت عمر رضی الله عنه د خپلو اشکالو نیتجه دا ظاهره کړه چي په منصوص شیانو کي هم د داسي معاملو څخه پرهیز وکړل سي چي په هغه کي د سود شبه هم وي او هغه خلکو د حضرت عمر رضی الله عنه ددغه ارشاد تعلق د هغه سود د هغه خاص ډول څخه په منقطع کولو سره د عام سود او رباء د معاملاتو سره وتړی او بیا یې پر دې باندي اکتفاء ونه کړه بلکه نور ظلم یې دا وکړ چي محض د خپل ناپوهی په وجه یې د حضرت عمر رضی الله عنه د ارشاد په رڼا کي د سود حرمت یوه مشتبه مسئله وګرځول .

## د پوروړي تحفه مه قبلوئ

﴿۲۷۰۸﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَقْرَضَ

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : کله چي قرض ور کړي

أَحَدُكُمْ قَرْضًا فَأَهْدَى اليه أَوْ حَمَلَهُ عَلَى الدَّابَّةِ فَلَا يَرْكَبْهَا وَلَا يَقْبَلْهُ إِلَّا أَنْ

په تاسو کي یو څوک یو چا ته وروسته بیا قرض اخیستونکي هغه ته څه هدیه یا تحفه ور ولیږي یا د سپرتیا لپاره یو حیوان ورکړي نو هغه دي نه پر سپرلی سپریږي او نه دي تحفه یا هدیه قبلوي مګر هغه وخت یې قبلولای سي چي

يَكُونَ جَرٰى بَيْنَهُ وَبَيْنَهُ قَبْلَ ذٰلِكَ . رواه ابن ماجة والبيهقي في شعب الايمان

تر قرض ور کولو مخکې هم دغه معامله جاري وي . (ابن ماجه بیهقي)

**تخريج**: سنن ابن ماجه ٢\٨١٣، رقم: ٢٤٣٢، البيهقي في شعب الايمان ٤\٣٩٧، رقم: ٥٥٣٢.

**تشریح**: مطلب دادی چې پور ورکونکی دي د پوروړي څخه د تحفې په توګه يو شی نه قبلوي ځکه چې پوروړي ته د پور په ذریعه کومه ګټه رسیږي هغه د سود په حکم کې ده مګر که چیرې د پور څخه مخکې هم د دواړو تعلقات داسې وي چې یو بل ته تحفې ورکوي نو بیا په دغه صورت کې د پور اخیستلو څخه وروسته هم که د پوروړي څخه تحفه واخلي نو پور ورکونکی هغه قبلولای سي ځکه چې ظاهره ده چې په داسې صورت کې به تحفه د پور په وجه نه وي بلکه د خپل پخواني تعلقاتو په وجه به وي .

د امام ابو حنیفة رحمة الله علیه په اړه منقول دي چې هغه يو سړي ته پور ورکړی وو، یوه ورځ چې هغه پوروړي ته د غوښتني لپاره ورغلی نو هغه وخت سخته ګرمي وه نو هغه وغوښتل چې تر څو پوروړی د کور څخه راوځي تر هغه وخته به د هغه د سرای د دېوال په سایه کې ودرېږم مګر سمدستي یې فکر وکړ که څه هم په شرعي توګه سره ددې څخه منع نه سته مګر د تقوا او احتیاط تقاضا داده چې زه د دېوال دده سایې څخه هم ګټه تر لاسه نه کړم هغه پوروړي ډېر وخت وروسته د کور څخه راووتی او امام صاحب تر هغه وخته پوري د لمر په ګرمۍ کې ولاړ وو ، دا د هغه مبارک ذات احتیاط کمال وو چې هغه د خپل پوروړي د دیوال د سایې څخه هم پرهیز وکړ .

په ما لا بد منه کې لیکلي دي چې په یو حدیث کې راغلي دي چې کوم پور پور ورکونکي ته د ګټې رسولو سبب سي نو هغه رباء ده نو پور ورکونکی دي د خپل پوروړي بلنه هم نه قبلوي مګر که چیرې د پور څخه مخکې هم د دواړو په مینځ کې د يو بل د بلنې او د تلو او راتلو معمول وي نو بیا په دغه صورت کې په بلنه قبلولو کې څه پروا نه سته ، او دا یې هم لیکلي دي چې د پور ورکونکې لپاره د خپل پوروړي د دیوال په سایه کې کښېنستل هم مکروه دي .

﴿۲۷۰۹﴾: وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا اَقْرَضَ الرَّجُلُ الرجل فَلَا يَأْخُذْ هَدِيَّةً. رواه البخاري في تاريخه هكذا في المنتقى .

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : کله چې څوک چا ته قرض ورکړي نو بیا د قرض اخیستونکي دي تحفه نه قبلوی .(دا حدیث د بخاري په تاریخ کي روایت سوي دی او

همداسي په منتقی کي دي ).

**تخريج** : لم نجده .

﴿۲۷۱۰﴾: وَعَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ بْنِ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ قَدِمْتُ الْمَدِيْنَةَ فَلَقِيْتُ عَبْدَ اللّٰهِ

د حضرت ابو برده بن ابي موسی رضي الله عنه څخه روايت دی چي زه مدينې منورې ته راغلم نو بيا ما د عبدالله بن سلام سره ملاقات وکړ

بْنَ سَلَامٍ فَقَالَ إِنَّكَ بِأَرْضٍ فِيْهَا الرِّبَا فَاشٍ فَإِذَا كَانَ لَكَ عَلَى رَجُلٍ حَقٌّ

هغه ما ته وويل : ته په داسي علاقه کي يې چي سود په پراخه پيمانه پکي رواج دي په داسي حالت کي که چيري ستا په يو چا قرض وي نو په داسي حالت کي هغه تا ته

فَاَهْدٰى اِلَيْكَ حِمْلَ تِبْنٍ اَوْ حِمْلَ شَعِيْرٍ اَوْ حِمْلَ قَتٍّ فَلَا تَأْخُذْهُ فَإِنَّهُ رِبًا .

رواه البخاري.

د بنو يا بوسو يو پلنده يا د اوربشو يوه بوری را ولېږي نو ته يې مه څيني اخله ځکه چي دا د سود په حکم کي راځي .(بخاري) .

**تخريج** : البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴۰۳\۱۴، رقم: ۲۲۰۵، ومسلم ۱۱۷۲\۳، رقم: ۷۶- ۱۵۴۲.

**تشريح**: علماء کرام وايي چي د (کل قرض جر نفعا فهو ربوا ) يعني هر هغه پور چي په هغه کي گټه راخيستل سي سود دی، ددغه تر اصولو لاندي هغه پور چي په هغه کي يو گټه مشروط وي سود دی همدارنگه پور ورکونکي ته د پور اخيستو د پور د دباو له مخي چي کومه گټه تر لاسه کيږي هغه هم سود دی .

مسئله : که پور ورکونکی د خپل پوروړي څخه د پور د ادا کولو مخکي يو گټه تر لاسه کړي نو وه به کتل سي چي هغه گټه مشروط خو نه ده که هغه گټه مشروط وي نو په دغه صورت کي د هغه په حرمت کي هيڅ شبه نه سته يعني هغه گټه به د سود په حکم کي وي او که هغه گټه مشروط نه وي نو بيا د هغه په باره کي هم د علماؤ اختلافي قولونه دي امام محمد رحمه الله عليه د دې د جواز قائل دی مگر يو ډله ممانعت ته مائل ده ، مگر خبره داده که چيري هغه گټه د پور د دباو يا د پور د رعايت له کبله نه وي يا د مهلت او مهرباني په وجه وي نو په هر حال ناجائز ده مگر که

چیري د احسان د پخوانیو تعلقاتو په وجه وي نو بیا د دې په جواز کي هیڅ شک نه سته.

په پور کي د وخت ټاکلو ځکه منع سوې ده مګر صحیح خبره داده چي د وخت په ټاکلو کي څه پرواه نه سته ځکه مسئله داده که چیري پور تر یو ټاکلي وخت پوري واخیستل سي نو هغه وخت د شرط په حیث لازمیږي مګر د پور په حیث نه لازمیږي که پور غوښتونکی د هغه وخت څخه مخکي خپل پور وغواړي نو د هغه دا حق دی او پوروړي ته پکار دي چي هغه تر خپل وس پوري د ادا کولو کوښښ وکړي.

که یو څوک یو چا ته د پور ورکولو پر وخت دا شرط ولګوي چي زما دغه پور به په فلاني ښار کي راکوې نو دا شرط به په طریقه د لزوم ناجائز وي.

ځیني خلک په سودي بانکونو کي خپل روپۍ د امانت په توګه جمع کوي او د هغه ګټه او سود نه اخلي نو کومي روپۍ چي په بانک کي جمع کیږي هغه په یقیني توګه سره بعینه محفوظ نه وي بلکه په کاروبار کي لګول کیږي ځکه نو هغه امانت نه پاته کیږي بلکه پور کیږي که څه هم هغه سړی سود وانه خلي مګر هغه یو ډول د پور په ذریعه د سود اخیستونکي او ورکونکي مرسته کول هم ګناه ده ځکه نو خپلي روپۍ په سودي بانک کي اېښودل ګناه سوه.

==========

# بَابُ الْمَنْهِيِّ عَنْهَا مِنَ الْبُيُوْعِ

## (د منعه بیعو بیان)

اسلامي شریعت د رانیولو او پلورلو ځیني معاملاتو څخه منع کړې ده همدارنګه ځیني شیان داسي دي چي د هغو رانیول او پلورل د شریعت له نظره منع دي، بیا ځیني معاملات او د ځینو شیانو منع په طریقه د حرمت دي (یعني د دغه معاملاتو او د دغه شیانو د حرام کېدو په وجه وي) لکه بیع باطل او د بیع فاسد منع او د ځینو منع او نهي تعلق محض د کراهت سره وي لکه د جمعې د اذان پر وخت د رانیولو او پلورلو څخه منع.

د رانیولو او پلورلو کوم معاملات یا د کومو شیانو د رانیولو او پلورلو منع چي په دې وجه ده چي هغه معاملات یا هغه شیان د شریعت له نظره حرا[illegible]ي د حنفي مذهب مطابق د هغه دوه ډولونه دي ۱: بیع فاسد ۲: بیع باطل.

بیع فاسد : د رانیولو او پلورلو هغه معاملې ته وايي چې د بیع د اصولو د موجود کېدو په وجه خو صحیح وي مګر د بیع د صحیح کېدو چې کوم شرطونه دي په هغو کي د ځینو شرطونو د فوت کېدو په وجه هغه معامله جائز نه وي ځکه نو د داسي معاملې ختمول ضروري دي ، دې ته د فقهاؤ په اصطلاح کي مشروع بنفسه او ممنوع بوصفه ویل کیږي، یعني داسي بیع په اعتبار د اصول مشروع او صحیح ده او په اعتبار د مشروط او اوصافو منع ده .

بیع باطل : د رانیولو او پلورلو هغه معاملې ته وايي چې په شرعي توګه هیڅ حیثیت نه لري ځکه چې هغه معامله نه خو د اصول بیع په اعتبار صحیح وي او نه د شروط او اوصافو په اعتبار جائز وي .

مناسب ده چې دلته یو څو مسائل ذکر کړل سي چې په هغو سره نه یوازي د پورتنیو ذکر سوو اقسامو د تعریف په پیژندلو کي اساني وي بلکه د باب د موضوع په اعتبار هم د هغو پیژندل ضروري دي :

که مبیع (یعني رانیونکی او پلورنکی شی) په شرعي اعتبار مال نه وي لکه وینه، مردار، ازاد سړی، ام الولد، مکاتب، بولي او بالکل بېکاره شی نو د داسي شیانو بیع باطله ده ، همدارنګه مبیع مال وي مګر متقوم نه وي لکه شراب او خنزیر، نو ددغه شیانو بیع به په هغه صورت کي باطله وي کله چې هغه د روپو په عوض کي و پلورل سي او که چیري د هغه قیمت د اسبابو په عوض کي ورکړل سي نو په هغه صورت کي به د اسبابو بیع فاسده وي او د هغه مال غیر متقوم بیع به باطله وي .

په بیع باطل او بیع فاسد کي فرق دادی چې په بیع باطل کي مبیع د شریعت له نظره د مشتري یعني د رانیونکی په ملکیت کي نه وي او په بیع فاسد کي مبیع مخکي تر قبضې څه حکم نه لري مګر وروسته تر قبضې د حرام په توګه د مشتري په ملکیت کي راځي او په نقدو سره د هغه د قیمت ادا کول د هغه پر ذمه ضروري وي مګر په قبضه کي د راتلو څخه وروسته هغه بیع فسخ کول واجیبږي په شرط ددې چې مبیع بعینه د رانیونکی سره موجود دی .

د ښارویو په غولانزه کي د شېدو بیع باطل ده ځکه چې هغه مشکوک الوجود وي ، کیدای سي چې د ښاروي د غولانزي د ظاهري حالت په لېدو سره په هغه کي د شېدو د موجودتیا یقین وکړل سي او د هغه شېدو بیع وکړل سي مګر وروسته معلومه سي چې په غولانزه کي شېدې نه وې بلکه د هواء وغیره په وجه غولانزه پړسېدلې وه نو په داسي صورت کي به د فریب او چم ورکولو معامله سي .

په هواء کي د الوتونکو مرغانو پلورل جائز نه دي په شرط د دې چي هغه مرغه داسي نه وي چي په هواء کېدو سره بېرته راگرځي لکه کوتره نو د داسي مرغه په هواء کي په الوتلو سره پلورل صحيح دي ، همدارنگه د هغه ماهي بيع هم ناجائز ده کوم چي تر اوسه نيول سوی نه وي بلکه په اوبو کي وي يا نيول سوی وي مگر بيا هغه په يو داسي حوض کي اچول سوی وي چي بېله جال څخه د هغه نيول ممکن نه وي ، همدارنگه د مېنزي او د څارويو حمل او همدارنگه د څاروي د ذبح کېدو او پرېکولو څخه مخکي د هغه د غوښو بيع کول جائز نه دي ، د خنزير د وېښتانو بيع هم جائز نه ده البته د هغه د وېښتانو څخه گټه اخيستل مثلاً د حيوانانو د څل او گونې وغيره د گنډلو لپاره استعمالول جائز دي مگر د سړي د وېښتانو بيع هم ناجائز ده او د هغه څخه گټه خيستل هم ناجائز دي ، کومه بيع چي په خپلو کي د نزاع سبب جوړېږي هغه فاسده ده لکه د پسه وغيره پر شا باندي د هغه د وړيو پلورل يا پر بام پاندي د لگېدلو لرگيو بيع يا د يو لوی تو کر څخه د يو گز ټوکر بيع يا داسي بيع کول چي د هغه د قيمت د ادا کولو وخت مجهول وي مثلاً داسي ووايي چي په کومه ورځ باران وسي يا په کومه ورځ تېزه هوا راسي نو په هغه ورځ به د دې قيمت ادا کوم مگر په دغه ټولو صورتو کي که رانيونکی بيع فسخ نه کړي او پلورنکی رانيونکی ته د ورکولو لپاره په بام کي لگيدلي لرگي بېل نه کړي يا د لوی ټوکر څخه يو گز ټوکر جلا کړي او رانيونکی د قيمت ادا کول پر مجهول وخت باندي موقوف کړه نو بيع به صحيح سي په فاسد شرط سره کېدونکې بيع فاسده ده او شرط فاسد دې ته وايي چي د اقتضاء عقد خلاف وي او په هغه کي يا د پلورنکي فائده وي لکه پلورنکی چي دا شرط ولگوي چي ما دغه سرای خرڅ کړی مگر تر يوې مياشتي پوري به زه پکښې اوسيږم يا د رانيونکی گټه وي لکه رانيونکی دا شرط ولگوي چي ما دغه ټوکر رانيوی مگر دغه ټوکر ما ته گنډلی راکړه يا د مبيع فائده وي کله چي مبيع انسان يعني غلام يا مينزه وي او هغه د گټې مستحق وي لکه پلورنکی چي رانيونکی ته ووايي چي دغه غلام ازادول يا د هغې مينزي نکاح کول ، دا ډول شرطونه فاسد دي او د هغه په وجه بيع هم فاسد کيږي .

د رانيونکی د ملکيت شرط لگول د اقتضاء عقد خلاف نه دی ځکه نو فاسد نه دی همدارنگه که يو تجار د يو څه ټوکر په رانيولو سره پر رانيونکی دا شرط ولگوي چي دغه ټوکر مه پلوره نو دغه شرط که څه هم د اقتضاء عقد خلاف دی مگر په دغه شرط کي د يوه هم گټه نه سته ځکه دا شرط به فاسد نه وي ، که چيري پلورنکی پر رانيونکی باندي دا شرط ولگوي چي د دغه آس چاغول که څه هم په دغه شرط کي د مبيع گټه ده مگر مبيع انسان نه دی چي هغه د

كښي مستحق وي ځكه نو دغه شرط هم فاسد نه دی بلكه دغه شرط به ساقط وي او بيع به صحيح سي

د بيع فاسد او بيع باطل نور زيات تفصيل د فقهي په كتابو كي سته ، په دې پوهېدل پكار دي چي د رانيولو او پلورلو د هغه معاملو څخه چي د شريعت په نظر كي د اعتبار وړ نه دي او هغه نن سبا ډېر رواج دي پرهيز وكړل سي ، دلته د يو څو نورو مسائلو وضاحت كول هم ضروري دی مثلاً : د پلورنكی له خوا د مبيع په ناپ او تول كي كمي كول يا د رانيونكی له خوا په قيمت كي كمي كول حرام دي لكه څرنګه چي د پلورنكی لپاره ضروري دي چي پر كوم قيمت فيصله وكړل سي د هغه د ادا كولو په وخت كي به كمي نه كوي كوم خلك چي ددې خلاف كوي د هغوی په باره كي په قرآن كريم كي داسي تنبيه راغلې ده : ويل للمطففين: په ناپ او تول كي د كمي كونكو لپاره لويه خرابي ده ....الخ.

د مبيع په قيمت كي او د مزدور په مزودري كي بېله عذره ځنډ كول حرام دی ، د رسول الله ﷺ مبارك قول دی چي د غني له خوا (د مزدورۍ په ادا كولو كي) ځنډ كول ظلم دی نو مزودر ته د هغه مزدوري د خولې د اوچېدو څخه مخكي وركړئ .

نقل سوي دي چي رسول الله ﷺ به د يو چا پور ادا كوی نو د پور د اندازې څخه به يې زيات وركول ، كه چيري د پور اندازه به نيم وسق وو نو د هغه پر ځای به يې يو وسق وركوی او كه د پور اندازه به يو وسق وو نو د هغه پر ځای به يې دوه وسقه وركول او فرمايل به يې چي دا خو ستا حق دی او دومره زيات زما له خوا واخله ، مګر دا دي په ذهن كي وي چي د اندازې څخه زيات وركول د سود په حكم كي داخل نه دي ځكه سود خو هغه وخت وي كله چي دغه زياتوب تر مخه مشروط سوی وي او بېله شرطه زيات وركوي جائز بلكه مستحب دي .

په معاملاتو كي بې قولي كول، مكر او فريب او د درواغو چلن كول حلال كسب هم حرام كوي نو ددې څخه پرهيز كول ضروري دی، د رسول الله ﷺ په باره كي نقل سوي دي چي يوه ورځ رسول الله ﷺ په بازار كي په يو دوكان كي د غنمو يو جوال وليدی او كله چي يې په هغه جوال كي لاس مبارك دننه كړ نو دننه غنم لانده معلوم سول ، رسول الله ﷺ د دوكاندار څخه پوښتنه وكړه چي دا څه دي ؟ هغه وويل چي دغه غنمو ته د باران اوبه رسيدلي دي چي د هغه په وجه د ننه څخه لاندي سوي دي، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل نو بيا تا د هغه لندو غنمو جوال سربېره ولي نه كښېښودی (چي نا خبره سړی ددې په وجه دوكه نه سي) ، په ياد ولرئ كوم سړی چي مسلمانانو ته دوكه وركوي هغه زموږ څخه نه دی .

په بیع مرابحت (د رانیولو پر قیمت باندي د گټي اخیستلو سره د پلورلو صورت) او په بیع تولیت (د رانیولو پر قیمت باندي بېله گټي د پلورلو صورت) کي رانیونکی ته مخکي قیمت یعني په کوم قیمت باندي چي خپله رانیونکی رانیولي دي بېله کمي او زیاتوب ظاهرول واجب دي که پلورنکی پر مبیع باندي د قیمت څخه پرته نوره مزدوري اچوي نو هغه دي هم د قیمت سره یو ځای کړي او رانیونکی ته دي داسي ووایي چي پر دغه شي باندي زما دومره روپۍ مصرف سوي دي ، دا دي نه وایي چي دا شی ما په دومره روپۍ رانیولی دی چي دروا غجن نه سي.

که یو څوک یو ټوکر په لس روپۍ خرڅ کړي او رانیونکی هغه روپۍ ادا کړي نه وي چي پلورنکی بیا هغه ټوکر د رانیونکی څخه په پنځه روپۍ رانیسي یا هغه ټوکر یې د یو بل ټوکر سره په لس درهمه رانیوی نو دا بیع به صحیح نه وي ځکه چي دا د سود په حکم کي راځي ، پر مبیع باندي د قبضې څخه مخکي تصرف کله چي مبیع منقول وي حرام دی ، او د منقول شي د قبض کولو څخه مخکي پلورل جائز نه دی .

یو سړی یو کیلي شی (چي په پیمانه یا تللو سره اندازه کیږي) د کیل په شرط رانیسي او د پلورونکي څخه یې هغه شی په پیمانه کي په ناپ کولو سره رانیوی او بیا هغه شی د هغه دوهم په لاس د کیل په شرط وپلوري نو اوس هغه دوهم رانیونکی لپاره ضروري ده چي تر څو پوري هغه خپله هم هغه د مخکي رانیونکی څخه د هغه شي په یمانه کي ناپ نه کړي نو نه خو دي هغه شی په تصرف کي راولي او نه دي یې پر بل چا پلوري ځکه چي اول ناپ کافي نه دی ، د احتیاط تقاضا داده چي هغه دي بیا ناپ کړل سي داسي نه چي هغه شی په پیمان کي زیات وخیژي او هغه د بائع مال نه وي .

که یو مسلمان د یو شی د رانیولو او پلورلو په معامله کولو سره یو قیمت و ټاکي یا یو مسلمان یوې ښځي ته د نکاح پیغام لیږلی وي نو تر څو چي د هغه معامله فیصله سوې یا موقوف سوې نه وي د دوهم سړي لپاره دا جائز نه دي چي هغه د هغه شي معامله وکړي یا هغه ښځي ته خپل پیغام ولېږي ، د جمعې د آذان پر وخت رانیول او پلورل مکروه دي ځکه چي د دې په وجه په سعي واجب (یعني د جمعې د لمانځه لپاره تیاري کولو) کي خلل راځي ، که چیري په ډېرو مسجدو کي د جمعې لمونځ کیږي نو په کوم مسجد کي چي د لمانځه کولو اراده وي نو د هغه د آذان سره دي بیع ترک کړي .

که دوه غلامان په خپلو کي د محرمیت قرابت ولري نو د هغوی جلا جلا بیع کول مکروه او منع ده همدارنګه که په هغوی کي یو کوچنی وي او بل لوی وي بیا هم بیع مکروه او منع ده بلکه

د ځينو علماؤ په نزد دا بيع جائز نه ده .

د مردار حيوان وازګه پلورل جائز نه دي ، مردار تېل پلورل د امام ابوحنيفة رحمة الله عليه په نزد جائز دي مګر د نورو امامانو په نزد جائز نه دي ، د انسان د لويو بولو بيع كله چې د هغه سره يو بل شى ګډ سوى نه وي د امام ابوحنيفة رحمة الله عليه په نزد مكروه دي او كه اېرې وغيره ورسره يو ځاى سوي وي نو بيا جائز دي ، د امام ابوحنيفة رحمة الله عليه په نزد خوشايي پلورل هم جائز دي او د نورو امامانو په مذهب كي د دغه شيانو پلورل هم ناجائز دي ، دا خبره دي په ذهن كي وي چې د كومو شيانو بيع جائز نه ده د هغو څخه ګټه اخيستل هم جائز نه دي .

د پاچا او حاكم لپاره دا مكروه دي چې هغوى د شيانو قيمت وټاكي مګر كه چيري تجار د غلې او نورو شيانو په قيمت كي د حد څخه تجاوز كوي او خلک په پريشاني كي اخته كيږئ نو بيا حاكم ته جائز دي چې هغه د تجربه كارو او ماهرينو په مشوره سره قيمت وټاكي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړى فصل)

### د منع سوو بيعو بيان

﴿۲۷۱۱﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْمُزَابَنَةِ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دى چې رسول الله ﷺ د مزابنه (د خپل باغ تازه مېوه د وچې

أَنْ يَبِيعَ ثَمَرَ حَائِطِهِ إِنْ كَانَ نَخْلًا بِتَمْرٍ كَيْلًا وَإِنْ كَانَ كَرْمًا أَنْ يَبِيعَهُ بِزَبِيبٍ

مېوې په بدله كي خرڅولو) څخه منع فرمايلې ده چې خرڅوي ميوه د خپل باغ كه خرما وي په خرماؤ سره په پيمانو او كه انګور وي چې خرڅوي يې په وچه ميوه

كَيْلًا أَوْ كَانَ وَ عِنْدَ مُسْلِمٍ وَإِنْ كَانَ زَرْعًا أَنْ يَبِيعَهُ بِكَيْلِ طَعَامٍ نَهَى عَنْ

په پيمانو او يا وي، او په نزد د مسلم داسي دى چې او كه وي فصل چې خرڅوي يې په پيمانو معلومو د طعام سره منعه يې كړې له

ذَلِكَ كُلِّهِ. متفق عليه و في رواية لهما نهى عن المزابنة قال و المزابنة ان يباع ما في رؤس النخل بتمر بكيل مسمى ان زاد فلي وان نقص فعلي .

دې ټولو څخه . متفق علیه، او په یو روایت کي دوا ړو لره داسي دي چي منعه یې کړې ده له مزابنې څخه ، ویلي دي رسول الله ﷺ مزابنه داده چي خرڅوي شی هغه چي په سرونو د خرماؤ کي وي په وچو خرماؤ په پیمانو معلومو سره که زیاتي سوې نو زما وي او که کمي سوې نو پر ما دي .

**تخریج**: البخاري في الصحیح (فتح الباري): ۱۴\۴۰۳، رقم: ۲۲۰۵، ومسلم ۳\۱۱۷۲، رقم: ۷۶– ۱۵۴۲.

**د لغاتو حل**: حائطه: ای بستانه (د باغ یې).

**تشریح**: مزابنت د زبن د لفظ څخه مشتق دی او معنی یې ده دفع کول ، لیري کول ، د بیع مزابنت څخه ځکه منع سوې ده چي ددغه بیع بنیاد پر قیاس او اندازې باندي وي په دې کي د دواړو خواوو لپاره د زیاتوب او تاوان احتمال وي په دې وجه د دواړو په مینځ کي نزاع او فساد هم پیدا کیدای سي او په خپلو کي د دفعیه او لیري والي نوبت هم راتلای سي .

دلته دوه روایتونه نقل سوي دي او په دواړو کي فرق دادی چي په اول روایت کي د مزابنت تعریف په لفظ د ثمر ذکر سوی دی چي عمومیت پکښې دی او په دوهم روایت کي د مزابنت لفظ په تمر سره ذکر سوی دی چي د هغه څخه دا معلومیږي چي د بیع مزابنت تعلق یوازي د خرما سره دی حالانکه داسي نه ده بلکه په دوهم روایت کي هم عمومیت مراد دی په خاصه توګه د خرما ذکر کول محض د مثال په توګه دی .

﴿۲۷۱۲﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْمُخَابَرَةِ

د حضرت جابر ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د مخابره

وَالْمُحَاقَلَةِ وَالْمُزَابَنَةِ وَالْمُحَاقَلَةُ اَنَّ يَّبِيْعَ الرَّجُلَ الزَّرْعَ بِمِائَةِ فِرَقٍ حِنْطَةٍ

محاقله او مزابنه څخه منعه فرمایلې ده او محاقلت دادي چي څوک د خپل ولاړ فصل سل فرق (دیوه پیمانې نوم) د غلې خرڅ کړي .

وَالْمُزَابَنَةُ اَنَّ يَّبِيْعَ التمرَ فِيْ رُؤُسِ النَّخْلِ بِمِائَةِ فِرَقٍ وَّ الْمُخَابَرَةُ كِرَاءُ الْاَرْضِ بِالثُّلُثِ وَالرُّبُعِ . رواه مسلم .

او مزابنه داده چي څوک هغه خرماوي چي په ونو کي وي د سل فرقو خرماؤ په عوض کي خرڅي کړي او مخابره داده چي یو سړی خپله مځکه د کښت لپاره ورکړي مثلاً د پیداوار په

نیمه یا دریمه یا څلورمه . (مسلم)

**تخریج**: مسلم في الصحیح ۳\ ۱۱۷۴، رقم: ۸۱، ۸۴- ۱۵۳٦.

**د لغاتو حل**: فرق: هو ما یساوي ٦۵۱٦ غراما عند الحنفیة. (د حنفیه په نزد یو فرق ٦۵۱٦ گرامه وي).

**تشریح** فَرَق د راء په زور سره د یو پیمانې نوم دی چې په هغه کې شپاړلس ۱٦ رطل یعني تقریبا اووه سېره غله وي ، او فرق د راء په جزم سره هغه پیمانې ته ویل کیږي چې په هغه کې یوسل او شل ۱۲۰ رطل غله وي ، په حدیث شریف کې د سل فرق ذکر کول محض د تمثیل په توګه دی ، مقصد دا ښودل دي چې د رېبلو څخه مخکې په کښت کې ولاړ غنم د اېښودل سوو غنمو په عوض کې پلورلو ته محاقلت وایي .

یعني مفهوم په تېر حدیث کې د مزابنت په ضمن کې هم ذکر سوی دی مګر مزابنت د پراختیا او عموم حامل دی او ددې اطلاق پر میوو باندې هم کیږي او پر کښت او غله باندې هم دغه لفظ استعمالیږي او د محاقلت استعمال یوازې د کښت او غلې لپاره کیږي که څه هم په ځینو وختونو کې مزابنت هم یوازې د میوو لپاره استعمالیږي .

د مخابرت مطلب دا دی چې خپله مځکه په نیمی باندې بل چا ته ورکول مثلا یو سړی خپل مځکه بل چا ته په دې شرط ورکړي چې په دغه مځکه کې څه حاصلات وسي د هغه دریمه یا څلورمه به ما ته راکوې .

په پورتني حدیث کې ددې منع هم سوې ده ځکه چې اول خو د اجرت شکل وي او په دې کې اجرت مجهول دی دوهم حاصلیدونکی شی معدوم دی او کوم شی چې معدوم وي د هغه معامله معتبر نه ده ، مخابرت ته مزارعت هم وایي مګر په دواړو کې فرق دا دی چې د مخابرت په صورت کې تخم د کښت کونکی وي او په مزارعت کې د مځکې د مالک ، مزارعت او مخابرت د امام ابو حنیفة رحمه الله علیه په نزد جائز نه دی لکه څرنګه چې په پورتني حدیث کې حکم دی مګر صاحبین یعني امام ابویوسف او امام محمد په نزد صحیح دی ، په حنفي مسلک کې فتوا د صاحبینو پر قول ده ځکه چې دا کثیر الوقوع او د ډېر زیات احتیاط شی دی ددې د جائز نه ساتلو په صورت کې خلکو ته ډېره پرېشاني وي .

**﴿۲۷۱۳﴾**: وَعَنْهُ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْمُحَاقَلَةِ وَالْمُزَابَنَةِ والْمخابرة والْمعاومة وَعَنِ الثُّنْيَا وَرَخَّصَ فِي الْعَرَايَا. رواه مسلم

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د محاقله، مزابنه، مخابره، معاومه او ثنیا څخه منعه فرمایلې ده او د عرایا اجازت یې ورکړي دي. (مسلم)

**تخریج**: مسلم في الصحیح ۳\۱۱۷۵، رقم: ۸۵-۱۵۳۶.

**د لغاتو حل**: المعاومة: هی بیع ثمر النخل او الشجر سنتین او ثلاثا فصاعدا قبل ان تظهر ثماره. الثنیا: ای ان یبیع ثمر حائط ویستثنی منه جزا غیر معلوم القدر.

**تشریح** د محاقلت، مزابنت او مخابرت معناوي مخکي بیان سوي دي او د معاومت معنی داده چي د درختو د میوو د ښکاره کېدو څخه مخکي یو کال یا دوه کاله یا درې کاله یا د زیات وخت لپاره و پلورل سي او د ثنیا مطلب دادی چي پر او ښو باندي کومي میوې و پلورل سي مګر په هغه کي یو غیر معین مقدار مستثنی کړل سي یعني هغه ونه پلورل سي.

عرایا د عریت جمع ده او عریت د خرماوو هغه درختي ته وایي چي د هغه مالک یې یو محتاج او مسکین ته د میوې خوړلو لپاره عاریتا ورکړي،

د عرایا اجازه یې ورکړې ده: ددې مطلب دادی چي ځینو خلکو به په خپل باغ کي یوه درخته یا دوې درختي یو محتاج ته د میوو خوړلو لپاره ورکولې بیا څرنګه چي معمول وو هغه د باغ مالک به د خپل کورنۍ سره باغ ته راغلی او د هغه ټولو خلکو په موجودتیا کي به هغه محتاج سړی راغلی نو په خپل باغ کي د یو پردي سړي د راتلو په وجه هغه ته مشکل وو ځکه هغه محتاج ته به د هغه درختي د میوې پر ځای د خپل طرف څخه د یو څه میوو په ورکولو سره به یې رخصت کوی او د هغه درختي میوه به یې د ځان لپاره وساتل، رسول الله ﷺ دا جائز وګڼل مګر دا د پنځه وسق څخه په کم کي جائز ده او تر دې په زیات کي جائز نه ده لکه څرنګه چي مخته د حضرت ابو هریره رضي الله عنه په روایت کي راځي.

﴿۲۷۱۴﴾: وَعَنْ سَهْلِ بْنِ أَبِي حَثْمَةَ قَالَ نَهٰي أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت سهل بن ابي حثمه رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ منع فرمایلې ده

عَنْ بَيْعِ التَّمْرِ بِالتَّمْرِ اِلاَّ اَنَّهُ رَخَّصَ فِي الْعَرِيَّةِ أَنْ تُبَاعَ بِخَرْصِهَا تَمْرًا يَأْكُلُهَا أَهْلُهَا رُطَبًا. متفق علیه

په ونو کي د خرماؤ او د وچو خرماؤ په بدله کي د خرڅولو څخه لیکن عریة کي یې د دې اجازت ورکړي دي چي د درختو خرماوي د وچو خرماؤ په بدله کي خرڅي کړئ او د هغه میوه دده اهل (را

نيونكي) وخوري. (بخاري او مسلم).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴\۳۸۷، رقم: ۲۱۹۱، ومسلم ۳\۱۱۷۰، رقم: ۶۷- ۱۵۴۰.

**د لغاتو حل**: بخرصها: يقال باعه خرصا، اى تقديرا من غير وزن. (د اټكل له مخې پلورل).

## د بيع عرايا مسئله

﴿۲۷۱۵﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرْخَصَ فِيْ بَيْعِ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دى چې رسول الله ﷺ د عرايا يعني د ونو د مېوو اندازه كولو سره د خرڅ اجازه وركړې ده

الْعَرَايَا بِخَرْصِهَا مِنَ التَّمْرِ فِيْمَا دُوْنَ خَمْسَةِ أَوْسُقٍ أَوْ فِيْ خَمْسَةِ أَوْسُقٍ شَكَّ دَاوُدُ ابن الحصين . متفق عليه

د خرماؤ اندازه په پنځه وسق يا د دې څخه كم وي يعني پنځه وسق پوري اندازه سوي خرماوي دي خرڅولاي سي د دې څخه زيات اجازه نسته . وسق شپېته صاع وي او په صاع كي څلور سېره ته نژدې غله ځائيږي، او شک كړى دى داؤد بن حصين. (بخاري او مسلم)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴\۳۸۷، رقم: ۲۱۹۰، ومسلم ۳\۱۱۷۱، رقم: ۷۱- ۱۵۴۱.

**تشريح**: تر پنځه وسق د كم قيد ځكه لګول سوى دى چي ددغه اجازې تعلق د احتياج او ضرورت سره وي او احتياج او ضرورت پر پنځه وسق كم وي ، د عرايا د ميوو پورتنى بيع او تبادله تر پنځه وسق په كم كي د ټولو علماؤ په نزد جائز ده او تر پنځه وسق زيات كي جائز نه ده البته د پوره پنځه وسق په باره كي د علماؤ اختلافي قولونه دي، صحيح قول د عدم جواز دى ځكه چي د مقدار په بيان كي راوي شک اظهار كړى دى نو په دغه صورت كي د احتياط تقاضا دا كېدل پكار دي چي د پنځه وسق څخه پر كم مقدار باندي عمل وكړل سي چي په هر حال متعين دي ، په دې خبره كي د علماؤ اختلافي اقوال دي چي ددغه اجازې تعلق يوازي د محتاجو سره دى او كه د شتمنو خلكو سره هم ددې تعلق دى ، نو صحيح قول دادى چي دغه اجازه د دواړو لپاره ده .

وسق د يو پيمانې نوم دى ، يو وسق شپيته صاع وي او يو صاع په پيمانه كي تقريبا درې نيم سېره غله وي، پنځه وسق تقريبا شپږ وېشت منه كيږي .

## د اومو ميوو د بيع ممانعت

﴿۲۷۱۶﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عُمَرَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ

د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ منعه کړېده د خرڅولو څخه

الثِّمَارِ حَتَّى يَبْدُوَ صَلَاحُهَا نهي البائع والمشتري. متفق عليه و في رواية

د ميوو تر هغه وخته پوري چي د هغو پوخوالي څرګند سوي نه وي او ممانعت د خرڅونکي او رانيونکي دواړو لپاره دي. (بخاري او مسلم) او د مسلم په يوه بل روايت کي راغلي چي

لمسلم نهى عن بيع النخل حتى تزهو وعن السنبل حتى يبيض ويامن العاهة

رسول الله ﷺ د خرماؤ مېوه دارو ونو څخه تر هغه وخته پوري د خرڅولو څخه منعه کړېده تر څو پوري چي د هغو مېوه سره او ژړه نه وي او د فصل وږي د خرڅولو څخه يې منعه فرمايلې ده تر څو پوري چي پخه نه وي او د آفت څخه محفوظه وي.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴\ ۳۹۴، رقم: ۲۱۹۴، ومسلم ۳\ ۱۱۶۵، رقم: ۴۹- ۱۵۳۴.

**تشريح**: د پلورنکي لپاره ځکه منع ده چي هغه د رانيونکي مال بېله د يو شي په عوض کي تر لاسه نه کړي او د رانيونکي لپاره منع ځکه ده چي هغه د خپل مال په تاوان کي اخته نه سي ځکه کيدای سي چي هغه اومه ميوه رانيسي او د هغه قيمت ادا کړي مګر ميوه د پخېدو څخه مخکي په يو آفت سره ضائع سي.

﴿۲۷۱۷﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د مېوه دارو ونو د خرڅولو څخه منعه

الثِّمَارِ حَتَّى تُزْهِيَ قِيلَ لَهُ وَمَا تُزْهِي قَالَ حَتَّى تَحْمَرَّ وَقَالَ أَرَأَيْتَ إِذَا مَنَعَ اللهُ

فرمايلې ده تر څو پوري وچ رنګه نسي پوښتنه ځيني وسوه چي د دې مطلب څه دي؟ نو يې ورته وفرمايل: تر څو پوري چي سره نسي، بيا يې وفرمايل: وښايه که خداي تعالي د مېوو د پخېدو

الثَّمَرَةَ بِمَ يَأْخُذُ أَحَدُكُمْ مَالَ أَخِيهِ. متفق عليه

څخه منعه کړي وي نو په تاسو کي به څوک د خپل ورور مال څنګه اخلئ؟ (بخاري او مسلم)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴\۳۹۸، رقم: ۲۱۹۸، ومسلم ۱۳\۱۱۹۰، رقم: ۱۵- ۱۵۵۵.

**تشريح** مطلب دادی چي د پخېدو او تيارېدو څخه مخکي د ميوو په بيع کي دده خبري خطره ده چي کيدای سي په يو آفت سره مثلا سيلاب وغيره راسي او ميوه د درختو څخه په لوېدو سره ضائع سي نو په دغه صورت کي پلورنکی چي د رانيونکی څخه د ميوو د قيمت په توګه څه واخلي هغه به بېله عوضه او مفت په لاس ورسي نو دا ضروري ده چي د ميوو تر پخېدو پوري انتظار وکړل سي کله چي هغه پخې سي نو هغه وخت دي د رانيولو او پلورلو معامله وسي .

## د ميوو او درختو پيشګي خرڅول

﴿۲۷۱۸﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ السِّنِيْنَ وَأَمَرَ بِوَضْعِ الْجَوَائِحِ . رواه مسلم .

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د څو کالو لپاره د مېوو د پلورلو څخه منعه فرمايلې ده(يعني يو دوه درې کاله پوري د پلورلو څخه) او (د افتونو د نقصان په خاطر) يې د کمي کولو حکم کړی دی (يعني د تخم د غورځولو څخه وروسته د يو افت په وجه په مېوو کي کمي راسي نو د تاوان څخه د خلاصېدلو په خاطر رانيونکي ته د معاوضې کمي پوره سي ) (مسلم)

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۱۳\۱۱۷۸، رقم: ۱۰۱- ۱۵۳۶.

**د لغاتو حل**: الجوائح: جمع جائحة وهي الآفة المستاصلة نصيب الثمار ونحوها بعد الزهو فتهلكها بان يترك لبائع ثمن ما تلف. (د ميوو يو ډول مرض).

**تشريح**: د حديث د آخري برخي مطلب دادی چي يو سړی پر درختي باندي لګېدلي ميوې د پخېدو څخه مخکي رانيسي مګر مخکي تر دې چي رانيونکی هغه ميوې په خپل تصرف کي راولي هغه ميوې په يو وجه اېله سوې او ضائع سوې نو په دغه صورت کي پلورنکي ته پکار دي که چيري هغه تر اوسه پوري قيمت تر لاسه کړی نه وي نو په هغه کي دي څه کمي وکړي او که قيمت يې تر لاسه کړی وي نو د هغه څخه دي رانيونکی ته يو څه بېرته ورکړي که څه هم بيع سوې وي او د قاعدې په اعتبار هغه ددې لپاره مجبور نه دی ، د رسول الله ﷺ دغه حکم يوازي د استحباب لپاره دی او ددې مقصد د تاواني سړي سره رعايت کول دي او کوم چي د فقهي د مسئلې تعلق دی نو دا خبره بالکل روښانه ده چي د هري ګټي او تاوان ذمه دار رانيونکی دی، ددې مطلب دادی چي په قبضه کي د راتلو څخه وروسته که مبيع د يو آفت په وجه ضائع سي نو هغه د رانيونکی تاوان دی پر پلورنکي باندي د هغه هيڅ بدله او تاوان نه واجبېږي .

## د ضائع سوي مبيع ذمه دار څوک دی؟

﴿۲۷۱۹﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ بِعْتَ مِنْ أَخِيكَ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ و فرمايل: که تا خپله مېوه په يوه مسلمان

ثَمَرًا فَأَصَابَتْهُ جَائِحَةٌ فَلَا يَحِلُّ لَكَ أَنْ تَأْخُذَ مِنْهُ شَيْئًا بِمَ تَأْخُذُ مَالَ أَخِيكَ بِغَيْرِ حَقٍّ. رواه مسلم.

ورور خرڅه کړه او بيا په هغه مېوه باندي افت راغلي او هغه يې خرابه کړه نو ستا هيڅ حق نسته چي ته د خپل ورور څخه څه واخلې او ته په ناحقه باندي ولي د خپل ورور څخه مال اخلې. (مسلم)

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۳\ ۱۱۹۰، رقم: ۱۴- ۱۵۵۴.

**تشريح**: فلا يحل لک (د هغه څخه څه اخستل حلال نه دي) دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي مبيع بالکليه او مطلق ضائع سي او که چيري يو داسي آفت راسي چي په هغه سره د مبيع يو برخي ته تاوان ورسيږي نو په دغه صورت کي يو څه کمي کول پکار دي لکه څرنګه چي د تېر حديث په تشريح کي ښوول سوي دي، د دغه حديث په باره کي هم هغه تشريح ته فکر کول پکار دي کوم چي د تېر حديث په اړه تېره سوې ده، دلته حضرت ابن مالک رحمة الله عليه هم دا وضاحت کړی دی چي که مبيع د رانيونکي حوالې ته کولو څخه مخکي ضائع سي نو د هغه تاوان به پر پلورنکي وي او په دغه صورت کي د حديث د تاويل کولو ضرورت نه پاته کيږي او که چيري مبيع د رانيونکی په قبضه کي ضائع سي نو بيا به ويل کيږي چي د حديث الفاظ چي د هغه څخه څه اخستل جائز نه دي ددې مطلب دادی چي د تقوا او اخلاقو له مخي د رانيونکي څخه هيڅ هم اخيستل حلال (مناسب) نه دي.

## په منقوله شيانو کي د قبضې تر مخه بله بيع جائز نه ده

﴿۲۷۲۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانُوا يَتَبَايَعُونَ الطَّعَامَ فِي أَعْلَى السُّوقِ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي خلکو به په پورته بازار کي غله رانيول

فَيَبِيعُونَهُ فِي مَكَانِهِ فَنَهَاهُمْ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِهِ فِي

او بيا به يې خرڅول رسول الله ﷺ خلک ددې کار څخه منعه کړه او حکم يې وکړ چي تر څو

مَكَانِهِ حَتَّى يَنْقُلُوهُ. رواه ابو داؤد ولمْ اجده في الصحيحين.

چي تاسي غله د دې ځايه څخه نه وي نقل کړې خرڅولاي يې نسې. (ابو داؤد) خو په صحيحينو کي دا حديث نسته.

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\۷٦۱، رقم: ۳۴۹۴.

**تشريح** د هغه ځاى څخه نقل نه کړل سي : د دې مطلب دادى چي تر څو پوري هغه په خپل قبضه کي را نه ولي او د منقول شيانو په قبضه کي راوستل دادي چي د هغه د رانيولو څخه وروسته د هغه ځاى څخه په پورته کولو سره بل ځاى کي کښېږدي که څه هم هغه بل ځاى نژدې وي.

د دې خبري خيال ساتل پکار دي که هغه شی د پيمانې يا وزن په ذريعه رانيول سوى وي نو د پيمانې په ناپ کولو سره يا د وزن کولو څخه وروسته هغه پورته کړي او که چيري بېله پيمانه کولو او بېله وزن کولو يې رانيولي وي نو بيا د هغه څخه پرته په پورته کولو سره دي يې کښېږدي ، خلاصه دا که يو سړى د منقوله شيانو څخه يو شی رانيسي او بيا هغه پر بل چا باندي پلورل غواړي نو د هغه لپاره ضروري ده چي هغه دغه شی مخکي په خپل قبضه کي واخلي او د هغه څخه وروسته دي يې وپلوري ځکه چي د منقوله شيانو په بيع کي تر قبضې مخکي بله بيع جائز نه ده ، د صاحب مشکوة دا ويل چي ما دا روايت په بخاري او مسلم کي نه دی ليدلی دا په اصل کي پر صاحب المصابيح باندي اعتراض دی چي دا روايت يې په اول فصل کي ذکر کړی دی حال دا چي دغه روايت نه په بخاري سته او نه په مسلم کي بلکه په ابو داؤد کي دی ځکه نو دغه روايت د قاعدې سره سم په دوهم فصل کي نقل کول پکار وه.

﴿۲۷۲۱﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنِ ابْتَاعَ طَعَامًا فَلَا يَبِعْهُ حَتَّى يَسْتَوْفِيَهُ وفي رواية ابن عباس حتى يكتاله. متفق عليه.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :څوک چي غله رانيسي نو هغه دي تر هغه وخته پوري نه خرڅوي تر څو چي هغه پوره نه کړي (يعني په هغه قبضولو څخه وروسته چي د هغې مقدار پوره نه کړي کوم چي د هغه خريد يې کړي وي ) او د ابن عباس رضي الله عنهما په يوه روايت کي دا الفاظ دي تر څو پوري چي هغه پيمانه نه کړي. (بخاري او مسلم)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴\۳۴۴، رقم: ۲۱۲٦، ومسلم ۳\۱۱٦۰، رقم: ۳۲- ۱۵۲٦.

**تشريح**: تر څو چي هغه په پوره توګه سره وا نه خلي: ددې مطلب دادی چي تر څو پوري چي هغه په خپل قبضه کي وانه خلي ددې وضاحت د تېر حديث په ضمن کي سوی دی ، دلته په يو فقهي اختلاف هم پوه سئ چي د امام شافعي او په حنفيه کي د امام محمد په نزد د يو شی په رانيولو سره بيا هغه شی د دوهم په لاس کي د قبضې څخه مخکي پلورل جائز نه دي هغه که د منقوله شيانو څخه وي لکه غله او داسي نور يا عقار يعني مځکه وي .

د امام مالک رحمة الله عليه په نزد تر قبضې مخکي يوازي د غلې پلورل جائز نه دي او د نورو ټولو شيانو پلورل جائز دي ، د امام ابو حنيفة او امام ابو يوسف په نزد تر قبضې مخکي د عقار يعني مځکي پلورل خو جائز دي مګر په منقوله شيانو کي د هيڅ شی پلورل هم جائز نه دي، د امام احمد رحمة الله عليه مذهب هم په ظاهره دادی .

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه د روايت الفاظ تر څو چي هغه ناپ نه کړي ، ددې څخه ځينو علماؤ دا استدلال کړی دی که پلورنکی د رانيونکی په مخکي د غلې په ناپ کولو سره يا وزن کولو سره ورکړي نو دا کافي نه ده بلکه د رانيونکي لپاره ضروري ده چي هغه يې په خپله قبضه کي په اخيستلو سره دوهم وار بيا ناپ يا وزن کړي ، مګر په دې اړه صحيح خبره داده چي د رانيونکی په مخکي د پلورنکی ناپ کول يا وزن کول کافي دي ځکه چي د رانيونکی په مخکي د پلورنکی ناپ کول يا وزن کول داسي دي لکه څرنګه چي هغه يې په خپله ناپ يا وزن کړي .

﴿۲۷۲۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ أَمَّا الَّذِي نَهَى عَنْهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی چي هغه شی چي د هغه څخه رسول الله صلى الله عليه وسلم منعه کړېده

وَسَلَّمَ فَهُوَ الطَّعَامُ أَنْ يُبَاعَ حَتَّى يُقْبَضَ قال ابن عباس ولا احسب كل شئ الا مثله . متفق عليه.

هغه غله ده چي په قبضه کي د راوستلو مخکي خرڅه کړل سي او د ابن عباس بيان دي زما خيال نه دی چي په ممانعت کي هر شی شامل دي يعني د هر شی حکم د غلې په شان دي . (بخاري او مسلم)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۳۴۹\۴،رقم: ۲۱۳۵، ومسلم ۱۱۵۹\۳، رقم: ۲۹- ۱۵۲۵.

**تشريح** د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما د قول مطلب دادی چي څرنګه غله د قبضې څخه مخکي پلورل جائز نه دي همدارنګه هيڅ شی تر هغه وخته پوري پلورل جائز نه دی تر څو چي هغه په

قبضه کي را نه سي ، دا ګویا د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما خپل ګمان او خیال دی چي هغه په دغه مسئله کي پر غله باندي د غلې څخه پرته شیان قیاس کړي دي .

﴿۲۷۲۳﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَلَقَّوُا

د حضرت ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : تاسو مخته مه ورځئ د

الرُّكْبَانَ لِبَيْعٍ وَلَا يَبِعْ بَعْضُكُمْ عَلَى بَيْعِ بَعْضٍ وَلَا تَنَاجَشُوا وَلَا يَبِعْ حَاضِرٌ

قافلې (یعني ښار ته د غلې د راتلو مخکي په لار کي خرید مه کوئ) او په تاسو کي هیڅوک د یوه مسلمان ورور د بیع پور ته بیع مه کوئ (یعني د دوو خلکو په مینځ کي د خرید او فروخت معامله وي نو دریم سړی دی د هغه بیع په مقابله کي خپل مال په ارزانه قیمت نه ورکوي یا په هغه مال کي دي عیب نه راباسي ) او فریب او چم مه کوئ

لِبَادٍ وَلَا تُصَرُّوا الْاِبِلَ الْغَنَمَ فَمَنِ ابْتَاعَهَا بَعْدَ ذَالِكَ فَهُوَ بِخَيْرِ النَّظَرَيْنِ

او بازاري دي د صحرائي غله نه خرڅوي (یعني یو کلیوال غله راوړي او په موجوده قیمت یې خرڅوي لیکن یو ښاري وو ایي ته غله ماته وسپاره زه به یې په ګران قیمت خرڅه کړم ) او مه د اوښي او بزې په غولانزه کي شیدې جمعه کوئ (یعني د دوو یا درو وختو شیدې د حیوان په غولانزه کي مه جمعه کوئ چي بیا رانیونکی په خطا باسئ) څوک چي داسي یو حیوان را نیسي

بَعْدَ أَنْ يَحْتَلِبَهَا إِنْ رَضِيَهَا أَمْسَكَهَا وَإِنْ سَخِطَهَا رَدَّهَا وَصَاعًا مِنْ تَمْرٍ .

نو د شیدو لوشلو څخه وروسته هغو دواړو ته د خبرو اختیار دي که هغه راضي وي نو حیوان دي وساتي او که خوشحاله نه وي نو حیوان دي واپس کړي او د واپسېدو سره دي یو صاع خرماوي هم ورکړي

متفق علیه و في رواية لمسلم من اشترى شاة مصراة فهو بالخيار ثلثة

ايام فان ردها رد معها صاعا من الطعام لا سمراء .

(بخاري او مسلم) او د مسلم په یوه بل روایت کي را غلي دي چي یو څوک داسي بزه را نیسي چي په هغه کي یې شیدې جمعه کړي وي نو هغه ته تر درو ورځو اختیار سته (که یې ساتي او

یا پرېږدي ) که یې بیرته په لاس ورکوي نو یو صاع خرماوي دي هم ورسره ورکړي غنم دي نه ورکوي.

**تخریج**: البخاري في الصحیح (فتح الباري): ۴\۳۶۱، رقم: ۲۱۵۰، ومسلم ۳\۱۱۵۵، رقم: ۱۱- ۱۴۱۲.

**تشریح**. د اول هدایت مطلب دادی چي تاسو ته معلومه سي چي د تجارانو یوه ډله د غلې وغیره په رانیولو سره ښار ته را روانه ده نو مخکي ددې څخه چي هغه تجاران ښار ته راورسیږي او هلته د بازار قیمت معلوم کړي نو په لاره کي په ورتللو سره د هغوی سره د رانیولو اوپلورلو معامله مه کوئ ، دا حکم رسول الله ﷺ ځکه کړی دی چي هغه تاجرانو ته د چم ورکولو او یا هغوی ته د تاوان رسولو موقع پیدا نه سي.

په تاسو کي دي هیڅوک هم د بل پر بیع باندي بیع نه کوي، یعني کله چي دوه کسان په خپلو کي یو معامله کوي نو تاسو په هغه کي دخل مه کوئ په دې توګه چي مه خو د شي د قیمت په زیاتولو سره یا په یو بله ذریعه سره هغه رانیسي چي په هغه کي د رانیونکی تاوان وي او مه په خپل مال ښوولو سره په کم قیمت سره هغه پلورئ چي په دې کي به پلورنکي ته تاوان وي ، یا دا چي مثلا یو سړی د یو چا څخه یو شی په شرط د خیار رانیسي نو اوس ته هغه رانیونکي ته ورځې او داسي ورته وایې چي ته دا معامله فسخ کړه زه به داسي شی تا ته په دغه قیمت درکړم . په داسي کولو سره د خپل ګټې لپاره د بل معامله خرابول بد کار دی او که چیري مقصد د خپل شی پلورل یا رانیول نه وي بلکه محض معامله خرابول وي نو دا ډېر بد کار دی ، ځیني علماء وایي چي ددغه منع تعلق د هغه شی سره دی چي په هغه کي یو شرعي قباحت نه وي او که چیري په یو شی کي شرعي قباحت وي لکه یو څوک پر یو چا پاندي د غلا مال پلورل نو په دغه صورت کي د معاملې فسخ کول جائز دي . د نجش معنی ده رغبت ورکول او دوکه ورکول، ددې صورت دادی چي د دوو کسانو په مینځ کي معامله کیږي او دریم سړی راسي د هغه شی تعریف شروع کړي د کوم چي معامله کیږي یا د هغه قیمت زیات ولګوي او په دې سره د هغه مقصد رانیول نه وي بلکه دا وي چي رانیونکی زما په لېدو سره د هغه شی رانیولو ته زیات راغب سي یا د هغه شی قیمت نور زیات سي ، رسول الله ﷺ ددې څخه منع فرمایلې ده ځکه چي دا د رانیونکی په دوکه کولو کي یو بد ترین صورت دی.

ښاري سړی دي د صحرائي مال نه پلوري، مثلا یو صحرائي سړی خپل مال لکه غله وغیره د بازار په قیمت پلورلو لپاره ښار ته راغلی او یو ښاري هغه ته راسي او دا ورته ووایي چي ته

خپل مال ما ته پرېږده زه به دا په ډېره اساني سره په ګران قیمت و پلورم، رسول الله ﷺ ددې څخه ځکه منع فرمایلې ده چې په دې کي د الله تعالی د مخلوق د ګټي څخه منع کول دي، د امام شافعي رحمة الله علیه په نزد دا حرام دي او د حنفي مذهب سره سم مکروه دي.

د اوښي او مېږې په غولانزو کي شېدې مه جمع کوئ، مثلاً یو سړی د شېدو والا یو حیوان لکه مېږه، یا غوا وغیره پلورل غواړي نو د هغه د زیات قیمت تر لاسه کولو لپاره هغه دا کوي چې د پلورلو څخه یوه یا دوې ورځي مخکي د هغه حیوان شېدې نه لویشي لکه د هغه په غولانزه کي یې پرېږدي چې زیاتي شېدې پکښي جمع سي او رانیونکی په دا ګڼلو سره چې دغه حیوان زیاتي شېدې ورکونکی دي د هغه زیات قیمت ورکړي، ددې څخه رسول الله ﷺ ځکه منع فرمایلې ده چې دا د دوکې ورکولو معامله ده، په دغه مضمون کي چې رسول الله ﷺ کومه مسئله بیان کړې ده د هغې وضاحت دادی که یو بل سړی داسي څاروی رانیسي چې د څو ورځو یا څو وختونو شېدې د هغه په غولانزه کي جمع سوي وي او بیا د هغه د شېدو لوېشلو څخه وروسته معلومه سي چې هغه څاروی لږ شېدې کوي نو هغه ته به اختیار وي که وغواړي څاروی دي بېرته ورکړي او که وغواړي وه دي یې ساتي، که چیري څاروی بېرته ورکوي نو یو صاع خرما به د هغه د شېدو په عوض کي ورکوي کوم چې هغه لوېشلي دي.

دلته دا سوال پیدا کیږي چې د شېدو په بدله کي د یوه صاع خرما و تعین ولي سوی دی حال دا چې د هغه شېدو د بېرته ورکولو یا د هغه شېدو د قیمت ورکولو حکم هم کیدای سو؟

ددې جواب دادی چې رانیونکی د هغه څاروي شیدې لوېشلي دي نو په هغه کي به څه برخه هغه وي کوم چې د رانیونکي په ملکیت کي د راتلو څخه وروسته د څاروي په غولانزه کي پیدا سوې وي او څه برخه هغه ده چې د څاروي د رانیولو پر وخت د هغه په غولانزه کي وه او د څاروي سره د هغه شیدې هم بیع سوي دي، ظاهره ده چې په دغه صورت کي د شېدو د هغه دواړو برخو تعین او امتیاز د ناممکن کېدو په وجه نه خو شېدې بېرته ورکول کیدای سي او نه د هغه د قیمت په ټاکل کېدو سره ورکول کیدای سي، نو شارع ددې خلاصه دا را وایستل چې په دواړو خواوو کي د فتنې او فساد د دفع لپاره د شېدو عوض یو صاع خرما و ټاکل سوې، او په دې اړه د شېدو د کموالي او زیاتوب بنیاد یې ونه ښودی نو دا بالکل داسي ده چې شارع د ناحق خون دیت یعني د قتل مالي معاوضه سل اوښان ټاکلي دي حالانکه د مراتبو او حیثیت په اعتبار هر نفس او هر خون یو ډول نه وي مګر په دې باره کي شریعت ددې تفاوت بنیاد ونه ښودی.

په دغه حدیث باندي امام شافعي رحمة الله علیه عمل کړی دی او وایي چې د داسي څاروي په بیع

كي خيار حاصل وي مگر امام ابو حنيفة رحمه الله ويلي دي چي په دې كي خيار نه سته د هغه په نزد په حديث كي ذكر سوى حكم متروک دی هغه وايي چي دغه حكم د رباء د حرام كېدو څخه مخكي وو حالانكه په معاملاتو كي دا ډول شيان جائز وه او اوس دا منسوخ سوي دي.

د حديث د آخري جملې (يو صاع خرما وي دي وركړي مگر غنم دي نه وركوي) په دې باره كي علامه ابن حجر شافعي رحمه الله وايي چي ددې څخه معلومه سوه چي د څاروي په بېرته وركولو سره د هغه د شېدو په عوض كي د خرماوو څخه پرته بل شی وركول جائز نه دي كه څه هم پلورونكی د هغه شي پر اخيستلو باندي راضي وي ، ددې وجه داده چي د عربو د غذا زيات تعلق د خرما او شېدو سره وو ځكه د شېدو پر ځای خرماوي تاكل سوي دي مگر ځيني حضرات وايي كه چيري پلورنكی راضي وي نو د خرماوو څخه پرته د بل شی وركول هم صحيح دي.

﴿۲۷۴﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَلَقَّوُا الْجَلَبَ فَمَنْ تَلَقَّاهُ فَاشْتَرَى مِنْهُ فَإِذَا أَتَى سَيِّدُهُ السُّوقَ فَهُوَ بِالْخِيَارِ . رواه مسلم .

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :تاسو د غلې د راوړونكي قافلې مخكي مه سره يو ځاي كيږي كه چيري تاسو ور سره يو ځاي سي او غله ځيني را نيسئ نو بيا د غلې مالک و بازار ته را سي نو هغه ته د بيع د قائم ساتلو او فسخه كولو اختيار سته (يعني كه يې خوښه وي خرڅه دي يې كړي او كه يې خوښه نه وي نو نه دي يې خرڅوي) (مسلم)

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۴\ ۳۷۳، رقم: ۱۷- ۱۵۱۹.

**د لغاتو حل**: الجلب: اى المجلوب من ابل وبقر وغنم.

**تشريح**: لفظ د جلب او لفظ د ركبان چي په تېر حديث كي نقل سوی وو د دواړو يوه معنی ده او د هغه وضاحت د تېر حديث په تشريح كي تېر سوی دی، علماء وايي چي ددغه ممانعت تعلق د هغه صورت سره دی كله چي راتلونكو تجارانو ته په لاره كي د رانيولو په وجه ښاريانو ته تاوان او ضرر ورسيږي او رانيونكی د ښار او بازار د قيمت په پټ ساتلو سره تجارانو ته دوكه وركړي ، كه چيري ښاريانو ته تاوان ونه رسيږي او نه رانيونكی د تجارانو څخه د ښار قيمت پټوي او نه د هغه سره دوكه كوي نو په دغه صورت كي به دا ممانعت نه وي.

په حديث كي چي د كوم اختيار ذكر سوی دی د هغه په اړه شافعيه حضرات وايي چي كله مالک (يعني د دباندي څخه مال راوړونكی تجار) ښار ته راسي او هغه ته دا معلومه سي چي

رانیونکی د ښار په نسبت مال ارزانه رانیولی دی نو په دغه صورت کي به هغه ته اختیار وي که د بیع په فسخ کولو سره خپل مال بېرته واخلي او که بیع باقي وساتي ، که چیري هغه ته دا معلومه وي چي رانیونکی د ښار د قیمت څخه ګران رانیولي دي یا د ښار د قیمت سره سم یې رانیولي وي نو بیا په دغه صورت کي به تجار ته اختیار نه وي .

په دغه مسئله کي د فقه حنفي د کتابو څخه معلومیږي چي تجار ته دا ختیار هغه وخت حاصل دی کله چي هغه ته ښار ته د راتلو څخه وروسته معلومه سي چي رانیونکی د هغه سره دوکه کړې ده او که داسي نه وي نو هغه ته بیا دا اختیار حاصل نه دی .

﴿۲۷۲۵﴾ : وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَلَقَّوْا السِّلَعَ حَتَّى يُهْبَطَ بِهَا إِلَى السُّوقِ . متفق عليه .

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل :تا سو د سامان راوړو والاو مختته مه سره یو ځاي کیږئ او تر هغه وخته پوري د هغه مال مه رانیسي چي تر څو پوري هغه په مارکیټ کي خپل مال نه وي تا کړي .(بخاري او مسلم)

**تخريج** : البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴\ ۳۷۳، رقم: ۲۱۶۵، ومسلم ۳\ ۱۱۵۶، رقم: ۱۴- ۱۵۱۷.

## د یو چا په معامله کي مه ور ګډیږئ

﴿۲۷۲۶﴾ : وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَبِعْ الرَّجُلُ عَلَى بَيْعِ أَخِيهِ وَلَا يَخْطُبْ عَلَى خِطْبَةِ أَخِيهِ إِلَّا أَنْ يَأْذَنَ لَهُ . رواه مسلم .

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : تر څو چي یو چا ته د دې خبري اجازت ور نه کړل سي هیڅوک دي د خپل ورور په بیع کي خپل مال نه خرڅوي او نه دي د خپل ورور د نکاح د پېغام سربېره خپل پېغام لیږي . (مسلم)

**تخريج** : مسلم في الصحيح ۲\ ۱۰۳۲، رقم: ۵۰- ۱۴۱۲.

**تشريح** هیڅوک دي د خپل ورور پر بیع باندي بیع نه کوي : د دې وضاحت د حضرت ابو هریره رضی الله عنه د روایت په ضمن کي تېر سوی دی ، د حدیث د دوهمي برخي مطلب دادی که چیري یو سړی یوې ښځي ته د نکاح پیغام لیږلی وي نو اوس د بل چا لپاره دا جائز نه ده چي هغه هم هغه ښځي

ته د نکاح پیغام ولیږي مگر دا ممانعت په هغه صورت کي دی کله چي دواړي خواوي د مهر پر یو ټاکلي مقدار باندي راضي سوي وي او ټول معاملات یې فیصله کړي وي او یوازي نکاح کول یې پاته وي.

د حدیث د آخري برخي مطلب دادی چي د یو چا د رانیولو او پلورلو په معاملاتو کي یا د نکاح په پیغام کي د مداخلت نه کولو حکم تر هغه وخته پوري دي تر څو چي دواړي خواوي معامله ترک نه کړي مثلاً که صاحب معامله دا ووایي چي زه دا شی نه رانیسم او ته یې رانیسه یا د هغه ښځي سره زه نکاح نه کوم ته خپل پیغام ور واستوه نو په دغه صورت کي هغه شی رانیول یا د نکاح پیغام استول جائز دي.

﴿۲۷۲۷﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَسُمُ الرَّجُلُ عَلَى سَوْمِ أَخِيْهِ الْمُسْلِمِ. رواه مسلم.

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: هیڅوک دي د خپل مسلمان ورور په مقابله کي (یعني کله چي فریقین په بیع راضي سوي وي) د یو شی قیمت دي نه لګوي. (مسلم)

**تخریج**: مسلم في الصحیح ۳\ ۱۱۵۴، رقم: ۹- ۱۵۱۵.

**تشریح** دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي پلورنکی او رانیونکی دواړه پر یوه قیمت باندي راضي سوي وي نو اوس بل چا ته پکار نه دي چي د هغه شی د رانیولو اراده وکړي او د زیات قیمت په ورکولو سره د هغوی معامله خرابه کړي، داسي کول مکروه دي که څه هم بیع صحیح کیږي.

علامه ابن حجر رحمة الله علیه فرمایي چي په دې باره کي د مسلمان په حکم کي ذمي (غیر مسلم) چي په اسلامي هیواد کي وي او جزیه ادا کوي او معاهد (چي د هغه سره د یو مسلمان معاهده وي) او مستامن (چي د یو مسلمان په پناه کي وي) هم داخل دي.

## ښاري سړی دي د صحرائي مال نه پلوري

﴿۲۷۲۸﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَبِعْ حَاضِرٌ لِبَادٍ دَعُوا النَّاسَ يَرْزُقُ اللّٰهُ بَعْضَهُمْ مِنْ بَعْضٍ. رواه مسلم.

د حضرت جابر ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : ښاري دي د صحرائي مال نه خرڅوي هغوی دي پر خپل حال پرېږدي دا چي الله تعالي ځينو ته په ځينو رزق ورکوي .(مسلم)

**تخریج**: مسلم في الصحیح ۳\۱۱۵۷، رقم: ۲۰- ۱۵۲۲.

**تشریح**: د حدیث د آخري جملې مطلب دادی چي د کلي خلک پر خپل حال پرېږدئ چي هغوی د دباندي څخه د غلې په راوړلو سره په ښار کي په ارزانه قیمت و پلوري او همدارنګه هغوی د ښاریانو په رزق کي د پراختیا باعث سي ، د پاته حدیث وضاحت د حضرت ابوهریره ﷛ د روایت په تشریح کي تېر سوی دی .

## بیله صورت او منابذت بیع

﴿۲۷۲۹﴾ : وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ نَهَى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو سعید خدري ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ منعه فرمایلې ده

عَنْ لِبْسَتَيْنِ وَعَنْ بَيْعَتَيْنِ نَهَى عَنِ الْمُلَامَسَةِ وَالْمُنَابَذَةِ فِي الْبَيْعِ وَالْمُلَامَسَةُ

د دوو ډولو لباسو څخه او د دوو ډولو بیعو څخه یعني ملامست او منابذت څخه . ملامست

لَمْسُ الرَّجُلِ ثَوْبَ الْآخَرِ بِيَدِهِ بِاللَّيْلِ أَوْ بِالنَّهَارِ وَلَا يُقَلِّبُهُ إِلَّا بِذَلِكَ

دادی چي کالي ته په ورځ یا شپه کي یوازي لاس ور وړي په پرا نستلو سره یې ونه ګوري او بیعه پوره سي .

وَالْمُنَابَذَةُ أَنْ يَنْبِذَ الرَّجُلُ إِلَى الرَّجُلِ بِثَوْبِهِ وَيَنْبِذَ الْآخَرُ ثَوْبَهُ وَيَكُونَ ذَلِكَ

او منابذه داده چي خرڅونکي کالي خریدار ته ور وغورځوي او خریدار هغه را پورته کړي خرڅونکي و لور ته یې وغورځوي او د پرانستلو لېدو څخه پرته

بَيْعَهُمَا عَنْ غَيْرِ نَظَرٍ وَلَا تَرَاضٍ وَاللِّبْسَتَيْنِ اشْتِمَالُ الصَّمَّاءِ وَالصَّمَّاءُ أَنْ

بیع کامله سي خواه فریقین راضي وي او که نه .او د دوو ډولو لباس څخه نبي کریم ﷺ منعه کړېده یو خو د ې څخه مراد د ((صفاء)) طریقه ده چي

يَجْعَلَ ثَوْبَهُ عَلَى أَحَدِ عَاتِقَيْهِ فَيَبْدُو أَحَدُ شِقَّيْهِ لَيْسَ عَلَيْهِ ثَوْبٌ وَاللِّبْسَةُ

په یو اوږد ټوکر وا چول سي او بل اړخ یې لڅ پاته سي لکه په ځینو وختو کي د قمیص په لستوڼي کي دننه اوږې ته نژدې پلیټ اچوي او هغه پلیټ د یو جلا ټوکر شکل لري یا د دې په شان بل صورت

الْأُخْرَى احْتِبَاؤُهُ بِثَوْبِهِ وَهُوَ جَالِسٌ لَيْسَ عَلَى فَرْجِهِ مِنْهُ شَيْءٌ. متفق علیه

او د ((صماء)) یوه بله معني دا هم ده چي ټوکر د سر څخه تر پښو پوري داسي په بدن چاپېره کړي چي لاس پښه او مخ وغیره یې پټ وي او دویمه طریقه د لباس کوم چي ممنوع ده داده چي ټوکر په بدن داسي وپېچي چي کله کښېني نو شرمګاه یې ښکاره سي. (بخاري او مسلم)

**تخریج**: البخاري في الصحیح (فتح الباري): ۱۰\۲۷۸، رقم: ۵۸۲۰، ومسلم ۳\۱۱۵۲، رقم: ۱۵۱۲.

**تشریح**: د ملامست (یعني لاس وروړلو) طریقه دا وه چي یو سړی به د یو شی د رانیولو لپاره تلی نو هغه شي ته به یې لاس وروړی هغه شي ته په لاس وروړلو سره به بیع وسوه، نه به ایجاب او قبول وو چي دکاندار به دا ویل چي ما پر تا دا شی وپلوری او رانیونکی به دا ویل چي ما ستا څخه دا شی را نیوی او نه به فعلي راکړه ورکړه کېدل چي دکاندار به په رضا او رغبت په پټه خوله سره هغه شی ورکوی او رانیونکی به د هغه قیمت ادا کوی بلکه د رانیولو هغه شی به په لاس سره مس کېدل کافي ګڼل کېدل.

علامه طیبي رحمة الله علیه د حدیث د الفاظو (لا یقلبه الا بذالک): هغه به یې په خلاصولو او اړولو را اړولو سره نه کتی: د دې مطلب یې دا بیان کړی دی چي ټوکر پرته د مس کولو څخه نه واړوي او را واړوي یعني پکار خو داده چي ټوکر خلاص کړل سي او په ښه ډول وکتل سي مګر په بیع ملامست کي به نه خلاصېدل او نه به کتل کېدل البته هغه به یې یوازي مس کړل، ظاهره ده چي د یو شی په محض مس کولو سره د هغه د خلاصولو او کتلو درجه نه تر لاسه کېږي.

په هر حال ملامست د جاهلیت په زمانه کي د رانیولو او پلورلو یو خاص طریقه وه چي یو چا به د یو بل چا ټوکر یا بل شي ته لاس وروړی نو بیع به وسوه نه به یې هغه کتل او نه به یې شرط خیار کوی که د هغه د کتلو څخه وروسته به یې وغوښتل چي وه به یې ساتل او که نه نو بېرته به یې ورکړه دا بالکل یوه غلطه طریقه وه ځکه رسول الله ﷺ د دې څخه منع وفرمایل.

د منابذت صورت دا وو چي دواړو خواوو به په خپلو کي یو بل ته ټوکر ورغورځوی نو بیع به وسوه د مبیع د کتلو ضرورت به یې نه محسوس کوی دا هم د جاهلیت په زمانه کي د رواجي بیع یوه طریقه وه نو د دې څخه هم منع وفرمایل سول.

د صماء یوه معنی خو هغه ده کوم چي په ترجمه کي بیان سوې ده مګر ددې زیات واضح او مشهور مفهوم دادی چي یو څوک یو ټوکر واخلي او هغه د سر څخه تر پښو پوري پر خپل بدن داسي وپیچي چي دواړه لاسونه هم په هغه کي دننه وي او د بدن هیڅ یو برخه د باندي نه وي ، ظاهره ده چي داسي سړی بالکل مفلوج او بېکاره پاته کیږي ځکه رسول الله ﷺ ددې څخه منع وفرمایل .

دوهمه اغوستنه چي د هغه څخه رسول الله ﷺ منع فرمایلې ده داده چي یو سړی پر ټوټو کښیني او دواړه زنګنونه ودروي او بیا د خپلو زنګنونو او ملا څخه کپړه داسي و پیچي چي ستر يې خلاص وي ، رسول الله ﷺ ددې څخه ځکه منع وفرمایل چي په دې کي د ستر پټېدل نه کیږي که یو څوک په پورتني صورت کي ټوکر پر ځان داسي وپیچي چي د هغه ستر پټ وي نو بیا دا ممانعت نه سته .

## د بیع حصاة او بیع غرر منع

﴿۲۷۳۰﴾ : وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ نَهَى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ الْحَصَاةِ وَعَنْ بَيْعِ الْغَرَرِ . رواه مسلم

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د بیع حصاة(مثلا یو خرڅونکي و خریدار ته ووایي چي څومره ډبره چي ستا ولاړه سي هغومره مځکه در کوم) او بیع غرر(او بیع غرر داده چي شی يې په قبضه کي نه وي او نه يې دهغه قدرت ولري چي خرڅ يې کړي مثلا د دریاب ماهیان او یا د هوا مرغان یا تښتېدلي غلام وغیره) څخه منعه فرمایلې ده .(مسلم)

**تخریج** : مسلم في الصحیح ۳\۱۱۵۳ ،رقم: ۴- ۱۵۱۲.

**تشریح** د بیع حصات صورت دادی چي رانیونکی دوکاندار ته وایي چي کله زه ستا دغه شی په ډبره وولم نو پوه سه چي بیع واجب سوه یا دکاندار رانیونکي ته ووایي چي ما په خپلو شیانو کي هغه شی پر تا و پلوری چي پر هغه باندي ستا ویشتل سوې ډبري ولګیږي یا ما دا مځکه تر هغه ځایه پوري پر تا وپلورل تر کوم ځای پوري چي ستا غورځول سوې ډبره ورسیږي د بیع دغه طریقه د جاهلیت په زمانه کي رواج وه رسول الله ﷺ ددې څخه منع وفرمایل .

بیع غرر هغه بیع ته وایي چي په هغه کي مبیع مجهول د یا پلورنکي د قدرت څخه وتلی وي لکه هغه ماهی پلورل چي په دریاب کي وي یا په هواء کي د الوتونکي مرغه پلورل او یا د

تبنتېدلي غلام پلورل .

## د بيع حبل الحبلة منع

﴿۲۷۳۱﴾ : وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دى چې رسول الله ﷺ منعه فرمايلې ده د خرڅولو څخه

حَبَلِ الْحَبَلَةِ وَكَانَ بَيْعًا يَتَبَايَعُهُ أَهْلُ الْجَاهِلِيَّةِ كَانَ الرَّجُلُ يَبْتَاعُ الْجَزُورَ

د حمل په حمل د او دا يوه بيعه وه چې د جاهليت په زمانه كې د دې رواج وو يعني يو سړى به اوښه په دې شرط را نيول چې د دې د نس څخه بچى پيدا سي

إِلَى أَنْ تُنْتَجَ النَّاقَةُ ثُمَّ تُنْتَجُ الَّتِي فِي بَطْنِهَا . متفق عليه .

او بيا د هغه بچي د نس څخه بچى پيدا سي نو بيا به د هغې اوښې قيمت ادا كوم . (بخاري او مسلم)

**تخريج** : البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴\۳۵۶، رقم: ۲۱۴۳، ومسلم ۳\۱۱۵۳، رقم: ۵- ۱۵۱۴.

**تشريح** د شاروي د حمل د بيع مطلب دا دى چې مثلا د يوې اوښې په نس كي بچى وي او س د هغه مالک د رانيونكي سره داسي معامله وكړي چې د دغه اوښې په نس كي كومه اوښه پيدا سي او هغه اوښه چي كوم بچى راوړي زه د هغه بيع كوم د دې څخه رسول الله ﷺ منع وفرمايل ځكه چي دا د يو معدوم شى يعني د هغه بچي بيع ده چي تر اوسه لا پيدا سوى نه دي .

ظاهره ده چي كله د شاروي حمل پلورل جائز نه دي نو د هغه د بچي بيع به څرنګه جائز وي چي د هغه حمل د حمل څخه به پيدا كيږي .

د ځينو حضراتو په نزد د بيع الحبل الحبلة مطلب دا دى چي يو سړى خپل حامله اوښه په دغه وعده سره وپلوري چي د هغه قيمت به هغه وخت ادا كيږي كله چي هغه بچى راوړي ، حضرت ابن عمر رضي الله عنه دا مطلب اخيستى دى لكه څرنګه چي د روايت په آخر كي وكان مبيعا الخ څخه هغه خپل وضاحت كړى دى .

## د نر پر مادې پرېښودو مزدوري

﴿۲۷۳۲﴾ : وَعَنْهُ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ عَسْبِ الْفَحْلِ .

رواه البخاري.

د حضرت ابن عمر ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ نر پر ماده د پرېښودو (د ختو) د اجرت اخيستو څخه منعه فرمايلې ده. (بخاري)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴\۴۶۱، رقم: ۲۲۸۴.

**تشريح**: نو څاروی که اوښ وي که آس او که بل يو څاروی هغه پر نر باندي د پرېښودو لپاره چا ته ورکول او د هغه مزدوري اخيستل منع دي ځکه چي په دې کي د يو داسي کار مزدوري اخيستل لازميږي چي د هغه دوقوع کېدل متعين نه دي په دې توګه چي نر څاروی کله پر هغه وخېژي او کله و نه خيژي همدارنګه ښځينه څاروی کله حامله سي او کله نه سي ځکه اکثر صحابه کرامو او فقهاؤ د هغه مزدوري حرامه ګرځولې ده.

مګر د نر حيوان پر ښځينه حيوان باندي د خيژلو لپاره عاريتا ورکول مستحب دي البته د عاريتا ورکولو څخه وروسته که د ښځينه حيوان مالک د خپل طرف څخه هغه ته د انعام په توګه يو څه ورکړي نو د هغه قبلول صحيح دي.

## د اوبو خرڅولو منع

﴿۲۷۳۳﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ ضِرَابِ الْجَمَلِ وَعَنْ بَيْعِ الْمَاءِ وَالْأَرْضِ لِتُحْرَثَ. رواه مسلم.

د حضرت جابر ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ اوښ په اوښه د ختلو د اجرت څخه او له خرڅولو د اوبو څخه او د مځکي څخه چي کرل کيږي منع فرمايلې ده. مسلم.

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۳\۱۱۹۷، رقم: ۳۵-۱۵۶۵.

**تشريح**: د مځکي او اوبو د کښت لپاره د پلورلو مطلب دادی چي يو سړی خپل مځکه او هغه اوبه چي د هغه مځکي سره متعلق وي يو سړي ته په دې شرط ورکړي چي د غه مځکه او اوبه زما دي او تخم او مزدوري ستا ده مځکه چي ته وکرې نو د هغه څخه چي څه په لاس راسي د هغه دومره برخه مثلا دريمه يا څلورمه برخه زه اخلم دې ته مخابرت وايي د مخابرت په باره کي تفصيلي حکم د حضرت جابر ﷺ د روايت په تشريح کي تېر سوی دی.

## د ضرورت څخه د زیاتو اوبو خرڅولو منع

﴿۲۷۳۴﴾: وَعَنْهُ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ فَضْلِ الْمَاءِ. رواه مسلم.

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د هغو اوبو د خرڅولو څخه منعه فرمایلې ده کوم چي تر خپل ضرورت زیاتي وي. (مسلم)

**تخریج**: مسلم في الصحیح في الموضع السابق. رقم ۳۴- ۱۵۶۵.

**تشریح**: یعني که چیري د یو چا په ملکیت کي دومره اوبه وي چي د هغه د اړتیا پوره کولو څخه وروسته پاته کیږي او نور خلک هغه اوبو ته اړ وي نو هغه پاته سوي اوبه منع کول او پر اړو کسانو باندي پلورل جائز نه دي بلکه هغه اوبه مفت ورکول پکار دي مګر دا حکم په هغه صورت کي دی چي د هغه خلکو د ضرورت تعلق د هغه اوبو د څښلو یا څارویو ته د ورکولو سره وي که یو سړی د خپل کښت یا درختو اوبه کولو لپاره هغه اوبه غواړي نو بیا د مالک لپاره جائز ده چي پر هغه اوبو باندي معاوضه واخلي.

﴿۲۷۳۵﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُبَاعُ فَضْلُ الْمَاءِ لِيُبَاعَ بِهِ الْكَلَأُ. متفق علیه.

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: زیاتي اوبه دي په دې خیال نه خرڅیږي چي د دې په ذریعه وابنه خرڅ کړل سي. (بخاري او مسلم)

**تخریج**: البخاري في الصحیح (فتح الباري): ۵\۳۱، رقم: ۲۳۵۳، ومسلم ۳\۱۱۹۸، رقم: ۳۸-۱۵۶۶

**تشریح**: د اوبو پلورلو سره د وابنو پلورل داسي لازمیږي چي مثلا یو سړی د بل چا د اوبو پر شاوخوا خپل څاروي څروي او ظاهره ده چي هغه څاروي به د څړېدو څخه وروسته اوبه خامخا څښي مګر د اوبو مالک د بل چا څارویو ته بېله قیمته اوبه نه ورکوي ځکه لامحاله هغه سړی به په دې مجبور وي چي اوبه رانیسي او خپل څاروي په اوبه کړي همدارنګه د اوبو پلورل به په اصل کي د وابنو پلورل وي او دا معلومه ده چي وابنه پلورل جائز نه دي.

د علماؤ په دې کي اختلاف دی چي دغه منع تحریمي ده که تنزیهي، ځیني د تحریمي قائل دي او ځیني د تنزیهي مګر صحیح خبره داده چي دا منع تنزیهي ده.

## د چم کولو څخه ځان وساتئ

﴿۲۷۳۶﴾: وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ عَلَى صُبْرَةِ طَعَامٍ فَأَدْخَلَ يَدَهُ فِيهَا فَنَالَتْ أَصَابِعُهُ بَلَلًا فَقَالَ مَا هَذَا يَا صَاحِبَ الطَّعَامِ قَالَ أَصَابَتْهُ السَّمَاءُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ أَفَلَا جَعَلْتَهُ فَوْقَ الطَّعَامِ كَيْ يَرَاهُ النَّاسُ مَنْ غَشَّ فَلَيْسَ مِنِّي . رواه مسلم

د حضرت ابو هريره ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د غلې د يوې کوټي سره تير سو او په هغه کوټه کي يې لاس دننه کړ نو نبي کريم ﷺ يو څه لوندوالي محسوس کړ وروسته يې د غلې مالک ته وويل: دا څه دي؟ هغه وويل يا رسول الله ﷺ! په دې باندي باران اورېدلي دي نو نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل: لنده غله دي ولي سربېره نه ايښوله چي خلکو هغه ليدلې وای بيا يې وفرمايل: چا چي چم او فريب وکړ هغه زموږ څخه نه دی . (مسلم)

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۱\۹۹، رقم: ۱۶۴ - ۱۰۲.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

## د بيع ثنيا منع

﴿۲۷۳۷﴾: عَنْ جَابِرٍ قَالَ اِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنِ الثُّنْيَا اِلَّا اَنْ يُّعْلَمَ . رواه الترمذي .

د حضرت جابر ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د ثنايا څخه منعه کړې ده مګر نه چي مقدار معلوم کړي . (ترمذي)

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\۵۸۵، رقم: ۱۲۹۰.

**تشريح** که يو څوک د خپل يو شي د پلورلو پر وخت دا ووايي چي ما د غه شي پر تا باندي وپلوری مګر ددې څخه يو برخه ما نه ده پلورلې نو په مبيع کي د يو برخي استثناء کولو ته ثنيا ويل کيږي شارع ددې څخه منع فرمايلې ده ځکه چي په دې کي يو مقدار تيا کل سوی نه دی مګر که چيري د مبيع يو مقدار معين کړي او مستثنی کړل سي مثلا پلورنکی داسي ووايي چي ما پر

تا باندي دغه شی وپلوری مگر ددې دومره مقدار مثلا څلورمه برخه یا دریمه یا دومره سیره یا دوه منه ما دځان لپاره مستثنی کړي دي نو دا جائز دي .

## میوې او کښت د پختیا وروسته خرڅوئ

﴿۲۷۳۸﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ نَهٰي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ

: حضرت انس رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د انگورو د خرڅولو څخه تر څو پوري چي

الْعِنَبِ حَتَّى يَسْوَدَّ وَعَنْ بَيْعِ الْحَبِّ حَتَّى يَشْتَدَّ هكذا رواه الترمذي و

تور نسي منعه فرمایلې ده (یعني تر څو پوري چي پاخه نسي)او د غلې د خرڅولو څخه یې منعه فرمایلې ده تر څو چي پخه سوې نه وي .(ترمذي

ابوداؤد عن انس والزيادة التي في المصابيح وهي قوله نهى عن بيع التمر حتى تزهو انما ثبتت في روايتهما عن ابن عمر قال نهى عن بيع النخل حتى تزهو وقال الترمذي هذا حديث حسن غريب .

ابو داؤد )او په مصابیح کي دا خبره اضافه سوې ده چي نبي کریم ﷺ دا هم فرمایلي دي چي تر څو خرماوي سرې سوي نه وي او د حضرت عبدالله بن عمر څخه دا هم ثابتیږي هغه وویل : چي رسول الله ﷺ د خرماؤ د خرڅولو څخه تر هغه وخته پوري منعه فرمایلې ده تر څو پوري چي هغه سرې او ژړي سوي نه وي . او ترمذي کي دا حدیث غریب گڼل سوي دي .

**تخریج**: الترمذي في السنن ۳\ ۵۳۰، رقم: ۱۲۲۸، وابوداود في السنن ۳\ ٦٦٨، رقم: ۳۳۷۱. ومصابيح السنة ۴\ ۳۲۴، رقم: ۲۰۷۲.

**تشریح** د روایت په آخر کي د مشکوة مؤلف د مصابیح پر مؤلف امام بغوي رحمۃ اللہ علیہ باندي دوه اعتراضونه کړي دي اول خو دا چي په روایت کي د ذکر سوو زیاتو الفاظو ناقل هغه حضرت انس رضی اللہ عنہ بښوولی دی حال دا چي دغه الفاظ د حضرت ابن عمر رضی اللہ عنہ څخه منقول دي دوهم دا چي هغه په دغه زیاتو الفاظو کي بیع التمر نقل کړې ده حال دا چي په اصل روایت کي بیع النخل دی .

تا باندي دغه شی وپلوری مگر ددې دومره مقدار مثلا څلورمه برخه يا دريمه يا دومره سيره يا دوه منه ما دځان لپاره مستثنی کړي دي نو دا جائز دي.

## میوې او کښت د پختیا وروسته خرڅوئ

﴿۲۷۳۸﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ نَهٰي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د انګورو د خرڅولو څخه تر څو پوري چي

الْعِنَبِ حَتّٰى يَسْوَدَّ وَعَنْ بَيْعِ الْحَبِّ حَتّٰى يَشْتَدَّ هكذا رواه الترمذي و

تور نسي منعه فرمايلې ده (يعني تر څو پوري چي پاخه نسي) او د غلې د خرڅولو څخه يې منعه فرمايلې ده تر څو چي پخه سوې نه وي. (ترمذي

ابوداؤد عن انس والزيادة التي في المصابيح وهي قوله نهى عن بيع التمر حتى تزهو انما ثبتت في روايتهما عن ابن عمر قال نهى عن بيع النخل حتى تزهو وقال الترمذي هذا حديث حسن غريب.

ابو داؤد) او په مصابيح کي دا خبره اضافه سوې ده چي نبي کريم ﷺ دا هم فرمايلي دي چي تر څو خرماوي سرې سوي نه وي او د حضرت عبدالله بن عمر څخه دا هم ثابتيږي هغه وويل: چي رسول الله ﷺ د خرماؤ د خرڅولو څخه تر هغه وخته پوري منعه فرمايلې ده تر څو پوري چي هغه سرې او ژړې سوي نه وي. او ترمذي کي دا حديث غريب ګڼل سوي دي.

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\ ۵۳۰، رقم: ۱۲۲۸، وابوداود في السنن ۳\ ۶۶۸، رقم: ۳۳۷۱. ومصابيح السنة ۴\ ۳۲۴، رقم: ۲۰۷۲.

**تشريح** د روايت په آخر کي د مشکوة مؤلف د مصابيح پر مؤلف امام بغوي رحمه الله باندي دوه اعتراضونه کړي دي اول خو دا چي په روايت کي د ذکر سوو زياتو الفاظو ناقل هغه حضرت انس رضي الله عنه بنوولی دی حال دا چي دغه الفاظ د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه منقول دي دوهم دا چي هغه په دغه زياتو الفاظو کي بيع التمر نقل کړې ده حال دا چي په اصل روايت کي بيع النخل دي.

## پور په پور سره د خرڅولو منع

﴿۲۷۳۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنْ بَيْعِ الْكَالِئِ بِالْكَالِئِ. رواه الدار قطني.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دى چي نبي كريم ﷺ قرض په قرض سره د خرڅولو څخه منعه فرمايلې ده. (يعني يو شى د يوې مقررې مودې پورې په قرض خرڅول بيا په وعده د قيمت څخه د حاصلېدو په خاطر وروسته بيا هغه په څه قيمت د بل چا په لاس خرڅول ځكه په شى كي قبضه نه وي نو په دې وجه يې بيع ممنوع كړېده) (دار قطني)

**تخريج:** الدار قطني في السنن ۳\۷۱ - ۷۲، رقم: ۲۶۹ و ۲۷۰.

**د لغاتو حل:** الكالئ: اى النسيئة. (مُنجد)

**تشريح:** لفظ دكالئ په همزه سره ليكل كيږي او ويل كيږي او بېله همزې يعني كالي هم استعماليږي د واړه د كلاء څخه مشتق دي چي د هغه معنى د تاخير ده.

پور په پور د پلورلو صورت دادى چي يو سړى د يو چا څخه يو شى تر يو ټاكلي وخت پوري رانيسي او دا فيصله وسي چي رانيونكى به د هغه شي قيمت د راتلونكي مياشتي تر فلاني تاريخ پوري ادا كوي نو پلورنكى به هغه شى هغه ته وركړي خو كله چي هغه ټاكل سوى وخت راسي او هغه وخت هم رانيونكى د قيمت پر ادا كولو قادر نه وي نو پلورنكي ته دي دا ووايي چي اوس هغه شى تر نوي وخت پوري په څه زيات قيمت پر ما باندي خرڅ كړه مثلاً هغه شى يې په لس روپۍ رانيولى وو اوس دى ورته ووايي چي هغه شى پر ما باندي په يوولس روپۍ خرڅ كړه او د راتلونكي مياشتي پر فلاني تاريخ به يوولس روپۍ دركړم او پلورنكى دي ووايي چي ما پر تا باندي خرڅ كړ همدارنګه دغه معامله په خپلو كي د قبضې څخه پرته وسي كه چيري مبيع د پلورنكي سره وي او قيمت د رانيونكي سره او د رانيولو او پلورلو معامله وسي نو د داسي بيع كولو څخه رسول الله ﷺ منع فرمايلې ده ځكه چي دا يو داسي بيع ده چي په دې كي قبضه نه وي.

ځيني حضرات ددې يو بل صورت دا بيان كړى دى چي مثلاً د عمر سره د زيد يو ټوكر دى او د عمر پر ذمه د بكر لس روپۍ دي اوس زيد بكر ته ووايي چي زما سره كوم ټوكر دى هغه زه پر تا باندي د هغه لسو په بدله كي چي ستا پر ذمه دي خرڅوم زه به د عمر څخه لس روپۍ واخلم

ته د هغه څخه تپوکر واخله او بکر ووایي چي ما ته دا قبوله نه ده نو دا بیع هم ناجائز ده ځکه چي
په دې کي هم قبضه نه ستـه .

## د بیعانې مسئله

﴿۲۷۴۰﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللهِ
صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ الْعُرْبَانَ . رواه مالك وابوداؤد وابن ماجة .

حضرت عمرو بن شعیب رضي الله عنه دخپل پلار څخه او هغه د خپل پلار څخه روایت کړي دئ چي
رسول الله ﷺ د بیع عربان څخه منعه کړې ده . (د بیع عربان صورت دادي چي خریدار
خرڅونکي ته یو معمولي رقم په طور د بیعانه ورکړي او ورته ووایي که د بیعي معامله زما
او ستا په مینځ کي وسوه نو رقم به پکښي مجرا سي او که بیعه ونه سوه نو دا رقم به ستا سره
وي زه به یې بیرته واپس نه اخلم)(ابو داؤد ابن ماجه مالک)

**تخریج**: مالک في الموطا ۲\ ۶۰۹، رقم: ۱، وابوداود في السنن ۳\ ۷۶۸، رقم: ۳۵۰۲، وابن ماجه في السنن ۲\ ۷۳۸، رقم: ۲۱۹۲.

**تشریح**: د بیع عربان وضاحت دادی چي مثلا یو سړی د یو چا څخه یو شی رانیسي او
پلورونکي ته یو څه روپۍ مخکي ورکړي او داسي ووایي که دا معامله پوره سوه نو دغه روپۍ
به په قیمت کي ادا سي او که معامله پوره نه سوه په دې توګه چي زه د پوره قیمت د ادا کولو سره
هغه شی په خپله قبضه کي اخیستلای نه سم نو بیا دغه روپۍ به ستا سره پاته سي زه به یې بېرته
نه غواړم دې ته زموږ په اصطلاح کي بیعانه وایي رسول الله ﷺ ددې څخه منع فرمایلې ده ځکه
چي په شرعي توګه سره دا بیع باطل ده ، مګر ابن عمر رضي الله عنه او امام احمد رحمه الله ددې د جواز قائل
دي د حنفیه په نزد په دغه صورت کي جائز دی کله چي داسي ووایي که معامله پوره سي نو هغه
روپۍ به د پلورنکي حق وي په دې توګه چي هغه به په قیمت کي ادا سي او که معامله پوره نه
سي نو بیا هغه به د رانیونکي حق وي چي هغه روپۍ هغه ته بېرته ترلاسه سي .

## د بیع مضطر منع

﴿۲۷۴۱﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ نَهَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ الْمُضْطَرِّ
وَبَيْعِ الْغَرَرِ وَبَيْعِ الثَّمَرَةِ قَبْلَ أَنْ تُدْرِكَ . رواه ابوداؤد .

د حضرت علي ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د بیع مضطر او بیع غرر څخه او مېوه تر پخېدو مخکي خرڅولو څخه یې منعه فرمایلې ده. (دبیع مضطر څخه مراد دادي چي په زور سره د یو چا څخه شی اخیستل یا دا چي یو سړی مجبوره سي او خپل شی ارزانه خرڅ کړي). (ابو داؤد)

**تخریج**: ابوداود في السنن ۳\۶۷۶، رقم: ۳۳۸۲.

**تشریح** په بیع مضطر کي دبیع څخه مراد رانیول دي یعني رسول الله ﷺ ددې څخه منع فرمایلې ده چي د یو چا څخه په زور یو شی رانیول سي، د یو چا څخه په زور شی رانیول د بیع فاسد په حکم کي دی چي نه نافذ کیږي.

یا د مضطر څخه مراد محتاج دی چي د یو مصیبت په وجه د خپل سامان پر خرڅولو باندي مجبور وي مثلاً زید دیو چا پوروړی دی او د پور د ادا کولو لپاره هغه ته روپۍ پکار وي یا پر هغه باندي یو مشکل راغلی دی چي د هغه په وجه هغه د روپو سخت ضرورت دی او هغه د خپل ضرورت پوره کولو لپاره خپل مال او اسباب په ارزانه بیعه خرڅوي نو د چا لپاره دا مناسب نه دي چي د هغه د مجبورۍ څخه ناجائزه ګټه پورته کړي او د هغه سامان ارزانه رانیسي بلکه د مروت تقاضا داده چي د هغه مجبور او مضطر د مجبورۍ خیال وساتل سي د هغه مال په ارزانه قیمت نه رانیسي او په داسي وخت کي د هغه مرسته وکړل سي چي یا خو هغه ته یو څه روپۍ د پور په توګه ورکړل سي یا د هغه مال د اصل قیمت په عوض کي رانیول سي مګر ددې خبري خیال ساتل پکار دي چي په دغه صورت کي بیع فاسد نه وي بلکه صحیح به وي مګر په کراهت سره به صحیح وي. د بیع غرر وضاحت ددغه باب په تېرو صفحو کي تېر سوی دی. همدارنګه د پخېدو څخه مخکي د میوو د پلورلو تفصیل هم مخکي تېر سوی دی.

## د نر پر مادې پرېښودو مزدوري

﴿۲-۴۲﴾: وَعَنْ اَنَسٍ أَنَّ رَجُلًا مِنْ كِلَابٍ سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت انس ﷺ څخه روایت دی د کلاب د قبیلې یو کس نبي کریم ﷺ ته نر په ماده د

عَنْ عَسْبِ الْفَحْلِ فَنَهَاهُ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّا نُطْرِقُ الْفَحْلَ فَنُكْرَمُ فَرَخَّصَ لَهُ فِي الْكَرَامَةِ. رواه الترمذي.

پرېښېدو د اجرت په اړه پوښتنه وکړه نو نبي کریم ﷺ د دې د اجرت څخه منعه وفرمایله هغه وویل یا رسول الله ﷺ! موږ خپل نر حیوان پر ماده د پرېښېدو لپاره په عاریتا ورکوو (هغه یې نه غواړي موږ ته

ورکوو) بیا هغوی موږ ته د انعام په ډول یو څه را کوي رسول الله ﷺ د هغه انعام د اخیستلو اجازت ور کړ. (ترمذي)

**تخریج**: الترمذي في السنن ۳\ ۵۷۳، رقم: ۱۲۷۴.

**د لغاتو حل**: عَسب: ای اجارة مائه وضرابه.

## د غیر موجود شي پلورل

﴿۲۷۴۳﴾: وَعَنْ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ قَالَ نَهَانِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حکیم بن حزام رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ زه د هغه شي د پلورلو څخه منعه کړم

أَنْ أَبِيعَ مَا لَيْسَ عِنْدِي. رواه الترمذي و في رواية له و لابي داؤد والنسائي

کوم چي زما سره موجود نه وو. (ترمذي) او د ترمذي ابو داؤد او نسائي په یو بل روایت کي

قال قلت یا رسول الله یاتیني الرجل فیرید مني البیع و لیس عندي فابتاع له من السوق قال لا تبع ما لیس عندك.

دا الفاظ سته چي حکیم بن حزام رضی الله عنه وویل چي ما پوښتنه وکړه یا رسول الله ﷺ! یو سړی ماته را ځي او د رانیولو اظهار کوي او هغه شی زما سره موجود نه وي نو هغه شی زه د هغه لپاره د بازار څخه را نیسم نو نبي کریم ﷺ وفرمایل: کوم شی چي ستا سره نه وي هغه مه خرڅوه.

**تخریج**: الترمذي في السنن ۳\ ۵۳۴، رقم: ۱۲۳۳.

**تشریح** مطلب دا دی چي کوم شی د رانیولو او پلورلو پر وخت په خپل ملکیت کي نه وي د هغه پلورل نه دي پکار اوس دده دوه صورتونه کېدای سي اول خو دا چي هغه شی نه خو په خپل ملکیت کي وي او نه ورسره موجود وي په دغه صورت کي به د هغه شي بیع صحیح نه وي. دوهم دا چي هغه په خپل ملکیت کي نه وي او یو بل سړی د هغه مالک وي نو په دغه صورت کي هم د مالک د اجازې څخه پرته د هغه بیع صحیح نه ده او که د مالک د اجازې څخه مخکي د هغه بیع وکړل سي نو د امام ابو حنیفة، امام مالک او امام احمد د مذهب سره سم هغه بیع به د مالک پر منلو موقوف وي که هغه یې ومني نو بیع به صحیح سي او که یې ونه مني نو بیع به کالعدم سي. مګر امام شافعي رحمه الله فرمایي چي هغه بیع به صحیح نه وي که مالک یې مني او که یې نه مني.

د اول صورت په حکم کي د هغه شي بيع داخله ده چي پر هغه قبضه حاصله سوي نه وي يا هغه ورک سوی وي يا مفرور (تښتېدلی) وي لکه غلام وغيره يا هغه رانيونکي ته په حواله کولو باندي قادر نه وي لکه په هواء کي الوتونکی مرغه، او هغه ماهي چي تر اوسه د اوبو څخه راکښل سوی نه وي مګر ددې خبري بايد خيال وي چي دغه منع د بيع سلم څخه پرته په نورو صورتو کي ده ځکه چي بيع سلم د متعينه او معروفه شرطو سره په اتفاق د ټولو علماؤ جائز ده، بيع سلم او ددې د تفصيلي شرطونو ذکر به انشاء الله تعالی په باب السلم کي راسي.

## په يوه بيع کي دوې بيعي مه کوئ

(۲۷۳) وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعَتَيْنِ فِي بَيْعَةٍ. رواه مالك والترمذي وابوداؤد والنسائي.

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ په يوه بيعه کي د دوو بيعو څخه منعه فرمېلې ده (يعني په يوه معامله کي د دويمي بيعي معامله منعه کړې ده مثلا زيد يو اس په شل روپۍ په عمر باندي په دې شرط خرڅ کړ چي ته به خپله بيعه د پنځوسو روپو په بدل کي ما ته را کړې يا دا چي اس مي په لس روپي نقد او شل روپي قرض پر تا خرڅ کړ)(مالک ترمذي ابو داؤد نسائي)

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۲\ ۶۶۳، رقم: ۷۲، والترمذي ۳\ ۵۳۳، رقم: ۱۲۳۱، وابوداود ۳\ ۷۳۸، رقم: ۳۴۶۱. والنسائي ۷\ ۲۹۵، رقم: ۴۶۳۶.

**تشريح** په يوه بيع کي دوې بيعي: ددې دوه صورتونه کيدای سي يو خو دا چي يو سړی يو چا ته ووايي چي زه يو پسه د زرو روپو په عوض کي پر تا خرڅوم مګر شرط دادی چي ته خپل آس په پنځه سوه روپۍ پر ما خرڅ کړه داسي بيع کول صحيح نه ده.

دوهم صورت دادی چي يو سړی يو چا ته ووايي چي زه خپل آس پر تا باندي په پنځه سوه نقدو روپو او اووه سوه په پور خرڅوم دا هم ناجائز دي په شرط ددې چي د يو امر فيصله سوې نه وي او رانيونکي ته اختيار حاصل وي که غواړي چي هغه وخت په نيولو سره د نقدو روپۍ په ورکولو سره آس واخلي او که غواړي وروسته په اووه سوه روپۍ ورکولو سره هغه واخلي او که چيري يو امر فيصله سي او معامله مجمل نه وي يعني دا هغه وخت فيصله سي چي په نقدو مي رانيوی يا په پور مي رانيوی نو بيا دا معامله به صحيح وي.

﴿۲۷۴۵﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ جَدِّهٖ قَالَ نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعَتَيْنِ فِيْ صَفْقَةٍ وَّاحِدَةٍ. رواه في شرح السنة.

حضرت عمرو بن شعيب رحمه الله د خپل پلار او هغه د خپل پلار څخه نقل کوي چي رسول الله ﷺ په يوه عقد يا معامله کي د دوو بيعو څخه منعه فرمايلې ده. (شرح السنه)

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۸\ ۱۴۴، رقم: ۲۱۱۲.

**تشريح**: د دغه حديث او ذکر سوي حديث معنى يوه ده کومه تشريح چي د پورتني حديث سوې ده هغه تشريح د دغه حديث هم ده.

## بيع د پور سره مه ګډوئ

﴿۲۷۴۶﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَحِلُّ سَلَفٌ

عمرو بن شعيب رحمه الله د خپل پلار او هغه د خپل پلار څخه نقل کوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: بيع او قرض (يعني يو شی خرڅ هم سي او د قرض معامله هم ورسره وسي) جائز نه دي

وَبَيْعٌ وَلَا شَرْطَانِ فِيْ بَيْعٍ وَلَا رِبْحُ مَا لَمْ يُضْمَنْ وَلَا بَيْعُ مَا لَيْسَ عِنْدَكَ.

رواه الترمذي وابوداؤد والنسائي وقال الترمذي هذا حديث صحيح.

او په بيع کي دوه شرطونه کول هم صحيح نه دي او نه د هغه شی ګټه اخيستل چي مبيع در سره نه وي او نه خرڅول د هغه شي چي ستا سره نه وي. (ترمذي ابو داؤد نسائي) او په ترمذي کي راغلي دي چي دا صحيح دي.

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\ ۵۳۵، رقم: ۱۲۳۴، وابوداود في السنن ۳\ ۷۶۹، رقم: ۳۵۰۴، والنسائي ۷\ ۲۸۸، رقم: ۴۶۱۱، رقم: ۴۶۳۰.

**تشريح**: پور او بيع حلال نه دي: د دې مطلب دا دی چي د پور او بيع دوې جلا جلا معاملې د يو بل سره منسلک کول نه دي پکار مثلا يو سړی پر يو چا باندي په دې شرط يو شی خرڅ کړي چي ته ما ته دومره روپۍ په پور راکړه نو دا جائز نه ده يا دا معنى هم مراد کيدای سي چي يو سړی يو چا ته يو څو روپۍ د پور په توګه ورکړي او د هغه سره خپل يو شی پر هغه پوروړي باندي د اصل قيمت څخه په زيات خرڅ کړي نو دا حرام دی ځکه چي په دغه صورت کي ظاهره ده چي

رانيونكي د هغه شي زيات قيمت ځكه ادا كوي چي هغه د پلورنكي څخه پور اخيستى دى او دا بالكل صفا مسئله ده چي د كوم پور څخه ګټه تر لاسه سي نو هغه حرام دى دا د سود يوه څرګنده حيله ده ځكه ددې څخه پرهيز كول ضروري دي.

په بيع كي دوه شرطونه لګول صحيح نه دي : ددې مطلب دادى چي په يوه بيع كي دوې بيعي كول نه دي پكار چي د هغه وضاحت په پورتني حديث كي تېر سوى دى.

د هغه شي څخه ګټه اخيستل چي تر اوسه په خپل ضمان كي نه وي، ددې مطلب دادى چي يو سړى د يو چا څخه يو شى رانيسي مګر هغه شى هم د رانيونكى په قبضه كي نه وي راغلى په دغه وخت كي پلورنكى د هغه شي كرايه وصوله كړه اوس كه رانيونكى غواړي چي دغه شى ما رانيولى دى ځكه زما د رانيولو څخه وروسته ددغه شي كرايه د پلورنكي پر ذمه ده ، فرض كړه كه چيري هغه شى ضائع سي نو د هغه تاوان به پلورنكى پر غاړه اخلي او د رانيونكي څخه به هيڅ نه اخلي همدارنګه په هغه شي كي كه يو ګټه تر لاسه سوې وي نو هغه هم د پلورنكى حق دى د رانيونكي په هغه كي هيڅ حق نه ستهٔ.

## د قيمت په ادا كولو كي د سكې تبديلي جائز ده

﴿۲۶۷﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كُنْتُ أَبِيعُ الْإِبِلَ نقيع بِالدَّنَانِيرِ فَآخُذُ مكانها

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دى چي ما به په د نقيع په ځاى كي اوښان د دينارو په بدل كي

الدَّرَاهِمَ وَأَبِيعُ بِالدَّرَاهِمِ فَآخُذُ مكانها الدَّنَانِيرَ فَأَتَيْتُ النبي صَلَّى اللهُ

پلورل او د دينارو په ځاي مي درهم اخيستل او د درهمونو په عوض كي به مي خرڅول او دينار به مي پرې رانيوي زه د نبي كريم ﷺ په خدمت كي حاضر سوم

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرْتُ ذَالِكَ لَهُ فَقَالَ لَا بَأْسَ أَنْ تَأْخُذَهَا بِسِعْرِ يَوْمِهَا مَا لَمْ

او د دې حالت بيان مي ورته وكړنو نبي كريم ﷺ وفرمايل : په دې كي هيڅ تاوان نسته په شرط د دې چي درهم او دينار د بازار په رېبټ رانيول سي تر څو پوري چي

تَفْتَرِقَا وَبَيْنَكُمَا شَيْءٌ. رواه الترمذي و ابوداؤد والنسائي والدارمي.

تاسي يو د بله سره جلا سوي نه ياست .(يعني رانيونكي او پلورونكي پر هغه ځاي موجود وي) (ترمذي ابوداؤد نسائي دارمي)

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\ ۵۴۴، رقم: ۱۲۴۲، وابوداود ۳\ ۶۵۰، رقم: ۳۳۵۴، والنسائي ۷\ ۲۸۱، رقم: ۴۵۸۲، والدارمي ۲\ ۳۳۶، رقم: ۲۵۸۱.

**تشريح**: درهم او دينار د دوو سکو نومونه دي ، درهم د سپينو زرو وي او دينار د سرو زرو وي ، ددغه حديث څخه معلومه سوه که يو سړی د يو چا څخه يو شی د روپو په عوض کي رانيسي او د روپو په عوض کي اشرفۍ ورکړي يا يو شی د اشرفيو په عوض کي رانيسي او د اشرفيو په بدله کي روپۍ ورکړي نو جائز دي .

د هغه ورځي د قيمت قيد د استحباب په توګه دی يعني مستحب او مناسب دادي چي د هغه ورځي د قيمت خيال وساتل سي او کوم چي د فقهي د مسئلې تعلق دی نو دا جائز دي چي په کوم قيمت سره وغواړي هغه واخلي .

ستاسو په مينځ کي يو شی نه وي : دلته د يو شي څخه مراد مبيع يا قيمت او يا پر دواړو باندي قبضه نه کېدل دي، مطلب دادی چي درهم او دينار په خپلو کي بدلول په دې شرط جائز دی چي په کوم مجلس کي د رانيولو او پلورلو معامله وي په هغه مجلس کي دواړي خواوي پر خپل خپل شي باندي قابض سي چي د هغه پر خلاف کېدو کي د نقد بيع په پور سره لازم نه سي چي د رباء د يو شکل کېدو په وجه حرام دی ، د شيخ علي متقي رحمه الله په باره کي منقول دي چي هغه به په مکه مکرمه کي خپل خادم بازار ته استوی نو ددغه حديث سره سم هغه به په خاصه توګه سره دا نصيحت ورته کوی چي خبردارِ يو تر بله په معامله کولو کي لاس په لاس ورکول کوه چي په مينځ کي فرق واقع نه سي .

علامه ابن همام رحمه الله فرمايي چي درهم غير متعين دی ځکه که يو سړی دکاندار ته د يوه درهم په ښوولو سره ووايي چي ددغه په عوض کي فلانی شی پر ما خرڅ کړه نو د هغه درهم پر ځای بل درهم ورکول جائز دي په شرط ددې چي هغه دواړه درهمه په ماليت کي يو شان وي .

## د رسول الله ﷺ د يو بيعانې ذکر

﴿۲۷۴۸﴾: وَعَنِ الْعَدَّاءِ بْنِ خَالِدِ بْنِ هَوْذَةَ اَخْرَجَ كِتَابًا هٰذَا مَا اشْتَرٰى

د حضرت عدا بن خالد بن هوذه رضي الله عنه په تحرير کي ليکل سوي دي د نبي کريم ﷺ له لوري د عدا بن خالد بن هوذه په نوم بيع نامه ده

الْعَدَّاءُ بْنُ خَالِدِ بْنِ هَوْذَةَ مِنْ مُحَمَّدٍ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

(عدا بن خالد بن هوذه) د محمد ﷺ څخه يوه مينزه يا غلام را نيوي چي هغه (هغې) هيڅ

اشْتَرَى مِنْهُ عَبْدًا أَوْ أَمَةً لَا دَاءَ وَلَا غَائِلَةَ وَلَا خِبْثَةَ بَيْعَ الْمُسْلِمِ الْمُسْلِمَ .

رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب .

ناروغي نه درلوده او نه پکښي بل عيب وو او خباثت نه وو پکښې او په دې ډول يې خريد وکړ لکه چي يو مسلمان د بل مسلمان څخه خريد کوي. (او په ترمذي کي دا حديث غريب دي)

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\۵۲۰، رقم: ۱۲۱۶.

**د لغاتو حل**: لا داء: اى فيه من جنون وجذام و برص ونحوها. غائلة: كزنا وسرقة و شرب خمر.

**تشريح**: يو غلام يا يوه مينزه رانيسه: په دغه الفاظو کي لفظ د يا د راوي شک ظاهروي يعني د حديث راوي ته شک سوى دى چي هغه په بيعه کي غلام ليکل سوى وو که مينزه.

چي په هغه کي ناروغي نه سته: دلته د ناروغۍ څخه مراد جنون، جذام او داسي نور مضر ناروغۍ داخل دي، همدا رنګه په (څه بدي نه سته) دلته د بدۍ څخه مراد هغه عيب دى چي د رانيونکي د مال د تاوان او هلاکت سبب جوړ سي لکه د غلام غل کېدل يا تښتېدل.

او هيڅ خرابي نسته: ددې مطلب دادى چي د هغه په خلقت کي يو داسي خرابي نه سته چي د هغه څخه خراب اخلاق او افعال پيدا سي لکه د هغه ولد الزنا کېدل يا فاسق او درواغجن کېدل په آخري جمله کي چي يو مسلمان د يو مسلمان څخه رانيول کوي، په دغه جملې کي رعايت، خيرخواهۍ او د اسلام حقوقو ته اشاره سوې ده، مطلب دادى چي د اسلامي تعليم تقاضا داده چي يو مسلمان د بل مسلمان په لاس هره معامله او عقد کي رعايت، خير خواهي، مروت، همدردي او هغه حقوق چي د يو مسلمان پر بل مسلمان عائد کيږي د هغو پوره پوره لحاظ وساتل سي، په هر حال د پورتني تحرير خلاصه دا سوه چي دغه غلام ښه دى او يو عيب پکښي نه سته، او د رانيولو او پلورلو په معامله کي دواړي خواوي دي يو بل ته دوکه او فريب نه ورکوي.

امام ترمذي رحمه الله دغه حديث ته غريب ويلي دي ځکه چي دغه حديث د عباد ابن ليث د سند څخه پرته په بل هيڅ سند سره ثابت نه دى او د محدثينو په نزد عباد د حديث روايت کولو کي ضعيف شمېرل کيږي.

علماء کرام وايي چي رسول الله ﷺ د هجرت څخه وروسته د هيڅ شي بيع نه ده کړې او که

يو بيع يې كړې وي نو هغه به يو نادر كار وي مگر د هجرت څخه مخكي رسول الله ﷺ بيع او شراء دواړه كول.

په بخاري شريف كي دا حديث دي چي (هذا ما اشترى محمد رسول الله ﷺ من عداد بن خالد) ديعني دا هغه بيع ده چي عداد بن خالد سره د محمد رسول الله ﷺ د رانيولو په اړه وه، يعني د بخاري شريف ددغه حديث څخه دا معلومه سوه چي رانيونكي رسول الله ﷺ وو او پلورنكي عداد ابن خالد وو او حال دا چي دلته كوم روايت نقل سوی دی هغه ددې برعكس دی ځكه ددې څخه دا ثابتيږي چي عداء ابن خالد رانيونكی وو او رسول الله ﷺ پلورنكی. والله اعلم.

## نيلام كول جائز دي

﴿۲۷۴۹﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَاعَ حِلْسًا وَقَدَحًا

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ ديو ټاټ او يوې پيالې دخرڅولو اراده وكړه

فَقَالَ مَنْ يَشْتَرِي هَذَا الْحِلْسَ وَالْقَدَحَ فَقَالَ رَجُلٌ أَخَذْتُهُمَا بِدِرْهَمٍ فَقَالَ

او داسي يې وفرمايل: دا ټاټ او پياله څوك اخلي؟ يوه سړي وويل چي زه يې په يوه درهم اخلم

النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يَزِيدُ عَلَى دِرْهَمٍ فَأَعْطَاهُ رَجُلٌ دِرْهَمَيْنِ

فَبَاعَهُمَا مِنْهُ. رواه الترمذي وابوداؤد وابن ماجة.

نبي كريم ﷺ و فرمايل: د يوه درهم څخه زيات څوك خريدار سته؟ يوه سړي نبي كريم ﷺ ته دوه درهمه وركړل او نبي كريم ﷺ هغه دواړه وهغه نفرته وركړه. (ترمذي ابو داؤد ابن ماجه)

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\ ۵۲۲، رقم: ۱۲۱۸، وابوداود في السنن ۲\ ۲۹۲، رقم: ۱۶۱۴، وابن ماجه في السنن ۲\ ۷۴۰، رقم: ۲۱۹۸.

**د لغاتو حل**: حِلسا: وهو كساء يوضع على ظهر البعير تحت القتب لايفارقه.

**تشريح**: ددغه بيع اصل واقعه داسي ده چي يو سړي د رسول الله ﷺ په مخكي د سوال لاس وغزوی او دا خواهش يې وكړ چي رسول الله ﷺ هغه ته يو څه وركړي چي هغه خپل نس په موړ كړي، رسول الله ﷺ هغه ته وفرمايل ايا ستا سره يو څه سامان سته، هغه وويل چي يا زما سره هيڅ سامان نه سته مگر د ټاټ يوه ټوټه او يوه پياله سته، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل دغه دواړه شيان خرڅ كړه او د هغه قيمت چي په لاس درسي په هغه سره خپل نس موړ كړه ددې څخه

وروسته چي ستا سره هيڅ هم پاته نه سي نو بيا صدقه او خيرات غواړه ، نو هغه سړي دواړه شيان راوړل او رسول الله ﷺ په ذکر سوي طريقه سره هغه دواړه شيان خرڅ کړل (د بيع دغه صورت ته په عربي کي بيع من يزيد او خراج وايي او په شرعي توګه دا بيع صحيح ده) .

اوس پاته سوه دا خبره چي شارع ددې څخه منع کړې ده چي يو سړی د يو داسي شي قيمت ولګوي چي د هغه قيمت د يو بل چا له خوا لګول سوی وي نو دا بيع به په دغه صورت کي څرنګه جائز وي په دې باره کي د قيمت لګولو په هغه صورت کي کله چي پلورنکی او رانيونکي دواړه پر يوه قيمت راضي سي او معامله فيصله سوې وي نو په داسي صورت کي اوس د بل چا لپاره دا جائز نه ده چي هغه په دغه بيع کي مداخلت وکړي او د خپل طرف څخه هم د هغه شي قيمت لګول شروع کړي مګر دلته چي د بيع کوم صورت ذکر سوی دی د هغه نوعيت بالکل بل دی په دغه بيع کي د پلورنکي اراده دا وي چي يو څوک زيات قيمت ولګوي هغه ته به دغه شی ورکول کيږي نو په نيلام کي دا کيږي چي خلک د يو بل څخه زيات قيمت ولګوي د کوم چا چي آخري قيمت وي پر هغه به دغه شی پلورل کيږي .

دا حديث ددې خبري دليل دی چي معاطات يعني د پلورنکي شي ورکول او د رانيونکي قيمت ورکول کافي دي که څه هم هغوی دواړه په خوله سره هيڅ ونه وايي يعني په ژبه سره ايجاب او قبول نه وي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د عيب لرونکي شي په چم سره خرڅولو باندي وعيد

﴿۲۷۵۰﴾: عَنْ وَاثِلَةَ ابْنِ الْاَسْقَعِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت واثله ؓ بن اسقع څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اورېدلي دي

يَقُولُ مَنْ بَاعَ عَيْبًا لَمْ يُبَيِّنْهُ لَمْ يَزَلْ فِي مَقْتِ اللّٰهِ وَلَمْ تَزَلِ الْمَلَائِكَةُ تَلْعَنُهُ . رواه ابن ماجة .

کوم سړی چي عيب لرونکي شی خرڅ کړي او عيب يې ښکاره نه کړي نو هغه همېشه د غضب الهي ښکار کيږي او يا ملائکې همېشه ور باندي لعنت وايي . (ابن ماجه) .

# بَابُ فِي الْبَيْعِ الْمَشْرُوْطِ

**(د بیع مشروط بیان)**

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د میوه لرونکي درختي پلورل

﴿۲۷۵۱﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنِ ابْتَاعَ

د حضرت ابن عمر رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : څوک چي را نیسي

نَخْلًا بَعْدَ أَنْ تُؤَبَّرَ فَثَمَرَتُهَا للبائع إِلَّا أَنْ يَشْتَرِطَ الْمُبْتَاعُ وَمَنْ ابْتَاعَ عَبْدًا

د خرماوو ونې وروسته د تابیر (تابیر و دې ته وایي چي د نر خرما د ونې ګل د مادې خرما په ونه کي ولګوي نو د خدای تعالی په امر سره ډیر خرماوي کیږي) نو هغه مېوه د خرڅونکي ده (د رانیوونکي نه ده) خو کله چي رانیوونکی د مېوې شرط وکړي او څوک چي غلام رانیسي او

وله مال وماله للبائع إِلَّا أَنْ يَشْتَرِطَ الْمُبْتَاعُ . رواه مسلم و روى البخاري المعنى الاول وحده

د غلام سره مال وي نو هغه مال د خرڅونکي دي خو که رانیونکي د دې شرط وکړي . (په مسلم شریف کي دا حدیث نقل دی او بخاري شریف یوازي اولني خبره روایت کړي دي .

**تخریج**: البخاري في الصحیح (فتح الباري): ۵\۴۹، رقم: ۲۳۷۹، ومسلم ۲\۱۱۷۳، رقم: ۸۰- ۱۵۴۳.

**تشریح** د تابیر صورت دادی چي د خرما د نارینه درختي ګل د خرما په ښځینه درخته کي کښیږدي ، د عربو دا عقیده وه چي د دې په وجه زیاته میوه پیدا کیږي .

په پورتني حدیث کي د داسي درختو په باره کي فرمایل سوي دي که یو سړی تابیر کړې درخته رانیسي او د رانیولو پر وخت په هغه درخته کي مېوه وي نو هغه به د پلورنکي وي مګر که چیري رانیونکی د رانیولو پر وخت دا فیصله وکړي چي زه د غه درخته د میوې سره رانیسم نو بیا به هغه د میوې هم رانیونکی وي ، د حنفیه په نزد د تابیر څخه پرته د نورو درختو هم دغه حکم دی .

مګر د امام شافعي، امام مالک او امام احمد رحمة الله علیهم مذهب دادی چي د تابیر څخه پرته په نورو درختو کي مېوه په بیع کي شامل نه ده بلکه دا به زما وي نو بیا په دغه صورت کي به هغه د پلورنکي وي.

غلام د مال مالک نه دي ځکه په حدیث کي هغه ته د مال د ملکیت نسبت د ظاهر په اعتبار دی که د بیع پر وخت د هغه په لاس کي څه مال وي نو هغه د پلورنکی دي مګر که چیري رانیونکی په دغه مشروط طریقه سره هغه رانیسي چي د غلام په رانیولو کي دغه مال هم شامل دی کوم چي د هغه په لاس کي دی نو په دغه صورت کي به هغه مال هم د رانیونکی وي.

دا حدیث پر دې خبره دلالت کوي چي د غلام د بیع پر وخت هغه جامې چي د هغه پر بدن وي په بیع کي داخل نه دي مګر دا چي رانیونکی د هغه د جامو سره بیع مشروط کړي، د حنفیه په نزد د ځینو علماؤ رایه داده چي جامې په بیع کي داخل دي او د ځینو علماؤ قول دادی چي یوازي دومره جامې په بیع کي داخل دي په کوم سره چي ستر پټیږي مګر صحیح خبره داده چي د حدیث د ظاهري مفهوم سره سم د هغه دهر ډول سامان هیڅ یو برخه هم په بیع کي داخل نه ده.

## د مشروط بیع مسئله

﴿۲۷۵۲﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّهُ كَانَ يَسِيرُ عَلَى جَمَلٍ لَهُ قَدْ أَعْيَا فَمَرَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت جابر ﷛ څخه روایت دی چي هغه په خپل اوښ باندي سفر کوی چي اوښ ستړی سو نو نبي کریم ﷺ د هغه لخوا څخه تېرېدي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهِ فَضَرَبَهُ فَسَارَ سَيْرًا لَيْسَ يَسِرُ مِثْلَهُ ثُمَّ قَالَ بِعْنِيهِ بِوُقِيَّةٍ

او د هغه اوښ یې وواهه بیا هغه داسي چابک روان سو چي مخکي یې داسي تګ نه وو کړی

قَالَ فَبِعْتُهُ فَاسْتَثْنَيْتُ حُمْلَانَهُ إِلَى أَهْلِي فَلَمَّا قَدِمْتُ الْمَدِيْنَةَ اَتَيْتُهُ

بیا نبي کریم ﷺ وفرمایل: جابره! دا اوښ پر ما په یوه اوقیه (څلوېښت درهمه) خرڅ کړه جابر ﷛ وویل په تا مي اوښ خرڅ کړ او دا یې ورسره وویل په دې اوښ به زه تر کوره پوري سفر کوم کوم وخت چي زه مدینې منورې ته را و رسېدم

بِالْجَمَلِ وَنَقَدَنِي ثَمَنَهُ و في رواية فاعطاني ثمنه ورده علي . متفق عليه و في رواية للبخاري انه قال لبلال اقضه و زده فاعطاه و زاده قيراطا .

نو د اوښ سره د نبي کريم ﷺ په خدمت کي حاضر سوم نو نبي کريم ﷺ ما ته د هغه قيمت راکړ او په يوه بل روايت کي دا الفاظ دي چي نبي کريم ﷺ ماته د اوښ قيمت هم راکړ او اوښ يې هم را ته واپس کړ .(بخاري او مسلم) او د بخاري په يوه روايت کي دا الفاظ هم سته چي نبي کريم ﷺ بلال رضي الله عنه ته امر ورکړ چي د اوښ قيمت ورکړه يو څه اندازه زيات نو بلال رضي الله عنه قيمت ادا کړ او يو قيراط يې زيات راکړ.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۵\ ۳۱۴،رقم: ۲۷۱۸، ومسلم ۳\ ۱۲۲۱،رقم: ۱۰۹،

**تشريح**: وقية چي اوقيه هم ورته ويل کيږي دا څلوېښت درهمه يعني د لس نيمو تولو د سپينو زرو په اندازه وي،

فاستثنيت حملانه الى اهلي: ددې څخه د حضرت جابر رضي الله عنه مطلب دا وو چي زه دغه اوښ پر تا باندي په دې شرط پلورم چي تر مدينې منورې پوري به پر دغه اوښ سپور ځم.

ددې د ظاهري مفهوم څخه دا معلومه سوه که يو څوک خپل يو حيوان په دې شرط خرڅ کړي چي دغه حيوان به تر دغه وخته پوري زما د سپرلۍ لاندي وي نو دا جائز دي ، د امام احمد رحمة الله عليه دا مذهب دی او د امام مالک رحمة الله عليه په نزد دا قيد دی که چيري فاصله نژدې وي نو په دغه شرط سره بيع کول جائز ده دلته دا صورت پيدا سو چي حضرت جابر رضي الله عنه ته يوازي تر مدينې منورې پوري تلل وه ځکه ددغه کم مسافت په وجه هغه د سپرلۍ شرط ولګوی او د هغه دغه شرط ومنل‌سو.

د امام ابوحنيفة او امام شافعي رحمة الله عليهما په نزد په داسي هيڅ يو شرط سره بيع جائز نه ده چي په هغه کي د پلورنکي يا رانيونکي ګټه وي که څه هم مسافت ليري وي او که نژدې وي ، د دوی دليل هغه حديث چي په هغه کي رسول الله ﷺ د مشروط بيع څخه منع فرمايلې ده.

ددغه حديث جواب د دوی له خوا داورکول کيږي چي يا خو دا يو رعايت وو چي حضرت جابر رضي الله عنه ته ددغه مشروط بيع په خاصه توګه اجازه ورکړل سوې وه او د بل چا لپاره دا جائز نه دي يا دا چي حضرت جابر رضي الله عنه تر مدينې منورې پوري د خپل سپرلۍ د بيع کولو څخه وروسته مشروط کړې وي ، ددې مطلب دادی چي کله هغه اوښ وپلوری او رسول الله ﷺ رانيوی نو ددې څخه وروسته حضرت جابر رضي الله عنه د رسول الله ﷺ څخه دغه رعايت وغوښتی چي ما ته تر مدينې منورې پوري پر دغه اوښ باندي د سپرلۍ اجازه راکړل‌سي کوم چي رسول الله ﷺ ومنل.

## د حق ولاء مسئله

﴿۲۷۵۳﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ جَاءَتْ بَرِيرَةُ فَقَالَتْ إِنِّي كَاتَبْتُ عَلَى تِسْعِ أَوَاقٍ

د بي بي عائشې ﷺ څخه روایت دی چي بریره مینزه راغله او ما ته یې وویل : ما په نهه اوقیه مکاتبت کړي وو په دې شرط چي

فِي كُلِّ عَامٍ وَقِيَّةٌ فَأَعِينِينِي فقالت عائشة إِنْ أَحَبَّ أَهْلُكِ أَنْ أَعُدَّهَا لَهُمْ

هر کال به یوه اوقیه ورکوم تاسو زما کومک وکړئ بي بي عائشې رض ورته وویل : که ستا د مالک دا خوښه وي چي زه ټولي اوقیې ورکړم

عدة واحدة واعتقك فعلت وَيَكُونَ وَلَاؤُكِ لِي فَذَهَبَتْ إِلَى أَهْلِهَا فَأَبَوْا الا ان

او تا په رانیولو سره ازاده کړم نو زه به داسي وکړم په دې شرط چي میراث به زما وي بریره رض خپلو مالکانو ته ورغله او مالکانو یې وویل :

يكون الولاء لهم فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم خذيها واعتقيها

موږ په دې شرط بریره ورکوو چي میراثي حق به زموږ وي رسول الله ﷺ (ته چي دا واقعه معلومه سوه) ویې فرمایل : دا واخله او ازاده یې کړه

ثُمَّ قَامَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي النَّاسِ فَحَمِدَ اللهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ ثُمَّ

بیا نبي کریم ﷺ د خلکو په مینځ کي ودرېدي او د الله جل جلاله حمد او ثنا یې بیان کړل بیا یې

قَالَ أَمَّا بَعْدُ فَمَا بَالُ رِجَالٍ يَشْتَرِطُونَ شُرُوطًا لَيْسَتْ فِي كِتَابِ اللهِ مَا كَانَ

وفرمایل : د خلکو څه حال دئ ؟ هغوی داسي شرطونه لګوي چي د الله تعالي په کتاب کي

مِنْ شَرْطٍ لَيْسَ فِي كِتَابِ اللهِ فَهُوَ بَاطِلٌ وَإِنْ كَانَ مِائَةَ شَرْطٍ قَضَاءُ اللهِ أَحَقُّ

نسته هغه شرطونه باطل دي که څه هم سل شرطه وي او د الله تعالي حکم د عمل کولو لائق دي

وَشَرْطُ اللهِ أَوْثَقُ وَإِنَّمَا الْوَلَاءُ لِمَنْ أَعْتَقَ . متفق عليه.

او شرط لګول د خدای تعالي مضبوط دي پوه سئ! چي د ولاء حق هغه چا ته حاصل دي کوم ځوک چي غلام یا مینزه ازاده کړي. (بخاري او مسلم).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري)، ۱۴\۳۷۶، رقم، ۲۱۶۸، ومسلم ۱۲\۱۱۴۱، رقم: ۶ – ۱۵۰۴.

**تشريح**: مکاتبت د غلام او د هغه د مالک په مینځ کي د یو خاص نوعیت د معاهدې نوم دی، ددې صورت دادی چي د غلام مالک هغه په دغه شرط ازاد کړي چي د روپو دومره اندازه به په دومره وخت کي راکوې نو غلام هغه ومني، که چیري غلام هغه روپۍ په ټاکلي وخت کي ادا کړې نو د خپل مالک د غلامۍ څخه ازادیږي او که هغه روپۍ ادا نه کړي نو بیا هم هغسي غلام دی، دغه معاملې ته مکاتبت یا کتابت او هغه غلام ته مکاتب وایي.

ولاء د ازادولو هغه حق ته وایي کوم چي د غلام مالک ته حاصل وي یعني که یو سړی خپل یو غلام ازاد کړي او هغه د ازادۍ په حالت کي مړ سي او یو څه مال او اسباب تر شا پریږدي نو د هغه عصبه نه کېدو په صورت کي د هغه د ټول مال او اسباب مقدار به د هغه ازادونکي سړي وي دې ته حق د ولاء وایي.

بريره د بي بي عائشې رضي الله عنها د مینزي نوم دی هغه د بي بي عائشې رضي الله عنها په خدمت کي د راتلو څخه مخکي د یو یهودي په ملکیت کي وه کله چي هغه د خپلو مالکانو سره کتابت وکړ نو د بي بي عائشې رضي الله عنها په خدمت کي حاضره سوه او هغې ته یې وویل چي ما د خپلو مالکانو سره په نهه اوقیه سره په دې شرط کتابت کړی دی چي هر کال به یو اوقیه (چي څلوېښت درهمه کیږي) درکوم اوس زه تاسو ته ددې لپاره راغلې یم چي تاسو زما مرسته وکړئ او ما ته دومره روپۍ راکړئ چي زه یې د کتابت په بدله کي خپل مالکانو ته ورکړم. بي بي عائشې رضي الله عنها وویل که ستا د مالکانو خوښه وي نو زه دا کولای سم چي هغوی ته نهه اوقیه په یو وار ورکړم او تا په رانیولو سره ازاده کړم، ظاهره ده چي په دغه صورت کي ستا له خوا حق ولاء به ما ته تر لاسه کیږي مګر دا خبره چي د بريره مالکانو ته ورسېده نو هغوی ددې څخه انکار وکړ ځکه چي هغوی بريره پر بي بي عائشې رضي الله عنها باندي په دې شرط خرڅول غوښتل چي د بريره حق ولاء به هغوی ته حاصلیږي د هغوی دغه شرط چي بريره خو د بي بي عائشې ازاده کړې ده او د هغې حق ولاء دي هغوی ته ورسیږي دا بالکل د ناپوهۍ خبره ده او په شرعي توګه سره دا بالکل ناجائز ده ځکه بي بي عائشې رضي الله عنها چي ددې ذکر رسول الله ﷺ ته وکړ نو رسول الله ﷺ ناراض سو او په حدیث کي ذکر سوي الفاظ یې وفرمایل.

## د حق ولاء پلورل او هبه کول ناجائز دي

﴿۲۷۵۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بَيْعِ الْوَلَاءِ وَعَنْ هِبَتِهِ . متفق عليه

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د ولاء حق خرڅولو يا هبه کولو څخه منعه فرمايلې ده . (بخاري او مسلم)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۵\۱۶۷، رقم: ۲۵۳۵، ومسلم ۲\۱۱۴۵، رقم: ۱۶-۱۵۰۶.

**تشريح**: مثلا يو سړی خپل غلام ازاد کړي چي د هغه په وجه حق ولاء د هغه لپاره ثابت سو اوس که هغه دا وغواړي چي دغه حق ولاء پر بل چا خرڅ کړي يا يو بل چا ته يې تحفه کړي نو دا جائز نه ده ځکه چي ولاء مال نه دی چي هغه خرڅ کړل سي يا هبه کړل سي په دې باره کي د ټولو علماؤ په اتفاق سره دا مذهب دی .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### څوک چي د تاوان ذمه داروي هغه د ګټې حقدار هم دی

﴿۲۷۵۵﴾: عَنْ مُخَلَّدِ بْنِ خُفَافٍ قَالَ ابْتَعْتُ غُلَامًا فَاسْتَغْلَلْتُهُ ثُمَّ ظَهَرْتُ

د حضرت مخلد بن خفاف رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما يو غلام را نيوي چي د هغه ګټه به ما په خپل خرڅ کي راوستل بيا زه د هغه په عيب خبر سوم

مِنْهُ عَلَى عَيْبٍ فَخَاصَمْتُ فِيهِ إِلَى عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ فَقَضَى لِي بِرَدِّهِ وَقَضَى

او دا معامله مي د عمر بن عبد العزيز په خدمت کي پيش کړه ، عمر بن عبد العزيز د بيرته واپسي حکم وکړ او ويې ويل :

عَلَيَّ بِرَدِّ غَلَّتِهِ فَأَتَيْتُ عُرْوَةَ فَأَخْبَرْتُهُ فَقَالَ أَرُوحُ إِلَيْهِ الْعَشِيَّةَ فَأُخْبِرُهُ أَنَّ

دده ګټه دي هم واپس کړل سي بيا زه عروه بن زبير رضي الله عنه ته راغلم او په واقعه باندي مي خبر کړ هغه وويل چي زه به مابنام ته عمر بن عبد العزيز ته ورځم او هغه به اګاه کړم چي

عَائِشَةَ أَخْبَرَتْنِي أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضَى فِي مِثْلِ هٰذَا أَنَّ

بي بي عائشې ته خبر کړي يم چي رسول الله ﷺ د دې ډول په مقدمه کې دا فيصله کړې ده چي

الْخَرَاجَ بِالضَّمَانِ فَرَاحَ إِلَيْهِ عُرْوَةُ فَقَضَى لِيْ أَنْ آخُذَ الْخَرَاجَ مِنَ الَّذِيْ قَضَى بِهِ عَلَيَّ لَهُ . رواه في شرح السنة

نفع د تاوان په مقابله کې ده (يعني که غلام مړ سوي واى او يا په هغه کې څه عيب پيدا سوي واى نو په خرڅونکي باندي د هغه هيڅ اثر نه پرېوتي داسي چي د غلام څخه يو څه ګټه وسي هغه هم خرڅونکي ته رسول نه دي پکار نو مابنام ته عروه بن زبير عمر بن عبد العزيز ته ورغلي او هغه دا حکم وکړ چي د غلام ګټه زه واپس اخلم)(شرح السنة)

**تخريج**: شرح السنة ۸\۱۶۴،

**تشريح**: منفعت دضمان سره دی : ددې مطلب دادی چي څرنګه هغه غلام د رانيونکي سره مړ سوی دی يا په هغه کي يو عيب پيدا سوی دی نو ظاهره ده چي د هغه رانيونکي تاوان وو د پلورنکي څخه به هيڅ نه تلای، همدارنګه که چيري د غلام څخه يو ګټه تر لاسه وي نو د هغه حقدار به هم رانيونکی وي د پلورنکي به پر هغه باندي هيڅ حق نه وي .

## د بائع او مشتري د نزاع صورت

﴿۲۷۵۶﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

إِذَا اخْتَلَفَ الْبَيْعَانِ فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْبَائِعِ وَالْمُبْتَاعُ بِالْخِيَارِ . رواه الترمذي

کله چي رانيونکي او خرڅونکي کي اختلاف پيدا سي نو د خرڅونکي قول به معتبر وي او خريدار ته به د بيع د قائم ساتلو يا فسخ کولو اختيار حاصل وي . (ترمذي)

وفي رواية ابن ماجه والدارمي قال : " البيعان إذا اختلفا والمبيع قائم بعينه وليس بينهما بينة فالقول ما قال البائع أو يترادان البيع .

او د ابن ماجه او دارمي په روايت کي دا الفاظ دي چي کله د بائع (خرڅونکي) او مشتري (اخيستونکي) په مينځ کي اختلاف راسي او خرڅ سوي شی بعينه موجود وي او فريقين شاهدان و نلري نو د بائع قول معتبر وي يا فريقين به بيعه فسخه کوي .

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\ ۵۷۰، رقم: ۱۲۷۰، وابن ماجه في السنن ۲\ ۷۳۷، رقم: ۲۱۸۶، والدارمي ۲\ ۳۲۵، رقم: ۲۵۴۹.

**تشريح**: د رانيونكي او پلورنكي په مينځ كي ددېر واره د اختلاف او جګړې صورت پيدا كيږي كله چي دغه اختلاف او جګړه د قيمت په ټاكلو كي پيدا كيږي چي رانيونكى وايي ما ستا سره ددغه شى معامله په لس روپۍ فيصله كړې ده او پلورنكى وايي چي يا ما دغه شى پر تا باندي په دوولس روپۍ خرڅ كړى دى ، او كله د خيار شرط يا د وخت په ټاكني كي اختلاف كيږي او كله ددې څخه پرته په نورو شرطو كي د جګړې صورت پيدا كيږي ، د داسي پېښېدو لپاره دغه حديث په وضاحت سره هدايات كړي دي چي په دغه صورتو كي د پلورنكي قول معتبر دى په شرط ددې چي د هغه قول په قسم سره وي يعني هغه ته وويل سي چي ته قسم واخله چي تا دغه شى په دغه قيمت نه دى خرڅ كړى كوم چي رانيونكى وايي ، بيا رانيونكى ته اختيار دى كه هغه د پلورنكي پر دغه خبره راضي سي كومه چي هغه په قسم خوړلو سره كړې ده او بيع برقرار وساتي او كه وغواړي نو هغه دي قسم واخلي او دا دي ووايي چي ما دغه شى په دغه قيمت نه دى رانيولى كوم چي پلورنكى وايي ، او كله چي دواړه پر خپل خبري باندي قسم واخلي نو د هغوى به معامله به په دغه صورت كي پاته وي كله چي د هغوى څخه يو هم د بل خبره ومني ، كه په هغوى كي يو هم د بل خبري منلو ته تيار نه وي نو بيا په پاى كي قاضي او دريم كس ته اختيار وركول كيږي چي هغه دا بيع او معامله فسخ كړي كه مبيع بعينه باقي وي لكه څرنګه چي د امام شافعي رحمه الله مذهب دى ، امام ابوحنيفة او امام مالك رحمة الله عليهما دا وايي كه چيري مبيع باقي نه وي نو بيا دواړه رانيونكي او پلورنكى دي قسم نه اخلي بلكه په دغه صورت كي د رانيونكى قول په قسم سره معتبر دى .

د حديث الفاظ (المبيع قائم) د دوى دواړو د قول تائيد كوي ، دوهم روايت ابن ماجه او دارمي په دغه الفاظو كي نقل كړى دى (فالقول ما قال البائع) يعني په دغه صورت كي د پلورنكى قول معتبر دى، ددې مطلب هم د حنفي مذهب سره سم دا دى كه چيري مبيع بعينه پاته وي نو پر پلورنكي دي قسم وخوړل سي كه هغه قسم واخلي نو رانيونكى ته به اختيار وي كه هغه غواړي د پلورنكى خبره دي ومني او كه غواړي خپله دي هم قسم واخلي او يا دي دواړه بيع فسخ كړي او كه د اختلاف او جګړې پر وخت مبيع بعينه باقي نه وي نو بيا په دغه صورت كي په قسم سره د رانيونكى قول به معتبر وي په پلورنكي باندي قسم نه سي اخستل كيداى .

دا مسئله دلته په اجمالي توګه سره ذكر سوې ده ، په هدايه كي دا په ډېر وضاحت او

تفصیل سره بیان سوې ده که څوک نور زیات تفصیل کتل غواړي نو هدایې ته دې رجوع وکړي.

**د بیع اقاله مسئله**

﴿۲۷۵۷﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَقَالَ

د حضرت ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: څوک چې د مسلمان بیع

مُسْلِمًا أَقَالَهُ اللهُ عَثْرَتَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ رواه أبو داود وابن ماجه وفي شرح

(چې د هغه خوښه نه وي) واپس کړي (فسخه کړي) الله تعالي به یې د قیامت په ورځ ګناهونه وروبخښي. (ابو داؤد ابن ماجه) او په شرح السنة کې

السنة بلفظ المصابيح عن شريح الشامي مرسلا.

د مصابیح د الفاظو سره شریح شامي څخه مرسلا روایت کوي.

**تخريج**: ابوداود في السنن ۳\ ۷۳۸، رقم: ۳۴۶۰، وابن ماجه في السنن ۲\ ۷۴۱، رقم: ۲۱۹۹، والبغوي في شرح السنة ۸\ ۱۶۱، رقم: ۲۱۱۷.

**تشریح**: د اقاله مطلب دی د بیع بېرته ورکول یعني فسخ کول، په شرح السنه کې لیکلي دي چې په بیع او سلم کې تر قبضې مخکې او وروسته د قبضې څخه هم اقاله جائز ده.

دغه روایت ابوداؤد او ابن ماجه متصل نقل کړی دی همدارنګه حاکم هم دغه روایت د حضرت ابو هریره رضي الله عنه څخه متصل نقل کړی دی مګر په مصابیح کې دغه روایت په طریقه د ارسال په دغه الفاظو کې منقول دی (من اقال اخاه المسلم صفقة کرهها اقال الله عثرته یوم القیامة): یعني څوک چې د یو مسلمان ناخوښه بیع فسخ کړي نو الله تعالی به د قیامت په ورځ د هغه ګناه و بخښي، د مشکوة مؤلف د روایت د آخري الفاظو په ذریعه د مصابیح پر مصنف علامه بغوي رحمه الله باندې اعتراض کړی دی چې هغه په خپل کتاب مصابیح کې اولی ترک کړی دی په دې توګه چې د ابوداؤد او ابن ماجه نقل سوی دغه متصل روایت یې نقل نه کړي بلکه مرسل حدیث یې نقل کړی دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### يوه عبرتناكه واقعه

﴿۲۷۵۸﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اشْتَرٰى رَجُلٌ

د حضرت ابوهريره ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : يو سړي رانيول

مِمَّنْ كَانَ قَبْلَكُمْ عَقَارًا مِنْ رَّجُلٍ فَوَجَدَ الَّذِي اشْتَرَى الْعَقَارَ فِي عَقَارِهِ

مځکه ستاسو څخه مخکي او د مځکي د خرڅولو څخه وروسته د مځکي څخه د سرو زرو منګۍ را ووتل هغه رانيونکي و خرڅولو والا ته ورغي

جَرَّةً فِيهَا ذَهَبٌ فَقَالَ لَهُ الَّذِي اشْتَرَى الْعَقَارَ خُذْ ذَهَبَكَ عَنِّي إِنَّمَا اشْتَرَيْتُ

او ورته يې وويل : چي دا سره زر ته واخله ما ستا څخه فقط مځکه رانيولې وه سره زر مي نه وه

الْعَقَارَ وَلَمْ أَبْتَعْ مِنْكَ الذَّهَبَ فَقَالَ بَائِعُ الْأَرْضِ إِنَّمَا بِعْتُكَ الْأَرْضَ وَمَا

درڅخه رانيولي پلورونکي ورته وويل : ما پر تا باندي مځکه او هر څه چي په مځکه کي وه پر

فِيهَا فَتَحَاكَمَا إِلَى رَجُلٍ فَقَالَ الَّذِي تَحَاكَمَا إِلَيْهِ أَلَكُمَا وَلَدٌ فَقَالَ أَحَدُهُمَا لِي

تا پلورلي دي اخير دواړو يو دريم سړی (چي حضرت داؤد ﷺ وو) و ته کئ او خپله عريضه يې ورته پېش کړه دريم نفر ورته وويل : چي ايا ستاسو اولاد نسته ؟ يوه ورته وويل چي زما

غُلَامٌ وَقَالَ الْآخَرُ لِي جَارِيَةٌ فَقَالَ أَنْكِحُوا الْغُلَامَ الْجَارِيَةَ وَأَنْفِقُوا عليهما

مِنْهُ وَتَصَدَّقُوا . متفق عليه.

زوی سته او بل ورته وويل چي زما لور سته نو پرېکړه کونکي پرېکړه وکړه چي د هلک نکاح د انجلۍ سره وکړئ او دا سره زر په هغوی مصرف کړئ او يو څه خيرات هم کړئ. (بخاري او مسلم).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ٦\٥١٢، رقم: ٢٤٧٢، ومسلم ٣\١٣٤٥، رقم: ٢١- ١٧٢١.

**تشريح**: دغه واقعه د حضرت داؤد ﷺ د زمانې ده لکه څرنګه چي ځينو علماؤ ويلي دي چي هغه د واړو يو بل دريم سړی خپل ثالث ټاکلی وو نو هغه حضرت داؤد ﷺ وو نو حضرت داؤد

ﷺ په فیصله کولو کي د ذهانت او ذکاوت ثبوت ورکړ او داسي معتدله او معقوله فیصله يې وکړه چي د نبوت خاصه کېدای سي .

علامه نووي رحمه الله وايي چي دغه حدیث د پلورنکي او رانیونکي په مینځ کي د صلح کولو پر فضیلت باندي دلالت کوي او علماء وايي چي د دوو مخالفو کسانو په مینځ کي صلح کول د قاضي او حاکم لپاره داسي مستحب دي لکه څرنګه چي د غیر قاضي لپاره مستحب دي .

==========

# بَابُ السَّلَمِ وَالرِّهْنِ (د بیع سلم او رهن بیان)

سلم د یو بیع نوم دی چي په هغه کي مبیع مؤجل او ثمن معجل وي یعني رانیول سوی شی وروسته اخیستل کیږي او د هغه قیمت مخکي ورکول کیږي، د مثال په توګه زید د بکر څخه د سلو روپو په عوض کي د دوو منو غنمو د رانیولو معامله وکړه په دې توګه چي زید بکر ته سل روپۍ ورکړې او د هغه سره يې دا فیصله وکړه چي زه به دومره وخت وروسته ددې په عوض کي فلانی ډول دوه منه غنم ستا څخه اخلم، دغه بیع او معاملې ته په عربي کي سلم وايي، او پر ځینو موقعو باندي سلف هم ورته ویل کیږي او په بدهني سره هم موسوم کیږي، ددغه بیع مشتري یعني رانیونکي ته په عربي ژبه کي رب سلم او ثمن یعني قیمت ته راس المال، بائع یعني پلورنکي ته سلم الیه او مبیع یعني رانیونکي شي ته ته مسلم فیه وايي .

دا بیع په شرعي توګه جائز او صحیح ده په شرط ددې چي ددې ټول شرطونه موجود وي او د ټولو شرطو شمېر يې شپاړلس دی په داسي توګه چي د شپږو شرطو تعلق د راس المال یعني د قیمت سره دی او د لسو شرطو تعلق د مسلم فیه یعني مبیع سره دی .

د راس المال سره متعلق شپږ شرطونه دادي :

۱. جنس بیانول یعني دا واضح کول چي دغه درهم دي یا دینار یا اشرفۍ یا روپۍ وغیره .
۲. نوع بیانول یعني دا واضح کول چي دغه روپۍ د سپینو زرو دي یا د نوټو دي .
۳. صفت بیانول یعني دا واضح کول چي روپۍ اصلي دي که جعلي دي .
۴. مقدار بیانول یعني دا واضح کول چي دا روپۍ سل دی یا دوه سوه دي .
۵. روپۍ نقد ورکول او په پور نه ورکول .
٦. په کوم مجلس کي چي معامله وسي په هغه مجلس کي د پلورنکي پر راس المال باندي قبضه کول .

د مسلم فیه سره متعلق لس شرطونه دادي:

۱. جنس بیانول مثلاً دا واضح کول چي مسلم فیه غنم دي یا اوربشي دي یا نخود وغیره.

۲. نوع بیانول یعني دا واضح کول چي غنم د فلاني ډول یا د فلاني ځاي دي.

۳. صفت بیانول یعني دا واضح کول چي غنم ښه دي یا خراب دي.

۴. د مسلم فیه مقدار واضح کول چي یو من دي یا دوه منه دي.

۵. د مسلم فیه وزني یا کیلي یا ذرعي یا عددي کېدل چي د یو من تعین او اندازه وکړل سي.

۶. وخت بیانول یعني دا واضح کول چي دغه شی به دومره وخت وروسته مثلاً یوه میاشت یا دوو میاشتو یا څلورو میاشتو کي اخلي مګر دا خبره دي په ذهن کي وي چي کم او کم وخت یوه میاشت کېدل پکار دي.

۷. د مسلم فیه موقوف او معدوم نه کېدل یعني دا ضروري دي چي مسلم فیه د عقد او معاملې د وخت څخه د ادا کولو تر وخت پوري په بازار کي تر لاسه کیدای سي چي د معدوم بیع لازم نه سي.

۸. د بیع سلم معامله بېله شرط خیار فیصله کول یعني په دغه بیع کي خیار بیع برقرار ساتل یا د فسخ کولو اختیار کېدل نه دي پکار.

۹. که مسلم فیه داسي وزن لرونکی شی وي چي د هغه مزدوري ورکول وي نو د هغه د ورکولو ځای ټاکل یعني دا واضح کول چي زه به دغه شی په فلاني ځای کي درکوم.

۱۰. د مسلم فیه داسي شی کېدل چي د جنس، نوع او صفت په بیانولو سره متعین او معلومېږي کوم شی چي داسي وي چي د جنس، نوع او صفت په بیانولو سره معلوم او متعین کیږي نه لکه حیوان یا یو ډول جامې نو په دغه شیانو کي بیع سلم جائز نه ده.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ (لومړی فصل)

### د بیع سلم شرائط

﴿۲۷۵۹﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ مدیني منوري ته تشریف راوړ د

وَهُمْ يُسْلِفُوْنَ فِي الثِّمَارِ السَّنَةَ وَالسَّنَتَيْنِ فَقَالَ مَنْ أَسْلَفَ فِيْ شَيْئٍ

مدينې خلکو به په مېوو کي د کال دوو کالو درو کلو به بيع سلم (هغه بيعه چي پېشکي پيسو ورکولو سره کوم شی را نيول سي د هغې تعداد يا نرخ او موده مقرره کړي) کوله رسول الله ﷺ وفرمايل: کوم سړی چي بيع سلم کوي

**فَلْيُسْلِفْ فِي كَيْلٍ مَعْلُومٍ وَوَزْنٍ مَعْلُومٍ إِلَى أَجَلٍ مَعْلُومٍ . متفق عليه**

هغه ته پکار ده چي ټاکلې پيمانه ټاکلي وزن او ټاکلې موده سره وټاکي (بخاري او مسلم)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴۲۸\۱۴، رقم: ۲۲۳۹، ومسلم ۱۲۲۷\۱۳، رقم: ۱۲۷- ۱۶۰۴.

**تشريح**: مطلب دادی چي د کوم شی بيع سلم کيږي که هغه په پيمانې سره ناپ کيږي نو د هغه پيمانه متعين کول ضروري دي چي دغه شی به لس پيمانې وي يا پنځلس پيمانې وي او که چيري هغه شی د وزن په ذريعه رانيول کيږي نو د هغه وزن متعين کول ضروري دي چي دغه شی به لس سېره وي يا پنځلس سېره وي همدارنګه د سلم فيه د ادا کولو د وخت تعين هم ضروري دي چي دغه شی به مثلا يوه مياشت وروسته ورکول کيږي يا يو کال وروسته به ورکول کيږي.
د دغه حديث شريف ظاهري مفهوم پر دې خبره دلالت کوي چي په بيع سلم کي د وخت تعين د بيع د صحيح کېدو لپاره شرط دی لکه څرنګه چي د امام ابوحنيفة، امام مالک او امام احمد رحمة الله عليهم مذهب دی مګر د امام شافعي رحمه الله په نزد د وخت تعين ضروري او شرط نه دی.

## پور رانيول او ګروي جائز ده

**﴿۲۷۶۰﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ اشْتَرَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَعَامًا مِنْ يَهُودِيٍّ الى اجل وَرَهَنَهُ دِرْعًا لَهُ مِنْ حَدِيدٍ. متفق عليه .**

د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د يهودي څخه يو څه غله د يوې ټاکلي مودې په وعده را نيوله او د هغه سره يې خپله د اوسپني زغره کښېښنودل. (بخاري او مسلم)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): رقم ۲۰۶۸، ومسلم ۱۲۲۶\۱۳، رقم: ۱۲۶- ۱۶۰۳.

**تشريح**: د دغه حديث شريف څخه څو مسئلې معلومې سوې اول دا چي يو شی د پور په قيمت رانيول او د هغه پور قيمت په بدله کي خپل يو شی په ګرو ايښودل جائز دي، دوهم دا چي د سفر څخه پرته په حضر کي هم رهن کول جائز دي که څه هم په قرآن کريم کي د رهن کولو اجازه د سفر په قيد کي ورکړل سوې ده او هغه آيت دادی: وان کنتم على سفر ولم تجدوا کاتبا فرهان

مقبوضة: یعني که تاسو په سفر کي یاست او هلته یو څوک لیکوال نه وي نو د اطمینان په ذریعه دي د رهن کولو شیان په قبضه کي ورکړل سي.

علماء کرام وایي چي په دغه آیت کریمه کي د سفر قید محض اتفاقي دی، یو شی په ګرو کي ایښودل لکه څرنګه چي په سفر کي جائز دی همدارنګه په حضر کي هم جائز دی او دریم دا چي اهل ذمه (په اسلامي پاچاهۍ کي جزیه ورکونکي اهل کتاب لکه یهود او نصارا) سره معاملات کول جائز دي، د ټولو علماؤ په اتفاق سره دا مذهب دی چي د اهل ذمه او کفارو سره د رانیولو او پلورلو معامله کول جائز ده په شرط ددې چي د هغوی سره کوم مال وي د هغه نه حرام کېدل ثابت او معلوم وي مګر پر اهل حرب باندي د مسلمانانو وسله یا سامان پلورل جائز نه دي همدارنګه مطلقا پر یو کافر باندي داسي شی خرڅول جائز نه دي چي د هغه د دین او مذهب د تقویت باعث وي او پر کفارو باندي د مسلمانانو مصحف شریف (قرآن کریم) او غلام پلورل هم جائز نه دي.

علامه نووي رحمة الله عليه فرمایي چي دغه حدیث په ډېر وضاحت سره پر دې خبره دلالت کوي چي رسول الله ﷺ د دنیا مال او اسباب نه درلودل او دغه مفلسي او د مال کموالی د رسول الله ﷺ شان استغفار، توکل علی الله او د مال او زر څخه د رسول الله ﷺ د بې شوقۍ یو واضح مثال دی.

ددغه حدیث څخه دا خبره هم معلومه سوه چي د اهل ذمه سره د مسلمانانو د جنګ سامان په ګرو ایښودل جائز دي او د رسول الله ﷺ د ګرو ایښودو دغه عمل د یو یهودي سره وکړی او د صحابي سره یې ونه کړی په دې باره کي ځیني علماء وایي چي دا کیدای سي د بیان جواز لپاره وي یعني رسول الله ﷺ د خپل دغه عمل په ذریعه دا واضحه کړه چي د اهل ذمه سره هم معامله کول جائز دي، ځیني علماء وایي چي رسول الله ﷺ د هغه یهودي سره دا معامله ځکه وکړه چي هغه وخت د خپل حاجت او ضرورت څخه زیاته غله د یهودیانو څخه پرته د بل چا سره نه وه.

﴿۲۷۶۱﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ تُوُفِّيَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَدِرْعُهُ مَرْهُونَةٌ عِنْدَ يَهُودِيٍّ بِثَلَاثِينَ صَاعًا مِنْ شَعِيرٍ. رواه البخاري.

د بي بي عائشې رض څخه روایت دی چي د رسول الله ﷺ وفات وسو او زغره یې د یوه یهودي سره د دیرشو صاعو اوربشو په عوض کي ګرو پاته وه. (بخاري)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ٦\٩٩، رقم: ٢٩١٦،

## د انتفاع رهن مسئله

﴿٢٧٦٢﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلظَّهْرُ

د حضرت ابوهريره ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : كه د سپرلۍ حيوان رهن

يُرْكَبُ بِنَفَقَتِهِ اذا كان مرهونا ولبن الدار يشرب بنفقته إِذَا كَانَ مَرْهُونًا

وَعَلَى الَّذِيْ يَرْكَبُ وَيَشْرَبُ النَّفَقَةَ . رواه البخاري.

وي نو په هغه چي څه خرڅ كيږي د هغه په بدله كي ډيري سپرلياني كيږي او كه د شيدو والا حيوان رهن وي نو د هغه د اخراجاتو په عوض كي د هغې شيدې څښلای سي او څوک چي سپرلۍ ساتي او شيدې يې څښي هغه به د خرڅ برداشت كوي .(بخاري) . (رهن گروته ويل كيږي ) .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ٥\١٤٣، رقم: ٢٥١٢،

**تشريح**: د حديث د اولي برخي په وضاحت كي ملا علي قاري ﷫ چي كومه مسئله ليكلې ده د هغې خلاصه داده چي يو سړی خپل يو څاروی د يو چا سره گرو كښيږدي نو د هغه مصرف مثلا خوراک وغيره به پر راهن وي او هغه دي دغه څاروی په كار كي راولي، د امام ابوحنيفة او امام شافعي رحمة الله عليهما دا مذهب دی .

مگر شيخ عبدالحق ﷫ د حديث د آخري جملې (وعلى الذي يركب ويشرب النفقة) يعني كوم څوک چي سپرلۍ كوي او شېدې څښي نو د هغه د مصرف ذمه دار هغه دی، په دې باره كي وايي چي كوم څوک پر گرو سوي حيوان باندي سپريږي يا د هغه شېدې څښي نو د هغه به د مصرف ذمه دار به هم هغه وي كه هغه راهن وي كه مرتهن وي، يعني مطلب دا سو كه مرتهن د گرو سوي حيوان وابنه وغيره وركوي او د هغه مصرف پر ځان وړي نو هغه حيوان په خپل مصرف كي راوستلای سي او د هغه شېدې څښلای سي او كه چيري راهن د هغه حيوان وابنه وغيره وركوي او د هغه مصرف پر ځان كوي نو بيا د هغه لپاره جائز ده چي هغه حيوان په خپل استعمال كي راولي او د هغه شېدې وڅښي .

ددغه وضاحت په رڼا كي د حديث مطلب به دا وي چي مرتهن ته د گرو سوي حيوان څخه گټه اخيستل او د هغه مصرف پر ځان كول جائز دي حالانكه اكثر علماء ددې پر خلاف دي ، په

هدايه کي ليکلي دي چي د مرتهن لپاره دا جائز نه ده چي هغه د ځان سره د ګرو سوي څخه ګټه تر لاسه کړي او دا چي د ګرو سوي شي نفقه د راهن پر ذمه دی د مرتهن لپاره د رهن څخه ګټه اخيستل ځکه ناجائز دي چي دا يو څرګندو مسئله ده چي کوم پور ګټه کوي هغه حرام دی ځکه علماؤ ليکلي دي چي د غه حديث د راتلونکي حديث په ذريعه منسوخ دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### ګرو سوی شی د مالک د ملکيت څخه نه وځي

﴿۲۷۶۳﴾: عَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لاَ

د حضرت سعيد بن مسيب رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

يَغْلَقُ الرَّهنُ الرَّهنَ مِنْ صَاحِبِهِ الَّذِيْ رَهْنَهُ لَهُ غُنْمُهُ وَعَلَيْهِ غُرْمُهُ. رواه الشافعي مرسلا وروي مثله او مثل معناه لا يخالفه عنه عن ابي هريرة متصلا.

يو شی په رهن ور کولو سره د رهن ورکونکي ملکيت نه ختميږي راهن د هغه ګټي حقدار دي او (که هغه شی ضائع سي نو) رهن ساتونکي د تاوان ذمه دار دي.

**تخريج**: ترتيب مسند الامام الشافعي ۲\۱۶۳، رقم: ۵۶۷- ۵۶۹.

**د لغاتو حل**: لايغلق الرهن: اى لايمنع (نه منعه کوي).،

**تشريح**: د حديث مطلب دادی که يو سړی خپل يو شی د يو چا سره ګرو کښيږدي نو د هغه د غه ګرو ايښودل د هغه شي ملکيت نه ختموي بلکه هغه شی به د راهن په ملکيت کي وي ځکه حديث د دې هم وضاحت کړی دی که د هغه ګرو سوي شي څخه ګټه تر لاسه کيږي يا په هغه کي زياتوب کيږي نو هغه د راهن حق دی په دې توګه که د هغه شی کرايه راځي نو راهن د هغه کرايه تر لاسه کولای سي او که يو حيوان وي نو پر هغه سپرېدلای سي يا هغه د بار وړلو لپاره استعمالولای سي همدرانګه که چيري د هغه حيوان بچی پيدا سي نو هغه بچی هم د راهن حق دی، او بيا څرنګه چي راهن د ګرو سوي شي دګټي حقدار دی همدارنګه د هغه د تاوان هم ذمه دار دی په دې توګه که هغه شی د مرتهن سره هلاک او ضائع سي نو د هغه تاوان به پر راهن وي په دې وجه د مرتهن د حق څخه به هيڅ هم نه ساقط کيږي بلکه راهن به پوره حق بېرته ورکوي.

لفظِ د روي د مشکوة په ځينو نسخو کي په معروف صيغه سره يعني روی نقل سوی دی په

دغه صورت كي به د هغه فاعل شافعي رحمه الله وي او لفظ د مثله او مثل به منصوب وي .

## په شرعي حقوقو كي د پيمانې او وزن اعتبار

﴿۲۷۶۴﴾ : وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْمِكْيَالُ مِكْيَالُ أَهْلِ الْمَدِيْنَةِ والميزان مِيْزَانُ أَهْلِ مَكَّةَ. رواه أبو داود والنسائي .

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : (په حقوق شرعيه كي)پيمانې د مدينې معتبري دي او وزن د مكې معتبر دي .(ابو داؤد نسائي)

**تخريج**: ابوداود في السنن ۳\ ۶۳۳، رقم: ۳۳۴۰، والنسائي ۵\ ۵۴، رقم: ۲۵۲۰.

**تشريح**: د دغه ارشاد مطلب دادى چي په حقوق شرعيه مثلا په زكوة وغيره كي د رانيولو او پلورلو لپاره په پيمانه كي د اهل مدينه پيمانه معتبره ده او په وزن كي د مكې وزن معتبر دى .

داسي معلوميږي چي د رسول الله ﷺ په زمانه كي د مكې او مدينې په پيمانو او وزن كي فرق او اختلاف وو ، د مدينې منورې د پيماني او وزن مقداريو وو او د مكې د پيمانې او وزن مقدار بل وو ، او په دې وجه په حقوق شرعيه يعني زكوة ، صدقې او داسي نور كي اخيستل او وركول به د خلجان باعث كېدل ځكه رسول الله ﷺ پورتنى هدايت جاري كړ ، يعني د دې خلاصه دا وه چي په درهمو كي زكوة هغه وخت واجب وو كله چي هغه د مكې د وزن مطابق دوه سوه واى او صدقه فطر او نور واجب صدقو كي د مدينې صاع معتبر وه .

د مدينې منورې د وزن په مقابله كي د مكې وزن او د مكې د وزن په مقابله كي د مدينې پيمانې ته د ترجيح وركولو وجه دا وه چي په هغه زمانه كي د غلې رانيول او پلورل د پيمانې په ذريعه كېدل او د مدينې منورې زراعت كسب وو ځكه هغوى ته د پيمانو په باره كي زيات خبر وو او د وزن استعمال په تجارت كي زيات وو او د مكې خلك اكثر تجاران وه ځكه هغوى د وزن څخه زيات خبر وه .

## په تللو او ناپ كي د كمي كوونكو لپاره وعيد

﴿۲۷۶۵﴾ : وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَصْحَابِ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ ناپ او تول والا ؤ ته وفرمايل :

الْمِكْيَالِ وَالْمِيزَانِ إِنَّكُمْ قَدْ وُلِّيتُمْ أَمْرَيْنِ هَلَكَتْ فِيهِ الْأُمَمُ السَّابِقَةُ

قَبْلَكُمْ .رواه الترمذي .

ستاسو په لاسو کي دوه داسي کارونه دي چي د کوم په سبب ستاسو مخکي قومونه هلاک سوي دي (يعني پوره تول او ناپ د کمبود ورکولو او زيات اخيستلو په وجه هلاک سوي دي نو تاسو داسي کارونه مه کوئ)(ترمذي)

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\ ۵۲۱، رقم: ۱۲۱۷.

**تشريح**: د امت محمدي څخه مخکي داسي امتونه تېر سوي دي چي هغوی په بدترين خلصت کي اخته وه چي کله به هغوی يو شی د خلکو څخه رانيوی نو هغه به يې پوره ناپ کوی او کله چي به يې يو شی ورکوی نو د هغه په ناپ کي به يې کمي کول ، د هغوی د دغه عامي خرابۍ په وجه پر هغوی د الله تعالی عذاب نازل سو او هغوی برباد سول، په داسي قومونو کي د ټولو په سر کي د حضرت شعيب عليه السلام قوم دی ځکه رسول الله ﷺ د خپل امت خلک خبردار کړل چي تاسو په ناپ او تللو کي د کمي کولو څخه پرهيز وکړئ چي په دغه لعنت کي د اخته کېدو په وجه پر تاسو باندي د الله تعالی قهر او عذاب را نه سي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د بيع سلم د مبيع د قبضې مخکي پلورلو منع

﴿۲۷۶۶﴾: عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ مَنْ اَسْلَفَ فِيْ شَيْءٍ فَلَا يَصْرِفْهُ إِلَى غَيْرِهِ قَبْلَ اَنْ يَّقْبِضَهُ .رواه ابو داؤد وابن ماجة .

د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي د چا سره د بيع سلم معامله وکړي هغه د شی د قبضه کولو څخه مخکي د دويم لور ته نه منتقل کېږي .(ابو داؤد ابن ماجه)

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\ ۷۴۴، رقم: ۳۴۶۸، وابن ماجه ۲\ ۷۶۶، رقم: ۲۲۸۳.

**تشريح**: بل چا ته دي يې نه منتقل کوي : د دې مطلب دادی چي تر څو پوري هغه شی په خپل قبضه کي را نه سي نو هغه دي پر بل چا باندي نه پلوري او نه دي يې هبه کوي ، يا دا مطلب دی چي هغه شی دي د بل شي سره نه بدلوي يعني د کوم شی چي بيع سلم سوې ده د معاملې سره سم دي هغه شی واخلي د قبضې څخه مخکي دي د هغه په بدله کي بل شی نه اخلي .

## بَابُ الْاِحْتِكَارِ (د خوراكي توكو ذخيره كول)

**د احتكار معنى** : د احتكار لغوي معنى د ګرانۍ په وجه د غلې ذخيره كېدو ته وايي ، او د شريعت په اصطلاح كي د احتكار مفهوم دادی چي د يو شي د ګران پلورلو لپاره ذخيره كول كوم چي د انسان يا حيوان غذائي ضرورت وي مثلاً د ګرانۍ په وخت كي كله چي خلكو ته د غلې ضرورت وي يو سړی غله رانيسي او په دې نيت يې ذخيره كړي چي كله زياته ګرانه سي نو خرڅه به يې كړم دې ته احتكار ويل كيږي .

**د احتكار حكم** : د شريعت له ګناه څخه احتكار حرام دی په دغه د نفرت په كار كي اخته كيدونكی سړی د شريعت له نظر ډېر ناخوښه دی مګر كه چيري يو څوك د خپل مځكي څخه پيدا سوې غله ذخيره كړي يا د ارزانۍ په زمانه كي د غلې په رانيولو سره هغه كښېږدي او بيا هغه د ګرانۍ په زمانه كي خرڅ كړي نو دا حرام نه دی همدارنګه د هغه شيانو ذخيره كول كوم چي د غذائي ضرورت په توګه نه استعماليږي دا هم حرام نه دی .

په هدايه كي وضاحت سوی دی چي د انسانانو او حيوانانو د غذايي شيانو احتكار مكروه دي په شرط ددې چي دغه احتكار په داسي ښار كي وي چيري چي ددې په وجه ښاريانو ته تكليف او تاوان رسيږي يعني كه چيري يو كوچنی ښار وي او هلته د احتكار په وجه د غلې كموالي پيدا سي چي د هغه په وجه د غلې ګراني زياته سي او خلكو ته تاوان ورسيږي ځكه نو په داسي ښار كي احتكار ممنوع دي مګر كه چيري يو لوی ښار وي او هلته د احتكار په وجه ښاريانو ته تاوان نه رسيږي نو بيا په داسي ښار كي احتكار ممنوع نه دي ، همدارنګه په هدايه كي دا هم ليكلي دي كه يو څوك د خپل مځكي د غلې احتكار وكړي يا په يو بل ښار كي غله رانيسي او هغه ذخيره كړي نو داسي سړي ته په شرعي توګه سره احتكار كونكی نه ويل كيږي .

### اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ (لومړی فصل)

### احتكار كوونكی ګناهكار دی

﴿۲۷۶۷﴾: عَنْ مُعْمَرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ احْتَكَرَ فَهُوَ خَاطِئٌ . رواه مسلم و سنذكر حديث عمر كانت اموال بني النضير في

باب الفيئ ان شاء الله تعالى .

د حضرت معمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : چا چي (د ګراني په خيال) غله وساتله هغه ګناه ګار دی .(مسلم) د حضرت عمر رضي الله عنه حديث به انشاء الله په باب الفی کي ذکر کړو.

**تخريج**: مسلم في الصحيح ٣\١٢٢٧، رقم: ١٢٩- ١٦٠٥.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د احتكار كوونكي لپاره وعيد

﴿۲۷۶۸﴾: عَنْ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْجَالِبُ مَرْزُوقٌ وَالْمُحْتَكِرُ مَلْعُونٌ . رواه ابن ماجة والدارمي .

د حضرت عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : تجار ته رزق ورکول کيږي او غله (د ګراني په فکر) ساتونکي او بندونکي لعنتي دي .(ابن ماجه دارمي)

**تخريج**: سنن ابن ماجه ٢\ ٣٢٤، رقم: ٢١٥٣، والدارمي ٢\ ٢٢٤، رقم: ٢٥٤٤.

**تشريح**: مطلب دادی چي کوم څوک د دباندي څخه ښار ته غله راوړي او هغه په موجوده او رواج قيمت باندي خرڅه کړي او د ګرانۍ په نيت سره هغه ذخيره نه کړي نو هغه ته د الله تعالی له خوا رزق ورکول کيږئ يعني هغه ته بېله ګناه ګټه تر لاسه کيږي او د هغه په رزق کي برکت ورکول کيږي ، ددې پر خلاف د خلکو د پريشانيو او غذائي کموالي څخه په ګټه اخيستلو سره غله په ذخيره کول ګناه ده او د خير څخه ليري خبره ده تر څو چي هغه په دغه لعنت کي اخته وي هغه ته برکت نه تر لاسه کيږي .

### حاکم دي خپل له طرفه نرخ نه ټاکي

﴿۲۷۶۹﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ غَلَا السِّعْرُ عَلَى عَهْدِ النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ په وخت کي غله ګرانه سوه

فَقَالُوا يَا رَسُولَ اللهِ سَعِّرْ لَنَا فَقَالَ إِنَّ اللهَ هُوَ الْمُسَعِّرُ الْقَابِضُ الْبَاسِطُ

خلکو وويل يا رسول الله! زموږ لپاره نرخ وټاکه (يعني تجارانو ته ووايه چي په دې نرخ باندي

غله خرڅه کړي) نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل : الله تعالي نرخ ټاکونکی دی هغه د شی ګرانونکي دي او ارزانونکي دی،

الرَّزَّاقُ وَإِنِّي لَأَرْجُو أَنْ أَلْقَى رَبِّي وَلَيْسَ أَحَدٌ مِنْكُمْ يَطْلُبُنِي بِمَظْلِمَةٍ فِي دَمٍ وَلَا مَالٍ. رواه الترمذي و ابوداؤد وابن ماجة والدارمي.

رزق ورکونکی دی او زه خو يوازي دا ارزو لرم چي زه د الله تعالي سره په داسي حال کي يو ځای سم چي پر ما باندي د چا د قصاص يا د مال مطالبه نه وي. (ترمذي ابو داؤد ابن ماجه دارمي.

**تخريج**: الترمذي في السنن ٣\ ٦٠٥، رقم: ١٣١٤، وابوداود في السنن ٣\ ٧٣١، رقم: ٣٤٥١، وابن ماجه في السنن ٢\ ٧٤١، رقم: ٢٢٠٠.

**تشريح**: الله ﷻ د قيمت ټاکونکی دی: ددې مطلب دادی چي ګراني او ارزاني د الله تعالی په لاس کي ده قيمت د هغه ظاهري سبب وي، دا يوازي الله تعالی دی چي کله په قيمت کي دزياتوب او ګرانۍ په صورت کي پر خلکو د رزق تنګي مسلط کړي او کله په قيمت کي د کموالي او ارزانۍ په وجه په رزق کي پراخي پيدا کوي، يعني خلک دا په آسماني قيمت سره تعبير کوي کله چي د ګرانۍ زمانه وي او په قيمت کي زياتوب کيږئ نو الله تعالی ته رجوع کول پکار دي او د هغه څخه مرسته غواړئ په خپل عقيدو او اعمالو کي د اصلاح کولو سره سره د الله تعالی د رضا او خوښۍ سامان تر لاسه کوئ چي هغه د خپلو بندګانو څخه خوشحاله سي او پر هغوی باندي د ارزانۍ او د رزق د پراختيا رحمت نازل کړي.

د حديث د آخري برخي (زه ددې اميد لرم....) ددې څخه په اصل کي دې ته اشاره ده چي د حکومت له خوا د قيمت ټاکل منع دي ځکه چي په داسي کولو سره د خلکو په معاملاتو کي بې ځايه دخل کيږي او د هغوی په مال کي د هغوی د اجازې او خوښي څخه پرته تصرف کول لازميږي چي د ظلم يو صورت دی، د قيمت ټاکلو يوه خرابه نتيجه دا هم کيږي چي ددې په وجه ډېر واره خلک کاروبار بند کړي او په تجارتي ژوند کي کمزوري پيدا سي چي د هغه په وجه تر وچ کالي او کموالي پوري نوبت راسي په پای کي دا وي چي کوم شی د الله تعالی د مخلوق د خير لپاره اختيارول کيږي هغه د هغوی د پريشانيو او مصيبتونو ذريعه جوړه سي.

د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب دادی چي د قيمت په ټاکلو سره دي خلک په پريشانۍ او مصيبت کي نه اخته کيږي بلکه ددې پر ځای دي تجاران پر دې مجبور کړي چي هغوی د الله

تعالى د مخلوق سره د همدردۍ، انصاف او خيرخواهۍ معامله وکړي او د هغوی ضمير او احساس دي داسي بيداره کړي چي هغوی په قيمت کي په کمي کولو سره د خلکو پريشاني او مصيبت ليري کړي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د غلي د ذخيره کونکي لپاره موعظت او عبرت

﴿۲۷۷۰﴾: عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عمر بن خطاب رضی اللہ عنہ څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اورېدلي دي چي

يَقُولُ مَنْ احْتَكَرَ عَلَى الْمُسْلِمِينَ طَعَامًا ضَرَبَهُ اللّٰهُ بِالْجُذَامِ وَالْإِفْلَاسِ.

رواه ابن ماجة والبيهقي في شعب الايمان و رزين في كتابه.

فرمايل يې: څوک چي غله پټهوي او په مسلمانانو باندي يې په ګرانه خرڅول غواړي نو خداي جل جلاله په هغه باندي د جزام (پيس) او مفلسۍ مرض نازل کړي. (ابن ماجه بيهقي رزين)

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\ ۷۲۹، رقم: ۲۱۵۵، البيهقي في الشعب ۷\ ۵۲۶، رقم: ۱۱۲۱۸.

**تشريح**: ددې څخه معلومه سوه چي کوم څوک د الله تعالى د مخلوق په خاصه توګه مسلمانان په تکليف او تاوان کي اچوي الله تعالى هغه په بدني او مالي مصيبتو کي اخته کوي او کوم څوک چي دوی ته ګټه رسوي نو الله تعالى د هغه په بدن او مال کي خير او برکت اچوي.

﴿۲۷۷۱﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ مَنِ احْتَكَرَ طَعَامًا أَرْبَعِيْنَ يَوْمًا يُرِيْدُ بِهِ الْغَلَاءَ فَقَدْ بَرِئَ مِنَ اللّٰهِ وَبَرِئَ اللّٰهُ مِنْهُ. رواه رزين

د حضرت ابن عمر رضی اللہ عنہما څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ ارشاد پاک دي: چا چي د ګرانۍ په خيال غله تر څلوېښتو ورځو پوري و ساتل نو هغه د خداي جل جلاله څخه بېزاره سو او خداي جل جلاله هم د هغه څخه بېزاره سو. (رزين)

**تخريج**: رواه رزين.

**تشريح**: هغه د الله تعالى څخه بېزاره سو: ددې مطلب دادی چي هغه د الله تعالى هغه عهد

مات کړ کوم چي هغه د شریعت د احکامو پر ځای راوړلو او د الله تعالی د مخلوق سره د همدردی او شفقت په اړه کړی وو.

او الله ﷻ د هغه څخه بېزاره سو: ددې مطلب دادی چي کله هغه ددغه بد عمل په ذریعه د مخلوق د پریشانۍ او تکلیف قصد وکړ نو الله تعالی د هغه څخه خپل ساتنه پورته کړه او هغه یې د خپل کرم او رحمت څخه لیري کړ.

﴿۲۷۷۲﴾: وَعَنْ مُعَاذٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ

د حضرت معاذ ؓ څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اورېدلي دي چي فرمایل یې:

بِئْسَ الْعَبْدُ الْمُحْتَكِرُ إِنْ أَرْخَصَ اللهُ الْأَسْعَارَ حَزِنَ وَإِنْ أَغْلَاهَا فَرِحَ. رواه البيهقي في شعب الإيمان ورزين في كتابه.

غله ساتونکي څومره خراب دي که خدای ﷻ غله ارزانه کړي نو هغه خفه سي او که یې ګرانه کړي نو خوشحالیږي. (بیهقي رزین)

**تخریج**: البيهقي في شعب الايمان ۱۷/ ۵۲۵، رقم: ۱۱۲۱۵.

**تشریح**: دا د هغه چا لپاره وعید او سزا ده کوم چي تر ځلوېښتو ورځو پوري د ګرانۍ په نیت سره غله ذخیره کوي چي نه خو هغه بازار ته په راوړلو سره پلوري او نه د هغه په ذریعه د مخلوق غذائي ضروریات پوره کوي او کوم څوک چي تر دغه وخت کم احتکار وکړي نو د هغه لپاره هم دغه سزا ده مګر د هغه څخه په کمه درجه ده.

﴿۲۷۷۳﴾: وَعَنْ أَبِيْ أُمَامَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنِ احْتَكَرَ طَعَامًا أَرْبَعِيْنَ يَوْمًا ثُمَّ تَصَدَّقَ بِهِ لَمْ يَكُنْ لَهُ كَفَّارَةً. رواه رزين

د حضرت ابو امامه ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: چا چي غله د څلوېښتو ورځو (د ګراني په خیال) وساتله او بیا یې هغه غله خیرات کړه نو دا صدقه د هغه کفاره نسي کېدای. (رزین)

**تخریج**: رواه رزين.

==========

# بَابُ الْاِفْلَاسِ وَالْاِنْظَارِ

## (د انظار او ډېوالي کېدو بیان)

په انساني ژوند کي د یوه حالت قرار او دوام نه سته نن یو څه وي او سبا به بل څه وي دا د ورځنۍ تجربې خبره ده ، د انسان اقتصادي او مالي ژوند ته فهم وکړئ څرنګه چي یو مفلس سړی په ورځ کي د الله تعالی د رحمت په نیتجه کي د مال او وزر د خزانو مالک جوړیږي همدارنګه لوی لوی شتمن خلک په یو وار ډیوالي کیږي ، کوم خلک چي په لکونو کي لوبي کوي چي مال او زریې اغوستل د سترګو په رپ کي هغوی د یوې یوې پیسې محتاج کیږي ، دا د کائناتو نظام دی او دا د تقدیر لوبه ده حالات پر یوه قرار ساتل د چا په وس کي نه دي دا ټولي لوبي د الله تعالی پابند دي او همېشه به همداسي پابند وي مګر بدلیدونکي حالات متوازن جوړول او په متوازن جوړولو کي مرسته کول د انسان په وس کي دي چي د هغه په اختیارولو سره د یو بل درد او تکلیف ویشل سي او د بدلیدونکو حالاتو په سمولو کي مرسته هم وکول سي دلته چي کوم باب ټاکل سوی دی په هغه کي د نقل سوو حدیثو خلاصه دا ده که چیري یو سړی د حالاتو د تبدیلۍ ښکار سي په دې توګه چي مفلس او تنګدست سي نو د نورو انسانانو دا فریضه ده چي د هغه سره د همدردۍ اظهار وکړي او پر هغه سړي چي د چا حق وي او هغه د مفلس کېدو په وجه د هغه د ادا کولو څخه عاجز وي نو د حق خاوند دي هغه ته دومره وخت ورکړي چي کله د هغه حالات ښه سي نو د هغه څخه دي خپل حق تر لاسه کړي .

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ (لومړی فصل)

### د مفلس کېدونکي په اړه یو مسئله

﴿۲۷۷۴﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَيُّمَا رَجُلٌ أَفْلَسَ فَاَدْرَكَ رَجُلٌ مَالَهُ بِعَيْنِهِ فَهُوَ اَحَقُّ بِهِ مِنْ غَيْرِهِ . متفق علیه.

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : څوک چي ډېوالي سي او هغه کس (چي شی ور باندي خرڅ کړی وي خپل شی په صحیح حالت کي تر لاسه کړي نو هغه د هغه شی حقداره دي یعني یو په بل چا څه شی خرڅ کړي بیا خریدار مفلس سو او هغه شی

موجود دي نو خرڅونکي د نورو پورورو په مقابله کي دهغه زيات مستحق دي . (بخاري)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۵\٦٢، رقم: ۲۴۰۲، ومسلم ۳\ ۱۱۹۴، رقم: ۲۴- ۱۱۹۴.

**تشريح**: د مثال په توګه داسي پوه سئ چي زيد د بکر څخه مال رانيوی مګر د هغه قيمت يې ادا کړی نه وو چي مفلس سو او قاضي او حاکم هم د هغه د مفلس کېدو فيصله وکړه اوس بکر وليدل چي د زيد سره د هغه خرڅ سوی مال بعينه هم هغسي موجود دی يعني نه خو هغه په ظاهري توګه ضائع سوی دی او نه د تصرفات شرعيه مثلا د هبه او وقف په ذريعه په معنوي توګه ختم سوی دی نو په دغه صورت کي بکر ته اختيار دی چي هغه خپل بيع فسخ کړي او د زيد څخه خپل مال بېرته واخلي ځکه د نورو پورورو په نسبت هغه مقدم دی نو پر ځای ددې چي هغه مال بل پوروړی د زيد څخه واخلي بکر د هغه د اخيستلو زيات حقدار دی او که چيري زيد د رانيولو پر وخت د مال د قيمت يو څه برخه ادا کړې وي او د پاته برخي د ادا کولو څخه مخکي مفلس او ډېوالي سي نو په دغه صورت کي دي بکر د هغه د مال څخه دومره اندازه واخلي چي د قيمت د پاته برخي په اندازه وي ، د امام شافعي او امام مالک رحمة الله عليهما دا مذهب دی، د دغه حضراتو له خوا د دغه حديث مطلب دا بيانيږي . مګر د حنيفه په نزد په دغه صورت کي پلورنکي ته نه خو د بيع فسخ کولو اختيار دی او نه د مال بېرته اخيستلو حق ځکه حنفيه دغه حديث پر عقد بالخيار باندي محمول کوي يعني د دوی په نزد د دغه حديث تعلق د هغه صورت سره دی کله چي بيع په دغه شرط سره سوې وي چي پلورنکي ته به تر فلاني وخت پوري د دغه بيع د فسخ کولو اختيار وي د بيع څخه وروسته که رانيونکی مفلس او ډيوالي سي او د خيار په وخت کي دننه بائع ته معلومه سي چي رانيونکی مفلس او ډيوالي سوی دی نو اوس د هغه لپاره غوره داده چي بيع فسخ کړي او خپل مال بېرته واخلي .

## د مفلس سره د مرسته کولو حکم

﴿۲۷۷۵﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ اُصِيبَ رَجُلٌ فِيْ عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ په زمانه کي ديو سړی پر باغ چي د

فِيْ ثِمَارٍ ابْتَاعَهَا فَكَثُرَ دَيْنُهُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَصَدَّقُوْا

هغه باغ مېوه هغه سړي اخيستې وه افت راغي او هغه ته يې سخت تاوان ورسوي او قرضداره سو رسول الله ﷺ خلکو ته وفرمايل: ده ته صدقه ورکړئ

عَلَيْهِ فَتَصَدَّقَ النَّاسُ عَلَيْهِ فَلَمْ يَبْلُغْ ذٰلِكَ وَفَاءَ دَيْنِهِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى

خلکو صدقه ورکړه خو د هغه مقدار دومره نه سو چي قرض پرې ادا سوي وای بیا رسول الله ﷺ د هغه قرض غوښتونکو ته وفرمایل:

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِغُرَمَائِهِ خُذُوا مَا وَجَدْتُمْ وَلَيْسَ لَكُمْ إِلَّا ذٰلِكَ. رواه مسلم

څه چي دده سره دي نو هغه واخلئ او تاسو ته به یوازي دومره حاصلیږي. (مسلم)

**تخریج**: مسلم في الصحیح ۳\۱۱۹۱، رقم: ۱۸- ۱۵۵۶.

**تشریح**: ددغه واقعې تفصیل دادی چي د رسول الله ﷺ په زمانه کي یو سړي یوه مېوه ناکه درخته رانیول، د درختو میوې د هغه په تصرف کي نه وې راغلي چي پر هغه آفت نازل سو او ټوله میوه ختمه سوه دلته هغه قیمت هم نه وو اداکړی او پلورنکي چي د قیمت غوښتنه وکړه نو هغه د خلکو څخه په پور اخیستلو سره قیمت اداکړی چي د هغه په وجه ډېر زیات پوروړی سو، رسول الله ﷺ چي د هغه حال ولیدی نو خلک یې هغه ته متوجه کړل چي هغوی د صدقې او خیرات په ذریعه د هغه مرسته وکړي چي د هغه د پور بار سپک سي. خلکو د هغه مرسته وکړه مګر د هغوی مرسته هم د پور د اداکولو لپاره بس نه سوه د خلکو په مرسته چي څومره پور ادا کیدای سو هغه یې اداکړ او د پاته پور د اداکولو څخه هغه بالکل عاجز وو نو رسول الله ﷺ خلکو ته هغه الفاظ وویل کوم چي د حدیث په آخر کي نقل سوي دي.

پوروړو ته د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب دا وو چي کله ددغه سړي افلاس ظاهر سي او حال یې خراب سي نو اوس ستاسو لپاره دا بالکل مناسب نه ده چي دې پریشانه کړئ یا د قید او بند په مصیبت کي یې اخته کړئ بلکه په دغه صورت کي پر تاسو باندي واجب ده چي ده ته وخت ورکړئ چي دده سره د پور د اداکولو لپاره څه پیدا سي نو هغه وخت تاسو غوښتنه ځیني وکړئ او خپل پور ځیني واخلئ، د رسول الله ﷺ د ارشاد دا مطلب نه وو چي د ددغه سړي څخه د پوروړو حق ساقط سوی دی بلکه دده څخه د رسول الله ﷺ مقصد دا وو چي پوروړی ته وخت ورکړل سي.

## په پور کي د وخت ورکولو اجر

﴿۲۷۷۶﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كَانَ رَجُلٌ

د حضرت ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: یو سړي به معامله کول او

يُدَايِنُ النَّاسَ فَكَانَ يَقُولُ لِفَتَاهُ إِذَا أَتَيْتَ مُعْسِرًا فَتَجَاوَزْ عَنْهُ لَعَلَّ اللّٰهَ يَتَجَاوَزُ عَنَّا قَالَ فَلَقِيَ اللّٰهَ فَتَجَاوَزَ عَنْهُ . متفق عليه

خپلو كاركونكو ته يې ويلي وه كله چې يو تنګدست ته د قرض اخيستلو لپاره ورسئ نو ته هغه معافوه شايد چې الله تعالي موږ ته معافي وكړي او كوم وخت چې هغه وفات سو نو خداي تعالي هغه وبخښي او د هغه ګناهونه يې معاف كړه . (بخاري اومسلم)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۳۰۸\۱۴، رقم: ۲۰۷۸، ومسلم ۱۱۹۶\۳، رقم: ۱۵۶۲\۳۱.

**تشريح**: فرض اعمال تر نفلو اعمالو اويا درجې زيات فضيلت لري مګر په ځينو مسائلو او معاملاتو كي نفل اعمال تر فرضو اعمالو زيات فضيلت لري چې د هغو څخه يو مفلس او غريب ته خپل حق معافول دي كه څه هم دا مستحب دي مګر مفلس او غريب ته پور په ادا كولو كي وخت وركولو څخه افضل دى چي واجب دى ، دوهم په سلام كولو كي مخكي كېدل سنت دي مګر دا غوره دي د سوال د جواب وركولو څخه چي فرض دى، دريم د وخت څخه مخكي اودس كول مستحب دى مګر د ا د وخت د شروع كېدو څخه وروسته تر اودس كولو غوره دى كوم چي فرض دى .

﴿۲۷۷۸﴾: وَعَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ أَنْظَرَ مُعْسِرًا أَوْ وَضَعَ عَنْهُ أَنْجَاهُ اللّٰهُ مِنْ كُرَبِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ . رواه مسلم .

د حضرت ابو قتاده رضي الله عنه څخه روايت دى چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اورېدلي دي څوک چي د خپل قرض په وصولولو كي مفلس ته مهلت وركړي يا خپل قرض ور معاف كړي نو خداي تعالي به هغه د قيامت په ورځ د سختيو څخه وساتي .(مسلم)

**تخريج**: مسلم في الصحيح في الموضع نفسه ، رقم: ۳۲- ۱۵۶۲.

﴿۲۷۷۹﴾: وَعَنْ أَبِي الْيَسَرِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ أَنْظَرَ مُعْسِرًا أَوْ وَضَعَ عَنْهُ أَظَلَّهُ اللّٰهُ فِيْ ظِلِّهِ . رواه مسلم .

د حضرت ابو يسر رضي الله عنه څخه روايت دى چي ماد رسول الله ﷺ څخه دا اورېدلي دي څوک چي

مفلس ته مهلت ورکړي يا خپل قرض ورمعاف کړي خدای ﷻ به د خپل سايې لاندي ځای ورکړي . (مسلم)

**تخريج**: مسلم في الصحيح في الموضع السابق.

**تشريح**: امام احمد ، ابن ماجه او حاکم د رسول الله ﷺ دغه ارشاد نقل کړی دی چي کوم څوک يو مفلس او غريب سړي ته وخت ورکړي نو د ادا کولو د ورځي تر راتلو پوري هغه ته د هري ورځي په بدله کي د هغه پور په اندازه د صدقې ثواب ورکول کيږي او بيا کله چي د هغه د پور ادا کولو ورځ راسي او بيا هغه ته وخت ورکړي نو د هغه د ادا کولو د ورځي تر راتلو پوري د هري ورځي په بدله کي د هغه د پور په اندازه د صدقې ثواب ورکول کيږي او بيا کله چي د پور د ادا کولو ورځ راسي نو دی بيا هغه ته وخت ورکړي نو هغه ته د هري ورځي په بدله کي د هغه د پور په اندازه د صدقې ثواب ورکول کيږي .

دغه روايت د مثال په توګه داسي وفهموی چي مثلا يو سړی يو چا ته د دوو مياشتو په وعده سل روپۍ په پور ورکړي او دوې مياشتي وروسته د هغه مفلس او غريب سړي په لېدو سره هغه ته د يوې مياشتي نور وخت ورکړي نو هغه ته به د ټولي مياشتي داسي ثواب ورکول کيږي لکه هغه چي هره ورځ سل روپۍ صدقه کوي همدارنګه د يوې مياشتي د تېرېدو څخه وروسته په دوهم وار وخت ورکولو کي همدارنګه ثواب هغه ته ورکول کيږي تر دې چي دريم وار وخت ورکړي نو هغه ته هره ورځ داسي ثواب ورکول کيږي لکه څرنګه چي هغه هره ورځ دوه سوه روپۍ صدقه او خيرات کوي .

## په ښه توګه پور ادا کونکي غوره کس دی

﴿۲۷۸۰﴾ : وَعَنْ اَبِيْ رَافِعٍ قَالَ اسْتَسْلَفَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَكْرًا

د حضرت ابو رافع ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ يو ځوان اوښ په قرض واخيستي

فَجَاۗئَتْهُ اِبِلٌ مِنْ اِبِلِ الصَّدَقَةِ قال ابورافع فَأَمَرَنِي أَنْ اَقْضِيَ الرَّجُلَ بَكْرَهُ

وروسته د صدقې اوښان راغله نو حضرت ابو رافع ﷛ وايي چي رسول الله ﷺ ماته حکم راکړ چي زه يو ځوان اوښ د قرض غوښتونکي ته ورکړم

فقلت لا أَجِدُ إِلَّا جملا خِيَارًا رَبَاعِيًا فَقَالَ رسول الله صلى الله عليه وسلم

أَعْطِهِ إِيَّاهُ فَإِنَّ خَيرَ النَّاسِ أَحْسَنُهُمْ قَضَاءً . رواه مسلم .

ما وويل (یا رسول الله!) په دې اوښانو کې یو ځوان اوښ دی چې د هغه د اوښ څخه افضله دي او ځلورم کال يې پېل سوي دی نبي كريمﷺ وفرمايل : هغه ورکړه چې بهتر بنده هغه دي چي قرض په ښه ډول سره ادا کړي . (مسلم)

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۳\ ۱۲۲۴، رقم: ۱۱۸\ ۱۶۰۰.

**د لغاتو حل**: بَكرا: فتى من الابل (ځوان اوښ). خِيارا: اى مختارة (غوره). رباعيا: وهو من الابل ما اتى عليه ست سنين ودخل في السابعة حين طلعت رباعيته (هغه اوښ چي په اووم کال کي وي).

**تشريح**: ددغه حديث څخه معلومه سوه چي د حيوانانو په پور اخيستل جائز دي لکه څرنګه چي د امام شافعي، امام مالک او اکثرو علماؤ دا مذهب دی، مګر د امام ابوحنيفة رحمة الله عليه په نزد دا جائز نه دی هغه فرمايي چي دغه حديث منسوخ دی .

د حديث د آخري الفاظو څخه معلومه سوه چي کوم شی اخيستل سوی وي د هغه په بېرته ورکولو کي د هغه په نسبت ښه شی ورکول مستحب هم دی او لوړ همتي هم ده په شرط ددې چي د پور اخيستلو پر وخت دا شرط لګول سوی نه وي .

## پور ورکونکی غوښتنه کولای سي

﴿۲۷۸۱﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ رَجُلًا تَقَاضَى رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو هريرهؓ څخه روايت دی چي د يو سړی څخه رسول اللهﷺ يو اوښ په قرض

فَأَغْلَظَ لَهُ فَهَمَّ أَصْحَابُهُ فَقَالَ دَعُوهُ فَإِنَّ لِصَاحِبِ الْحَقِّ مَقَالًا وَاشْتَرُوا لَهُ

اخيستي وو هغه د نبي كريمﷺ څخه په سخته سره غوښتنه وکړه صحابه کرام رض د هغه د ویرولو یا د وهلو په خاطر را ولاړ سوه نبي كريمﷺ ورته وفرمايل : و ده ته هيڅ مه وايا ست ځکه چي حقدار ته ځای د خبرو وي او وروسته يې وفرمايل : اوښ رانيسئ

بَعِيرًا فَأَعْطُوهُ إِيَّاهُ وَقَالُوا لَا نَجِدُ إِلَّا أَفْضَلَ مِنْ سِنِّهِ قَالَ اشْتَرُوهُ فَأَعْطُوهُ إِيَّاهُ فَإِنَّ خَيْرَكُمْ أَحْسَنُكُمْ قَضَاءً . متفق عليه.

او و ده ته يې ورکړي صحابه کرامو رضي الله عنهم وويل دده د اوښ څخه بهتره اوپه عمر کي

زیات پیدا کیږي نبي کریم ﷺ ورته وویل چي هغه رانیسي او ورته یې ورکړئ بهتره ستاسي هغه دی چي قرض په ښه ډول سره ادا کړي .(بخاري او مسلم)

**تخریج**: البخاري في الصحیح (فتح الباري): ۴\۴۸۳، رقم: ۲۳۰۶، ومسلم ۳\۱۲۲۵، رقم: ۱۲۰- ۱۶۰۱.

**تشریح**: د رسول الله ﷺ څخه د خپل پور غوښتونکی او بیا په غوښتنه کي تلخ کلامي کونکی به کیدای سي کافر وي یا به یهودي وي او یا به بل څوک وي، ځیني حضرات وایي چي کیدای سي هغه یو صحرائي وي چي د نبوت د مقام او مجلس د ادبو څخه بالکل بې خبره وو چي په دې هم نه پوهیدی چي د چا سره څرنګه خبري وکول سي ، ددې برعکس رسول الله ﷺ د هغه خبري په خپل غوره اخلاقو سره وزغملې چي دا یوازي د نبوت خاصه کیدای سي.

د چا چي حق وي هغه ته د ویلو اختیار دی: په دې باره کي ابن مالک رحمة الله علیه فرمایي چي دلته د حق څخه مراد پور دی یعني که چیري د یو سړي پر یو چا باندي پور وي او هغه پوروړی د پور په ادا کولو کي ځنډ کوي نو پور ورکونکي ته دا حق حاصل دی چي د هغه څخه په سختۍ سره غوښتنه وکړي او د ناخوښۍ اظهار وکړي که بیا هم هغه حق ادا نه کړي نو حاکم او عدالت ته دي رجوع وکړي.

## د توان سره سم پور نه ادا کول ظلم دی

﴿۲۷۸۲﴾: وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَطْلُ الْغَنِيِّ ظُلْمٌ فَإِذَا أُتْبِعَ أَحَدُكُمْ عَلَى مَلِيٍّ فَلْيَتْبَعْ . متفق علیه

د حضرت ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د مالدار سړی په خپل قرض ادا کولو کي پس او پیش (انې بانې) کول ظلم دي کله چي د یو چا قرض په مالداره سړي باندي وګمارل سي نو تاسي هغه منظور کړئ . (بخاري او مسلم)

**تخریج**: البخاري في الصحیح (فتح الباري): ۴\۴۶۴، رقم: ۲۲۸۷، ومسلم ۳\۱۱۹۷، رقم: ۳۲- ۱۵۶۴

**د لغاتو حل**: مَطل: ای تاخیره اداء الدین من وقت الی وقت (په پور کي ځنډ کول).

**تشریح**: د حدیث د اولي برخي مطلب دا دی چي کوم څوک یو شی رانیسي او د هغه د قیمت ادا کولو توان درلودلو سربېره قیمت ادا نه کړي یا د چا پوروړی وي او د پور پر ادا کولو باندي د قادر کېدو سربېره ځنډ کوي نو دا ظلم دی بلکه ځینو علماؤ خو داسي لیکلي دي چي دا فسق دی او په دې وجه ددغه سړي شاهدي رد کیږي که څه هم دغه عمل یو وار ظاهر سوی وي مګر د

ځینو نورو علماؤ قول دادی چي د هغه سړي شاهدي د رد وړ ده چي د توان درلودلو سربېره په وار وار ناخبرتیا کي اخته وي او په ادا کولو کي ځنډ کول د هغه عادت ګرځېدلی وي.

د حدیث د دوهمي برخي (او کله چي په تاسو کي یو څوک صاحب استطاعت ته حواله کړل سي ...الخ) ددې مطلب دادی چي د یو سړي پر یو چا باندي پور وي او د هغه د پور پر ادا کولو باندي د نه قادر کېدو په وجه یو شتمن سړي ته دا ووايي چي ته زما پور ادا کړه نو پور غوښتونکي ته پکار ده چي هغه د پور وړی دغه خبره سمدستي ومني چي د هغه مال ضائع نه سي. دغه حکم د استحباب په توګه دی مګر د ځینو علماؤ قول دادی چي دغه حکم د وجوب په طریقه دی، او ځینو علماء دغه حکم ته د اباحت په طریقه ویلي دي.

## د پوروړو تنازعه ختمول جائز دي

﴿۲۷۸۳﴾: وَعَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّهُ تَقَاضَى ابْنَ أَبِي حَدْرَدٍ دَيْنًا لَهُ عَلَيْهِ فِي

د حضرت کعب بن مالک رضي الله عنه څخه روایت دی چي هغه د رسول الله ﷺ په زمانه کي د ابن ابي

عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ فَارْتَفَعَتْ أَصْوَاتُهُمَا حَتَّى

حدرد څخه په مسجد کي د خپلو پیسو تقاضا وکړه نو په خبرو خبرو کي د دواړو اوازونه پورته

سَمِعَهَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي بَيْتِهِ فَخَرَجَ إِلَيْهِمَا رَسُولُ

سوه نبي کریم ﷺ په خپل کور کي د هغوی اوازونه واورېدل نو هغوی ته را ووت

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى كَشَفَ سِجْفَ حُجْرَتِهِ وَنَادَى كَعْبَ بْنَ مَالِكٍ

او د خپلي حجرې پرده یې پورته کړه او کعب بن مالک رضي الله عنه یې مخاطب کړ او ورته یې

قَالَ يَا كَعْبُ قَالَ لَبَّيْكَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ فَأَشَارَ بِيَدِهِ أَنْ ضَعِ الشَّطْرَ مِنْ دَيْنِكَ

وفرمایل: اې کعب! کعب رضي الله عنه وویل یا رسول الله ﷺ! حاضر یم نبي کریم ﷺ په ګوتو یې ورته اشاره وکړه چي نیم قرض ورته معاف کړه

قَالَ كَعْبٌ قَدْ فَعَلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ قُمْ فَاقْضِهِ

کعب رضي الله عنه ورته وویل یا رسول الله ﷺ! ما ورته معاف کړ نو نبي کریم ﷺ ابن ابي حدرد ته

وفرمایل: ولاړ سه او پاته قرض ادا کړه . (بخاري او مسلم)

**تخریج**: البخاري في الصحیح (فتح الباري): ۱۱\۵۵۱، رقم: ۴۵۷، ومسلم ۳\۱۱۹۲، رقم: ۲۰- ۱۵۵۸.

**د لغاتو حل**: سَجف: الستر (پرده).

**تشریح**: د دغه حدیث څخه معلومه سوه چي په مسجد کي د یو چا څخه د خپل پور غوښتنه کول جائز دي او حقدار ته سفارش کول، د جګړه کونکو په مینځ کي صلح کول او د یو چا سفارش قبلول په شرط د دې چي د هغه سفارش تعلق د معصیت او خرابۍ سره نه وي دا جائز دي.

## د پور په ادا کولو کي د تاخیر یو واقعه

﴿۲۷۸۴﴾: وَعَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْاَكْوَعِ قَالَ كُنَّا جُلُوسًا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت سلمه بن اکوع ﷛ څخه روایت دی چي موږ د نبي کریم ﷺ سره ناست وو چي یوه

وَسَلَّمَ إِذْ أُتِيَ بِجَنَازَةٍ فَقَالُوا صَلِّ عَلَيْهَا فَقَالَ هَلْ عَلَيْهِ دَيْنٌ قَالُوا لَا فَصَلّٰى

جنازه راوړل سوه صحابه کرامو رض رسول الله ﷺ ته د جنازې د لمانځه کولو وویل، نبي کریم ﷺ پوښتنه وکړه چي پر ده باندي قرض سته؟ صحابو کرامو ورته وفرمایل: یا، نبي کریم ﷺ هغه ته د جنازې لمونځ ورکړ

عَلَيْهِ ثُمَّ أُتِيَ بِجَنَازَةٍ أُخْرٰى فَقَالَ هَلْ عَلَيْهِ دَيْنٌ قَالُوا نَعَمْ قَالَ فَهَلْ تَرَكَ

وروسته یوه بله جنازه راوړل سوه نبي کریم ﷺ پوښتنه وکړه چي په ده باندي قرض سته ورته وویل سوه چي هو! نبي کریم ﷺ پوښتنه وکړه چي یو څه یې پرې ایښي دي؟

شَيْئًا قَالُوا ثَلَاثَةَ دَنَانِيرَ فَصَلّٰى عَلَيْهَا ثُمَّ أُتِيَ بِالثَّالِثَةِ فَقَالَ هَلْ عَلَيْهِ دَيْنٌ

صحابه کرامو رض وویل چي درې دیناره یې پرې ایښي دي نبي کریم ﷺ و هغه ته هم لمونځ ورکړ بیا دریمه جنازه راوړل سول نبي کریم ﷺ پوښتنه وکړه چي آیا پر ده باندي قرض (پور)

قَالُوا ثَلَاثَةُ دَنَانِيرَ قَالَ هل ترك شيئا قالوا لا قال صَلُّوا عَلٰى صَاحِبِكُمْ قَالَ

سته؟ ورته وویل سول چي هو، نبي کریم ﷺ پوښتنه وکړه چي څه یې پرې ایښي دي؟ دوی وویل: چي هیڅ نه، نبي کریم ﷺ وفرمایل چي پر خپل قریب باندي لمونځ وکړئ

أَبُو قَتَادَةَ صَلِّ عَلَيْهِ يَا رَسُولَ اللّٰهِ وَعَلَيَّ دَيْنُهُ فَصَلّٰى عَلَيْهِ. رواه البخاري.

ابو قتاده ﷺ وويل يا رسول الله ﷺ! لمونځ پرې وکړې دده قرض زما پر ذمه سو نو نبي کريم ﷺ لمونځ پرې وکړ. (بخاري).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴۶۶۱۴، رقم: ۲۲۸۹.

**تشريح** کيدای سي چي دري سره جنازې په يوه ورځ او يوه مجلس ته راوړل سوې وي او دا هم کيدای سي چي په جلا جلا ورځو کي او په جلا جلا مجلسو کي دغه جنازې راوړل سوي وي.

پر دوهم سړي چي پور وو د هغه اندازه به درې ديناره وه چي د ادا کولو څخه پرته مړ سوی وو ځکه رسول الله ﷺ ته معلومه سوه چي پر ده باندي څومره پور دی د هغه د ادا کولو په اندازه سامان پرېښودو سره مړ سوی دی نو رسول الله ﷺ د هغه د جنازې لمونځ وکړ.

دريم کس د خپل پور د اداکولو په اندازه مال نه وو پرې ايښی ځکه رسول الله ﷺ د هغه د جنازې د لمانځه څخه انکار وکړ، د دغه انکار وجه يا خو دا وه چي د دې څخه خلک عبرت تر لاسه کړي او د هغوی د پور کولو څخه پرهيز وکړي او که چيري د مجبوری په وجه پور واخلي نو د هغه په ادا کولو کي دي د زړه او کوتاهی څخه منع سي، او يا رسول الله ﷺ د هغه د جنازې لمونځ کول ځکه مناسب ونه ګڼل چي زه دده لپاره دعاء وکړم او هغه قبوله نه سي ځکه چي پر ده باندي د هغه خلکو حق وو چي هغه د هغه د بري الذمة کېدو څخه پرته مړ سوی وو.

په دغه حديث کي دد دې خبري دليل دی چي د مړي له خوا ضامن کېدل جائز دي که څه هم مړي د ادا کولو لپاره مال پرې ايښی وي يا نه وي، د امام شافعي او اکثرو علماؤ دا مذهب دی، مګر د امام ابو حنيفة رحمه الله په نزد دا جائز نه دي.

ځيني حنفي علماء وايي چي امام مالک، امام شافعي، امام محمد او په حنفيه کي امام ابويوسف او امام محمد رحمة الله عليهم د دغه حديث څخه د دغه خبري استدلال کړی دی چي د مړي له خوا کفالت جائز دی که يو چا مال نه وي پرې ايښی او پر هغه باندي پور وي نو دغه حضرات وايي که چيري د مړي له خوا کفالت جائز نه وای نو رسول الله ﷺ به د هغه دريم سړی د جنازې لمونځ نه کولای. مګر امام ابو حنيفة رحمه الله فرمايي چي د مفلس سړي له خوا کفالت صحيح نه دی ځکه د مفلس سړي له خوا وکالت په اصل کي د دَين ساقط کفالت دی او دا بالکل صفا مسئله ده چي د دَين ساقط کفالت باطل دی.

اوس پاته سوه دا خبره چي حضرت ابو قتاده ﷺ د مړي له خوا د هغه کفالت وکړ او رسول الله ﷺ د ابو قتاده ﷺ د کفالت په منلو سره د هغه د جنازې لمونځ وکړ نو په دې باره کي امام ابو حنيفة رحمه الله وايي چي د حديث د الفاظو څخه يوازې دا نه ثابتيږي چي ابو قتاده ﷺ د هغه

سړي په ژوند کي د هغه له خوا کفالت کړی وي دلته هغه یوازي د رسول الله ﷺ په مخکي دد ې خبري اظهار وکړ چي ما دده کفالت د مخکي څخه کړی دی . اوس زه دده د پور ذمه داریم ، رسول الله ﷺ د هغه پر دغه اقرار او اظهار باندي د هغه د جنازې لمونځ وکړ .

ددې څخه پرته دا هم کیدای سي چي ابو قتاده ﷺ هغه وخت د مړي له خوا کفالت نه وي کړی بلکه د احسان او تبرع له مخي یې دا وعده کړې وي چي زه به دده پور ادا کوم .

## د پور د ادا کولو د نیت لرونکي الله ﷻ مرسته کوي

﴿۲۷۸۵﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ أَخَذَ

د حضرت ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : څوک چي د خلکو څخه

أَمْوَالَ النَّاسِ يُرِيْدُ أَدَاءَهَا أَدَّى اللّٰهُ عَنْهُ وَمَنْ أَخَذَ يُرِيْدُ إِتْلَافَهَا أَتْلَفَهُ اللّٰهُ عَلَيْهِ . رواه البخاري .

قرض واخلي او د هغه د ادا کولو اراده ولري نو خدای تعالی پرې هغه قرض ادا کوي او څوک چي په دې نیت قرض واخلي چي هغه ضائع کړي نو خدای تعالی د هغه مال ضائع کوي . (بخاري) .

**تخریج** : البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۵\۵۳، رقم: ۲۳۸۷.

## الله ﷻ حقوق العباد نه معافوي

﴿۲۷۸۶﴾: وَعَنْ اَبِيْ قَتَادَةَ قَالَ قَالَ رَجُلٌ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ أَرَأَيْتَ إِنْ قُتِلْتُ فِي

د حضرت ابو قتاده ﷺ څخه روایت دی چي یوه سړي وویل : یا رسول الله ﷺ ! که زه د خدای تعالی په لاره کي ووژل سم

سَبِيْلِ اللّٰهِ صَابِرًا مُحْتَسِبًا مُقْبِلًا غَيْرَ مُدْبِرٍ يُكَفِّرُ اللّٰهُ عَنِّيْ خَطَايَايَ فَقَالَ

او زما دا حالت وي چي ما په سختیو صبر کړي وي په جنګ کي د ثواب طلبګاریم (او همېشه مي مقابله کړې وي) او د پر شا تګ (په جنګ کي د کفارو سره) مي هیڅ کله اراده نه وي کړې نو ایا زما ګناهونه به خدای تعالی معاف کړي ؟ نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل:

رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ نَعَمْ فَلَمَّا اَدْبَرَ نَادَاهُ فَقَالَ نَعَمْ اِلَّا الَّذِيْنَ كَذٰلِكَ قَالَ

جِبْرَئِیْلُ . رواه مسلم

هو، کله چي هغه سړی رهي سو نو رسول الله ﷺ ورته اواز وکړ او ورته یې وفرمایل : ټول ګناهونه الله تعالی معافوي خو قرض نه معافوي جبرئیل علیه السلام ماته همدغسي ویلي دي . (مسلم).

**تخریج**: مسلم في الصحیح ۱۵۰۱\۳، رقم: ۱۱۷- ۱۸۸۵.

**تشریح**: د دغه حدیث څخه معلومه سوه چي د بندګانو د حقوقو معامله ډېره سخته ده الله تعالی په خپل حقوق، عبادت او طاعت کي کوتاهي او ګناه معافوي مګر د بندګانو حقوق یعني پور وغیره نه معافوي او ددغه حدیث څخه معلومه سوه چي حضرت جبرائیل علیه السلام رسول الله ﷺ ته یوازي هغه پیغام نه رسوی کوم چي د قرآن کریم په شکل کي زموږ په وړاندي دی بلکه ددې څخه پرته نور هدایات او احکام یې رسول.

﴿۲۷۸۷﴾: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ ابْنِ عَمْرٍو أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يُغْفَرُ لِلشَّهِيدِ كُلُّ ذَنْبٍ إِلَّا الدَّيْنَ . رواه مسلم .

د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د شهید ټول ګناهونه معافیږي خو قرض یې نه معافیږي . (مسلم)

**تخریج**: مسلم في الصحیح في الموضع السابق ۱۵۰۲\۳، رقم: ۱۱۹- ۱۸۸۶.

**تشریح**: د دَین (پور) څخه مراد د بندګانو حقوق دي، ددې مطلب دادی چي پر یو چا باندي د بنده یو حق وي یعني که د یو چا پر ذمه د یو چا مال وي یا هغه د یو چا په ناحقه قتل کړی وي یا چا ته یې بد ویلي وي یا د چا غیبت یې کړی وي که داسي سړی شهید هم سي بیا هم ددغه شیانو معافي نه ورته کیږي ځکه الله تعالی د بندګانو حقوق په هیڅ حال کي نه معافوي .

ابن مالک رحمه الله وایي چي د ځینو علماؤ دا قول دی چي ددغه حدیث تعلق د شهداء بر (یعني په وچه کي د جنګ په وجه شهید سوو) سره دی په بحري جنګ کي شهیدان ددې څخه مستثنی دی ځکه ابن ماجه او ابوامامه مرفوع روایت نقل کړی دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل په بحري جنګ کي د شهیدانو ټولي ګناهونه تر دې چي دَین (پور) هم بخښل کیږي .

### د پوروړي د جنازې څخه د رسول الله ﷺ اجتناب

﴿۲۷۸۸﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُؤْتَى

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ ته به د هغه سړی جنازه را وړل سوه

بِالرَّجُلِ الْمُتَوَفَّى عَلَيْهِ الدَّيْنُ فَيَسْأَلُ هَلْ تَرَكَ لِدَيْنِهِ قضاء فَإِنْ حُدِّثَ أَنَّهُ

چې په هغه باندې به قرض پاته وو نو نبي کریم ﷺ به ورڅخه پوښتنه کوله چې ایا د قرض د ادا کولو لپاره یې څه پرېښې دي ؟ که به ورته وویل سوه چې دومره مال یې پرې ایښې دي چې په

تَرَكَ وَفَاءً صَلَّى وَإِلَّا قَالَ لِلْمُسْلِمِينَ صَلُّوا عَلَى صَاحِبِكُمْ فَلَمَّا فَتَحَ اللهُ عَلَيْهِ

هغه سره یې قرض ادا کېږي نو د هغه د جنازې لمونځ به یې کوی او که دومره مال به یې نه وو پرې ایښې نو صحابه کرامو رض ته به یې وویل چې و خپل دوست ته د جنازې لمونځ ورکړئ بیا چې خدای تعالي فتوحات ورکړه او انکشافات یې ورپه برخه سوه

الْفُتُوحَ قَامَ فَقَالَ أَنَا أَوْلَى بِالْمُؤْمِنِينَ مِنْ أَنْفُسِهِمْ فَمَنْ تُوُفِّيَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ

نو نبي کریم ﷺ و فرمایل : زه د مسلمانانو لپاره د هغوی د ځانو څخه زیات عزیزیم څوک چې د مسلمانانو څخه ځیني مړه سي

فَتَرَكَ دَيْنًا فَعَلَيَّ قَضَاؤُهُ وَمَنْ تَرَكَ مَالًا فهو لِوَرَثَتِهِ . متفق علیه

او پر هغوی قرض وي نو دهغوی د قرض ادا کولو زه ذمه داریم او کوم مال چې ور څخه پاته سي هغه د هغه د وارثانو دي . (بخاري او مسلم) .

**تخریج**: البخاري في الصحیح (فتح الباري): ۴۷۷/۱۴، رقم: ۲۲۹۸، ومسلم ۱۲۳۷/۳، رقم: ۱۴- ۱۶۱۹.

**تشریح**: زه (د دین او دنیا په ټولو امورو کي) پر مسلمانانو د هغوی تر ځانونو زیات حق لرم ، د دې څخه دا خبره ثابته سوه چې پر مسلمانانو باندې واجب ده چې هغوی رسول الله ﷺ تر خپلو ځانو هم زیات محبوب او خوښ وګڼي د رسول الله ﷺ حکم او خواهش دې د خپل نفس پر حکم او خواهش باندې مقدم کړي ، د رسول الله ﷺ دحق دې د خپلو ځانو تر حق مقدم ګڼي او د هغوی زړونه دې د خپلو ځانونو د شفقت او محبت څخه زیات د رسول الله ﷺ د شفقت او محبت څخه ډک وي، همدارنګه د رسول الله ﷺ شان رحمت هم دادی چې یو مسلمان پر خپل ځان باندې څومره شفیق او مهربانه وي نو د رسول الله ﷺ په حق کي د هغه څخه زیات شفیق او مهربان وي د یو مسلمان ځان، عزت او آبرو او د هغه دین چې رسول الله ﷺ ته څومره عزیز او محبوب دی دومره خپله هغه ته نه دی دا پر مسلمانانو باندې د رسول الله ﷺ بې پایه شفقت دی

، كله چي الله تعالى په فتوحاتو كي د حاصليدونكي غنيمت په ذريعه پر رسول الله ﷺ د مال او زر دروازې خلاصي كړې نو رسول الله ﷺ دا هيڅكله خوښه نه كړه چي هغه مال او زر يوازي تر خپل ځان پوري محدود كړي بلكه رسول الله ﷺ خپله د سختۍ او تنگدستۍ پر پخواني حالت باندي قناعت وكړ او ټول مال او زر يې د مسلمانانو لپاره وقف كړ، ځكه رسول الله ﷺ اعلان وكړ اوس چي الله تعالى د مال او زر خزانې زما په تصرف كي راوستلې دي نو زه ددې زيات حقداريم چي د مسلمانانو د مال، عزت او آبرو ساتنه وكړم نو د مسلمانانو د پور د ادا كولو زه په خپله ذمه داريم او كه يو مسلمان په داسي حال كي د دنيا څخه رخصت سي چي پر هغه پور باندي وي او هغه د پور د ادا كولو په اندازه مال نه وي پرې ايښى نو د هغه پور به زه ادا كوم.

ځيني حضرات وايي چي رسول الله ﷺ به د مړو د پور ادا كول د بيت المال څخه كول او دا خبره قياس ته نژدې ده مگر د ځينو علماؤ قول دى چي رسول الله ﷺ به د هغوى پور د خپل مال څخه ادا كوى.

همدارنگه ځيني علماء وايي چي رسول الله ﷺ به د مړو له خوا د پور ادا كول پر رسول الله ﷺ واجب وه او د ځينو علماؤ قول دى چي د هغوى پور ادا كول پر رسول الله ﷺ واجب نه وه بلكه رسول الله ﷺ تبرعا يعني د احسان او شفقت له مخي د هغوى پور ادا كوى.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي　　(دوهم فصل)

### د ډبوالي حكم

﴿۲۷۸۹﴾: عَنْ أَبِيْ خَلْدَةَ الزُّرَقِيْ قَالَ جِئْنَا أَبَا هُرَيْرَةَ فِيْ صَاحِبٍ لَّنَا قَدْ أَفْلَسَ

د حضرت ابو خلده زرقي رضي الله عنه څخه روايت دى چي موږ ابو هريره رضي الله عنه ته د يوه سړي مقدمه راوړه چي مفلس سوي وو او د هغه سره د هغه خلكو مال وو چي د هغوى څخه رانيول سوي وو نو

فَقَالَ هٰذَا الَّذِيْ قَضٰى فِيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّمَا رَجُلٍ مَّاتَ أَوْ

ابو هريره رضي الله عنه وويل دا معامله بالكل د هغه سړي په شان ده چي د هغه فيصله رسول الله ﷺ دا كړې وه چي كوم سړى مړ سي يا مفلس سي نو د چا مال چي د هغه سره وي

أَفْلَسَ فَصَاحِبُ الْمَتَاعِ أَحَقُّ بِمَتَاعِهِ إِذَا وَجَدَهُ بِعَيْنِهِ. رواه الشافعي وابن ماجه

نو هغه د هغه د حقدار دي كله چي هغه بالكل ساتل سوي وي. (شافعي ابن ماجه).

**تخريج**: ترتيب مسند الامام الشافعي ۲\ ۱۶۳، رقم: ۲۳۶۰.

## د پوروړی روح تر ادا کولو پوري معلق وي

﴿۲۷۹۰﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ نَفْسُ الْمُؤْمِنِ مُعَلَّقَةٌ بِدَيْنِهٖ حَتّٰى يُقْضٰى عَنْهُ. رواه الشافعي واحمد والترمذي وابن ماجة والدارمي.

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د مؤمن روح د قرض په وجه معلق وي (يعني جنت ته تر هغه وخته پوري نسي داخلېدای) تر څو پوري چي د هغه قرض ادا نه کړل سي. (شافعي احمد ترمذي ابن ماجه دارمي).

**تخريج**: ترتيب مسند الامام الشافعي ۲\ ۱۹۰، رقم: ۶۷۸، واحمد في المسند ۲\ ۴۴۰، والترمذي في السنن ۳\ ۳۸۹، رقم: ۱۰۷۸، وابن ماجه في السنن ۲\ ۸۰۶، رقم: ۲۴۱۳، والدارمي ۲\ ۳۴۰، رقم: ۲۵۹۱.

**تشريح**: ځيني علماء وايي چي کوم پور د خپل ادا کولو تر وخته پوري د مؤمن روح د جنت او د صالح بندګانو په ډله کي د داخلېدو څخه منع کوي نو دا هغه پور دی چي بېله ضرورته د مال او زر په صورت کي د چا څخه اخيستل سوی وي او هغه مال او زر په پالتو کارو کي خرڅ سوی وي او هغه يې د اسراف په توګه مصرف کړی وي مګر کوم څوک چي د خپل يو ضرورت لپاره مثلاً د واجب حقوقو د تکميل لپاره يا د يو مالي غوښتني د ادا کولو په اندازه روپۍ يا مال په پور اخيستی وي او د بيا د هغه پور د ادا کولو څخه مخکي مړ سوی وي نو داسي پور به هغه د جنت او د صالحو بندګانو په ډله کي د داخلېدو څخه منع نه کړي انشاء الله تعالی، مګر د داسي پور په باره کي د وخت د پاچا دا اخلاقي فريضه ده چي د هغه حق ادا کړي او که هيڅوک د هغه پور ادا نه کړي نو بيا اميد دی چي الله تعالی به په قيامت کي پور ورکونکی راضي کړي چي هغه د پوروړی څخه په آخرت کي غوښتنه ونه کړي.

﴿۲۷۹۱﴾: وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت براء بن عازب رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

صَاحِبُ الدَّيْنِ مَأْسُوْرٌ بِدَيْنِهٖ يَشْكُوْ اِلٰى رَبِّهِ الْوَحْدَةَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. رواه في

قرضداري به د قرض په وجه قيد وي او د قيامت په ورځ به خپل رب ته د خپل يوازي والي

شكايت كوي . (شرح السنة)

شرح السنة وروي أن معاذا كان يدان فأتى غرماؤه إلى النبي ﷺ فباع

او نقل سوي دي چي حضرت معاذ رضي الله عنه به قرض اخيستي (يو ځل) د هغه قرض وركونكي د نبي كريم ﷺ په خدمت كي حاضر سو

النبي ﷺ ماله كله في دينه حتى قام معاذ بغير شيء . مرسل هذا اللفظ

نبي كريم ﷺ د معاذ ټول سامان په قرض كي خرڅ كړل او معاذ رضي الله عنه مفلس سو .

المصابيح . ولم أجده في الأصول إلا في المنتقى وعن عبد الرحمن بن كعب بن مالك قال : كان معاذ بن جبل شابا سخيا وكان لا يمسك شيئا فلم يزل يدان حتى أغرق ماله كله في الدين فأتى النبي صلى الله عليه وسلم فكلمه ليكلم غرماءه فلو تركوا لأحد لتركوا لمعاذ لأجل رسول الله صلى الله عليه وسلم فباع رسول الله صلى الله عليه وسلم ماله حتى قام معاذ بغير شيء . رواه سعيد في سننه مرسلا .

(مصابيح). او عبد الرحمن بن كعب بن مالک رض وايي چي معاذ رضي الله عنه يو ځوان او سخي سړى وو هيڅ به يې د ځان سره نه ساتل (هرڅه به يې و نورو ته وركول)او په دې خاطر به يې همېشه قرض اخيستي تر دې پوري چي د هغه ټوله مال په قرض وركولو كي ختم سو بيا د نبي كريم ﷺ په خدمت كي حاضر سو او عرض يې و كړ چي نبي كريم ﷺ د هغه د پوروړو سره خبري وكړي (يعني د قرض معافي يا د يو څو ورځو مهلت لپاره) نبي كريم ﷺ د پوروړو سره خبري وكړې هغوى وويل : كه موږ د يو چا قرض معافولاى نو د رسول په وجه به موږ د معاذ رضي الله عنه قرض خامخا معاف كړى واى (يعني هغوى د قرض معافولو څخه انكار وكړ) نو رسول الله ﷺ د معاذ رضي الله عنه ټول سامان د پوروړو لپاره خرڅ كړ او د معاذ سره هيڅ پاته نه سوه . (سعيد مرسلا)

**تخريج:** البغوي في شرح السنة ۸\۲۰۳، رقم: ۲۱۴۸.

**تشریح**: خپل پروردګار ته د خپل یوازیوالي شکایت کوي: ددې مطلب دادی چې کله هغه سړی په جنت کې د داخلېدو اجازه تر لاسه نه کړي او د نیکبختو خلکو صحبت یې په برخه نه سي او هغه دا ووینې چې ټول نیکبخته خلک جنت ته ځي او زه داسي بدبخت یم چې د هغوی د ملګرتیا او صحبت د سعادت څخه محروم یم او هغه داسي سفارش کونکی هم نه معلومېږي چې د یوازیوالي ددغه قید څخه یې خلاص کړي نو د خپل یوازیوالي او ددغه قید د وحشت څخه په پرېشانه کېدو سره به د الله تعالی په دربار کي شکایت کوي تر څو چې هغه د پور په وجه خلاصون تر لاسه نه کړي په دې توګه چې یا خو د هغه د پور په عوض کي خپل نیکۍ پور غوښتونکی ته ورکړي یا د پور غوښتونکو ګناهونه د هغوی د پور په عوض کي پر ځان بار کړي یا الله تعالی په خپل فضل او کرم سره د هغه پور غوښتونکي راضي کړي او هغوی خپل حق معاف کړي نو تر هغه وخته به هغه په دغه یوازیوالي کي وي ، یعني دغه یوازیوالی به هم د هغه لپاره د عذاب په درجه کي وي چې د هغه سره به سخت تکلیف او اذیت محسوسوي .

په یوه روایت کي داسي منقول دي چې پوروړی به د خپل پور په وجه په قبر کي بندي کړل سي او بیا به هغه الله تعالی د خپل بند او یوازیوالي شکایت کوي .

اصول هغه کتابو ته وایي چې په هغه کي حدیثونه په سند سره نقل سوي دي، منتقی د ابن تیمي رحمة الله علیه د یو کتاب نوم دی ، د مشکوة مؤلف د روایت الفاظ لم اجد الخ په ذریعه دا ښوول غواړي چې د مصابیح مصنف دغه روایت (و روی ان معاذا کان الخ) په الفاظو کي نقل کړی دی په هغه الفاظو سره دا روایت ما د اصولو په کتابو کي نه دی لیدلی بلکه دغه روایت په منتقی کي منقول دی او هغه هم په دغه الفاظو کي (وعن عبدالرحمن ... الخ) .

علامه طیبي رحمة الله علیه فرمایي چې دغه الفاظ د منتقی دي او دلته د مشکوة مؤلف ځکه نقل کړي دي چې معلومه سي دغه حدیث که څه هم د اصولو په کتابو کي نه سته چې مؤلف کتلي وي مګر په منتقی کي موجود دی مګر دغه روایت که د اصولو په کتابو کي نه وي نو صاحب منتقی به په خپل کتاب کي نه نقل کولای .

## بېله عذره پور نه ادا کول

﴿۲۷۹۲﴾: وَعَنِ الشَّرِيْدِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيُّ الْوَاجِدِ

د حضرت شرید رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : د مالداره سړي په قرض ادا

يُحِلُّ عِرْضَهُ وَعُقُوبَتَهُ قَالَ ابْنُ الْمُبَارَكِ يُحِلُّ عِرْضَهُ يُغَلَّظُ لَهُ وَعُقُوبَتَهُ يُحْبَسُ لَهُ. رواه ابوداؤد والنسائي.

کولو کي ځنډ کول د هغه بې عزتي او سزا جائز کوي ابن مبارک رحمه الله وفرمايل بې عزتي څخه مراد و هغه ته سخت او سست ويل دي او د سزا څخه مراد بندي کول دي. (ابو داود نسائي)

**تخريج**: ابوداود في السنن ۴\۴۵-۴۶، رقم: ۳۶۲۸، والنسائي ۷\۳۱۶، رقم: ۱۰۰.

**تشريح**: مطلب دادی چي کوم څوک د توان او شتمن کېدو سربېره بېله عذره د خپل پور غوښتونکی پور نه ادا کوي نو د هغه بې عزتي هم مباح ده او هغه ته سزا ورکول هم صحيح دي ځکه چي د هغه له خوا بېله عذره په ادا کولو کي ځنډ کول يو ډول ظلم دی، د بې عزتی مطلب دادی چي هغه ته بد او رد وويل سي او د سزا مطلب دادی چي د حاکم او قاضي په ذريعه يې په بند کي واچوي.

### د پوروړي د جنازې څخه د رسول الله ﷺ انکار

﴿۲۷۹۳﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ ته دلمانځه ورکولو لپاره يوه

بِجَنَازَةٍ لِيُصَلِّيَ عَلَيْهَا فَقَالَ هَلْ عَلَى صَاحِبِكُمْ دَيْنٌ قَالُوْا نَعَمْ قَالَ هَلْ تَرَكَ

جنازه راوړل سوه نبي کريم ﷺ پوښتنه وکړه ايا پر ده باندي د چا قرض سته؟ خلکو وويل بلې هو! پوښتنه يې وکړه چي ايا ده يو څه مال پرېښي دي؟

لَهُ مِنْ وَفَاءٍ قَالُوْا لاَ قَالَ صَلُّوْا عَلَى صَاحِبِكُمْ قَالَ عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ عَلَيَّ

چي په هغه سره يې قرض ادا سي خلکو وويل: يا! نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل تاسو وخپل قريب ته د جنازې لمونځ ورکړي حضرت علي رضي الله عنه بن ابي طالب وويل يا رسول الله ﷺ!

دَيْنُهُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَتَقَدَّمَ فَصَلَّى عَلَيْهِ. وفي رواية معناه وقال: فك الله

دده قرض ادا کول زما پر ذمه دي وروسته نبي کريم ﷺ و هغه ته د جنازې لمونځ ورکړ او په يوه بل روايت کي دده هم معني الفاظ دي او په هغه کي دا الفاظ زيات دي

رهانك من النار كما فككت رهان أخيك المسلم ليس من عبد مسلم

د حضرت علي رضی الله عنه خبره اوربدو سره نبي کريم ﷺ وفرمايل : ته خداي تعالي د دوږخ د اور څخه ازاد کړي يا ازاد وي دي څنګه چي تا خپل مسلمان ورور د قرض څخه سپک کړ

يقضي عن أخيه دينه إلا فك الله رهانه يوم القيامة " . رواه في شرح السنة

او وروسته يې وفرمايل کوم مسلمان بنده چي د خپل مسلمان ورور قرض ادا کړي الله تعالي به د قيامت په ورځ دی د سختيو څخه وساتي. (شرح السنة)

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۸\۲۱۳، رقم: ۲۱۵۵.

## د پور په ادا کولو سره د مړ کيدونکي لپاره زيري

﴿۲۷۹۴﴾: وَعَنْ ثَوْبَانَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ مَنْ مَاتَ وَهُوَ بَرِيءٌ مِنْ الْكِبْرِ وَالْغُلُولِ وَالدَّيْنِ دَخَلَ الْجَنَّةَ . رواه الترمذي وابن ماجة والدارمي .

د حضرت ثوبان رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي وفات سي او د تکبر خيانت او قرض څخه پاک وي نو هغه به جنت ته ځي .(ترمذي ابن ماجه دارمي)

**تخريج**: الترمذي في السنن ۴\۱۱۷، رقم: ۱۵۷۲، وابن ماجه في السنن ۲\۸۰۶، رقم: ۲۴۱۲، والدارمي ۲\۳۴۱، رقم: ۲۵۹۲.

**د لغاتو حل**: الغُلول: وهي الخيانة في المغنم والسرقة من الغنيمة قبل القسمة (د غنيمت په مال کي خيانت او غلا مخکي تر وېشلو).

## د مفلسۍ په حالت کي پوروړی مړ کيدل ګناه ده

﴿۲۷۹۵﴾: وَعَنْ اَبِيْ مُوْسٰى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ أَعْظَمَ

د حضرت ابو موسی رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د خداي تعالي په نزد د

الذُّنُوبِ عِنْدَ اللهِ أَنْ يَلْقَاهُ بِهَا عَبْدٌ بَعْدَ الْكَبَائِرِ الَّتِي نَهَى اللهُ عَنْهَا أَنْ

کبيره ګناهو څخه وروسته چي د هغه څخه الله تعالي منعه کړېده د ټولو څخه لويه ګناه داده چي بنده د خداي تعالي سره په داسي حالت کي يو ځاي سي

يَمُوتَ رَجُلٌ وَعَلَيْهِ دَيْنٌ لَا يَدَعُ لَهُ قَضَاءً . رواه احمد وابوداؤد .

چي په هغه باندي قرض وي او هغه دومره مال نه وي پرېښي چي په هغه باندي يې قرض ادا سي .(احمد ابو داؤد)

**تخريج**: احمد في المسند ۴\۳۹۲، وابوداود في السنن ۳\۶۳۷، رقم: ۲۳۴۲.

**تشريح** د مفلسي په حالت كي د پور د بار په اخيستلو سره د مړ كېدو ګناه ته د كبيره ګناه څخه وروسته درجه ځكه وركړل سوې ده چي ګناه كبيره خو بذات خود ممنوع ده مګر پور اخيستل بذات خود ممنوع نه دي چي هغه ګناه كبيره وي بلكه په ځينو حديثو كي د خپل اړتياوو د پوره كولو لپاره پور اخيستلو ته مستحب ويل سوي دي ، په ځينو ځايو كي چي د پور منع سوې ده هغه ددې په وجه ده چي ډېر واره په پور اخيستلو كي د خلكو حقوق ضائع كيږي يعني پور اخيستونكي چي پور نه ادا كوي نو د پور غوښتونكي مال بېله وجه ضائع كيږي په دغه صورت كي پور اخيستل ګناه ګرځي .

ځيني حضرات وايي چي په حديث كي د ګناه كبيره دا وضاحت كه وكړل سي چي داسي ګناه كبيره چي مشهوري وي لكه شرك ، زنا او داسي نور، نو مطلب به دا وي چي بالكل د مفلسي په حالت كي د پوروړي د مړ كېدو د ګناه درجه د مشهوري كبيره ګناه لكه شرك وغيره څخه وروسته ده نو په دغه صورت كي دا هم د نورو كبيره ګناهونو په شمېر كي راځي .

## په حرامو شيانو كي صلح ناجائز ده

﴿۲۷۹۶﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ الْمُزَنِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

د حضرت عمر بن عوف مزنيؓ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

الصُّلْحُ جَائِزٌ بَيْنَ الْمُسْلِمِينَ إِلَّا صُلْحًا حَرَّمَ حَلَالًا أَوْ أَحَلَّ حَرَامًا

د مسلمانانو په مينځ كي صلحه كول جائز ده خو هغه صلحه جائز نه ده چي د حلال شی د حرامولو

وَالْمُسْلِمُونَ عَلَى شُرُوطِهِمْ إِلَّا شَرْطًا حَرَّمَ حَلَالًا أَوْ أَحَلَّ حَرَامًا . رواه الترمذي وابن ماجة وابوداؤد وانتهت روايته عند قوله شروطهم .

او د حرام شی د حلالولو موجب وي (مثلا صلحه په دې وکړي چې زه به د خپلي ښځي سره جماع نه کوم یا په دې خبره صلحه وکړي چې زه به شراب څیښم) او کوم شرطونه چې مسلمانانو صلحه او وغیره کي کړې وي د هغه پابندي په هغه باندي واجب ده خو د هغه دشرطونو پابندي لازمه نه ده چې حلال حراموي او حرام حلالوي . (ترمذي ابن ماجه ابو داؤد)او ابوداود خپل روایت په ((شروطهم)) لفظ باندي ختم کړي دي .

**تخريج**: الترمذي في السنن ٣\ ٦٣٤، رقم: ١٣٥٢، وابن ماجه في السنن ٢\ ٧٨٨، رقم: ٢٣٥٣، وابوداود في السنن ٤\ ١٩، رقم: ٣٥٩٤.

**تشريح**: د ناجائز صلح مثال دادی چې مثلا یو سړی پر دې خبره صلح وکړي چې زه به د خپل ښځي سره جماع نه کوم نو دا صلح صحیح نه ده ځکه چې په دې کي د یو داسي شي پر ځان حرامول لازمیږي چې هغه بالکل حلال او جائز دی ، همدارنګه هغه صلح هم جائز نه ده چې حرام شی حلال کړي مثلا یو څوک پر دې باندي صلح وکړي چې زه به شراب څیښم یا خنزیر به خورم په دې کي حرام شی د ځان لپاره حلال ګڼل دي .

د کوم شرط پابندي چې جائز نه ده : ددې مثال دادی چې یو سړی د خپل ښځي سره دا شرط او عهد وکړي چې زه به د خپلي مینزي سره جماع نه کوم په دې کي د یو داسي شی پر خپل ځان د حرامولو شرط دی چې حلال دی یا مثلا د یو داسي خبري شرط وتړي چې زه به د خپل ښځي په موجودتیا کي د هغې د خور سره واده کوم ددغه شرط او عهد پابندي هم صحیح نه ده ځکه چې په دې کي د یو داشي شی د ځان لپاره حلال ګرځول لازمیږي کوم چې قطعا حرام دی .

په ظاهره خو دغه روایت ددغه باب سره تعلق نه لري مګر د کتاب مؤلف دغه حدیث دلته نقل کړی دی ځکه نو ویل کیږي چې د رانیولو او پلورلو په معاملاتو کي د مفلس او ډیوالي کېدو پر وخت اکثر د صلح او شرطو نوبت راځي ځکه نو په دغه مناسبت سره دلته د غه حدیث نقل سوی دی .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د رسول الله ﷺ توکر رانیول

﴿۲۷۹۷﴾: عَنْ سُوَيْدِ بْنِ قَيْسٍ قَالَ جَلَبْتُ أَنَا وَمَخْرَفَةُ الْعَبْدِيُّ بَزًّا مِنْ

د حضرت سوید بن قیس رضي الله عنه څخه روایت دی چې ما او مخرمه عبدي د مقام هجر څخه د خرڅ

هَجَرَ فاتينا به مكة فَجَاءَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْشِيْ فَسَاوَمَنَا

لپاره ټوکر رانیول بیا هغه ټوکر موږ مکې ته راوړی رسول الله ﷺ پیاده زموږ خوا ته تشریف راوړی او زموږ سره یې د یوه پرتوګ سودا وکړه

بِسَرَاوِيلَ فَبِعْنَاهُ وَثَمَّ رَجُلٌ يَزِنُ بِالْاَجْرِ فَقَالَ لَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

موږ پر ده باندي د یوه پرتوګ ټوکر خرڅ کړ په دې کي یو سړي په مزدوري تول کوی رسول الله ﷺ و هغه ته وفرمایل :

وَسَلَّمَ زِنْ وَاَرْجِحْ . رواه احمد وابوداؤد والترمذي وابن ماجة والدارمي وقال الترمذي هذا حديث حسن صحيح .

ته د دې قیمت مال تول کړه او څه یې زیات تول کړه .(احمد ابو داؤد ترمذي ابن ماجه دارمي ) دا حدیث په قول د ترمذي حسن صحیح دي .

**تخريج**: الامام احمد في المسند ۴\ ۳۵۲، وابوداود ۳\ ۶۳۱، رقم: ۳۳۳۶، والترمذي ۳\ ۵۹۸، رقم: ۱۳۰۵، وابن ماجه ۲\ ۷۴۸، رقم: ۲۲۲۰، والدارمي ۲\ ۳۳۸، رقم: ۲۵۸۵.

**تشريح**: ابولیلی په خپل مسند کي د حضرت ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت نقل کړی دی چي رسول الله ﷺ هغه پرتوګ په څلور درهمه رانیولی وه ، د حدیثو څخه یوازي د رسول الله ﷺ پرتوګ رانیول ثابتیږي دا نه ثابتیږي چي رسول الله ﷺ هغه پرتوګ اغوستی وو .

په دغه حدیث کي د رسول الله ﷺ د تواضع او انکسارۍ بیان دی چي رسول الله ﷺ د پرتوګ رانیولو لپاره خپل تشریف راوړ ، او دلته د رسول الله ﷺ د اخلاقو کمال او کرم اظهار هم کیږي چي رسول الله ﷺ پرتوګ خرڅونکي ته د فیصله سوې قیمت څخه زیات مال ورکړی .

دغه حدیث په ظاهره ددغه باب د موضوع سره اړوند نه دی مگر دا به وویل سي چي ځیني وختونه د پلورنکي مفلسي او د هغه د غریبۍ په وجه هغه ته د احسان له کبله د ټاکل سوي قیمت څخه زیات ورکول پکار وي نو په دغه مناسبت سره دغه حدیث دلته نقل سوی دی .

### د پور په ادا کولو کي غیر مشروط زیاتوب جائز دی

﴿۲۷۹۸﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ كَانَ لِي عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَيْنٌ

فَقَضَانِي وَزَادَنِي . رواه ابوداؤد.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دی چي پر رسول الله ﷺ زما یو څه اندازه پور وو نو نبي کریم ﷺ زما پور ادا کړ او څه یې زیات راکړ .(ابوداؤد)

**تخریج**: سنن ابي داود ۳\۶۴۲، رقم: ۳۳۴۷.

**تشریح** ددغه دواړو حدیثو څخه معلومه سوه چي یو څوک د یو چا څخه غوښتنه (مثلاً پور) ومني او د خپل طرف څخه یو څه زیات ورکړي په شرط ددې چي هغه زیاتوب د پور پر وخت مشروط نه وي نو دا صحیح دی او دې ته به سود نه ویل کیږي ځکه چي سود خو هغه زیاتوب ته وایي چي د پور ورکولو پر وخت مشروط کړل سي مثلاً سل روپۍ د یو تاکلي وخت په وعده د پور په توګه یو چا ته ورکړي او دا شرط کښیږدي چي ددغه پور د بېرته راکولو پر وخت به لس روپۍ زیاتي راکوې نو دا قطعاً حرام دي.

## د پور په ادا کولو کي تلوار وکړئ

﴿۲۷۹۹﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ اَبِيْ رَبِيْعَةَ قَالَ اسْتَقْرَضَ مِنِّي النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ

د حضرت عبدالله بن ابي ربیعه رضي الله عنه څخه روایت دی چي زما څخه رسول الله ﷺ پور واخیستی

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْبَعِينَ أَلْفًا فَجَاءَهُ مَالٌ فَدَفَعَهُ إِلَيَّ وَقَالَ بَارَكَ اللهُ لَكَ فِي أَهْلِكَ

څلوېښت زره (درهمه)، وروسته رسول الله ﷺ ته مال راغلی او زما قرض یې ادا کړ او ویې فرمایل: خدای تعالی دي ستا او ستا په اهل و عیال کي برکت واچوي

وَمَالِكَ إِنَّمَا جَزَاءُ السَّلَفِ الْحَمْدُ وَالْأَدَاءُ . رواه النسائي .

د قرض بدله داده چي د خدای ﷻ شکر ادا کړل سي د هغه تعریف وکړل سي او قرض ادا کړل سي .(نسائي)

**تخریج**: سنن النسائي ۷\۳۱۴، رقم: ۴۶۹۷.

**د لغاتو حل**: السلف: ای القرض (پور).

## پوروړي ته د وخت ورکول ثواب دي

﴿۲۸۰۰﴾: وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

مَنْ كَانَ لَهُ عَلَى رَجُلٍ حَقٌّ فَمَنْ أَخَّرَهُ كَانَ لَهُ بِكُلِّ يَوْمٍ صَدَقَةٌ . رواه احمد.

د حضرت عمران بن حصين رضی اللہ عنہ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د چا چي په بل چا پوروي او هغه د هغه په ورکولو کي ځنډ وکړي نو د مهلت ورکونکي هره ورځ صدقه ده. (احمد)

**تخريج**: الامام احمد في المسند ۴\۴۴۲-۴۴۳.

## پور پر ميراث مخته دی

﴿۲۸۰۱﴾: وَعَنْ سَعْدِ بْنِ الْأَطْوَلِ قَالَ مَاتَ أَخِي وَتَرَكَ ثَلَاثَ مِائَةِ دِينَارٍ

د حضرت سعد بن اطول رضی اللہ عنہ څخه روايت دی چي زما ورور وفات سو او هغه درې سوه ديناره او

وَتَرَكَ وَلَدًا صِغَارًا فَأَرَدْتُ أَنْ أُنْفِقَ عَلَيْهِمْ فَقَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

کوچني بچيان پرېښودل ما غوښتل چي هغه پيسې د هغه په کوچنيانو باندي خرڅي کړم رسول الله ﷺ ته زما اراده معلومه سوه نو يې وفرمايل:

وَسَلَّمَ إِنَّ أَخَاكَ مَحْبُوسٌ بِدَيْنِهِ فَاقْضِ عَنْهُ قَالَ فَذَهَبْتُ فَقَضَيْتُ عَنْهُ ثُمَّ

ستا ورور د قرض په وجه قيد دي (يعني د خداي په نزد) ته د هغه پور ادا کړه نو بيا ما د هغه ټوله پور ورادا کړ وروسته

جِئْتُ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ قَدْ قَضَيْتُ عَنْهُ وَلَمْ يَبْقَ إِلَّا امْرَأَةٌ تَدَّعِي

زه حاضر سوم او وه مي ويل يا رسول الله! ما د ورور ټوله پور ادا کړ يوازي يوه ښځه پاته سوې

دِينَارَيْنِ وَلَيْسَتْ لَهَا بَيِّنَةٌ قَالَ أَعْطِهَا فَإِنَّهَا صَادِقَةٌ . رواه احمد.

ده چي د دوو دينارو دعوی کوي ليکن د هغې هيڅ شاهد نسته رسول الله ﷺ را ته وفرمايل: دوه ديناره و هغې ته ورکړه هغه رښتيا ويونکې وه. (احمد)

**تخريج**: الامام احمد في المسند ۵\۷.

**تشريح** کيدای سي چي رسول الله ﷺ ته د سعد رضی اللہ عنہ د ورور د پور حال بېله وحي په يو بله ذريعه معلوم سوی وي ځکه رسول الله ﷺ سعد رضی اللہ عنہ ته د هغه د پور د ادا کولو حکم ورکړ، ځکه د حاکم لپاره دا جائز ده چي هغه پر خپل معلومات باندي په باور کولو سره حکم جاري کړي او

يا كيداى سي چي رسول الله ﷺ ته به د وحي په ذريعه د هغه د پور حال معلوم سوى وي.

د دغه حديث څخه معلومه سوه چي پور پر ميراث مقدم دى يعني د مړي د مال او زر څخه مخكي د خلكو هغه غوښتني دي پوره كړل سي كوم چي هغه پر خپل ذمه پرې ايښى دي او د هغه څخه وروسته چي څه پاته سي نو هغه دي پر وارثانو وويشل سي.

## په وار وار شهيد كېدل هم د پور كفاره نه كيږي

﴿۲۸۰۲﴾: وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنُ عَبْدِ اللهِ بْنِ جَحْشٍ قَالَ كُنَّا جُلُوسًا بِفِنَاءِ الْمَسْجِدِ

د محمد بن عبد الله بن جحش رضي الله عنه څخه روايت دى چي موږ د مسجد په انګړ كي ناست وو

حَيْثُ تُوضَعُ الْجَنَائِزُ وَرَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسٌ بَيْنَ ظَهْرَيْنَا

په هغه ځاى چي جنازه ايښودل كېده او رسول الله ﷺ زموږ په مينځ كي ناست وو،

فَرَفَعَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَصَرَهُ قِبَلَ السَّمَاءِ فَنَظَرَ ثُمَّ طَأْطَأَ

نبي كريم ﷺ خپلي ستركي د اسمان و لور ته پورته كړې او ورته يې وكتل وروسته يې خپل

بَصَرَهُ وَوَضَعَ يَدَهُ عَلَى جَبْهَتِهِ قَالَ سُبْحَانَ اللهِ سُبْحَانَ اللهِ مَاذَا نَزَلَ مِنَ

نظر كښته كړ او خپل لاس يې پر تندي كښېښودي او ويې فرمايل: الله پاك دي الله پاك دي څومره سختي نازله سوې ده.

التَّشْدِيدِ قَالَ فَسَكَتْنَا يَوْمَنَا وَلَيْلَتَنَا فَلَمْ نَرَ الا خَيْرًا حَتَّى أَصْبَحْنَا قَالَ

د راوي بيان دي موږ يوه شپه او يوه ورځ خاموشه وو او ماسېوا د خير څخه مو بل هيڅ په نظر را نغلى تر دې چي سبا سو

مُحَمَّدٌ فَسَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا التَّشْدِيدُ الَّذِي نَزَلَ قَالَ

محمد راوي وايي چي ما د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وكړه هغه كومه سختي ده چي نازله سوې ده؟ نبي كريم ﷺ وفرمايل:

فِي الدَّيْنِ وَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ لَوْ أَنَّ رَجُلًا قُتِلَ فِي سَبِيلِ اللهِ ثُمَّ عَاشَ

چي هغه سختي د پور له درکه ده په هغه ذات دي مي قسم وي چي د چا په لاس کي د محمد روح ده که څوک د خداي تعالي په لاره کي مړ سي او بيا ژوندی سي

ثُمَّ قُتِلَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ثُمَّ عَاشَ ثم قتل في سبيل الله ثم عاش وَعَلَيْهِ دَيْنٌ

بيا د خداي تعالي په لاره کي مړ سي بيا ژوندی سي بيا د خدای ﷻ په لاره کي مړ سي بيا ژوندی سي او پر هغه باندي پور وي

مَا دَخَلَ الْجَنَّةَ حَتَّى يَقْضِيَ دَيْنَهُ .رواه احمد و في شرح السنة نحوه.

نو هغه به تر هغه وخته پوري جنت ته نه داخليږي تر څو پوري چي د هغه قرض اَدا نه کړل سي. (احمد شرح السنة).

**تخريج**: الامام احمد في المسند ۵\۲۸۹، رقم: ۲۱۴۵،

**د لغاتو حل**: فِناء: هو المتسع امام الدار. (انګړ)

**تشريح** په دغه حديث شريف کي دده خبري دليل دی چي رسول الله ﷺ او صحابه کرامو به د جنازې لمونځ په مسجد کي نه کوی بلکه د مسجد څخه د باندي په يو بل ځای کي به يې کوی.

=========

# بَابُ الشِّرْكَةِ وَالْوَكَالَةِ

## (د شراکت او وکالت بيان)

د شرکت لغوي معنی د يو ځای کولو ده مګر د شريعت په اصطلاح کي د دوو کسانو په مينځ کي يو داسي عقد او معامله کېدل چي په هغه کي دوی په اصل او ګټه دواړو کي شريک وي.

د شراکت دوه ډولونه دي يو شرکت ملک او بل شرکت عقد ، شرکت ملک دې ته وايي چي دوه يا څو کسان د رانيولو يا هبه او يا ميراث په ذريعه د يو شی مالکان وي يا دوه کسان په مشترکه توګه يو مباح شی تر لاسه کړي مثلاً دوه کسان په يو ځای کېدو سره ښکار وکړي او هغه ښکار د دواړو مشترک ملکيت وي يا دوه کسان د يوه جنس په بېل بېل مال کي داسي يو ځای سي چي د هغه دواړو د مال امتياز ونه کړل سي مثلاً د زيد شېدې د بکر د شېدو سره يو ځای سي يا هغه دواړه خپل مال په قصد سره د يو بل په مال کي يو ځای کړي نو دا ټول د شرکت ملک صورتونه دي او ددې شرعي حکم دادی چي هر يو شريک د خپل دوهم شريک په برخه

کي د پردي سړي په ډول دی او هر شریک خپل برخه د بل شریک د اجازې څخه پرته پلورلای سي ، البته په اخري دوو صورتو کي (یعني د یو بل د مال په یو ځای کېدو کي یا خپل مال د بل په مال کي په قصد سره یو ځای کولو په صورت ) هیڅ یو شریک هم خپله برخه د دوهم شریک د اجازې څخه پرته خرڅولای نه سي .

د شرکت عقد مطلب دادی چي د شریکانو د ایجاب او قبول په ذریعه د خپل حقوقو او مالو یو ځای کول، ددې صورت دادی چي یو څوک بل ته ووایي چي ما قبول کړ، همدارنګه د شرکت عقد رکن یعني بنیاد ایجاب او قبول دی او د صحیح کېدو شرط یې دادی چي د شراکت په معاهده کي داسي مطلقات شامل نه وي چي هغه د شرکت بنیادي اصول فوت کړي لکه په شریکانو کي د یو شریک د ځان لپاره ګټه ټاکل او مخصوص کول مثلاً په یو تجارت کي دوه کسان شریک دي او په هغوی کي یو شریک دا شرط ولګوي چي د دغه تجارت څخه په لاس ته راتلونکې ګټې کي زه پنځه سوه روپۍ د میاشتي اخلم دا شرط د مشترک او متحد د معاملاتو بالکل خلاف دي چي د شرکت بنیادي اصول او مقاصد فوت کوي ځکه د شرکت په معاهده کي داسي شرط نه لګول د شرکت د صحیح کېدو لپاره شرط دی .

د شرکت عقد څلورو ډولونه دي ۱: شرکت مفاوضه، ۲: شرکت عنان ، ۳: شرکت ضائع والتقبل، ۴: شرکت وجوه .

شرکت مفاوضه دادی چي یو څوک دا شرط ولګوي یعني په خپلو کي دا فیصله وکړي چي په مال کي، په تصرف کي، په مفاوضه کي به دواړه شریک یو مګر د دغه شرکت د صحیح کېدو شرط دادی چي هغه دواړه په دین او مذهب کي هم یو ډول او برابر وي دغه شرکت د یو بل وکالت او کفالت لازموي یعني په شرکت مفاوضه کي شریکان د یو بل وکیل او کفیل دي نوم دغه شرکت د مسلمان او ذمي په مینځ کي جائز نه دی ځکه چي د دین او مذهب په اعتبار دواړه یو ډول او مساوي نه دي همدارنګه د غلام او ازاد په مینځ کي او د بالغ او نابالغ په مینځ کي هم دغه شرکت جائز نه دی ځکه چي دوی په تصرف کي مساوي او یو ډول نه دي .

د دغه شرکت په معاهده او شرطو کي لفظ د مفاوضت یا ددې ټول متقضیات بیانول او واضح کول ضروري دي په دغه شرکت کي د عقد او معاهدې پر وخت د شریکانو خپل خپل مال ورکول یا خپل خپل مال یو ځای کول شرط نه دی، په دغه شرکت کي شریکان د یو بل کفیل او وکیل دي ځکه که په دوی کي یو څوک د خپل کورنۍ د خوراک او جامو څخه پرته یو شی رانیسي نو هغه به د ټولو شریکانو ملکیت وي .

د امام محمد رحمه الله په نزد شرکت مفاوضه او عنان یوازي په داسي مال کي صحیح کیدای سي چي د روپو، اشرفیو او د وخت د نوټ او سکې په شکل کي وي او د سرو زرو او سپینو زرو په سکو کي هم جائز دی په شرط د دې چي د هغه په ذریعه رانیول او پلورل کیږي او که چیري په شریکانو کي یو څوک د وارث یا بلي ذریعې په وجه د یو داسي مال مالک سو چي په هغه کي مفاوضت صحیح کیدای سي لکه روپۍ، اشرفۍ او داسي نور نو د شرکت او مفاوضت په باطل کېدو سره به شرکت عنان جوړ سي او که په شریکانو کي یو څوک د یو داسي مال وارث سي چي په هغه کي شرکت مفاوضت نه سي کیدای لکه اسباب، سرای، مځکه او داسي نور نو شرکت مفاوضت به پاته وي.

شرکت عنان دادی چي دوه کسان په یو خاصه معامله کي مثلا تجارت وغیره کي شریک وي او هغوی دواړه په ذکر سوو شیانو یعني تصرف او دین کي یو ډول او برابر وي یا یو ډول نه وي، دغه شراکت د یو بل وکالت لازموي مګر کفالت نه لازموي مګر د شریکانو د یو بل په وکیل کېدو سره کفیل او امین هم کیږي مګر په هغه کار کي چي په هغه کي دوی شریک وي.

شرکت ضائع والتقبل دادی چي دوه کسب کاره کسان مثلا خیاطان په دې شرط په شراکت کار کوي چي دواړه به په کار کي شریک وي او یو ځای به کار کوي او بیا چي څه مزدوري په لاس راسي هغه به په دواړو کي ویشل کیږي که د دوی د شرکت په معاهده کي دا شرط وي چي کار به دواړه نیم نیم کوي مګر په ګټه کي به یو نیمی برخه اخلي او بل به دریمه برخه اخلي نو دا شرط جائز دی، په دواړو شریکانو کي چي هر څوک د یو چا کار پر ذمه واخلي نو د هغه کول پر دواړو ضروري دي داسي نه ده چي کوم شریک کار اخیستی وي هغه دي دغه کار کوي، همدارنګه کار راوړونکی سړی په شریکانو کي د دواړو څخه خپل کار غوښتلای سي همدارنګه شریکانو ته به په مساوي توګه دا حق حاصل وي چي د هغه د یو کار مزدوري هم تر لاسه کړي او په هغوی کي به یو مزدوري ورکونکی بري الذمه سي، د کار په ګټه کي به دواړه برخه لرونکي وي که دواړه هغه کار وکړي او که یوازي یو یې وکړي.

شرکت وجوه دادی چي داسي دوه کسان چي د هغوی سره خپل سرمایه او مال نه وي په دې شرط یو مشترک کار وکړي چي دواړه به په خپل خپل حیثیت او اعتبار سره په پور سامان راوړي او هغه به پلوري او ګټه به ویشي، که چیري د دواړو په شراکت کي د مفاوضت شرط وي نو هغه به صحیح وي او که چیري هغوی شراکت بېله مفاوضت یعني مطلق وساتي نو د هغوی دغه شراکت به عنان وي، دغه شراکت د تجارت لپاره په رانیول سوي مال کي وکالت لازموي

يعني هغوی چي د خپل ځان لپاره د پلورلو کوم مال رانيولی دی د يو بل وکيل به وي که په دواړو کي دغه شرط موجود وي نو د هغه په ګټه کي به هم دواړه نيم په نيم حقدار وي او که دا شرط ولګوي چي کوم مال راوړل سوی دی په هغه کي به د يوه نيمي برخه وي او د بل به دريمه برخه نو د هغه ګټه به هم په دغه اعتبار سره ويشل کيږي په ګټه کي د کموالي او زياتوب شرط به باطل وي او دا به جائز نه وي چي هغوی دي مال نيم په نيم وويشي، او په ګټه کي دي کموالي او زياتوب وکړي په دې توګه چي يو دي د ګټي دوې برخي واخلي او بل دي يوه برخه واخلي او ددې وجه داده چي د ګټي استحقاق ضمان يعني د ذمه داری په وجه وي او ضمان د هغه رانيول سوي شی د ملک تابع دی مثلا په هغوی کي يو د مال د نيمي برخه مالک سي نو هغه ته نيم قيمت ادا کوي او کوم چي د دوو برخو مالک سي نو هغه به د دوو برخو قيمت ادا کوي ځکه چي ګټه هم د ملکيت سره سم تر لاسه کيږي، څوک چي د څومره برخي مالک سي هغومره به ګټه تر لاسه کوي او په هغه شي کي شرکت جائز نه دی چي په هغه کي وکالت صحيح نه وي لکه لرګي پريکول، وابنه کول، ښکار کول، اوبه راوړل او داسي نور نو په دواړو کي چي کوم څوک اوبه راوړي هغه به د هغه مالک وي که بل شريک د هغه سره مرسته وکړي نو هغه به د رواجي مزدوری سره سم د خپل مزودری اخيستلو حقدار وي.

د وکالت معنی داده چي د خپل حق او مال په تصرف کي بل څوک خپل قائم مقام کړي، د وکالت د صحيح کېدو شرط دادی چي مؤکل (يعني بل څوک چي وکيل جوړ سوی وي) د تصرف مالک وي او کوم سړی چي وکيل جوړيدای سي هغه په هغه معامله پوهيږي په کوم کي چي هغه وکيل جوړ سوی وي.

کومه معامله چي يو چا ته په خپله کول جائز وي په هغه کي د بل چا وکيل کول هم جائز دي او کومه معامله چي يو چا ته په خپله کول جائز نه وي نو په هغه کي وکيل جوړول هم جائز نه دي مثلا يو څوک د شرابو، خنزير يا نورو حرامو شيانو د رانيولو او پلورلو لپاره يو څوک وکيل کړي نو دا صحيح نه ده، د ټولو حقوقو په ادا کولو او د هغه په تر لاسه کولو کي وکيل جوړول جائز دي همدارنګه پر حقوقو باندي د قبضې کولو لپاره هم وکيل جوړول جائز دي مګر په حدود او قصاص کي جائز نه دی ځکه چي د هغه په انجام کي سره د متوکل په هغه ځای کي دنه موجود کېدو وکالت نه صحيح کيږي.

امام ابو حنيفة رحمه الله فرمايي چي د حقوقو د جواب ويلو لپاره وکيل جوړول د دوهمي خوا د رضامندی څخه پرته جائز نه دي مګر که چيري مؤکل ناروغ وي يا په درې منزله مسافت

باندي وي يا ددې ځخه زيات ليري وي نو بيا جائز دي، مګر صاحبين يعني امام ابويوسف او امام محمد رحمة الله عليهما فرمايي چي د دوهمي خوا د رضامندۍ ځخه پرته هم د حقوقو د جواب ويلو لپاره وکيل جوړول جائز دی.

د شرکت او وکالت په باره کي دغه اصول او مسئلې د فقهي په کتابو کي ليکل سوي دي د نور زيات تفصيل لپاره د فقه کتابو ته مراجعه وکړئ.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### په عقود کي شرکت جائز دی

﴿۲۸۰۲﴾: عَنْ زُهْرَةَ بْنِ مَعْبَدٍ أَنَّهُ كَانَ يَخْرُجُ بِهِ جَدُّهُ عَبْدُ اللهِ بْنُ هِشَامٍ

: حضرت زهره بن معبد رضي الله عنه ځخه روايت دی چي د هغه نيکه عبد الله بن هشام به بازار ته بوتلو

إِلَى السُّوقِ فَيَشْتَرِي الطَّعَامَ فَيَلْقَاهُ ابْنُ عُمَرَ وَابْنُ الزُّبَيْرِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا

او هلته به يې غله رانيوله هلته ابن عمر او ابن زبير رض ورسره يو ځای سوه

فَيَقُولَانِ لَهُ أَشْرِكْنَا فَإِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ دَعَا لَكَ بِالْبَرَكَةِ

او ورته يې وويل: موږ هم د ځانه سره شريک کړه ځکه چي رسول الله ﷺ تاته د برکت دعا کړې ده

فَيَشْرَكُهُمْ فَرُبَّمَا أَصَابَ الرَّاحِلَةَ كَمَا هِيَ فَيَبْعَثُ بِهَا إِلَى الْمَنْزِلِ وَكَانَ

نو هغه به دوی هم شريکان کول او زما نيکه دومره وګټل چي اوښ به يې په بار کړی او کور ته به يې وړل د زهره بيان دي زما نيکه

عَبْدُاللهِ بْنِ هِشَامٍ ذَهَبَتْ بِهِ أُمُّهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَسَحَ رَأْسَهُ وَدَعَا لَهُ بِالْبَرَكَةِ. رواه البخاري.

عبد الله بن هشام رضي الله عنه د هغه مور نبي کريم ﷺ ته بيولي وو نبي کريم ﷺ د هغه پر سر لاس را تير کړی وو او د برکت دعا يې ورته کړې وه. (بخاري)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۵\۱۳۶، رقم: ۲۵۰۱.

**د لغاتو حل**: الراحلة: ای ربما ربح من الطعام حمل بعير.

## د انصارو په مال کې د مهاجرینو شرکت

﴿۲۸۰۴﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَتِ الْأَنْصَارُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی (کوم وخت چې مهاجرین مدینې منورې ته راتلل) انصارو رسول الله ﷺ ته وویل

اقْسِمْ بَيْنَنَا وَبَيْنَ إِخْوَانِنَا النَّخِيلَ قَالَ لَا فَقَالُوا تَكْفُونَا الْمَئُونَةَ وَنَشْرَكُكُمْ فِي الثَّمَرَةِ قَالُوا سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا. رواه البخاري.

چې زموږ او زموږ د (مهاجرینو) وړونو په مینځ کې د خرماؤ وني تقسیم کړه نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل: زه وني نه تقسیموم تاسو دومره اندازه وکړي چې مهاجرین د کومک په حیث د محنت او مشقت مدد کاره کړئ (یعني د ونو حفاظت او اوبه ورکوئ) او موږ په پیداوار کې در سره شریک یو انصارو وویل اورو موږ او اطاعت کوو ستا .(بخاري)

**تخریج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۵\۸، رقم: ۲۳۲۵،

**د لغاتو حل**: وبین اخواننا: (ای المهاجرون).

**تشریح**: کله چې د مکې پر مسلمانانو د هغوی د هیواد مځکه تنګه سوه او د الله تعالی او د هغه د رسول په حکم هغوی د مکې څخه هجرت وکړی او مدینې منورې ته ولاړل نو هغوی خپل ټول سامان او مال په مکه کې پرې ایښی وو ځکه دلته په مدینه کې د هغوی د ژوند د اړتیاوو ذمه داري د مدینې منورې مسلمانانو (چې هغوی ته انصار ویل کیږئ) پر خپل غاړه واخیستل ، د دغه مشکل حل داسي وسو چې رسول الله ﷺ د انصارو او مهاجرینو په مینځ کې ورورولي قائمه کړه ، د مدینې انصارو په خپل ټول مال او اسبابو کې مهاجرین د خپل ځان شریکان کړل، دلته انصارو د رسول الله ﷺ څخه خواست وکړ چې زموږ د خرماوو درختي هم زموږ او زموږ د مهاجرو وړونو په مینځ کې وویشئ ، رسول الله ﷺ هغوی ته وفرمایل چې زه درختي نه ویشم بلکه تاسو خلک د دغه درختو کتنه کوئ او هغو ته د اوبو ورکولو او نور تکلیف ګالئ ځکه نو ستاسو دغه ناروغ او کمزوري مهاجر وړونو به دغه تکلیف او محنت ونه زغملای سي بیا چې کله میوه تیاره سي نو زه به ستاسو او مهاجرینو په مینځ کې ویش وکړم ، د رسول الله ﷺ دغه فیصله انصارو په خوښی سره قبوله کړه .

د دغه حدیث څخه معلومه سوه چي د خپل مسلمان ورور مرسته کول د هغوی سره ښه چلن کول او د هغوی لپاره تکلیف او محنت پر ځان ورل مستحب دی او دا حدیث د شرکت د صحیح کېدو دلیل هم دی.

## په معاملاتو کي وکیل ټاکل جائز دي

﴿۲۸۰۵﴾: وَعَنْ عُرْوَةَ بْنِ اَبِي الْجَعْدِ الْبَارِقِيِّ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عروه بن ابن جعد بارقي رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ ماته یو دینار د یوه

أَعْطَاهُ دِينَارًا لِيَشْتَرِي لَهُ بِهِ شَاةً فَاشْتَرَى لَهُ بِهِ شَاتَيْنِ فَبَاعَ إِحْدَاهُمَا

پسه رانیولو لپاره را کړ نو هغه د رسول الله ﷺ لپاره په یوه دینار باندي دوه پسونه را نیول او بیا یې یو پسه د یوه دینار په بدل کي خرڅ کړ

بِدِينَارٍ واتاه بشاة و دينار فَدَعَا لَهُ رسول الله صلى الله عليه وسلم فِي بَيْعِهِ بِالْبَرَكَةِ فكان لَوْ اشْتَرَى التُّرَابَ لَرَبِحَ فِيهِ. رواه البخاري

او د یوه پسه او یوه دیناره سره د نبي کریم ﷺ په خدمت کي حاضر سو رسول الله ﷺ د هغه په رانیولو او خرڅولو کي د برکت دعا وکړه نو بیا که هغه خاوري هم اخیستې نو په هغه کي به یې ګټه کوله. (بخاري.

**تخریج**: البخاري في الصحیح (فتح الباري): ٦\٦٣٢، رقم: ٣٦٤٢.

**تشریح**: ابن ملک رحمه الله فرمایي چي د دغه حدیث څخه معلومه سوه چي په تجارتي معاملاتو کي وکالت جائز دی همدارنګه په هغه ټولو شیانو کي یو څوک خپل وکیل جوړول هم صحیح دي چي په هغه کي نیابت او قائم مقامي کیږي.

که یو څوک د یو چا مال د هغه د اجازې څخه پرته خرڅ کړي نو بیع منعقد کیږي مګر د هغه صحیح کېدل د مالک پر اجازې موقوف دی که مالک اجازه ورکړي نو بیع صحیح کیږي دا د حنفیه مذهب دی مګر د امام شافعي رحمه الله په نزد د مالک د اجازې څخه پرته د هغه د مال خرڅول جائز نه دي که څه هم وروسته د مالک اجازه تر لاسه سي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي　(دوهم فصل)

### د امانت داره شريكانو الله ﷻ ساتونكى وي

﴿۲۸۰۶﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَفَعَهُ قَالَ إِنَّ اللّٰهَ يَقُولُ أَنَا ثَالِثُ الشَّرِيكَيْنِ مَا لَمْ يَخُنْ أَحَدُهُمَا صَاحِبَهُ فَإِذَا خَانَهُ خَرَجْتُ مِنْ بَيْنِهِمَا . رواه ابوداؤد و زاد رزين وجاء الشيطان .

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه مرفوعا روايت دى چي خداوند تعالي فرمايي :زه د دوو شريكانو په مينځ كي دريم يم تر څو پوري چي هغوى يو د بله سره خيانت نه كوي او كله چي هغوى خيانت كول پيل كړئ نو زه د هغوى څخه جلا كېږم .(ابو داؤد) او د رزين په اخير كي دا الفاظ زيات كړي دي او شيطان په هغوى كي شامل سي .

**تخريج**: ابوداود في السنن ۳\ ۶۷۷، رقم: ۳۳۸۳.

**تشريح**: د دوو شريكانو په مينځ كي دريم يم : ددې مطلب دادى چي تر څو پوري شريكان په ديانت، امانت او ايمانداري سره په خپلو كي شريک وي نو زما د محافظت او بركت سايه به پر هغوى وي په دې توګه چي زه هغوى د هر تاوان او تباهى څخه ساتم د هغوى پر مال باندي يو آفت او تاوان نه نازلوم د هغوى په رزق كي پراختيا راولم د هغوى په معاملاتو كي خير ښېګړه ساتم او په هر ځاى كي د هغوى مرسته كوم .

د هغوى څخه ليري سم : ددې مطلب دادى چي كله په شريكانو كي د بې ايمانى مكروب پيدا سي او هغوى د يو بل سره خيانت شروع كړي نو زما د ساتني او بركت سايه د هغوي څخه ختمه سي او ددې پر ځاى شيطان خپل تسلط پر راولي او ددې پاى به دا سي چي شريكان به د پوره تاوان او تباهى كندي ته ورسيږي او د هغوى د مال او رزق څخه به بركت ختم سي .

ددغه حديث څخه معلومه سوه چي په معاملاتو كي په خاصه توګه په تجارت او داسي نورو كاروبارو كي شركت مستحب دى ځكه چي ددې په وجه په كاروبار او مال كي الله تعالى بركت نازلوي كوم چي يوازي كاروباري ته نه رسيږي ځكه په كوم كاروبار كي چي دوه كسان شريک وي نو په هغوى كي هر يو د بل شريک د مال پر ساتنه او نګرانى كوښښ كوي او دا معلومه سوه چي يو بنده تر څو پوري د خپل مسلمان ورور په مرسته او خيرخواهى كي وي نو د

الله تعالی مرسته هم د هغه سره وي .

## د خائن څخه د انتقام جذبه

﴿۲۸۰۷﴾: وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَدِّ الْأَمَانَةَ إِلَى مَنْ أْتَمَنَكَ وَلَا تَخُنْ مَنْ خَانَكَ .رواه الترمذي و ابوداؤد والدارمي .

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : چاچي ته امین (امانت ساتونکي) کړي یې د هغه امانت ادا کړه او څوک چي ستا سره خیانت کوي نو ته د هغه سره خیانت مه کوه .(ترمذي ابو داؤد دارمي)

**تخریج**: ابوداود في السنن ۳\ ۸۰۵، رقم: ۳۵۳۵، والترمذي ۳\ ۵۶۴، رقم: ۱۲۶۴، والدارمي ۲\ ۳۳۸، رقم: ۲۵۸۵.

**تشریح**: قاضي رحمه الله وایي چي د حدیث د آخري هدایت څخه مراد دادی چي کله یو خائن سړی ستا سره معامله وکړي نو هغه معامله ته د هغه سره مه کوه یعني که یو سړی ستا سره خیانت وکړي نو ته د هغه سره خیانت مه کوه ځکه که ته هم خیانت وکړې نو بیا څرنګه چي هغه خائن دی همدارنګه به ته هم خائن سې مګر ددې څخه هغه سړی مستثنی دی چي د ظالم (د چا مال په زور اخیستونکي) څخه د خپل حق په اندازه مال واخلي ځکه چي هغه خو خپل حق د هغه څخه اخلي چي زیاتي او ظلم نه دی ،

امام ابوحنیفة رحمه الله فرمایي که چیري د یو چا مال یا حق د یو چا پر ذمه واجب وي او هغه مال د هغه په لاس کي وي نو هغه د خپل مال په اندازه د هغه څخه مال اخیستلای سي په شرط ددې چي کوم مال د هغه په لاس کي وي هغه د هغه مال د جنس څخه وي کوم مال چي د هغه پر ذمه دی مثلا د زید لس روپۍ د بکر پر ذمه واجب دي او د بکر یو څه روپۍ د هغه په لاس کي دي نو اوس زید ته دا حق حاصل دی چي هغه د بکر د روپو څخه خپل لس روپۍ واخلي .

## د نبي کریم ﷺ وکیل

﴿۲۸۰۸﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ أَرَدْتُ الْخُرُوجَ إِلَى خَيْبَرَ فَأَتَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دی چي ما خیبر ته د تللو اراده وکړه او د رسول الله ﷺ په خدمت کي د اجازت اخیستلو لپاره حاضر سوم

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ وَقُلْتُ إِنِّي أَرَدْتُ الْخُرُوجَ إِلَى خَيْبَرَ فَقَالَ إِذَا

ما نبي كريم ﷺ ته سلام واچوی او عرض مي وكړ چي زه خيبر ته د تلو اراده لرم نبي كريم ﷺ

أَتَيْتَ وَكِيلِي فَخُذْ مِنْهُ خَمْسَةَ عَشَرَ وَسْقًا فَإِنِ ابْتَغَى مِنْكَ آيَةً فَضَعْ يَدَكَ عَلَى تَرْقُوَتِهِ . رواه ابوداؤد

وفرمايل : ته په خيبر كي زما د وكيل سره يو ځاي سه او پنځلس وسقه خرماوي ځيني واخله او كله چي هغه ستا څخه يو نښاني وغواړي نو ته د هغه پر حلق باندي لاس كښېږده (شايد دا نښه نبي كريم ﷺ ټاكلې وه). (ابو داؤد) .

**تخريج**: ابوداود في السنن ۴\۴۷، رقم: ۳۶۳۲.

**د لغاتو حل**: ترقوته: اى علامة ودلالة (نښه).

**تشريح**: رسول الله ﷺ چي كوم سړي په خيبر كي خپل وكيل ټاكلی وو هغه ته دا هدايت سوی وو كه يو څوك زما لپاره د يو شي د غوښتلو لپاره راسي او ستا څخه زما د را استلو يو نښه وغواړي او هغه خپل لاس ستا پر حق كښېږدي نو پوه سه چي هغه سړی ما در استولی دی نو رسول الله ﷺ حضرت جابر رضي الله عنه ته دا نښه وښوول او ور وايې ستوی چي وكيل ددغه نښي په ذريعه هغه ته پنځلس وسق خرماوي وركړي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ (دريم فصل)

### په مضاربت كي خير دی

﴿۲۸۰۹﴾: عَنْ صُهَيْبٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثٌ فِيهِنَّ الْبَرَكَةُ الْبَيْعُ إِلَى أَجَلٍ وَالْمُقَارَضَةُ وَأَخْلَاطُ الْبُرِّ بِالشَّعِيرِ لِلْبَيْتِ لَا لِلْبَيْعِ . رواه ابن ماجة .

د حضرت صهيب رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : په درو شيانو كي بركت وي :۱- په نېټه باندي د مال خرڅول (يعني چي مال د معين وخت په وعده خرڅ كړې).۲- مقارضت (پور وركول)، يا مضاربت ۳- د كور د خرڅ لپاره د غنمو سره د اوربشو يو ځاي كول

نه د خرڅلاو لپاره . (رواه ابن ماجه)

**تخریج**: سنن ابن ماجه ۲\۷۶۸، رقم: ۲۲۸۹.

**تشریح** مضاربت دا دی چي یو سړی خپل مال بل سړي ته د تجارت لپاره ورکړي او هغه په خپل محنت سره کاروبار کوي او کوم ګټه چي تر لاسه سي هغه دواړه په خپلو کي ویشي.

د کور د مصرف لپاره په غنمو کي اوربشي یو ځای کول ګټور شی دی ځکه چي په داسي کولو سره د کور د غذائي اړتیاوو پوره کېدل په کفایت سره کیږي البته د خرڅولو په غنمو کي اوربشي یو ځای کول منع دي ځکه چي دا ګناه او چم دی.

**یوه واقعه**

﴿۲۸۱۰﴾: وَعَنْ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَ

د حضرت حکیم بن حزام رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ حزام ته د قرباني د حیوان لپاره

مَعَهُ بِدِينَارٍ لِيَشْتَرِيَ لَهُ بِهِ أُضْحِيَّةً فَاشْتَرَا كَبْشًا بِدِينَارٍ وَبَاعَهُ بِدِينَارَيْنِ

یو دینار ورکړ نو هغه یو پسه په یوه دینار واخیستي او په دوه دیناره یې خرڅ کړ بیا یې یو بل

فَرَجَعَ فَاشْتَرَى أُضْحِيَّةً بِدِينَارٍ وَجَاءَ بِدِينَارٍ الَّذِي اسْتَفْضَلَ مِنَ الْأُخْرَى

حیوان په یوه دینار را نیوي او د هغه او د یو دینار ګټي سره د نبي کریم ﷺ په خدمت کي حاضر

فَتَصَدَّقَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالدِّينَارِ فَدَعَا لَهُ أَنْ يُبَارَكَ لَهُ فِي تِجَارَتِهِ. رواه الترمذي وابو داؤد.

سو رسول الله ﷺ هغه دینار صدقه کړ او حکیم بن حزام لپاره یې دا دعا وکړه چي خدای تعالي دي د هغه په تجارت کي برکت واچوي. (ترمذي ابو داؤد)

**تخریج**: سنن الترمذي ۳\۵۵۸، رقم: ۳۳۸۶.

**تشریح**

**د شراکت او وکالت یو څو مسئلې**: د شراکت او وکالت په باره کي یو څو اصولي خبري د باب په شروع کي او بیا یو څو مسئلې د حدیثو په تشریح کي بیان سوي دي، دلته باب ختمیږي ځکه نو مناسب دي چي د دغه موضوع سره اړوند یو څو ضروري مسئلې ذکر کړل سي.

**شراکتي جماعت** : په یو تجارتي کاروبار یا معامله کي چي کوم خلک شریک او برخه وال وي د هغه دوه شکلونه دي یو خو دا چي د هغه کاروبار یا معاملې هر شریک مالک او متصرف او یا یوازي متصرف وي همدارنګه په هغه کاروبار یا معامله کي د ټولو شریکانو په مشوره سره یو کار کیږي ددې شکل هغه څلور شکلونه یعني شرکت مفاوضه، شرکت عنان، شرکت ضائع والتقبل او شرکت وجوه دی چي د هغه بیان د باب په شروع کي تېر سوی دی .
د شریکانو دوهم شکل دادی چي د څو کسانو یو ډله په یو تجارتي معامله کي شریک او برخه وال وي او هغه ټول کسان د قانوني نظام او ټاکل سوو قواعدو پابند وي او په هغوی کي هر یو شریک خپل ځان ته په مالکانه حیثیت سره بېل تصور کوي دغه شکل په اوسنۍ زمانه کي په تجارتي ادارو او کمپنیو باندي قیاس کیدای سي .
په دې باره کي فقهي مسئله داده چي :

۱. د داسي مشترک ادارې یا کمپنۍ د نظام چلولو پر قانون باندي عمل کولو او د کار د مزدورانو لپاره د شریکانو څخه یا د هغوی څخه پرته د نورو خلکو څخه یو سړی یا څو کسان د ټولو شریکانو په مشورې سره وټاکل سي .
۲. هیڅ شریک د تصرف حق نه لري البته د ملک حق هر شریک ته حاصل دی .
۳. د ټولو شریکانو ډله مالک او متصرف دي او دغه هیئت د ډلي که د ټولو په اتفاق وي او که په اکثره رایه سره وي .
۴. هر شریک د خپل مشترک تجارتي ادارې اجیر او مزدور جوړېدای سي .
۵. هیڅ شریک جلاوالی نه سي اختیارولای البته خپل برخه د هبې یا بیع په ذریعه منتقل کولای سي .
۶. کله چي د شریکانو شمېر محدود او پوره سي او یو شریک خپل برخه پلوري نو نور شریکان به مقدم ګڼل کیږي .
۷. که یو برخه د میراث یا بیع په ذریعه تقسیم سي نو د کمپنۍ کارکونکي به پر دې خبره مجبور وي چي د هغه برخي ټول وارثان یا حقدارانو سره په کاروبار کولو کي څه زحمت و زغمي .د هغه برخي ټول وارثان یا شریکان که په یو ځای کېدو سره دغه کاروبار وکړي یا بل څوک دلیل جوړ کړي د داسي کس برخه د ټولو شریکانو مجموعه به د یو ذات برابر ګڼل کیږي .
۸. شریکان د کاروبار چلولو لپاره چي کوم قانون جوړ او نافذ کړي د هغه پابندي به پر ټولو شریکانو باندي ضروري وي البته د شریعت خلاف قانون جوړول ګناه او د هغه پابندي

کول ناجائز ده.

۹. داسي قوانین چي د نظم او ضبط لپاره وضع کړل سي یوازي د مباحث سره به متعلق وي په منصوصات شرعیه کي به اثر کونکي نه وي.

۱۰. دا شرط چي شریکان په ذاتي توګه سره د یو پور او تاوان ذمه دار نه دي یوازي په هغه صورت کي معتبر دی کله چي هغه اعلان سوی وي.

**د شراکت فسخ**: کوم تجارتي کاروبار یا یو بله معامله چي د دوو کسانو په شراکت وي د هغه د فسخ کولو یعني شرکت ختمولو دوه صورتونه دي: اول دا چي د شرکت پر ختمولو باندي دواړه کسان راضي وي مثلا په کوم کار کي چي شرکت سوی وي هغه کار ختم سوی وي یا یو بله وجه وي او د هغه په وجه دواړه کسان د شرکت پر فسخ کولو باندي راضي وي.

دوهم دا چي یو کس شرکت ختمول غواړي که هغه مړ سي یا لیونی سي یا په یو مطالبه کي د مال ورکول پېښ سي چي په هغه سره سرمایه نه پاته کیږي یا د جلا والي یو بله وجه وي نو په دغه ټولو صورتو کي د شرکت په ختمېدو سره به وېش کیږي که څه هم د مړي وارثان او د لیوني سرپرستان د شراکت پاته ساتل غواړي.

د شراکت په فسخ کولو کي فقهي هدایت دادی چي:

۱. تر ټولو مخکي دي ټول مطالبات ادا کړل سي.

۲. د هغه معاهدو د پوره والي انتظام دي هم وکړل سي چي د شراکت پر ذمه وي.

۳. هغه ټول حقوق چي په اصل کي معتبر ګڼل کیږي مثلا مالونه به ویشل کیږي.

۴. کوم مطالبات چي پر نورو واجب وي او د هغه اصول کېدل باقي وي هغه به د اصول کېدو پر وخت د حصې په اندازه تر لاسه کیږي او هر شریک به د دوهم وکیل ګڼل کیږي چي تقاضا او وصولي کوي.

۵. د شراکت د فسخ کولو په دوهم صورت کي د دغه دوو شیانو لحاظ کول ضروري دي اول دا چي د شراکت څخه جلا کېدونکی یا د هغه قائم مقام د ذمه دار په باره کي مخته کیدای نه سي، دوهم دا چي ټول معتبر حقوق مثلا په دوکان، نوم او داسي نورو شیانو کي جلا کیدونکي شریک ته حق نه سي ورکول کیدای.

۶. په شراکتي ډلو یعني مشترک تجارتي ادارو او کمپنیو باندي د هغه اداري یا کمپنۍ د ټاکل سوي قانون حکم یا د حاکم د حکم څخه پرته د داسي انفساخ اثر نه سي لویدای ځکه چي د یوه شریک په مرګ، لیونتوب او مفلس کېدو سره د دې تعلق نه سته.

**د شراکت د فسخ کېدو په صورت کي د وړش ترتيب** : کله چي شراکت ختم سي او د شريکانو په مينځ کي د سرمايې او مال وېشل شروع سي نو د دغه ترتيب او امورو لحاظ ضروري دی :

۱. کوم مطالبات چي د شراکت پر ذمه وي د هغه ادا کول يا کومي معاهدې چي سوي وي د هغو د پوره کېدو انتظام دي په نظر کي وي.
۲. ټول معتبر حقوق او د مالو قيمت دي و ټاکل سي او د اختلاف او جګړې په صورت کي دي په قرعه اندازۍ (پچه اچولو) سره فيصله کول جائز دي.
۳. جلا کېدونکي ډلي ته به په راتلونکي کي هيڅ حق نه ورکول کېږي که څه هم د ذمه دار د بار څخه هغه خلاص نه دی.
۴. د شراکت کوم مطالبات چي د نورو پر ذمه وي په هغو کي به وکالت جاري وي، پر وصول کېدو باندي په اندازه د برخي وېشل پکار دي.

## د وکالت احکام :

۱. د وکالت د صحيح کېدو شرط دادی چي وکيل ليونی، نابالغ، غلام او محجور نه وي.
۲. په يو داسي شي کي وکيل جوړول جائز نه دی چي هغه د يو چا مملوک نه وي لکه د ځنګل وابنه يا لرګي ټولول، يا د درياب څخه اوبه راوړل يا د صدقې اخيستلو لپاره وکيل ټاکل.
۳. دا جائز دي که چيري وکيل غواړي نو مفت خدمت تر لاسه کړي او که وغواړي نو خپل مزدوري دي تر لاسه کړي او که غواړي نو په ګټه کي دي شريک سي.
۴. په هر داسي تصرف کي چي د هغه نسبت ځان او مؤکل دواړو ته کېدای سي وکيل مثل اصل مدعی او مدعا عليه جوړېدای سي د هغه په رانيولو او پلورلو او هر داسي کار کي چي د هغه نسبت ځان ته نه سي کيدای د وکيل د حقوق عقد سره هيڅ تعلق نه سته لکه نکاح او طلاق.
۵. وکيل ته دا حق نه سته چي د خپل ځان لپاره مالکانه تصرف وکړي ځکه چي هغه يوازي امين دی.
۶. مؤکل خپل وکيل د تصرف څخه مخکي بر طرفه کولای سي د تصرف څخه وروسته هغه ته د وکيل سپارل سوی کار قبلول او تسليم کولو څخه پرته نور هيڅ حق حاصل نه دی.
۷. وکيل ته دا حق دی چي هغه د مؤکل لپاره کوم مال راوړی دی د هغه د قيمت تر لاسه کولو پرته هغه ته حواله نه کړي مګر په ورکولو سره يې بېرته نه سي ورکولای.

۸. تر څو چي وکیل د قیمت تر لاسه کولو لپاره مال بند نه کړي هغه امین دی او د مال بندولو څخه وروسته به ضامن سي.
۹. وکیل ته جائز نه دي چي د کوم شي لپاره وکیل جوړ سوی دی د هغه معامله د خپل ځان لپاره وکړي.

## یو څو مسئلې

۱. زید د خپل مزدور په ذریعه د یو دکان څخه یو شی را وغوښتی او مزدور هغه شی د دوکاندار څخه په پور راوړی نو هغه دکاندار د زید څخه د قیمت غوښتنه نه سي کولای بلکه د هغه مزدور څخه دي غوښتنه وکړي او هغه مزدور دي د زید څخه غوښتنه وکړي په شرط ددې چي زید هغه ته قیمت نه وي ورکړی، همدارنګه خپل یو شی د خپل ویلو په ذریعه خرڅ کړي نو زید ته به دا حق نه وي چي هغه د رانیونکي څخه غوښتنه وکړي یا د هغه قیمت وصول کړي ځکه چي رانیونکي د کوم چا څخه هغه شی تر لاسه کړی دی هغه ته قیمت ادا کوي مګر که چیري رانیونکی زید ته خپله قیمت ورکړي نو دا جائز دي مطلب دادی که رانیونکی زید ته قیمت ور نه کړي نو زید یې په زور نه سي اخیستلای.
۲. زید د خپل مزدور په ذریعه یو من غنم وغوښتل مګر هغه یو نیم من راوړل نو زید ته د پوره یو نیم من اخیستل واجب نه دي بلکه که هغه یې نه واخلي نو نیم من به مزدور اخلي.
۳. زید یو چا ته وویل چي د فلاني پسه چي د فلانی سره دی هغه په پنځلس روپۍ ما ته راوله نو اوس هغه پسه هغه سړی د خپل ځان لپاره نه سي رانیولای مطلب دادی چي کوم شی په خاص کولو سره وکیل ته وښوول سي هغه وخت وکیل ته د خپل ځان لپاره د هغه رانیول جائز نه دي البته مؤکل چي کوم قیمت ښوولی دی د هغه قیمت څخه په زیات باندي که چیري وکیل هغه شی رانیسي نو دا جائز دی او که مؤکل یو قیمت ښوولی نه وي یوازي د رانیولو لپاره یې ویلي وي نو بیا په هیڅ صورت کي هم هغه شی وکیل د ځان لپاره نه سي رانیولای.
۴. د زید وکیل د زید لپاره یو پسه رانیوی بیا وکیل زید ته پسه ورکړی نه وو چي پسه مړ سو یا غلا سو نو د هغه پسه قیمت به زید ورکوي که چیري زید وکیل ته دا وو ایي چي تا هغه پسه زما لپاره نه بلکه د خپل ځان لپاره رانیولی وو نو د زید ددغه خبري اعتبار نه کیږي په شرط ددې چي زید د هغه پسه قیمت ورکړی وي مګر که چیرې هغه قیمت نه وي ورکړی نو

په دغه صورت کي که زید په قسم اخیستلو سره وکیل ته دا ووایي چي تا هغه پسه د خپل ځان لپاره رانیولی وو نو بیا به د هغه د رانیولو اعتبار وي او د هغه پسه تاوان به وکیل پر ځان وړي او که زید قسم نه اخلي نو بیا به د وکیل د خبري اعتبار وي.

۵. که چیري د زید مزدور یو شی ګران رانیسي نو هغه شی به زید اخلي او د هغه قیمت به ادا کوي او که چیري ډېر زیات ګران یې رانیولی وي چي هغه شی په دغه قیمت هیڅوک نه رانیسي نو د هغه اخیستل به واجب نه وي که زید هغه شی نه اخلي نو مزدور به د هغه شی ذمه دار وي.

٦. زید خپل یو شی بکر ته ورکړ چي هغه خرڅ کړي، نو د بکر لپاره دا جائز نه ده چي هغه شی په خپله واخلي او د هغه قیمت زید ته ورکړي همدارنګه که زید بکر ته ووایي چي فلانی شی زما لپاره رانیسه نو بکر ته دا اجازه نه سته چي هغه خپل شی زید ته راوړي او د هغه څخه قیمت تر لاسه کړي که چیري بکر خپل شی ورکول یا اخیستل غواړي نو زید ته دي ووایي چي زما دغه شی واخله او دومره قیمت ما ته راکړه بېله ویلو څخه داسي کول ناجائز دي.

۷. که زید په خپل مزدور باندي د پسه غوښه را وغواړي او هغه د ګامېښي یا غوا غوښه راوړي نو زید ته اختیار دی چي هغه واخلي یا یې نه واخلي، همدارنګه زید خپل مزدور ته د سیب راوړلو ویل او هغه بېهدۍ راوړلې نو مزدور ته به د هغه شي اخیستل پکار وي.

۸. زید دوه کسان ولېږل چي بازار ته ولاړ سئ او فلانی شی راوړئ نو د هغه شي د رانیولو پر وخت دواړو کسانو ته حاضر کېدل ضروري دي او که چیري د یو ه کس رانیول قبول کړي نو بیا صحیح دی.

۹. زید یو سړي ته ووایي چي د بازار څخه فلانی شی رانیسه مګر هغه سړي هغه شی نه رانیوی بلکه بل چا ته یې د رانیولو لپاره وویل، نو اوس د هغه شي اخیستل پر زید باندي واجب نه دي که هغه غواړي هغه شی واخلي او یا د اخیستلو څخه انکار وکړي البته که هغه سړي یې په خپله رانیسي نو بیا زید ته اخیستل پکار دي.

**وکیل له وکالت څخه ایستل**: د وکیل د تصرف څخه مخکي د وکالت څخه د ایستلو هر وخت اختیار دی مثلا زید یو چا ته ویلي وه چي زه یو پسه غواړم چیري چي تا ته تر لاسه سي ما ته یې راوله او بیا یې منع وکړه چي ما تا ته د کوم پسه د رانیولو لپاره ویلي وه اوس هغه مه رانیسه او ددې سربېره هغه سړي پسه رانیوی نو اوس د زید لپاره داضروري نه ده چي هغه پسه واخلي ځکه د منع کولو څخه وروسته هغه سړي ته د پسه رانیولو اختیار پاته نه سو مګر که

چيري هغه پسه رانيسي او د رانيولو څخه وروسته زيد هغه منع کړي نو په دغه صورت کي پر زيد باندي واجب دي چي هغه پسه واخلي او د هغه قيمت ادا کړي.
که چيري داسي صورت وي چي زيد خپله هغه منع نه کړ بلکه ليکل سوی خط يې ور واستوی يا د يو سړي په لېږلو سره يې خبر ورکړی چي اوس زما لپاره پسه مه رانيسه نو بيا هم هغه سړی د وکلت څخه وايستل سو، او که چيري زيد د وکالت څخه د ايستلو خبر ور نه کړي بلکه يو بل سړي هغه ته وويل چي زيد ته د وکالت څخه ايستلی يې نو اوس د هغه لپاره رانيول په دغه صورت کي که خبر ورکونکی هغه سړی وي يا يو سړی خبر ورکړی مګر هغه معتبر او د شريعت پ بند وي نو د هغه په خبر ورکولو سره هم د وکالت څخه ايستل معتبر دی او که داسي نه وي نو هغه سړی به د وکالت څخه ايستل سوی نه وي که چيري هغه پسه رانيسي نو زيد به هغه پسه اخلي او د هغه قيمت به ورکوي.

==========

# بَابُ الْغَصَبِ وَالْعَارِيَةِ

## (د غصب او عاريت بيان)

د غصب معنی په زور اخيستل دي او د شريعت په اصطلاح کي د غلا څخه پرته په ظلم او زياتي سره د يو چا مال په زور اخيستل دي، داسي سړي ته چي د يو چا څخه يو شی په زور اخلي غاصب وايي او په زور اخيستل سوي شي ته مغصوب وايي.
د عاريت لغوي معنی د غوښتل سوي شي ده او د شريعت په اصطلاح کي بېله عوضه يو بل څوک د خپل شي د ګټي مالک جوړولو ته عاريت وايي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د غصب کوونکي سزا

﴿۲۸۱۱﴾: عَنْ سَعِيْدِ بْنِ زَيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ مَنْ أَخَذَ شِبْرًا مِنَ الْأَرْضِ ظُلْمًا فَإِنَّهُ يُطَوَّقُهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنْ سَبْعِ أَرَضِيْنَ . متفق عليه

د حضرت سعيد بن زيد رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي په ظلم سره يوه لوېشت مځکه واخلي د هغي مځکي د ټکړې اووه طبقې به د قيامت په ورځ د هغه په غاړه

كي د طوق په شكل كي ور واچول سي . (بخاري او مسلم)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ٦\٢٩٣ رقم: ٢٥٠١. ومسلم ٣\١٢٣١، رقم: ١٤٠- ١٦١٠.

**تشريح**. د يو چا يو شی که زيات وي يا کم وي په زور د يو چا څخه اخيستل نه يوازي په ټولنيزه توګه ظلم او په اخلاقي توګه يو خطرناکه خرابي ده بلکه په شرعي توګه هم ډېر سخت جرم او ګناه ده ، اسلام چي د انساني حقوقو د ساتني کوم لوړ تصور وړاندي کړی دی او اسلامي شريعت پر حقوق العباد باندي د لوټونکو د کومو سزاوو او عذاب مستوجب ګرځولی دی دغه حديث شريف د هغه يوه نمونه ده ، ددې خلاصه داده چي کوم سړی د بل چا د مځکي يوه لوېشت برخه هم په زور واخلي هغه ته به ددغه ظلم او زور سزا ورکول کيږي چي د قيامت په ورځ به يوازي هغه برخه نه بلکه د اوو مځکو څخه د هغه مځکي اخيستلو په اندازه د هغه په غاړه د توک په توګه واچول سي . العياذ باالله .

په شرح السنه کي د طوق اچولو مفهوم داسي بيان سوی دی چي کوم سړی د چا مځکه غصب کړي نو د قيامت په ورځ به الله تعالی هغه په مځکه کي غرق کړي او د مځکي هغه برخه چي هغه غصب کړی وي د هغه پر غاړه به د طوق په ډول راچاپيره کړي .

## د يو حيوان شيدې د مالک د اجازې پرته لوېشل نه دي پکار

﴿٢٨١٢﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَحْلُبَنَّ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هيڅوک دي نه لويشي

أَحَدٌ مَاشِيَةَ امْرِئٍ بِغَيْرِ إِذْنِهِ أَيُحِبُّ أَحَدُكُمْ أَنْ تُؤْتَى مَشْرُبَتُهُ فَتُكْسَرَ

د چا حيوان بېله د هغه د اجازې څخه، ايا په تاسو کي به يو څوک دا خبره خوښه کړي چي څوک د هغه خزانې ته راسي او د هغه خزانه ماته کړي

خِزَانَتُهُ فَيُنْتَقَلَ طَعَامُهُ وَ إِنَّمَا تَخْزُنُ لَهُمْ ضُرُوعُ مَوَاشِيهِمْ أَطْعِمَاتِهِمْ .

رواه مسلم .

او د هغه غله يوسي همداسي د حيوان غولانزه د هغوی لپاره خوراکونه جمع کوي .(مسلم)

**تخريج**: مسلم في الصحيح ٣\١٣٥٢، رقم: ١٣- ١٧٢٦.

**د لغاتو حل**: مَشْرُبَته: اى غرفته وهي بيت فوقاني يوضع فيه المتاع. (لوړه خونه چي شيان پکښې ايښودل کيږئ).

**تشریح**: د څارویو غولانزي ته د غلې په ګودام سره تشبیه ورکړل سوې ده لکه څرنګه چي تاسو په خپلو غلو ګودامونه ډکوئ او ساتئ یې همدارنګه د نورو خلکو څاروي په خپلو غولانزو کي د خپل مالک غذائي اړتیاوي یعني شیدې خوندي ساتي، لکه څرنګه چي تاسو دا خبره نه خوښوئ چي بل سړی ستاسو د ګودامو او خزانو څخه غله یا نور شیان یوسي همدارنګه ستاسو دغه کار هم د څارویو خاوندانو ته ناخوښه دی چي تاسو د هغوی د څارویو د غولانزو څخه شیدې لویشئ.

خلاصه دا چي د نورو په مال باندي بد نظر مه کوئ او د نورو حقوق مه غصب کوئ چي بل څوک ستاسو مال غصب نه کړي او څرنګه چي تاسو مال غصب کول نه خوښوئ همدارنګه د بل چا مال غصب کول هم مه خوښوئ.

په شرح السنه کي لیکلي دي چي اکثرو علماؤ د دغه حدیث سره سم دا فتوا ورکړې ده چي د یو چا د څاروي (غوا، بزې او داسي نورو) څخه د مالک د اجازې څخه پرته شیدې لوښل جائز نه دي مګر که چیري یو څوک د لوږي څخه بدحاله وي نو د هغه لپاره دومره اجازه ده چي هغه د ضرورت په اندازه د یو چا د څاروي څخه شیدې وځیښي او بیا د هغه قیمت ادا کړي که چیري هغه سره قیمت موجود وي نو هغه وخت دي قیمت ادا کړي او که نه وي نو بیا وروسته کله چي قادر سي د هغه قیمت دي ادا کړي.

**یوه واقعه**

﴿۲۸۱۳﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِنْدَ بَعْضِ نِسَائِهِ

د حضرت انس رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي نبي کریم ﷺ د خپلو بعضو بیبیانو په کور کي وو چي

فَأَرْسَلَتْ إِحْدَى أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِينَ بِصَحْفَةٍ فِيهَا طَعَامٌ فَضَرَبَتْ الَّتِي النَّبِيُّ

یوې بلې بي بي په کاسه کي خواړه را ولېږه د نبي کریم ﷺ هغه بي بي چي هغه وخت دی د هغې

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بَيْتِهَا يَدَ الْخَادِمِ فَسَقَطَتْ الصَّحْفَةُ فَانْفَلَقَتْ

سره وو د خادم لاس وواهه نو کاسه ولوېدل او ماته سوه نبي کریم ﷺ د کاسې ټکړې پورته

فَجَمَعَ النَّبِيُّ ﷺ فِلَقَ الصَّحْفَةِ ثُمَّ جَعَلَ يَجْمَعُ فِيهَا الطَّعَامَ الَّذِي كَانَ فِي

کړې او بیا هغه خواړه چي په کاسه کي وو راټول کړه او په هغو ټکړو کي یې کښېښودل او

الصَّحْفَةِ وَيَقُولُ غَارَتْ أُمُّكُمْ ثُمَّ حَبَسَ الْخَادِمَ حَتَّى أُتِيَ بِصَحْفَةٍ مِنْ عِنْدِ

مینزي ته يې وفرمايل كوم چې خواره يې راوړي وه: ستا مور غيرت وكړ بيا يې هغه خادم را وګرځاوه تردې پورې چې د كومې بي بي په كور كې چې نبي كريم ﷺ حاضر وو

الَّتِي هُوَ فِي بَيْتِهَا فَدَفَعَ الصَّحْفَةَ الصَّحِيحَةَ إِلَى الَّتِي كُسِرَتْ صَحْفَتُهَا

د هغه كور څخه جوړه كاسه راوړه هغه يې و هغې بي بي ته ور ولیږه د چاچې كاسه ماته سوې وه

وَأَمْسَكَ الْمَكْسُورَةَ فِي بَيْتِ الَّتِي كَسَرَتْ. رواه البخاري.

او چاچې ماته كړې وه د هغه په كور كې يې ماته كاسه پرېښوده. (بخاري)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\۳۲۰، رقم: ۵۲۲۵.

**د لغاتو حل**: فِلَق: جمع فلقة وهي القطعة. (ټوټه)

**تشريح**: خادم غلام ته هم وايي او مینزي ته هم وايي دلته د خادم څخه مراد مینزه ده ځكه بي بي عائشې رضي الله عنها ته مينزي كاسه او د خوراک شيان راوړي وه.

كله چې هغه كاسه ماته سوه او په هغه كې د خوراك شيان پر مځكه ولوېدل نو رسول الله ﷺ نه يوازي دا چې د هغه كاسې ټوټې يې يو ځاى كړې بلكه د خوراك هغه شى يې هم په ډېر احتياط سره يو ځاى كړل چې په دې سره نه يوازي د رسول الله ﷺ د تواضع او د بيبيانو سره د رسول الله ﷺ د تحمل او عفو د جذبې اظهار كيږي بلكه دا هم واضحه كيږي چې رسول الله ﷺ به د الله تعالى د نعمت ډېر تعظيم كوى.

ستاسو مور ته غيرت راغلى :دا په اصل كې اورېدونكو ته د رسول الله ﷺ عام خطاب دى ددغه ارشاد په ذريعه رسول الله ﷺ د بي بي عائشې رضي الله عنها له خوا عذر بيان كړى دى چې د بي بي عائشې ﵂ څخه كوم فعل ظاهر سو او هغه په حقيقت كې د هغې د غيرت په وجه وو چې د هري ښځي په جبلت كې داخل دى كه څه هم يو ښځه پر هر څومره لوړ مقام باندي وي، او نه دا د يو ښځي د وس خبره ده چې هغه خپل طبيعت او خپل نفس ددغه طبعي جذبې څخه وساتي ځكه رسول الله ﷺ دغه الفاظ وفرمايل چې خلك د بي بي عائشې ﵂ دغه فعل پر بدى محمول نه كړي بلكه په دې پوه سي چې د هغې څخه دغه كار د بشريت د غوښتني سره سم سوى دى چې په هغه كې د مقصد او ارادې يا بلي يو بدى هيڅ دخل نه سته.

قاضي رحمة الله عليه ليکلي دي چي د دغه حديث شريف په دغه باب کي د ذکر کولو وجه داده چي د کاسې ماتول يو ډول غصه وه ځکه چي په دې سره د بل چا مال ضائع سو که څه هم د هغه سبب هر شي وي.

يا دا چي د خوراک کوم شي را استول سوی وو هغه د تحفې په توګه وو مګر په کومه کاسه کي چي هغه شي را استول سوی وو هغه عاريتا وه ځکه نو په دغه مناسبت سره دغه حديث په دغه باب کي ذکر سوی دی.

## د مسلمان مال لوټول حرام دي

﴿۲۸۱۴﴾: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ يَزِيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ نَهَى عَنِ النُّهْبَةِ وَالْمُثْلَةِ. رواه البخاري.

د حضرت عبد الله بن يزيد رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د لوټ (يعني مال لوټ کولو) او مثلة (پزه او غوږ پرېکولو) څخه منعه کړې ده. (بخاري).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۱۹\۵، رقم: ۲۴۷۴.

**د لغاتو حل**: النُهبة: اى الغارة. (لوټ)

**تشريح**: د يو مسلمان مال لوټول حرام دي مګر د دې مطلب دا بالکل نه دی چي د غير مسلم مال لوټول حرام نه دي بلکه مقصد يوازي دا څرګندول دي چي اسلام خپلو پيروانو ته په هيڅ حال کي هم د دې اجازه نه ورکوي چي هغوی د خپلو وروڼو مال په ناحقه او زور سره واخلي د دې تعلق نه يوازي د بندګانو د حقوقو تر پښو لاندي کول دي بلکه د ټولني د امن او سکون د پوره تباهۍ سره هم دی نو د امن او سلامتۍ د سرچينې (اسلام) د تابعدار کېدو تعلق پر يو مسلمان باندي دا ذمه داري تر ټولو زياته عائد کوي چي هغه د خپل ټولني خپل قوم او د خپل هيواد نظام، امن او امان تر پښو لاندي کولو او د لاقانونيت خپرېدو څخه وساتي چي د هغه بنيادي اړخ دادی چي د بل مال، د بل جائيداد او د بل حقوق تر پښو لاندي کول او لوټول داسي د نه منلو وړ وګرځول سي لکه څرنګه چي خپل مال، خپل جائيداد او خپل حقوقو باندي د چا قبضه کول قطعا زغملای نه سي.

مُثله: د بدن د يو اندام مثلا پزه، غوږ او داسي نورو پرېکولو ته وايي، دا شريعت حرام ګرځولي دي ځکه چي په داسي کولو سره د الله تعالی په تخليق کي بدلون پيدا کېدل لازمېږي.

## د حاجیانو د سامان غلا کونکي حشر

﴿۲۸۱۵﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ انْكَسَفَتِ الشَّمْسُ فِي عَهْدِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت جابر رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي لمر تندره ونیوی د رسول الله ﷺ په زمانه کي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ مَاتَ إِبْرَاهِيمُ ابْنُ رَسُولِ اللّٰهِ ﷺ فَصَلَّى بِالنَّاسِ سِتَّ

په کومه ورځ چي د نبي کریم ﷺ د زوي حضرت ابراهیم رضی اللہ عنہ وفات وسو نو نبي کریم ﷺ خلکو ته شپږ رکعته لمونځ ورکړی

رَكَعَاتٍ بِأَرْبَعِ سَجَدَاتٍ فَانْصَرَفَ وَقَدْ آضَتِ الشَّمْسُ وَقَالَ مَا مِنْ شَيْءٍ

په څلورو سجدو سره نو په دې کي لمر روښانه سو، بیا نبي کریم ﷺ وفرمایل: او د کوم شی چي ستا سو سره وعده سوې ده

تُوعَدُونَهُ إِلَّا قَدْ رَأَيْتُهُ فِي صَلَاتِي هٰذِهِ لَقَدْ جِيءَ بِالنَّارِ وَذٰلِكُمْ حِينَ رَأَيْتُمُونِي

او کوم شی چي تاسو یې بېرولي یاست نو هغه نن ما په خپل لمانځه کي ولیدل زما مخ ته دوږخ را وستل سو او دا هغه وخت وو چي تاسي زه وروسته ولیدم

تَأَخَّرْتُ مَخَافَةَ أَنْ يُصِيبَنِي مِنْ لَفْحِهَا وَحَتّٰى رَأَيْتُ فِيهَا صَاحِبَ الْمِحْجَنِ

چي د دوږخ د ګرمي د بیري څخه پر شا سوم ما په هغه کي یو سړی ولیدي چي د هغه سره یو لرګي وو

يَجُرُّ قُصْبَهُ فِي النَّارِ كَانَ يَسْرِقُ الْحَاجَّ بِمِحْجَنِهِ فَإِنْ فُطِنَ لَهُ قَالَ إِنَّمَا تَعَلَّقَ

په هغه سره یې خپله کُلمَه را کښله دا سړی (عمر بن لحي) به د حاجیانو شیان تر خپل کوناتي لاندي پټول او که به معلوم سو نو ویل به یې چي

بِمِحْجَنِي وَإِنْ غُفِلَ عَنْهُ ذَهَبَ بِهِ وَحَتّٰى رَأَيْتُ فِيهَا صَاحِبَةَ الْهِرَّةِ الَّتِي

زما په کوناتي باندي منښتي وو او که به معلوم نه سو نو د ځانه سره به یې یوړ او ما هغه پیشو

رَبَطَتْهَا فَلَمْ تُطْعِمْهَا وَلَمْ تَدَعْهَا تَأْكُلُ مِنْ خَشَاشِ الْأَرْضِ حَتّٰى مَاتَتْ جُوعًا

والا ښځه ولیده چي هغې خپله پیشو تړلې وه نه یې خوراک ورکوي او نه یې خلاصوله چي د

مځکي حشرات (موږکان یا نور) وخوري تر دې چي هغه مړه سوه د لوږي څخه

ثُمَّ جِيءَ بِالْجَنَّةِ وَذٰلِكَ حِينَ رَأَيْتُمُونِي تَقَدَّمْتُ حَتّٰى قُمْتُ فِي مَقَامِي وَلَقَدْ

بیا زما و مخته جنت را وړل سو او دا هغه وخت وو چي تاسو زه په مخکي کېدو ولیدم بیا زه پر خپل ځای باندي ودرېدم

مَدَدْتُ يَدِي وَأَنَا أُرِيدُ أَنْ أَتَنَاوَلَ مِنْ ثَمَرِهَا لِتَنْظُرُوا إِلَيْهِ ثُمَّ بَدَا لِي أَنْ لَا أَفْعَلَ . رواه مسلم .

و خپل لاس مي و رږاندي کړ چي د جنت یوه مېوه را وشکوم چي تاسو یې په خپلو سترګو سره ووینئ خو بیا ما دا مناسب ونه ګڼل (په دې چي بیا ایمان بالغیب نه پاته کیږي) . (مسلم)

**تخریج**: مسلم في الصحیح ۲\۶۲۳، رقم: ۱۰- ۹۰۴.

**د لغاتو حل**: قُصبه: ای یسحبه. (المِحجن): عصا في راسه.

**تشریح**: ددغه حدیث څخه څو خبري معلومي سوې اول دا چي جنت او دوږخ په وجود کي راغلي دي او موجود دي ، د اهل سنت دا مذهب دی، دوهم دا چي د عذاب او هلاکت د ځای څخه لیري کېدل سنت دي، دریم دا چي ځیني خلک دا وخت هم د دوږخ په عذاب کي اخته دي ، او څلورم دا چي لږ عمل لمونځ نه باطلوي لکه څرنګه چي رسول الله ﷺ د لمانځه په دوران کي د جنت او دوږخ په لېدو سره ور مخکي سو او پر شا سو .

## د حیوان په عاریت اخیستل جائز دي

﴿۲۸۱۶﴾: وَعَنْ قَتَادَةَ قَالَ سَمِعْتُ أَنَسًا يَقُولُ كَانَ فَزَعٌ بِالْمَدِينَةِ فَاسْتَعَارَ

د حضرت قتاده رضی الله عنه څخه روایت دی چي ما د انس رضی الله عنه څخه دا اورېدلي وه چي یو وار په دې خیال کي چي ګني د کفارو لښکر نژدې راغلي دي په مدینه منوره کي پرېشاني پیدا سوه

النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَسًا مِنْ أَبِي طَلْحَةَ يُقَالُ لَهُ الْمَنْدُوبُ فَرَكِبَ

نبي کریم ﷺ د ابو طلحه رضی الله عنه څخه آس را و غوښتي چي هغه ته مندوب (سست قدمه) ویل کېده، نبي کریم ﷺ په هغه باندي سپور سو او ولاړي ،

فَلَمَّا رَجَعَ قَالَ مَا رَأَيْنَا مِنْ شَيْءٍ وَإِنْ وَجَدْنَاهُ لَبَحْرًا . متفق علیه.

کله چي راغلی نو ویې فرمایل : ونه لیدی موږ هیڅ شی یعني بېره او بیشه چي موږ وموندی دغه آس د دریاب غوندي آرام تګ کونکی . (بخاري او مسلم) .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۵\۲۳۰، رقم: ۲۶۲۷، ومسلم ۴\۱۸۰۳، رقم: ۴۹- ۲۳۰۷.

**تشريح** د حضرت ابو طلحه رضي الله عنه آس تر دې مخکې ډېر سست وو ځکه د هغه نوم يې مندوب يعني سست اېښی وو مګر کله چي رسول الله ﷺ پر هغه سپور سو نو د رسول الله ﷺ له برکته هغه آس ډېر چالاکه او تېز سو .

ددغه حدیث شریف څخه معلومه سوه چي د یو حیوان عاریتا غوښتل او هغه په خپل استعمال کي راوستل جائز دي .

دغه حدیث شریف د رسول الله ﷺ د میړاني ، شجاعت او سربازۍ څرګندول کوي ، کله چي د دښمن فوج مدینې ته په رانژدې کېدو سره ټول د مدینې اوسیدونکي د بیري څخه پریشانه سوې وه نو رسول الله ﷺ بالکل په بې خوفه کېدو سره د حال د پلټنې لپاره یوازي د مدینې دباندي ووتی ، دا حدیث ددې خبري هم څرګندول کوي چي د دښمن معلومات تر لاسه کول او د هغوی په حالاتو باندي د خبرېدو کوښښ کول جائز دي او ددغه حدیث څخه دا هم معلومه سوه چي د بیري په وخت کي د بیري د ختمولو لپاره خلکو ته زیری ورکول مستحب دی .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د مړې مځکې اباد وونکی د هغه مالک دی

﴿۲۸۱۷﴾ : عَنْ سَعِيْدِ بْنِ زَيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ قَالَ مَنْ أَحْيَى أَرْضًا مَيِّتَةً فَهِيَ لَهُ وَلَيْسَ لِعِرْقٍ ظَالِمٍ حَقٌّ . رواه احمد والترمذي و ابوداؤد و رواه مالك عن عروة مرسلا وقال الترمذي هذا حديث حسن غريب

د حضرت سعید بن زید رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : کوم سړی چي مړه مځکه ژوندي کړي (د کښت قابله یې وګرځوي) نو هغه د هغه کس ده او د ظالم د اولاد هیڅ حق پکښې نسته .(احمد، ترمذي ابو داؤد) مالک د عروه څخه د ارسال په لاره روایت کړی دی ترمذي کي دا حدیث غریب ګڼل سوي دي .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\۶۶۳، رقم: ۱۳۷۸، ابوداود في السنن ۳\۴۵۳، رقم: ۳۰۷۳.

**تشریح**: د حدیث د اولي برخي مطلب دادی که یو مځکه ورانه او ناابادوي او یو سړی په خپل کوښښ او محنت سره هغه مځکه د کرني وړ جوړه کړي یا هغه اباده کړي نو هغه مځکه د هغه سړي ملکیت کیږي په شرط ددې چي هغه مځکه تر دې مخکي د یو مسلمان په ملکیت کي نه وي او نه د ښار او کلي د یو ضرورت سره متعلق وي لکه د هغو د څارویو د ناستي ځای وي یا د نورو ګټو لپاره یې استعمالوي، د امام ابوحنیفة رحمه الله په نزد د وراني مځکي د کرني وړ ګرځول یا په ابادولو سره د خپل ملکیت جوړولو یو شرط د امام (یعني د وخت د حکومت) اجازه هم ده که هغه ته د حکومت له خوا اجازه تر لاسه سي نو بیا د هغه مځکي مالک کېدای سي، د امام شافعي، امام احمد او په حنفیه کي د امام ابویوسف او امام محمد رحمة الله علیهم په نزد د حکومت اجازه شرط نه ده، د ټولو حضراتو دلیلونه د فقهي په کتابو کي ذکر سوي دي.

او د ظالم هیڅ حق نه سته: ددې مطلب دادی که یو سړی د بل چا اباده کړې مځکه وکري یا په هغه کي درختي ولګوي نو هغه ددې په وجه د هغه مځکي مالک نه جوړیږي.

## د بل چا مال خوړل حلال نه دی

﴿۲۸۱۸﴾: وَعَنْ أَبِي حُرَّةَ الرَّقَاشِيِّ عَنْ عَمِّهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

حضرت ابو حره رقاشي رضي الله عنه د خپل اکا څخه روایت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلاَ لاَتَظْلِمُوْا أَلاَ لاَ يَحِلُّ مَالُ امْرِئٍ إِلاَّ بِطِيْبِ نَفْسٍ مِّنْهُ. رواه البيهقي في شعب الإيمان والدارقطني في المجتبى

پوه سئ! په چا ظلم مه کوئ، پوه سئ چي حلال نه دی مال د هیڅ سړي مګر په خوښي د زړه سره ددې. بیهقي په شعب الایمان کي او دار قطني په مجتبی کی.

**تخریج**: البیهقي في الشعب ۱۴\۳۸۷. رقم: ۵۴۹۲.

## د یو چا مال غلا کونکی د اسلامي ټولني فرد نه دی

﴿۲۸۱۹﴾: وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ أَنَّهُ قَالَ لَا جَلَبَ وَلَا جَنَبَ وَلَا شِغَارَ فِي الْإِسْلَامِ وَمَنِ انْتَهَبَ نُهْبَةً فَلَيْسَ مِنَّا. رواه الترمذي.

د حضرت عمران بن حصين رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : (په اسلام کي) نه خو جلب سته نه جنب نه شغار (موخي کول) او څوک چي لوټ کړي لوټ کول (يعني غلا وکړي) هغه زموږ د ډلي څخه نه دي . (ترمذي)

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\۴۳۱، رقم: ۱۱۲۳.

**تشريح** جلب او جنب دوه اصطلاحي الفاظ دي او ددې تعلق د سباق سره هم دی او د صدقې سره سم ، سباق د آسونو مقابلې ته وايي مثلا يو سړی په دې شرط په خپلو کي آسونه وځغلوي چي په مقابله کي څوک مخته سي ، نو په سباق کي جلب دادی چي آس ځغلونکی يو سړی په خپل آس پسي وروسته وساتي او د هغه کار دا وي چي هغه آس وهي او اوازونه پسي کوي او هغه ځغلوي، او جنب دادی چي آس ځغلونکی يو بل آس د ځان سره ولري چي کله د سپرلی آس ستړی سي نو هغه پر دوهم آس باندي په سپرېدو سره مخته ووځي .

په صدقه کي د جلب صورت دادی چي صدقې او زکوة وصول کونکی کله خلکو ته راسي نو د ښار څخه د باندي يا د هغه خلکو څخه ليري په يو بل ځای کي پړاو واچوي او يو بل څوک هغه خلکو ته واستوي چي پر کومو خلکو زکوة واجب دی هغوی د خپل مال زکوة دلته راوړي. همدارنګه جنب دادی چي پر کوم سړي زکوة واجب وي هغه دي د خپل مال په اخيستلو سره د خپل سرای څخه ليري ولاړ سي او زکوة وصول کونکي ته دي ووايي چي هغه دي دلته په رسيدو سره زکوة وصول کړي ، ددې بيان د زکوة په باب کي تېر سوی دی دلته هم د جلب او جنب څخه منع سوې ده که د هغه تعلق د سباق سره وي يا د صدقې سره وي .

شغار (مُوخي) دادی يو سړی د خپلي لور يا خور نکاح د يو چا سره په دې شرط وکړي چي هغه به د خپل خور يا لور نکاح د هغه سره کوي او هيڅ مهر ټاکلی نه وي بلکه دا شرط د مهر قائم مقام وي ، په حديث کي داسي نکاح کول د اسلامي طريقې خلاف ګرځول سوي دي ، د اکثرو علماؤ په نزد داسي عقد فاسد دی مګر د امام ابو حنيفة رحمه الله او ابو سفيان رحمه الله په نزد دا عقد صحيح دی البته مهر مثل واجب دی او داسي عقد کونکی ګناه کار دی ، دغه حضرات دا هم وايي چي داسي عقد بايد ونه سي .

## د يو چا مال په مخسرو او خندا کي مه خورئ

﴿۲۸۲۰﴾: وَعَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيْدٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت سائب بن يزيد رضي الله عنه د خپل پلار څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

قَالَ لَا يَأْخُذْ أَحَدُكُمْ عَصَا أَخِيهِ لَاعِبًا جَادًّا فَمَنْ أَخَذَ عَصَا أَخِيهِ فَلْيَرُدَّهَا إِلَيْهِ. رواه الترمذي و ابوداؤد و روايته الى قوله جادا.

په تاسو کي دي څوک د خپل ورور لکړه په دې خيال نه اخلي چي د ځانه سره يې کښېږدي کوم سړي چي د خپل ورور څخه لکړه واخلي نو هغه دي بيرته ورکړي. (ترمذي ابو داؤد)

**تخريج**: الترمذي في السنن ۴\۴۰۲، رقم: ۲۱۶۰، وابوداود في السنن ۵\۲۷۳، رقم: ۵۰۰۳.

**تشريح** مطلب دادی چي يو څوک د يو چا څخه د هغه لکړه يا بل شی په مسخرو او خندا کي واخلي مګر قصد يې دا وي چي هغه به د ځان سره ايږدم لکه څرنګه چي نن سبا دا ډېر رواج دی چي د يو بل شی په مسخرو او خندا کي پټيږي، که چيري مالک ته د هغه شي علم وسي نو هغه شی بېرته ورکړي او که د هغه هېر سي نو هغه د همېشه لپاره يې غائب کړي ځکه رسول الله ﷺ د دې څخه منع فرمايلې ده.

په حديث شريف کي په خاصه توګه د لکړي ذکر د مبالغې په توګه سوی دی او د دې مقصد دا څرګندول دي چي لکړه يو ډېر حقير او معمولي شی اخيستل هم منع دي نو د دې څخه د زيات حيثيت لرونکي شي اخيستل په طريقه اولی منع دي.

## خپل غلا سوی مال چي د چا سره پيدا کړی ځيني وا يې خلئ

﴿۲۸۲۱﴾: وَعَنْ سَمُرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ وَجَدَ عَيْنَ مَالِهِ عِنْدَ رَجُلٍ فَهُوَ أَحَقُّ بِهِ وَيَتَّبِعُ الْبَيِّعُ مَنْ بَاعَهُ. رواه احمد و ابوداؤد والنسائي

د حضرت سمره رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي خپل (غصب سوي غلا سوي ورک سوي) مال د چا سره وويني نو هغه د هغې د بيا پيدا کېدو زيات مستحق دي او اخيستونکی به په هغه نفر پسي ګرځي چي دغه شی يې پر خرڅ کړی وي. (احمد ابو داؤد نسائي)

**تخريج**: احمد في المسند ۵\۱۳، وابوداود في السنن ۳\۸۰۲، رقم: ۳۵۳۱، والنسائي ۷\۳۱۳، رقم: ۴۶۸۱.

**تشريح** د حديث خلاصه داده چي يو څوک د يو چا مال غصب کړي يا د يو چا يو شی غلا کړي يا د چا ورک سوی شی په لاس ورسي او هغه شی پر بل چا باندي خرڅ کړي اوس که مالک خپل هغه شی د رانيونکي سره ووينى نو هغه ته دا حق دی چي هغه شی د هغه څخه واخلي او رانيونکي چي هغه شی د چا څخه رانيولی وي د هغه څخه خپل قيمت تر لاسه کړي.

## د چا څخه چې شی واخلئ بیرته یې ور کړئ

﴿۲۸۲۲﴾: وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ عَلَى الْيَدِ مَا اَخَذَتْ حَتّٰى تُؤَدِّيَ. رواه الترمذي و ابوداؤد وابن ماجة.

د حضرت سمره رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: څوک چې د چا څخه یو شی (په زور یا د غلا په ډول) واخلي نو هغه ته پکار ده چې هغه په خپل لاس سره مالک ته ورسوي. (ترمذي ابو داؤد ابن ماجه)

**تخریج**: ابوداود في السنن ۳\ ۵۲۲، رقم: ۳۵۶۱، والترمذي ۳\ ۵۶۶، رقم: ۱۲۶۶، وابن ماجه في السنن ۲\ ۸۰۲، رقم: ۲۳۰۰.

**د لغاتو حل**: علی الید: ای ما اخذته الید ضمان علی صاحبها.

**تشریح** مطلب دادی چې یو سړي د یو چا څخه یو شی اخیستی وي نو هغه دده پر ذمه واجب الاداء دی تر څو چې هغه شی هغه مالک ته بېرته ور نه کړي، خلاصه داده که چیري یو سړی د یو چا څخه یو شی په زور اخیستی وي یا د یو چا شی یې غلا کړی وي یا د یو چا څخه یو شیئ مستعار اخیستی وي یا د یو چا یو شی د امانت په توګه د ځان سره ساتلی وي نو هغه باید هغه شی مالک ته وسپاري، په زور د اخیستل سوي شي د هغه مالک ته بېرته ورکول واجب دي که څه هم مالک د هغه غوښتنه ونه کړي همدارنګه عاریتا اخیستل سوی شی تر وخت پوره کېدو وروسته مالک ته بېرته ورکول ضروري دي که چیري یو وخت ټاکل سوی وي مګر کوم شی چې د امانت په توګه اېښودل سوی وي هغه به وخت هغه ور کول لازم وي کله چې مالک د هغه غوښتنه وکړي د مالک د غوښتني څخه مخکي د هغه بېرته ورکول واجب نه دي.

## د یو چا باغ، حیوان وغیره ته تاوان رسول

﴿۲۸۲۳﴾: وَعَنْ حَرَامِ بْنِ سَعْدِ بْنِ مُحَيِّصَةَ أَنَّ نَاقَةً لِلْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ دَخَلَتْ

د حضرت حرام بن سعد بن محیصه رضی الله عنه څخه روایت دی چې د براء بن عازب رضی الله عنه اوښه یې

حَائِطَ فَأَفْسَدَتْ فَقَضَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ عَلَى أَهْلِ الْحَوَائِطِ

باغ ته ننوته او باغ یې خراب کړ په دې کې رسول الله ﷺ دا پرېکړه وکړه چې د ورځې د باغ

حِفْظَهَا بِالنَّهَارِ وَأَنَّ مَا أَفْسَدَتْ الْمَوَاشِي بِاللَّيْلِ ضَامِنٌ عَلَى أَهْلِهَا. رواه

مالك و ابو داؤد وابن ماجة .

ساتنه د باغ والاؤ ده او كوم څاروي چي د شپي لخوا باغو ته تاوان ورسوي نو د هغه تاوان د څارويو والا په غاړه دي . (مالک ابو داؤد ابن ماجه) .

**تخريج**: مالک في الموطا ۲\ ۷۴۷، رقم: ۳۷، وابوداود في السنن ۳\ ۸۲۸، رقم: ۳۵۶۹، وابن ماجه في السنن ۲\ ۷۸۱، رقم: ۲۲۳۲.

**تشريح** د حديث شريف خلاصه داده چي که چيري د يو چا حيوان د ورځي د يو چا باغ خراب کړي نو د هغه تاوان د حيوان پر مالک نه دی ځکه د ورځي د باغ ساتنه کول د باغ والا ذمه داري ده نو دا د هغه خپل کوتاهي ده چي هغه دخپل باغ څارنه ولي ونه کړه او يو حيوان يې باغ ته په ننوتلو سره ولي پرېښودی ، که چيري يو حيوان د شپې د يو چا باغ ته تاوان ورسوي نو دهغه تاوان به د هغه حيوان پر مالک واجب وي ځکه دا د حيوان د مالک کوتاهي ده د شپې د خپلو حيوانانو پاملرنه د هغه پر ذمه ده نو هغه د خپل حيوان په ازاد پرېښودو سره د بل چا د تاوان سبب ولي وګرځيدی .

دا ټول تفصيل په هغه صورت کي دی کله چي د حيوان مالک د حيوان سره نه وي که چيري مالک د حيوان سره وي نو د حيوان څخه رسيدلی تاوان به د مالک پر ذمه وي که هغه پر حيوان سپور وي يا د حيوان سره روان وي او که د شپې تاوان ورسوي او که د ورځي .

دا د امام مالک او امام شافعي رحمة الله عليهما مذهب دی ، په دې باره کي د حنفي مذهب دادی که چيري د حيوان مالک د حيوان سره نه وي نو بيا پر هغه تاوان واجب نه دی که څه هم حيوان د ورځي تاوان ورسوي يا د شپې .

﴿۲۸۲۴﴾ : وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ اَنَّ النَّبِيّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَلرِّجْلُ جُبَارٌ وَقَالَ النَّارُ جُبَارٌ . رواه ابوداؤد.

د حضرت ابو هريره ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د پښو لاندي ميده کېدل (چيتېدل) او د اور سوزل معاف دي (يعني د حيوانانو تر پښو لاندي يو شی مېده سي او مالک ورسره نه وي نو د هغه تاوان نسته همداسي که چا اور بل کړو او بڅرى يې يو ځاي ولاړې او تاوان يې ورسوي نو هم د دې تاوان نسته په دې شرط چي تېزه هوا نه وي د اور لګونکي اراده فاسده نه وي ). ابو داؤد

**تخريج**: ابوداود في الموضع السابق ۷۱٦\۱۴، رقم: ۴۵۹۴.

**تشريح**: که چيري يو حيوان يو شی تر پښو لاندي کړ او هغه يې ضائع کړ نو ددې په وجه د هغه حيوان پر مالک باندي تاوان واجب نه دی په شرط ددې چي هغه مالک د حيوان سره نه وي همدارنګه که يو سړی د خراب مقصد مثلا تاوان رسولو يا د خپل ضرورت يا يو وجه څخه اور بل کړي او د هغه اور بڅرکي په هواء کي په الوتلو سره د يو چا په سامان کي ولويدی چي په هغه سره د هغه سامان وسوځيدی نو په دغه صورت کي پر اور بلونکي باندي تاوان واجب نه دی په شرط ددې چي هغه کله وخت اور بل کړی وي نو هغه وخت هواء ولاړه وي او که چيري د اور بلولو څخه وروسته هواء چليدلې وي او که هغه په داسي وخت کي اور بل کړی وي چي هواء چليدل او د هغه په وجه د اورڅخه د تاوان رسيدو احتمال وو نو بيا پر هغه تاوان واجب دی.

## د اضطرار په حالت کي د بل د حيوان شيدې څښل

﴿۲۸۲۵﴾: وَعَنِ الْحَسَنِ عَنْ سَمُرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا أَتَى

حضرت حسن رضی الله عنه د سمره رضی الله عنه څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په تاسو کي چي

أَحَدُكُمْ عَلَى مَاشِيَةٍ فَإِنْ كَانَ فِيهَا صَاحِبُهَا فَلْيَسْتَأْذِنْهُ وَإِنْ لَّمْ يَكُنْ فِيهَا

څوک څاروي پيدا کړي او مالک ورسره وي نو د هغه څخه دي اجازت واخلي او شيدې دي ولويشي او ودي يې څښي او که مالک ورسره نه وي (ډېر وږي وي)

فَلْيُصَوِّتْ ثَلَاثًا فَإِنْ أَجَابَهُ أَحَدٌ فَلْيَسْتَأْذِنْهُ وَإِنْ لَّمْ يُجِبْهُ أَحَدٌ فَلْيَحْتَلِبْ وَلْيَشْرَبْ وَلَا يَحْمِلْ. رواه أبو داود

نو درې واره دي په لوړ اواز سره اعلان وکړي که څوک جواب ورکړي نو د هغه څخه دي د شيدو د لوشلو اجازت واخلي او که څوک جواب ورنه کړي نو شيدي دي ولوشي او و دي څښي په قدر د ضرورت او د ځانه سره دي يې نه وړي. (ابو داؤد

**تخريج**: ابوداود في السنن ۸۹\۳، رقم: ۲٦۱۹.

**تشريح**: په دغه حديث کي د ذکر سوي هدايت تعلق د هغه سړي سره دی چي هغه د اضطرار حالت ته رسيدلی وي يعني د لوږي څخه مړ کيږي، د داسي سړي لپاره اجازه ده که چيري هغه د شېدو والا حيوان ويني او د هغه مالک موجود نه وي نو هغه دي د ذکر سوو هداياتو سره سم د

هغه حیوان شیدې د ضرورت په اندازه ولویشي او وه دي یې څیښي .

یا به دا وویل سي چي د دغه حدیث تعلق په عمومي توګه د داسي ځایو سره دی چیري مسـافر د حیوانانو د شېدو په لوېشلو سره د څښلو څخه نه منع کیږي نو د داسی ځای لپاره دلې اجازه ورکړل سوې ده او ـ ـ ر سوو هدایاتو سره سم د ضرورت په اندازه شېدې څښل جائز دي .

## د بل د باغ میوه بېله اجازې خوړل

﴿۲۸۲۶﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ مَنْ دَخَلَ حَائِطًا فَلْيَأْكُلْ وَلَا يَتَخِذْ خُبْنَةً . رواه الترمذي وابن ماجة وقال الترمذي هذا حديث غريب .

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : څوک چي (وږي وي) باغ ته ولاړ سي نو (په قدر د ضرورت دي) مېوه وخوري او کڅوړه دي نه ور څخه ډکوي . (ترمذي ابن ماجه او په ترمذي کي دا حدیث غریب شمېرل سوی دی .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\ ۵۸۳، رقم: ۱۲۸۷، وابن ماجه ۲\ ۷۷۲، رقم: ۲۳۰۱.

**تشريح**: د دغه حدیث مقصد ددې عامه اجازه ورکول نه دي چي څوک وغواړي د بل سړي باغ ته په ورتلو سره مېوه را وشکوي او وه یې خوري ، ځکه د یو چا شی د هغه د اجازې او خوښی څخه پرته اخیستل او خوړل بالکل صحیح نه دي بلکه دا حدیث هم د مخکني حدیث په ډول یا خو د اضطرار پر حالت باندي محمول دی یا ددې تعلق د داسي ځایو سره دی چي هلته د یو چا باغ ته په ورتلو سره د باغ والا د اجازې څخه پرته هم مېوه خوړل منع نه وي .

## مستعار شی د امانت په حکم کي دی

﴿۲۸۲۷﴾: وَعَنْ أُمَيَّةَ بْنِ صَفْوَانَ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ اسْتَعَارَ مِنْهُ أَدْرَاعَه يَوْمَ حُنَيْنٍ فَقَالَ أَغَصْبًا يَا مُحَمَّدُ قَالَ بَلْ عَارِيَةً مَضْمُونَةً . رواه ابو داؤد.

حضرت امیه بن صفوان رضي الله عنه د خپل پلاره څخه روایت کوي چي د حنین په غزا کي رسول الله ﷺ د هغه څخه څو زغري مستعار واخیستې هغه پوښتنه وکړه چي اې محمده ﷺ ! چي ایا دا زغره د غصب په ډول (یعني په زوره) اخلې؟ نبي کریم ﷺ وفرمایل: چي یا ! د عریت په ډول هغه به بیرته واپس کیږي . (ابو داؤد)

**تخريج**: ابو داود في السنن ۳\ ۸۲۲، رقم: ۳۵۶۲.

**تشریح** د حنین په غزا کي رسول الله ﷺ د صفوان څخه یو څو زغري په استعاره واخیستلې او صفوان د اسلام په دولت مشرف سوی نه وو ځکه هغه رسول الله ﷺ ته د زغرو ورکولو پر وخت چي کومه پوښتنه کړې وه هغه په ظاهره د ادب د حد څخه تجاوز معلومیږي مگر وروسته صفوان د اسلام په دولت مشرف سوی دی. رضي الله عنه.

د حضرت شریح، حضرت نخعي، حضرت سفیان ثوري او امام ابو حنیفة رحمة الله علیهم مذهب دادی چي کوم شی په استعاره واخیستل سي هغه د استعاره اخیستونکي سره د امانت په توگه وي که هغه ضائع سي نو د هغه بدله ورکول واجب نه دي مگر که استعاره اخیستونکی هغه شی په قصد سره ضائع کړي نو بیا د هغه تاوان واجب دی مگر د حضرت ابن عباس، حضرت ابو هریره، امام شافعي او امام احمد رحمة الله علیهم مذهب دادی که هغه ضائع شي نو پر استعاره اخیستونکي باندي د هغه بدله یعني د هغه شي قیمت ادا کول واجب دي ځکه ددغه حضراتو په نزد د مضمونة لفظ معنی داده چي د تلف کېدو په صورت کي به د هغه تاوان ادا کیږي.

## د مستعار شي بیرته ورکول واجب دي

﴿۲۸۲۸﴾: وَعَنْ اَبِيْ اَمَامَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ ﷺ يَقُولُ الْعَارِيَةُ مُؤَدَّاةٌ وَالْمِنْحَةُ مَرْدُودَةٌ وَالدَّيْنُ مَقْضِيٌّ وَالزَّعِيمُ غَارِمٌ. رواه الترمذي و ابوداؤد

د حضرت ابو امامه رضي الله عنه څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اورېدلي دي چي د مستعار شی بیرته ورکول واجب دي او منحه (یعني چا لره غوا یا بل حیوان ورکړي هغه صرف د هغه حیوان د شېدو څخه استفاده کولای سي او حیوان دي بیرته اصلي مالک ته ورکړي) بیرته ورکول هم ضروري دي او قرض دي ادا کړل سي او ضامن ته ضمانت ادا کول واجب دي. (ترمذي ابو داؤد)

**تخریج**: الترمذي في السنن ۳\ ۵۶۵، رقم: ۱۲۶۵، وابوداود في السنن ۳\ ۸۲۴، رقم: ۳۵۶۵.

**تشریح** منحه دې ته وایي چي یو څوک خپل یو څاروی یو چا ته د شېدو څښلو لپاره ورکړي یا یو چا ته خپل مځکه یا باغ د میوه خوړلو لپاره ورکړي نو په منحه کي یوازي د گټي اخیستني مالک جوړیږي نه د هغه شي د اصل مالک ځکه دداسي شي څخه د گټه اخیستلو څخه وروسته هغه بېرته مالک ته ورکول واجب دي.

## د درختو څخه د لوېدلو میوو اخیستلو حکم

﴿۲۸۲۹﴾: وَعَنْ رَّافِعِ بْنِ عَمْرٍو الْغِفَارِيِّ قَالَ كُنْتُ غُلَامًا أَرْمِيْ نَخْلَ الْأَنْصَارِ

د حضرت رافع بن عمرو غفاري رضی الله عنه څخه روایت دی چي زه کوچنی وم او د انصارو وني به مي په ډبرو سره ویشتلي.

فَأُتِيَ بِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا غُلَامُ لِمَ تَرْمِي النَّخْلَ؟ قُلْتُ

انصارو زه و نیولم او د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کي یې حاضر کړم، نبي کریم صلی الله علیه وسلم زما څخه پوښتنه وکړه چي ته خرماوي ولي ولې؟ ما ورته وویل چي

آكُلُ قَالَ فَلَا تَرْمِ وَكُلْ مِمَّا سَقَطَ فِيْ أَسْفَلِهَا ثُمَّ مَسَحَ رَأْسَهُ فَقَالَ اَللّٰهُمَّ أَشْبِعْ بَطْنَهُ. رواه الترمذي وأبو داود وابن ماجه. وسنذكر حديث عمرو بن شعيب في "باب اللقطة" إن شاء الله تعالى

زه یې خورم نبي کریم صلی الله علیه وسلم را ته وفرمایل: ډبري مه غورځوه کومي خرماوي چي کښته لوېدلي وي هغه خوره بیا نبي کریم صلی الله علیه وسلم خپل مبارک لاس زما پر سر را تېر کړ او ویې فرمایل: اې الله! ته دده نس ور موړ کړه. (ترمذي ابو داؤد ابن ماجه) (باب لقطه) (لویدلي شیان) کي به د عمرو بن شعیب حدیث کي انشاء الله بیان کیږي.

**تخریج**: الترمذي في السنن ۲\ ۵۸۴، رقم: ۱۲۸۸، وابوداود في السنن ۳\ ۹۰، رقم: ۲۶۲۲، و ابن ماجه في السنن ۲\ ۷۷۱، رقم: ۲۲۹۹.

**تشریح** رسول الله صلی الله علیه وسلم رافع رضی الله عنه ته د درختي څخه لویدلو خرماوو د خوړلو اجازه ځکه ورکړه چي په عامه توګه د درختي لویدلي مېوو څخه څوک نه منع کوي په خاصه توګه کوچنیان چي د لوېدلو میوو ډېر شوقیان وي او هغه ددې څخه څوک نه منع کوي چي هغوی د درختي څخه لوېدلي خرماوي وخوري.

علامه طیبي رحمة الله علیه فرمایي که چیري رافع رضی الله عنه د اضطرار په حالت کي وي یعني د لوږي په وجه مجبور وي نو رسول الله صلی الله علیه وسلم به هغه ته د لوېدلو خرماوو د خوړلو پر اجازه ورکولو باندي اکتفاء نه وای کړې بلکه د درختي څخه د خرماوو د شکولو اجازه به یې هم ورکړې وای.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د مځكي غصب كولو سزا

﴿۲۸۳۰﴾: عَنْ سَالِمٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ مَنْ أَخَذَ مِنَ الْأَرْضِ شَيْئًا بِغَيْرِ حَقِّهِ خُسِفَ بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلَى سَبْعِ أَرَضِينَ. رواه البخاري.

حضرت سالم رضي الله عنه د خپل پلار څخه روايت كوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: چا چي د مځكي څه برخه په ناحقه واخيسته هغه به د قيامت په ورځ د دغي مځكي اووه طبقې پوري كښته ځي. (بخاري).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۶\ ۲۹۲، رقم: ۳۱۹۶.

﴿۲۸۳۱﴾: وَعَنْ يَعْلَى ابْنِ مُرَّةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ أَخَذَ أَرْضًا بِغَيْرِ حَقِّهَا كُلِّفَ أَنْ يَحْمِلَ تُرَابَهَا إِلَى الْمَحْشَرِ. رواه احمد

د حضرت يعلى بن مره رضي الله عنه څخه روايت دى چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اورېدلي دي څوک چي په ناحقه سره د چا پر مځكه باندي قبضه ولكوي د قيامت په ورځ به هغه ته حكم وكول سي چي د هغې مځكي خاوره په خپل سر باندي د حشر ميدان ته پورته كړي. (احمد)

**تخريج**: الامام احمد في المسند ۴\ ۱۷۲.

**تشريح**: په ظلم او زور سره د يو چا د مځكي د غصب كولو مختلفي سزاوي بيان سوي دي، په اول فصل كي دا فرمايل سوي وه چي د قيامت په ورځ به د داسي سړي په غاړه كي د مځكي هغه ټوټه د طوق په ډول واچول سي، په اوسني حديث كي دا ذكر سوي دي چي چي د يو چا پر مځكه باندي په ناحقه قبضه كونكى به د قيامت په ورځ د مځكي تر اوومي طبقې پوري غرق كړل سي. دلته په دغه حديث كي دا سزا ذكر سوې ده چي د چا پر مځكه باندي په ناجائزه طريقې سره قبضه كونكى به د حشر په ورځ پر دې مجبور كړل سي چي هغه د هغه مځكي خاوره پر سر پورته كړي، په راتلونكي حديث كي په دې باره كي د سزا يو بل ډول بيانيږي.

﴿۲۸۳۲﴾: وَعَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ أَيُّمَا رَجُلٍ

د حضرت يعلى بن مره رضی اللہ عنہ څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اورېدلي دي څوک

ظَلَمَ شِبْرًا مِنَ الْأَرْضِ كَلَّفَهُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ أَنْ يَحْفِرَهُ حَتَّى يَبْلُغَ آخِرَ سَبْعِ

چي لږ ځمکه هم په ظلم سره واخلي الله جل جلاله به هغه ته حکم وکړي چي هغه ځمکه تر اوومي طبقې پوري وکيندي

أَرَضِينَ ثُمَّ يُطَوَّقَهُ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ حَتَّى يُقْضَى بَيْنَ النَّاسِ . رواه احمد.

بيا به هغه ځمکه طوق جوړه کړل سي او دهغه په غاړه کي به وړ واچول سي او هغه به تر قيامته پوري په دغه حالت کي وي تر دې پوري چي د قيامت په ورځ به د ټولو خلکو د معاملاتو پرېکړه وسي . (احمد) .

**تخريج**: الامام احمد في المسند ۴\۱۷۳.

==========

## بَابُ الشُّفْعَةِ (د شفعي بيان)

شُفعَه د شُفع څخه مشتق دی چي لغوي معنی يې د يو ځای کولو او جفت کولو ده ، او د فقهي په اصطلاح کي هغه همسايتوب يا شراکت ته وايي چي د هغه په وجه يو همسايه يا شريک ته د هغه دوهم همسايه يا دوهم شريک د خرڅېدونکي ځمکي د خرڅېدونکي سرای رانيولو يو خاص حق حاصل وي ، او دا حق يوازي د ځمکي يا سرای سره مخصوص وي ، کوم چا ته چي دا حق حاصل وي هغه ته شفيع وايي ، ددغه حق نوم ځکه شفع دی چي دغه خاص حق د خرڅېدونکي ځمکي يا سرای د شفيع ځمکي يا سرای سره يو ځای کوي .

د امام شافعي، امام مالک او امام احمد رحمة الله عليهم په نزد د شفعه حق يوازي شريک ته حاصل دی او همسايه ته دا حق حاصل نه دی مګر د امام ابو حنيفة رحمہ اللہ مذهب دادی چي د شفعه حق لکه څرنګه چي شريک ته ثابت دی همدا رنګه همسايه ته هم ثابت دی .

د يو صحيح روايت مطابق امام احمد رحمہ اللہ هم ددې قائل دی چي د همسايه د شفع په ثبوت کي حديثونه منقول دي چي بالکل د صحيح درجې دي د هغه په موجودتيا کي همسايه ته د شفع د حق ورکولو څخه انکار کول يو بې دليله خبره ده .

د حنفي مذهب سره سم د شفیع درې درجې دي : اول خلیط في النفس المبیع : یعني د خرڅېدونکي سرای په ملکیت کې څو کسان شریک وي که هغه سرای ټولو شریکانو ته وراثت کې رسیدلې وي یا هغوی ټولو په شراکت سره رانیولې وي یا ټولو ته په ګډه سره هبه سوې وي.
دوهم : خلیط في حق المبیع : یعني د هغه خرڅېدونکي سرای یا مځکې په ملکیت کې شریک نه وي بلکه د هغه مځکې یا سرای په حق کې شریک وي لکه حق د مرور (یعني د راتلو او تللو حق) حق مسیل (یعني د اوبو د ایستلو حق) او حق شرب (یعني د کښت وغیره د اوبو کولو لپاره د اوبو د ویالې وغیره حق).
دریم همسایه چې د هغه سرای د خرڅېدونکي سرای سره متصل وي او د هغه دواړو سرایو دیوالونه د یو بل سره لګېدلي وي او د دواړو دروازې پر یوه لاره وي.
د دغه درو څخه پرته بل څوک شفیع کېدای نه سي نو تر ټولو مخکې د شفع حق هغه چا ته حاصلیږي چې د هغه خرڅېدونکي سرای یا مځکې په ملکیت کې شریک وي د هغه په موجودتیا کې د شفع حق نه په حقوقو کې شریک ته حاصلیږي او نه همسایه ته ، که شریک د شفع د حق څخه منع اختیار کړي نو بیا د شفع حق هغه سړي ته رسیږي کوم چې په حقوق کې شریک وي او که هغه هم منع وکړي نو بیا د شفع حق همسایه ته حاصلیږي او که همسایه هم د خپل حق څخه منع اختیار کړي نو ددې څخه وروسته هیچا ته د شفع حق نه حاصلیږي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د شفع حق یوازي شریک ته حاصل دی که همسایه ته هم

﴿۲۸۳۳﴾: عَنْ جَابِرٍ قَالَ قَضَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالشُّفْعَةِ فِي كُلِّ مَا لَمْ يُقْسَمْ فَإِذَا وَقَعَتْ الْحُدُودُ وَصُرِّفَتْ الطُّرُقُ فَلَا شُفْعَةَ. رواه البخاري

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په هر هغه شي کې چې د شریکانو په مینځ کې تقسیم سوي نه وي د شفع حکم ورکړی دي لیکن هر کله چې حدود و ټاکل سي (یعني مشترکه مځکه په خپلو کې تقسیم سي) او د هري حصې لاره جلا سي بیا شفع باقي نه پاته کیږي. (بخاري).

**تخریج**: البخاري في الصحیح (فتح الباري): ۴\۴۰۷، رقم: ۲۲۱۳.

**تشریح** کله چې د یو مځکې یا سرای څو مالکان وي نو د هغه شریکانو ته د هر یوه پر برخه باندي د شفع حق تر هغه وخته حاصل وي تر څو چې هغه مځکه یا سرای په خپلو کې وېشل

سوی نه وي که هغه مځکه یا سرای پر شریکانو وویشل سي او د ټولو برخو لاري جلا سي نو په دغه صورت کي هیچا ته هم د شفع حق نه ترلاسه کیږي، همدارنګه دغه حدیث ددې دلیل دی چي د شفعه حق یوازي شریک ته حاصل دی همسایه ته حاصل نه دی د امام شافعي رحمه الله دا مذهب دی.

د امام ابو حنیفة رحمه الله په نزد همسایه ته هم د شفع حق حاصل دی، دده په نزد نور حدیثونه هم سته، او همدرانګه دده په نزد ددغه حدیث مراد دادی چي د هغه مځکي یا سرای د وېشلو څخه وروسته د شراکت شفع نه پاته کیږي نو د حدیث ددغه مفهوم اخیستلو په صورت کي د همسایه د شفع د حق څخه ایستل نه لازمیږي.

## د شفع حق یوازي د مځکي او ځای سره مخصوص دی

﴿۲۸۳۴﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَضٰى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالشُّفْعَةِ فِي كُلِّ

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ مشترکه مځکه چي تقسیم سوې نه وي د

شِرْكَةٍ لَمْ تُقْسَمْ رَبْعَةٍ أَوْ حَائِطٍ لَا يَحِلُّ لَهُ أَنْ يَبِيعَ حَتّٰى يُؤْذِنَ شَرِيكَهُ فَإِنْ

شفع حکم ورکړي دي که کور وي یا باغ وي او فرمایلي یې دي چي په دوو شریکانو کي یو شریک ته د خپل حصې خرڅولو حق نه لري ترڅو پوري چي د خپل دویم شریک څخه اجازه وانه خلي که چیري

شَاءَ أَخَذَ وَإِنْ شَاءَ تَرَكَ فَإِذَا بَاعَ وَلَمْ يُؤْذِنْهُ فَهُوَ أَحَقُّ بِهِ. رواه مسلم.

د دویم شریک خوښه وي په خپله دي رانیسي او یا یې پرېږدي او که یو شریک د دویم شریک د اجازې څخه پرته خپله برخه خرڅه کړه نو د هغه شریک د هغې د رانیولو حقدار دي. (مسلم)

**تخریج**: مسلم في الصحیح ۳\۱۲۲۹، رقم: ۱۳۴– ۱۶۰۸.

**تشریح** ددغه حدیث شریف څخه څرګنده سوه چي د شفع حق یوازي د غیر منقوله جائیداد سره مخصوص دی، په منقوله شیانو کي لکه اسباب، حیوانانو او داسي نورو کي د شفع حق نه سته د ټولو علماؤ په اتفاق سره دا مذهب دی، او بیا د شفع حق یوازي د مسلمان سره خاص نه دی بلکه د مسلمان او ذمي په مینځ کي هم د شفع حق جاري دی (ذمي هغه غیر مسلم ته وایي چي جذیه یعني د خپل سر او مال او د خپل عزت د ساتني لپاره د یو خاص محصول په ادا کولو سره د اسلامي هیواد اوسیدونکی وي).

## د مشترکه مځکي یا سرای د یوې برخي د پلورلو پر وخت دوهم شریک ته خبر ورکول ضروري دي

په حدیث شریف کي د ذکر سوو الفاظو (لایحل له...الخ) یعني هیڅ یو شریک ته خپل برخه پلورل حلال نه دي...الخ: ددې څخه دا خبره ثابته سوه که یو مشترکه مځکه یا سرای څخه یو شریک خپل برخه پلورل غواړي نو د هغه لپاره ضروري ده چي هغه د پلورلو د ارادې پر وخت خپل دوهم شریک ته خبر ورکړي که چیري هغه یې رانیول غواړي نو هغه برخه به رانیسي او که نو د نه خبرتیا په صورت کي هغه دوهم شریک ته دا حق حاصل دی چي هغه به د شفع په ذریعه هغه برخه تر لاسه کړي.

## همسایه ته د شفع د حق حاصل کېدو دلیل

﴿۲۸۳۵﴾: وَعَنْ اَبِيْ رَافِعٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْجَارُ أَحَقُّ بِسَقَبِهِ. رواه البخاري.

د حضرت ابو رافع رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: همسایه د نژدیوالي په خاطر د شفع زیات حقداره دي. (بخاري)

**تخریج**: البخاري في الصحیح (فتح الباري): ۴۳۷/۱۴، رقم: ۲۲۵۸.

**د لغاتو حل**: بسقبه: وهو القرب والملاصفة (نژدېوالی).

**تشریح**: مطلب دادی چي همسایه د شفع زیات حقدار دی او دا مخکي بنودل سوې ده چي د شفع حق یوازي هغه همسایه ته وي کوم چي نژدې او متصل وي.

دا حدیث په ډېر وضاحت سره د حنفیه د مذهب دلیل دی چي د شفع حق یوازي شریک ته حاصل نه دی بلکه همسایه ته هم حاصل دی.

## د همسایتوب حق

﴿۲۸۳۶﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَمْنَعْ جَارٌ جَارَهُ أَنْ يَغْرِزَ خَشَبَهُ فِي جِدَارِهِ. متفق علیه.

د حضرت ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: هیڅوک دي خپل همسایه په دیوال کي د لرګي (میخ وغیره) د ټک وهلو څخه نه منعه کوي. (بخاري او مسلم)

**تخریج**: البخاري في الصحیح (فتح الباري): ۵\۱۱۰، رقم: ۲۴۶۳، ومسلم ۱۳\۱۲۳۰، رقم: ۱۳۶– ۱۶۰۹.

**تشریح** د نه منع کولو حکم په هغه صورت کي دی کله چي د لرګي ښخولو په وجه یو تاوان او ضرر نه رسیږي ، د امام احمد او محدثینو په نزد پورتنی حکم د وجوب په توګه دی ، امام ابو حنیفة، امام مالک او امام شافعي رحمة الله علیهم فرمایي چي دغه حکم د استحباب په توګه دی .

## د لاري په اړه یو هدایت

﴿۲۸۳۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اخْتَلَفْتُمْ فِي الطَّرِيقِ جُعِلَ عَرْضُهُ سَبْعَ أَذْرُعٍ . رواه مسلم .

د حضرت ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : کله چي په تاسو کي د لاري په اړه اختلاف پیداسي نو د لاري عرض (بر) اووه ګزه ساتئ . (مسلم) .

**تخریج**: مسلم في الصحیح ۱۳\۱۲۳۲، رقم: ۱۴۳– ۱۶۰۹.

**تشریح**: مطلب دادی چي پریو ځمکه باندي لاره جوړه سوې وي او هلته خلک سرای جوړول غواړي نو غوره داده چي په خپلو کي په اتفاق او اتحاد سره مناسب لاره پریږدي مګر که چیري د لاري لپاره د ځمکي پر اندازه باندي اتفاق نه وي او په خپلو کي اختلاف پیداسي نو په دغه صورت کي واضح هدایت دادی چي د لاري لپاره دي اووه لاسه ځمکه وتاکل سي او په دغه اووه لاسه ځمکه کي دي هیڅوک سرای وغیره نه جوړوي .

په دې باره کي یو بله مسئله هم په ذهن کي راوستل پکار دي هغه داده که چیري یوه لاره د اوو لاسو څخه لویه وي نو په دغه صورت کي د هیچا لپاره دا جائز نه دي چي هغه د لاري پر ځمکه قبضه وکړي او ووایي چي د لاري لپاره اووه لاسه ځمکه کافي ده .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د غیر منقوله جائیداد بېله ضرورته خرڅول مناسب نه دي

﴿۲۸۳۸﴾: عَنْ سَعِيدِ بْنِ حُرَيْثٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت سعید بن حریث رضي الله عنه څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اوریدلي دي

يَقُوْلُ مَنْ بَاعَ مِنْكُمْ دَارًا أَوْ عَقَارًا قَمِنٌ أَنْ لاَّ يُبَارَكَ لَهُ إِلاَّ أَنْ يَّجْعَلَهُ فِيْ مِثْلِهِ . رواه ابن ماجه والدارمي

څوک چي په تاسو کي کور يا مځکه خرڅه کړي مناسب دي چي د هغه په قيمت کي برکت را نسي تر څو چي په هغه پيسو د هغه کور يا مځکي بل مثل رانيسي. (ابن ماجه دارمي).

**تخريج**: ابن ماجه في السنن ۲\ ۸۳۲، رقم: ۲۴۹۰، والدارمي ۲\ ۳۵۳، رقم: ۲۶۲۵.

**تشريح**: مطلب دادی چي د جائيداد (مثلا سرای ، مځکه، باغ) بېله ضرورت خرڅول او د هغه په قيمت سره منقوله شيان رانيول غير مناسب دي ځکه په جائيداد کي ګټه هم ډېره وي او د هغه د تاوان خطره هم کمه وي چي غل يې نه سي غلا کولای پر خلاف د منقوله شيانو چي د هغه د غلا هر وخت ببره وي نو د عقل اوپوهي تقاضا داده چي بېله ضرورته خپل جائيداد دي نه خرڅوي او که چيري خرڅ يې کړي نو د هغه په قيمت دي نور جائيداد رانيسي .

## همسايه ته د شفع حق حاصل دی

﴿۲۸۳۹﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اَلْجَارُ أَحَقُّ بِشُفْعَتِهِ يُنْتَظَرُ بِهَا وَإِنْ كَانَ غَائِبًا إِذَا كَانَ طَرِيْقُهُمَا وَاحِدًا . رواه أحمد والترمذي وأبو داود وابن ماجه . والدارمي

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : همسايه د شفع زيات حقدار دي که هغه نه وي پر ځاي نو د هغه انتظار دي وکړي او دا حق هغه وخت حاصليږي هر کله چي د دواړو لاره يوه وي .(احمد ترمذي ابو داؤد ابن ماجه دارمي)

**تخريج**: احمد في المسند ۳\ ۳۰۳، والترمذي في السنن ۳\ ۶۵۱، رقم: ۱۳۶۹، وابوداود في السنن ۳\ ۷۸۷، رقم: ۳۵۱۸، وابن ماجه في السنن ۲\ ۸۳۳، رقم: ۲۴۹۴، والدارمي ۲\ ۳۵۴، رقم: ۲۶۲۷.

## د شفع تعلق

﴿۲۸۴۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ الشَّرِيْكُ شَفِيْعٌ وَالشُّفْعَةُ فِيْ

د حضرت ابن عباس رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : شريک (په هغه مځکه

كُلِّ شَيْءٍ . رواه الترمذي قال :وقد روي عن ابن أبي مليكة عن النبي ﷺ مرسلا وهو أصح .

کي چي خرخه کړل سي ) نو د شفع حق لري او شفع په هر شي کي ده .(ترمذي) او ابن ابي مليکه رحمه الله د نبي کريم ﷺ څخه مرسلا روايت کړی دی او دا زيات صحيح دي .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\ ۶۵۴، رقم: ۱۳۷۱.

**تشريح** غشما وظلما : دلته لفظ د ظلم او لفظ د بغير حق د غشما د تاکيد لپاره استعمال سوی دی يا دا چي لفظ د ظلم د غشما د تاکيد لپاره دی مګر د بغير حق څخه مراد شفعه ده .

د ابوداؤد په کتاب (مرقاة الصعود) کي ليکلي دي چي طبراني په خپل کتاب (اوسط) کي دا وضاحت کړی دی چي کوم څوک د حرم په حدودو کي د بيري درخته ووهي نو د هغه لپاره دا وعيد دی ، ځينو ويلي دي چي دلته د مدينې د بيري درخته مراد ده ، ځيني حضرات وايي چي د ځنګل د بيري څخه هغه درخته مراد ده چي د هغه په سايه کي مسافر او حيوانان راحت تر لاسه کوي او ځيني علماء وايي چي ددغه وعيد تعلق د هغه سړي سره دی چي د بل سړي د بيري درخته په ظلم او زور سره پرېکړي .

## د بيري د درختي پر پرېکولو باندي وعيد

﴿۲۸۴۱﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ حُبَيْشٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن حبيش رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

مَنْ قَطَعَ سِدْرَةً صَوَّبَ اللهُ رَأْسَهُ فِي النَّارِ " . رواه أبو داود وقال : هذا الحديث

څوک چي د بيري درخته ووهي (بيري وهلو څخه مراد د مکې د حرم او د مدينې د حرم بيره ده او يا هغه بيره د چا په ملکيت کي وي او په زوره او په ظلم سره يې څوک ووهي د عامو بيرو درخته ځيني مراد نه ده ) نو خداي تعالي به يې سر دوږخ ته وغورځوي. (ابو داؤد) دابو داؤد بيان دي

مختصر يعني مَنْ قَطَعَ سِدْرَةً فِيْ فَلَاةٍ يَسْتَظِلُّ بِهَا ابْنُ السَّبِيْلُ وَالْبَهَائِمُ

چي دا حديث مختصر دي د دې مراد دادي څوک چي د ځنګل يوه داسي د بيرو درخته ووهي چي د هغې لاندي مسافر او حيوان پناه حاصلوي

غَشْمًا وَظُلْمًا بِغَيْرِ حَقٍّ يَكُوْنُ لَهُ فِيْهَا صَوَّبَ اللهُ رَأْسَهُ فِي النَّارِ.

او په ناحقه يې پرېکړې نو د هغه سر به دوږخ ته وغورځول سي.

**تخريج**: ابو داود في السنن ۵\ ۴۰۴، رقم: ۵۲۳۹.

**د لغاتو حل**: صوب: اى نكس وخفض.

**تشريح** څاه يو داسي شی دی چي د وېشلو احتمال نه لري او د شفع حق په هغه مځکه کي وي چي هغه د وېشلو احتمال ولري ځکه نو په څاه کي شفع نه کيږي، د امام شافعي رحمه الله دا مذهب دی مګر د حنفيه په نزد شفع په هره مځکه کي ثابت ده که هغه د ويشلو احتمال ولري لکه سرای، مځکه، باغ او داسي نور او که د وېشلو احتمال ونه لري لکه څاه، حمام، ژرنده او داسي نور، د حنفيه دليل د رسول الله ﷺ دغه ارشاد دی (الشفعة في كل شئ) يعني شفعه په هر شي کي ده.

او د نارينه خرما په درخته کي: يعني څو کسانو ته د خرما يو څو درختي په مشترکه توګه په وراثت تر لاسه سوې چي هغوی په خپلو کي وويشلې او س په هغوی کي يو سړی د خپل برخي د خرما د درختو سره د هغه نارينه درختي خپل حقوق هم خرڅ کړي نو شريکانو ته به د هغه په خرڅولو کي د شفع حق حاصل نه وي ځکه نو خو هغه مځکه ده او نه د هغه ويشل ممکن دي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### په غير منقول جائيداد کي شفع

﴿۲۸۴۲﴾: عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ قَالَ إِذَا وَقَعَتِ الْحُدُوْدُ فِي الْأَرْضِ فَلاَ شُفْعَةَ فِيْهَا وَلاَ شُفْعَةَ فِيْ بِئْرٍ وَّلاَ فَحْلِ النَّخْلِ. رواه مالك.

د حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه څخه روايت دی چي هر کله (په مشترکه مځکه کي حدونه قائم سي نو شفع نه پاته کيږي او په څاه کي شفع نسته او د نر خرما په درخته کي شفع نسته) (مالک)

**تخريج**: الامام احمد في الموطا ۲\ ۷۱۷، رقم: ۴.

========

# بَابُ الْمُسَاقَاتِ وَالْمُزَارَعَةِ

## (د مساقات او مزارعت بيان)

د مساقات صورت دادى چي د مثال په توګه زيد د خپل باغ يو څه درختي بكر ته په دې شرط ورکړي چي ته دغه درختي اوبه كوه او ساتنه يې كوه بيا په هغه كي چي كومي ميوې وسي نو په هغه کي نيم يا دريمه برخه يا څلورمه برخه به په خپلو کي وويشو .

د مزارعت صورت دادى چي د مثال په توګه زيد خپل مځكه بكر ته په دې شرط وركړي چي ته دغه مځكه وكره او په هغه كي چي څه حاصلات وسي نو هغه به نيم په نيم يا دريمه برخه يا څلورمه په خپلو كي وويشو .

د مساقات او مزارعت دواړو يو مفهوم دى يعني نيم په نيم وركول مګر يوازي دومره فرق دى چي د مساقات تعلق د درختو سره وي او د مزارعت تعلق د مځكي سره وي او د دواړو فقهي حكم هم يو دى ، مساقات او مزارعت يعني خپل مځكه يا خپل درختي په نيمه وركول د امام ابوحنيفة رحمة الله عليه په نزد فاسد دى او د امام شافعي، امام مالک، امام احمد او په حنفيه كي د امام ابويوسف ، امام محمد او نورو علماء په نزد جائز دى .

د امام ابوحنيفة رحمة الله عليه دليل دادى چي دا يو داسي اجاره ده چي په هغه كي مزدوري مجهول او معدوم وي او بيا دا چي د رسول الله ﷺ څخه د مزارعت نهي ثابت ده مګر فتوا د امام ابويوسف او امام محمد رحمة الله عليهما پر قول ده ځكه د حنفيه په نزد هم مساقات او مزارعت جائز دى.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړى فصل)

### د خيبر د مځكي بندوبست

﴿۲۸۴۳﴾: عَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَفَعَ إِلَى

د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ د خيبر د خرماؤ درختي او

يَهُودِ خَيْبَرَ نَخْلَ خَيْبَرَ وَأَرْضَهَا عَلَى أَنْ يَعْتَمِلُوهَا مِنْ أَمْوَالِهِمْ وَلِرَسُولِ اللّٰهِ

مځكه يې يهوديانو ته په دې شرط وركړې وه چي هغوى به كار كوي او پيسې به لګوي او

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَطْرُ ثَمَرِهَا . رواه مسلم و في رواية البخاري ان النبي ﷺ اعطى خيبر اليهود ان يعملوها و يزرعوها و لهم شطر ما يخرج منها .

رسول الله ﷺ به د پيداوار څخه نيمه برخه اخلي . (مسلم) او د بخاري په روايت كي داسي راغلي دي چي رسول الله ﷺ د خيبر مځكه يهوديانو ته په دې شرط وركړې وه چي هغوی دي پكښې كار او خواري كاږي او په حاصلاتو كي دي برخه اخلئ .

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۳\ ۱۱۸۷، رقم: ۵- ۱۵۵۱، البخاري في الصحيح (فتح الباري) ۴\ ۴۶۲، رقم: ۲۲۸۵.

**تشريح**: خيبر د يو كلي نوم دی چي د مديني منورې څخه تقريبا شپېته ميله په شمال كي واقع دی ، مځكي دا يو مشهور ځای وو چي هلته د يهودو هستوګنه وه مګر اوس دغه كلی د يو څو كليو مجموعه ده ددغه كلي اوبه او هواء ښه نه ده ځكه دلته خلك د هستوګني څخه بېره كوي په دغه سيمه كي د خرما او نورو شيانو كرنه كيږي .

په هر حال دغه حديث د امام ابوحنيفة رحمه الله څخه پرته د نورو ټولو علماؤ د مذهب دليل دی چي مساقات او مزارعت جائز دی، امام ابوحنيفة رحمه الله فرمايي چي د خيبر مځكه او درختي د هغه ځای يهوديانو ته وركول د مساقات او مزارعت سره هيڅ تعلق نه لري ځكه د خيبر مځكه او د هغه درختي د رسول الله ﷺ په ملكيت كي نه دي چي رسول الله ﷺ هغه د مساقات او مزارعت په توګه د هغه ځاي يهوديانو ته وركولې بلكه هغه مځكه هم د يهوديانو ملكيت وه او د هغه ځای د درختو مالكان هم يهوديان وه رسول الله ﷺ د هغوی املاک هغوی ته وسپارل او د هغوی د حاصلاتو څخه نيم حاصلات يې د خراج په توګه د ځان لپاره و ټاكل ، د خراج دوه ډولونه دي ۱: خراج موظف، ۲: خراج مقاسمت .

د خراج موظف صورت دادی چي د اسلامي هيواد له خوا پر كومو خلكو باندي خراج عائد كيږئ د هغوی څخه د ملك پاچا هر كال يو څه مال اخيستل ټاكلي وي لكه څرنګه چي د اهل نجران څخه به هر كال دوولس سوه جوړې اخيستل كېدې .

د خراج مقاسمت صورت دادی چي پر كومو خلكو خراج عائد كيږئ د هغوی د مځكي حاصلات د هغه خلكو او اسلامي حكومت په مينځ كي پر يو ټاكلي مقدار باندي ويشل كيږي لكه څرنګه چي د اهل خيبر سره وسوه چي د هغوی د مځكي او درختو نيم حاصلات به رسول الله ﷺ اخيستل .

## د مخابرت منع

﴿۲۸۴۴﴾: وَعَنْهُ قَالَ كُنَّا نُخَابِرُ وَلاَ نَرٰى بِذَالِكَ بَاسًا حَتّٰى زَعَمَ رَافِعُ بْنُ خَدِيجٍ أَنَّ النبي ﷺ نَهٰى عَنْهَا فَتَرَكْنَاهَا مِنْ اَجْلِ ذَالِكَ. رواه مسلم

د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه څخه روایت دی چي موږ به مخابره (یو ډول سود) کوی او دا مو به نه ګڼله تر دې پوري چي یوه ورځ رافع بن خدیج رضي الله عنه وویل چي رسول الله ﷺ د مخابرې څخه منعه کړېده نو بیا موږ په دې وجه سره پرېښوده. (مسلم).

**تخریج**: مسلم في الصحيح ۳\۱۱۷۹، رقم: ۱۰۶ – ۱۵۴۷.

**د لغاتو حل**: نخابر: ای نزارع او نقول بجواز المزارعة ونعتقد صحتها.

**تشریح** مخابرت هغه مزارعت ته وایي چي د هغه ذکر په مخکني حدیث کي سوی دی، د امام ابو حنیفة رحمه الله په نزد مزارعت ممنوع دی ځکه دا حدیث د هغه دلیل دی.

## په مزدورۍ د ځمکي ورکولو ذکر

﴿۲۸۴۵﴾: وَعَنْ حَنْظَلَةَ بْنِ قَيْسٍ عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ قَالَ اَخْبَرَنِيْ عَمَّايَ

حضرت حنظله بن قیس رضي الله عنه د رافع بن خدیج رضي الله عنه څخه روایت کوي چي رافع بن خدیج وویل: ماته زما اکاګانو ویلي دي چي

أَنَّهُمْ كَانُوا يُكْرُونَ الْأَرْضَ عَلٰى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَا يَنْبُتُ

د رسول الله ﷺ په زمانه کي به ځمکه په دې شرط ورکوله چي د کښتو د ویالو پر غاړه چي کومه

عَلَى الْأَرْبِعَاءِ أَوْ شَيْءٍ يَسْتَثْنِيهِ صَاحِبُ الْأَرْضِ فَنَهَانَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

غله پیدا سي نو هغه د ځمکي په اجرت کي د مالک حق دي او پاته کښت د هغه دي څوک چي خواري او محنت وکړي یا په دې طریقه سره به ځمکه د کرلو لپاره ورکوله چي د ځمکي یوه ټکړه به یې جلا کوله او د دې پیداوار به د هغه حق ګڼل کیدي نبي کریم ﷺ موږ د دې څخه

وَسَلَّمَ عَنْ ذٰلِكَ فَقُلْتُ لِرَافِعٍ فَكَيْفَ هِيَ بالدراهم والدنانير فَقَالَ لَيْسَ

منعه کړو راوي وایي ما د رافع رضي الله عنه څخه پوښتنه وکړه چي ځمکه د درهم او دینار په عوض کي ورکول سي نو بیا څه حکم دي؟ هغه وویل چي

بِهَا بَأْسٌ وَكَانَ الَّذِي نُهِيَ عَنْ ذٰلِكَ مَا لَوْ نَظَرَ فِيهِ ذَوُو الْفَهْمِ بِالْحَلَالِ

په دې کې څه حرج نسته او د کوم شی څخه چې منعه سوې ده که عقلمند خلک غور او فکر

وَالْحَرَامِ لَمْ يُجِيزُوهُ لِمَا فِيهِ مِنَ الْمُخَاطَرَةِ. متفق عليه.

وکړي نو د دې اجازت به ورنه کړي ځکه چې په دې کې خطرې دي. بخاري او مسلم

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۵\۲۵، رقم: ۲۳۴۶، ومسلم ۳\۱۱۸۳، رقم: ۱۱۵-۱۵۴۷.

**د لغاتو حل**: الاربعاء: جمع ربيع وهو النهر الصغير الذي يسقى المزارع (لبنتى).

**تشريح**: د خپلې مځکې په کښت ورکولو لپاره دوه صورتونه ذکر سوي دي چې د هغو څخه رسول الله ﷺ منع فرمايلې ده او هغه د علماؤ په نزد هم محل نهي دي کوم چې د مزارعت د جواز قائل دي، د مزارعت په اړه مختلف حديثونه نقل سوي دي ځکه کوم علماء چې مزارعت جائز ګڼي نو هغوی هم خپل مذهب د حديث څخه ثابتوي او هغه علماء هم د حديث څخه استدلال کوي چې د هغوی په نزد مزارعت جائز نه دي يعني د دواړو طرفه د علماء لپاره د تاويل دروازه خلاصه ده.

دا خبره مخکې ښوول سوې ده چې اکثر علماء مزارعت جائز ګڼي او امام ابو حنيفة رحمه الله د هغه د عدم جواز قائل دی مګر د حنفيه دوه جليل القدر امامان يعني امام ابويوسف او امام محمد رحمة الله عليهما د جواز قائل دي چې کله د ضرورت لپاره وي ځکه نو په حنفي مذهب کې هم فتوا پر دې خبره ده چې مزارعت جائز دی.

## د مزارعت يو منع صورت

﴿۲۸۴۶﴾: وَعَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ قَالَ كُنَّا أَكْثَرَ أَهْلِ الْمَدِينَةِ حَقْلًا وَكَانَ

د حضرت رافع بن خديج رضي الله عنه څخه روايت دی چې موږ د مدينې منورې او سيدونکي زيات کښت کرونکي وو

أَحَدُنَا يُكْرِي أَرْضَهُ فَيَقُولُ هَذِهِ الْقِطْعَةُ لِي وَهَذِهِ لَكَ فَرُبَّمَا أَخْرَجَتْ ذِهِ وَلَمْ

او په موږ کې به ځينو په دې شرط په کرايه خپله مځکه ورکوله چې د مځکې دومره برخه زما لپاره ده او دومره مځکه ستا لپاره ده او زياتره به داسي کيدل چې

تُخْرِجُ ذِهِ فَنَهَاهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . متفق عليه.

كله به د مځكي په هغه برخه فصل وسو او كله به په بله برخه نو رسول الله ﷺ د دې څخه منعه وفرمايل. (بخاري او مسلم).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۵\ ۱۵، رقم: ۲۳۳۲، ومسلم ۳\ ۱۱۸۳، رقم: ۱۱۷- ۱۵۴۷.

**د لغاتو حل**: حقلا: (اى الزرع) كښت.

## خپل مځکه بل ته د کښت لپاره په رعايت ورکول غوره ده

﴿۲۸۴۷﴾: وَعَنْ عَمْرٍو قَالَ قُلْتُ لِطَاوُسٍ لَوْ تَرَكْتَ الْمُخَابَرَةَ فَإِنَّهُمْ يَزْعُمُونَ

د حضرت عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما طاوس ته وويل: كه تا مخابره پرېښودلې نو بهتره به وه ځكه د خلكو خيال دي

أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْهُ قَالَ أَيْ عَمْرُو إِنِّي أُعْطِيهِمْ وَأُغْنِيهِمْ

چي رسول الله ﷺ د دې څخه منعه كړېده. طاؤس وويل: اې عمره! زه كښت كرونكي ته مځكه وركوم او د هغوی كومک كوم

وَإِنَّ أَعْلَمَهُمْ أَخْبَرَنِي يَعْنِي ابْنَ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَنْهَ

او يو لوي عالم يعني ابن عباس رضي الله عنه ماته ښودلي دي چي نبي كريم ﷺ د دې څخه منعه نه ده

عَنْهُ وَلَكِنْ قَالَ أَنْ يَمْنَحَ أَحَدُكُمْ أَخَاهُ خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَأْخُذَ عَلَيْهِ خَرْجًا مَعْلُومًا . متفق عليه.

فرمايلې بلكه دا يې فرمايلي دي چي كښت لپاره خپل يو ورور ته مځكه وركول د دې څخه بهتر دي چي په هغه باندي يې تاكل سوي محصول واخلي. (بخاري او مسلم).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۵\ ۱۴، رقم: ۲۳۳۰، ومسلم ۳\ ۱۱۸۴، رقم: ۱۲۰- ۱۵۵۰.

**د لغاتو حل**: خرجا: اى اجرا. (مزدوري)

**تشريح** مطلب دا دی چي مزارعت خو داسي وي چي څه وركړل سي او څه واخيستل سي يعني خپل مځكه وركړل سي او د هغه په عوض كي د هغه د حاصلاتو څخه يو برخه واخيستل سي

مګر د دې برعکس که د چا سره احسان وکړل سي په دې توګه چي هغه ته خپل ځمکه پرته د يو برخي د اخيستلو څخه عاريتا ورکړل سي او هغه ګټه ځيني تر لاسه کړي نو دا غوره ده.

## خپل ځمکه بېکاره مه پرېږدئ

﴿۲۸۴۸﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ كَانَتْ لَهُ أَرْضٌ فَلْيَزْرَعْهَا أَوْ لِيَمْنَحْهَا أَخَاهُ فَإِنْ أَبَى فَلْيُمْسِكْ أَرْضَهُ. متفق عليه.

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: چا سره چي ځمکه وي نو هغه له پکار ده چي هغه ځمکه په خپله وکري يا يو خپل مسلمان ورور ته دي ورکړي او که دا دواړي خبري يې خوښي نه وي نو بيا دي خپله ځمکه د ځانه سره وساتي. (بخاري او مسلم)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۵\ ۲۲، رقم: ۲۳۴۰، رقم: ۲۶۳۲، ومسلم ۳\ ۱۱۷۶، رقم: ۸۹- ۱۵۳۹.

**تشريح**: شيخ مظهر رحمه الله وايي چي د دغه حديث سره سم انسان ته پکار دي چي هغه د خپل [ځمکي] څخه ګټه تر لاسه کړي د چا سره چي ځمکه وي نو هغه بايد په خپل ځمکه کي کښت وکړي [او] د هغه حاصلات په لاس راوړي او که په يو وجه هغه خپله کښت نه سي کولای نو بيا دي هغه ځمکه يو مستحق مسلمان ورور ته عاريتا ورکړي چي په هغه کي په محنت او مشقت کولو سره روزي ترلاسه کړي، په دغه صورت کي به د انساني اخلاق او همدردۍ تقاضا هم پوره سي او هغه ته به ثواب هم په برخه سي مګر که چيري هغه په دغه دواړو صورتو کي يو صورت هم خوښ نه کړي او خپل ځمکه د ځان سره پرېږدي نو دغه آخري حکم د دغه دواړو صورتونو پر ترک کولو او د مزارعت پر اختيارولو باندي د تنبيه له مخي ورکړل سوی دی چي د خپل مال څخه نه په خپله ګټه تر لاسه کوي او نه بل چا ته ګټه رسوي. ځيني وايي چي د دغه جملې (نو بيا دي خپل ځمکه د ځان سره وساتي) د دې معنی داده که يو سړی د ځمکي د عاريتا قبلولو څخه انکار وکړي نو خپل ځمکه دي د خپل ځان سره وساتي په دغه صورت کي به دغه حکم د اباحت په توګه وي.

## په کښت کي د بوختيا په وجه د جهاد پر پرېښودلو وعيد

﴿۲۸۴۹﴾: وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ أَنَّهُ رَاٰى سِكَّةً وَشَيْئًا مِنْ آلَةِ الْحَرْثِ فَقَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ ﷺ يَقُوْلُ لَا يَدْخُلُ هٰذَا بَيْتَ قَوْمٍ إِلَّا أَدْخَلَهُ الذُّلَّ. رواه البخاري.

حضرت ابو امامه رضی الله عنه چي د يوي (هل) او د کښت څه سامان وليدي نو وه يې ويل چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اوريدلي دي په کوم کور کي چي دا سامان داخل سي الله تعالي په هغه کي ذلت او خواري دا خلوي (د دې څخه مراد دادي چي ټول خلک په ذراعت بوخت نسي جهاد دي هم کوئ او نور کارونه دي هم کوي). (بخاري).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۵\۴، رقم: ۲۳۲۱.

**تشريح**: د دغه حديث څخه په دې غلط فهمۍ کي اخته کېدل نه دي پکار چي د رسول الله ﷺ په نزد زراعت ناخوښه يا معيوب دی او نه د رسول الله ﷺ مقصد د کښت کونکو مذمت کول دي بلکه په حقيقت کي د دغه ارشاد مقصد د جهاد ترغيب ورکول دي او دا اګاهي ورکول دي چي په زراعت کي په بوختيا سره جهاد پرې نه ښودل سي که يو سړی د خپل ضرورت د پوره لپاره د زراعت کسب اختيار روي نو ظاهره ده چي دا يو ناخوښه خبره نه ده او نه دا سي سړی په وعيد کي داخل دی.

ځيني علماء فرمايي چي د دغه وعيد تعلق د هغو کسانو سره دی چي د دين د دښمنانو يا د هغوی د هيواد د سرحد سره متصل او سيدونکي وي که داسي خلک خپل ټوله توجه زراعت ته وکړي او د جهاد ضرورت او ارزښت هېر کړي نو دښمن به پر هغوی غالب سي او د هغه نتيجه به دا وي چي هغوی به د خپل دښمن په لاس ذليل او خوار سي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د يو چا ځمکه بېله اجازې مه کرئ

﴿۲۸۵۰﴾: عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيجٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ زَرَعَ

د حضرت رافع بن خديج رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي کښت وکړي

فِي أَرْضِ قَوْمٍ بِغَيْرِ إِذْنِهِمْ فَلَيْسَ لَهُ مِنَ الزَّرْعِ شَيْءٌ وَلَهُ نَفَقَتُهُ. رواه الترمذي و ابوداؤد وقال الترمذي هذا حديث غريب.

د چا په ځمکه کي د هغه د اجازت څخه پرته نو ټول کښت د ځمکي د مالک دي او پر مالک باندي يوازي د کښت کرلو خرڅ دي. (ترمذي ابو داؤد) او په ترمذي کي دا حديث غريب ګڼل سوي دي.

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\۶۴۸، رقم: ۱۳۶۶، وابو داود ۳\۶۹۲، رقم: ۳۴۰۳.

**تشريح** مطلب دادی که د يو چا په مځکه کي د مالک د اجازې او خوښۍ څخه پرته يو څوک کښت وکړي نو د هغه مځکي ټول حاصلات به د مالک وي مگر که چيري کښت کونکي په هغه مځکه کي تخم پاشلی وي نو هغه به مالک بېرته ورکوي ددې څخه پرته نور هيڅ هغه ته نه تر لاسه کيږي د امام احمد رحمة الله عليه دا مذهب دی.

مگر نور علماء وايي چي په داسي صورت کي د مځکي حاصلات به د کښت کونکي وي البته د هغه لپاره به دا ضرورت وي چي هغه دي د مځکي تاوان مالک ته ورکړي د حنفيه د ځينو علماؤ دا قول دی او ابن مالک رحمة الله عليه وايي چي پر داسي سړي باندي د مځکي د قبضې د ورځي څخه د هغه کښت څخه د مځکي د خالي کېدو تر ورځي پوري د هغه مځکه معاوضه واجب ده او د هغه چي څه حاصلات وي هغه به د هغه سړي وي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د مزارعت ثبوت

﴿۲۸۵۱﴾: عَنْ قَيْسِ بْنُ مُسْلِمٍ عَنْ أَبِي جَعْفَرٍ قَالَ مَا بِالْمَدِينَةِ أَهْلُ بَيْتِ

حضرت قيس بن مسلم رضي الله عنه د ابو جعفر رضي الله عنه څخه روايت کوي چي په مدينه کي د مهاجرينو

هِجْرَةٍ إِلَّا يَزْرَعُونَ عَلَى الثُّلُثِ وَالرُّبُعِ وَزَارَعَ عَلِيٌّ وَسَعْدُ بْنُ مَالِكٍ وَعَبْدُ اللهِ

داسي هيڅ يو کور نه وو چي د مځکي پر دويمي، دريمي او څلورمي باندي کښت نه کړي او حضرت علي رضي الله عنه سعد بن مالک رضي الله عنه او عبد الله

بْنُ مَسْعُودٍ وَعُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيزِ وَالْقَاسِمُ وَعُرْوَةُ وَآلُ أَبِي بَكْرٍ وَآلُ عُمَرَ

بن مسعود رضي الله عنه عمر بن عبد العزيز رضي الله عنه قاسم رضي الله عنه عروه د ابو بکر رضي الله عنه اولاد د عمر رضي الله عنه

وَآلُ عَلِيٍّ وَابْنُ سِيرِينَ وَقَالَ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ الْأَسْوَدِ كُنْتُ أُشَارِكُ عَبْدَ

اولاد د علي رضي الله عنه اولاد او ابن سيرين دي ټولو خلکو زمينداري کوله د عبد الرحمن بن اسود رضي الله عنه بيان دي ما به د عبد الرحمن

الرَّحْمَنِ بْنَ يَزِيدَ فِي الزَّرْعِ وَعَامَلَ عُمَرُ النَّاسَ عَلَى إِنْ جَاءَ عُمَرُ بِالْبَذْرِ مِنْ

بن يزيد شركت كي كښت كوي او د حضرت عمر رضي الله عنه د خلګو سره دا معامله وه كه حضرت عمر رضي الله عنه تخم د ځانه څخه وركړي

عِنْدِهٖ فَلَهُ الشَّطْرُ وَاِنْ جَاءُوا بِالْبَذْرِ فَلَهُمْ كَذَا. رواه البخاري

نو د پيداوار نيمه برخه به اخلي او كه كښت كرونكي تخم خپله راوړي نو د هغه هغومره برخه ده .(بخاري) .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۵\۱۰ تعليقا.

**تشريح**: ميرک شاه رحمة الله عليه وايي چي د بخاري د عبارت او د هغه د تشريح څخه دا معلوميږي چي د حضرت ابو جعفر رحمة الله عليه عبارت پر لفظ د والربع باندي ختم سوی دی او ددې وروسته د زارع څخه تر اخره پوري ټول عبارت خپله د بخاري دی او دا ټول آثار (يعني د صحابي يا تابعي اقوال) دي چي بخاري بېله اسناده نقل كړي دي ، د مشكوة د مؤلف لپاره ضروري وه چي هغه د روايت په پای كي رواه بخاري تعليقا ليكلي واي .

==========

## بَابُ الْاِجَارَةِ (د اجارې بيان)

د اجارې معنی د يو شي په كرايه وركول دي او د شريعت په اصطلاح كي د اجارې مفهوم دا دی چي د خپل يو شي د ګټي بل څوک مال جوړول .

په فقهي توګه قياس دا وايي چي په اجاره كي ګټه معدوم وي ځكه نو د اجارې جائز كېدل نه دي پكار ، مګر شريعت د خلكو د احتياج او ضرورت له كبله دا جائز ګرځولې ده ، او اجاره د حديث او اثارو څخه ثابت ده .

### اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ (لومړی فصل)

**د اجارې جواز**

﴿۲۸۵۲﴾: عَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ مُغَفَّلٍ قَالَ زَعَمَ ثَابِتُ بْنُ الضَّحَّاكِ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صلى الله عليه وسلم نَهَى عَنِ الْمُزَارَعَةِ وَأَمَرَ بِالْمُؤَاجَرَةِ وَقَالَ لَا بَأْسَ بِهَا . رواه مسلم .

د حضرت عبد الله بن مغفل رضي الله عنه څخه روايت دی چي ثابت بن ضحاک رضي الله عنه بيان كوي چي نبي

كريم ﷺ د مزارعت څخه منعه فرمايلې ده او مځكه په اجاره وركولو سره يې امر كړي دي او فرمايلي يې دي چي په اجاره كي هيڅ حرج نسته . (مسلم)

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۳\ ۱۱۸۴، رقم: ۱۱۹- ۱۵۴۹.

**تشريح** د مزارعت څخه منع فرمايلې ده په دې كي د مزارعت څخه مراد د مزارعت هغه صورتونه دي چي د هغه عدم جواز معلوم او متقين دی او د هغه يادونه په تېر باب كي سوې ده.

﴿۲۸۵۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ احْتَجَمَ فَأَعْطَى الْحَجَّامَ أَجْرَهُ وَاسْتَعَطَ . متفق عليه.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وينه وكښل او وينه كښونكي ته يې اجرت (مزدوري) وركړ او په پزه كي يې دوا هم واچول. (بخاري)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۰\ ۱۴۷، رقم: ۵۶۹۱، ومسلم ۳\ ۱۲۰۵، رقم: ۶۵- ۱۲۰۲.

**تشريح** ددغه حديث څخه معلومه سوه چي دويني كښلو كسب او اجاره مباح دي او علاج كول جائز دی.

## رسول الله ﷺ په مزدورۍ پسونه پيولي دي

﴿۲۸۵۴﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا بَعَثَ اللّٰهُ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هيڅ يو نبي داسي نه دي

نَبِيًّا إِلَّا رَعَى الْغَنَمَ فَقَالَ أَصْحَابُهُ وَأَنْتَ فَقَالَ نَعَمْ كُنْتُ أَرْعَاهَا عَلَى قَرَارِيطَ لِأَهْلِ مَكَّةَ . رواه البخاري.

راليږل سوي چي هغه څاروی نه وي څر كړي، اصحابو كرامو رض ځيني پوښتنه وكړه او تاسو هم؟ نبي كريم ﷺ ور ته وفرمايل: هو ما به هم د مكې د خلكو پسونه د څو قيراطو په اجرت څرول. (بخاري)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۴\ ۴۴۱، رقم: ۲۲۶۲.

**تشريح** د نبوت د فريضې ادا كول چي د كومو اوصافو او خصوصياتو حامل وي يا داسي به ووايو چي نبي ته د خپلو ذمه داريو د پوره كولو لپاره د ټولني سره چي كوم نژدې ربط او تعلق

وي د هغه لپاره دا ضروري وه چي د دعوت او تبلیغ او اصلاح او لارښوونې پر هر اړخ باندي د ... ي د افرادو په مینځ کي د اجنبیت او غیریت دېوال حائل نه وي، د قدرت له خوا په پیل کي نبي ته یو داسي تربیتي او ازمائشي دور ځخه تېرېدل وي چي د هغه ځیني مرحلې خو په ظاهره د ډېري لاندي سطح معلومېږي مګر د نتائجو او اثراتو په اعتبار هغه مرحلې ډېر کار آمد ثابت سوي دي همدارنګه یوه مرحله د پسو پېول هم دي دا که څه هم ډېر معمولي شی معلومېږي مګر که غور و کړل سي نو معلومه به سي چي د پسو پیول د محبت، شفقت، محنت، مشقت، یو تر بله رابطه او تعلق او د عامي خیر خواهۍ یو غوره سبق دی چي د یو رهبر او مصلح د ژوند بنیادي وصف دی ، هر نبي ځکه پسونه پیولي دي چي ددغه تجربې ځخه د تېرېدو وروسته د امت د ساتني او شفقت او د ټولني سره د ربط او تعلق حقیقي جذبه په پوره ژوند کي پیدا سي او د قوم له خوا پر پېښېدونکي هري سختي او مصیبت باندي د صبر او تحمل قوت ور په برخه سي او په دغه ذریعه سره هغه ته حقیقي خلوت او یوازیوالي هم تر لاسه کیدی چي د نبي د ابتدائي ژوند یو مطلوب وي.

## مزدور ته د مزدورۍ پر نه ورکولو وعید

﴿۲۸۵۵﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اللّٰهُ ثَلَاثَةٌ أَنَا

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه ځخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : خداي تعالي فرمایلي دي : د قیامت په ورځ به زه د درو کسانو سره

خَصْمُهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ رَجُلٌ أَعْطَى بِي ثُمَّ غَدَرَ وَرَجُلٌ بَاعَ حُرًّا فَأَكَلَ ثَمَنَهُ

جګړه کوم .۱- یو خو هغه کس دي چي هغه زما په نامه سره عهد یا معاهده وکړه او بیا یې ماته کړي ۲-د هغه کس سره چي ازاد انسان خرڅ کړي او د هغه قیمت و خوري.

وَرَجُلٌ اسْتَأْجَرَ أَجِيرًا فَاسْتَوْفَى مِنْهُ وَلَمْ يُعْطِ أَجْرَهُ . رواه البخاري.

۳-د هغه کس سره چي یو سړی په مزدوري ولګوي او د هغه ځخه پوره کار واخلي او بیا مزدوري ورنه کړي .(بخاري) .

**تخریج** : البخاري في الصحیح (فتح الباري): ۱۴\ ۴۱۷، رقم: ۲۲۲۷.

**تشریح** په دغه حدیث شریف کي د داسي درو کسانو ځرګندونه سوې ده چي د قیامت په ورځ به د الله تعالی د قهر او غضب نښه وي په دوی کي اول سړی هغه دی چي د الله تعالی په نامه

یعني د هغه په نامه په قسم اخیستلو سره یو عهد او معاهده کوي او بیا هغه ماتوي ، د عهد او معاهدې پابندي په هر صورت کې یو ضروري شی دی مګر د انسان د شرافت او انسانیت تقاضا داده چې هغه عهد او معاهده پوره کړي د یوې معاهدې بېله عذره ختمول د انساني شرف خلاف کار هم دی او د انسانیت توهین هم دی مګر که یو څوک یو عهد او معاهده د الله په نامه سره وکړي نو د بیا پوره کول ډېر زیات ضروري کیږي ځکه چې څوک د الله تعالی په نامه عهد او معاهده ماتوي نو هغه به د الله تعالی د غضب مستحق وي ·

دوهم سړی هغه دی چې یو آزاد انسان خرڅوي ، د انساني شرف توهین تر دې زیات نور څه کیدای سي چې یو انسان د ځان په ډول یو بل انسان د بازار مال ګرځوي او د هغه رانیول او پلورل کوي داسي سړی به هم د قیامت په ورځ په عذاب کې اخته وي ·

دلته دا نکته په ذهن کې راوستل پکار دي چې په پورتني حدیث کې (د هغه د قیمت خوړلو) قید محض د زیاتي تنبیه لپاره دی مطلب یې دادی چې یو ازاد انسان خرڅول د یو لوی ګناه خبره ده که د هغه قیمت وخوري او که یې ونه خوري ·

دریم هغه سړی دی چې یو مزدور د خپل کار د پوره کولو لپاره په مزدوري ولګوي او هغه ته د کار د ختمولو څخه وروسته خپل مزدوري ورنه کړي دا یو ډېر د نفرت وړ کار دی د یو سړي محنت د هغه د ژوند قیمتي سرمایه وي چې د هغه په تر لاسه کولو سره د هغه مزدوري نه ورکول د انسانیت خلاف کار دی د څومره ظلم خبره ده چې یو غریب د خپل نس د کولو لپاره د یو چا سره مزدوري وکړي مګر د هغه د محنت مزدوري هغه ته ورنه کړل سي د داسي سړي په باره کې هم کوم چې د مزدور مزدوري نه ورکوي الله تعالی دا خبرداری ورکړی دی چې داسي سړی به د قیامت په ورځ دد غه انساني ظلم سزا خامخا تر لاسه کړي ·

## دم کوونکی اجرت اخیستلای سي

﴿۲۸۵۶﴾ : وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ نَفَرًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابن عباس رضی الله عنه څخه روایت دی چې د نبي کریم ﷺ د اصحابو یوه ډله د یو کلي سره

مَرُّوا بِمَاءٍ فِيهِمْ لَدِيغٌ أَوْ سَلِيمٌ فَعَرَضَ لَهُمْ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ الْمَاءِ فَقَالَ هَلْ

نژدې تېرېدل چې په هغه کې یو سړی مار یا لړم چیچلی وو د کلي څخه و هغه ته یو سړی راغلی او پوښتنه یې ځیني وکړه چې آیا

فِيكُمْ مِنْ رَاقٍ إِنَّ فِي الْمَاءِ رَجُلًا لَدِيغًا أَوْ سَلِيمًا فَانْطَلَقَ رَجُلٌ مِنْهُمْ فَقَرَأَ

په تاسو كي يو څوک دم كونكي سته؟ په كلي كي يو سړى مار يا لړم چيچلي دي. په اصحابو كرامو كي يو كس ور سره سو او د كلي والاؤ سره يې په څو پسو پرېكړه وكړه

بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ عَلَى شَاءٍ فَبَرَأَ فَجَاءَ بِالشَّاءِ إِلَى أَصْحَابِهِ فَكَرِهُوا ذٰلِكَ وَقَالُوا

او په ناروغه باندي يې سورة فاتحه چُف كړه ناروغه په قراره سو نو هغه پسونه يې د ځانه سره راوړل كله چي خپل ملګرو ته راو رسېدي نو اصحابو كرامو د پسو د اجرت په اخيستو اعتراض وكړ او ويې ويل چي

أَخَذْتَ عَلَى كِتَابِ اللّٰهِ أَجْرًا حَتّٰى قَدِمُوا الْمَدِينَةَ فَقَالُوا يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَخَذَ

تا د خداي تعالي په كتاب باندي مزدوري اخيستې ده داؤ چي دوى و مدينې منورې ته را ورسېدل او نبي كريم ﷺ ته يې وويل چي

عَلَى كِتَابِ اللّٰهِ أَجْرًا فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَحَقَّ مَا أَخَذْتُمْ

فلاني سړى د الله تعالي په كتاب باندي اجرت اخيستى دى نبي كريم ﷺ ورته و فرمايل: (په دې كار كي خو) د الله تعالي په كتاب باندي اجرت اخيستل د

عَلَيْهِ أَجْرًا كِتَابُ اللّٰهِ. رواه البخاري وَفِي رِوَايَةٍ أَصَبْتُمْ اقْسِمُوا وَاضْرِبُوا لِي مَعَكُمْ سَهْمًا.

ټولو څخه زيات مناسب دي. (بخاري) او په يو بل روايت كي دا الفاظ دي چي نبي كريم ﷺ وفرمايل: تاسو ښه وكړل پسونه په خپلو مينځو كي ووېشئ او ما ته هم يوه برخه را كړئ.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۰\۱۹۸، رقم: ۵۷۳۷،

**تشريح** دلفظ سليم او لفظ لديغ دواړو يوه معنى ده يعني مارچيچلى، د روايت په الفاظو كي د لديغ او سليم لفظ د راوي لفظي شک ظاهروي يعني راوي د دواړو الفاظو په نقل كولو سره دا ظاهروي چي چا ته دا په ياد نه دي چي دلته لفظ د لديغ ويل سوى وو او كه لفظ د سليم. علامه طيبي رحمة الله عليه دا وايي چي اكثر لفظ د لديغ پر هغه سړي باندي اطلاق كيږي كوم چي لړم

چيچلي وي او د سليم لفظ اطلاق پر هغه سړي کيږي کوم چي مار چيچلي وي ، په دغه صورت کي به ويل کيږي چي دلته راوي ته د معنی په اعتبار شک دی چي يا خو هغه سړی لړم چيچلی وو يا مار چيچلی وو .

ځيني علماء وايي چي کوم صحابي د سورة فاتحې په ويلو سره دم کړی وو هغه ابو سعيد خدري ﷺ وو او د صحابه کرامو هغه ډله پر دېرش کسانو مشتمله وه ، په دې اعتبار سره د سورة فاتحې ويونکي صحابي دېرش پسونه اخيستي دي .

رسول الله ﷺ په ځينو پسو کي د خپل برخي لپاره ځکه وفرمايل چي هغه صحابه هم خوشحاله سي او په دې هم پوه سي چي د سورة فاتحې په ويلو سره د دم کولو په عوض کي حاصليدونکی پسه بېله شکه حلال دی .

ددې څخه معلومه سوه چي د قرآن کريم د آياتونو او ذکر الله په ذريعه دم کول او د هغه شکرانه اخيستل جائز دي ، عامل روحانيات يعني د قرآن کريم د آياتونو او نورو منقوله دعاوو په ذريعه علاج کونکی که د خپل عمل يعني تعويذ او دم کولو شکرانه واخلي نو په دې کي څه شرعي قباحت نه سته مګر ددې څخه دا نتيجه نه سي اخيستل کيدای چي د تلاوت قرآن اجرت اخيستل جائز دي ځکه چي په دغه دواړو کي فرق دی او هغه دا چي د قرآن کريم تلاوت يو عبادت دی او د عبادت قيمت اخيستل قطعا جائز نه دي او پر يو ناروغ او مصيبت زده سړي باندي د قرآن کريم په ويلو سره دم کول او د هغه د برکت څخه شفاء تر لاسه کېدل عبادت نه دی نو ددې شکرانه اخيستل جائز دي .

ددې څخه دا ثابته سوه چي د مصحف (قرآن کريم په کتابي صورت کي) پلورل، رانيول او په مزدوري باندي ددغه کتابت کول او ددين نور کتابونه په مزدوری بآندي ليکل جائز دي همدارنګه متاخرينو (يعني وروستني علماء) د قرآن کريم تعليم هم پر دې قياس کړی دی او وايي چي د قرآن کريم د تعليم مزدوري اخيستل جائز دي حال دا چي متقدمين (يعني د پخوانی زمانې علماء) لکه امام ابوحنيفة رحمه الله او داسي نور علماء د قرآن کريم پر تعليم باندي د مزدوري اخيستلو ته حرام ويلي دي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د غير شرعي دم اجرت حرام دی

﴿۲۸۵۷﴾: عَنْ خَارِجَةَ بْنِ الصَّلْتِ عَنْ عَمِّهٖ قَالَ أَقْبَلْنَا مِنْ عِنْدِ رَسُولِ اللّٰهِ

خارجه بن صلت رضی الله عنه د خپل اکا څخه روایت کوي چي موږ د رسول الله ﷺ څخه رخصت سوو

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَتَيْنَا عَلَى حَيٍّ مِنَ الْعَرَبِ فَقَالُوا إِنَّا أُنْبِئْنَا أَنَّكُمْ قَدْ

او د خپل وطن په لور روان سو چي د شپې لخوا یوه د عربو قافله زموږ سره تېرېدل نو هغوی و

جِئْتُمْ مِنْ عِنْدِ هٰذَا الرَّجُلِ بِخَيْرٍ فَهَلْ عِنْدَكُمْ مِنْ دَوَاءٍ أَوْ رُقْيَةٍ فَإِنَّ

موږ ته وویل: موږ ته معلومه سوې ده چي تاسو د نبي کریم ﷺ د خیر (یعني قران) سره راغلي یاست، ایا ستاسو سره څه دوا یا دم نسته؟

عِنْدَنَا مَعْتُوهًا فِي الْقُيُودِ قَالَ فَقُلْنَا نَعَمْ فَجَاءُوا بِمَعْتُوهٍ فِي الْقُيُودِ قَالَ

په موږ کي یو لېونی په زولنو کي سته چي د هغه علاج وکړئ. موږ ورته وویل هو، وروسته یې یو لېونی په ځنځیرو تړلي راوستی

فَقَرَأْتُ عَلَيْهِ فَاتِحَةَ الْكِتَابِ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ غُدْوَةً وَعَشِيَّةً أَجْمَعُ بُزَاقِي ثُمَّ أَتْفُلُ

ما په هغه باندي تر درو ورځو پوري سهار او ماښام سورة فاتحه چف کړه په دې طریقه سره چي ما به په خوله کي ناوړي جمع کولې او په سورة فاتحه ویلو سره به مي په هغه باندي موږلې

فَكَأَنَّمَا أُنْشِطَ مِنْ عِقَالٍ فَأَعْطَوْنِي جُعْلًا فَقُلْتُ لَا حَتَّى أَسْأَلَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى

نو (په دریمه ورځ) هغه روغ رمټ سو نو هغوی ماته د دې اجرت را کوئ او ما ورته وویل تر څو پوري چي زه د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه ونه کړم اجرت نه اخلم

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ كُلْ فَلَعَمْرِي مَنْ أَكَلَ بِرُقْيَةِ بَاطِلٍ لَقَدْ أَكَلْتَ بِرُقْيَةِ

حَقٍّ. رواه احمد وابوداؤد.

نبي کریم ﷺ د پوښتني وروسته را ته وفرمایل : وه یې خوره په خپل عمر دي مي قسم وي څوک چي په دروا غو باندي جادو کوي او د هغه څه خوري هغه بدکوي خو تا په حقه سره خوړلې ده .(احمد ابو داؤد)

**تخریج**: احمد في المسند ۵\۲۱۰، وابوداود في السنن ۳\۷۰٦، رقم: ۳۴۲۰.

**تشریح** باطل منتر داسي دم ته وايي چي په هغه کي د ستورو، پیریانو او د الله تعالی څخه پرته د نورو شیانو ذکر وي او د هغوی څخه مرسته غوښتل سوې وي ، داسي عملیات چي د غیر الله د ذکر یا د غیر الله څخه د مرسته غوښتلو په وجه وي دا غیر شرعي دي لکه څرنګه چي د هغه اختیارول ناجائز دي همدارنګه د هغه مزدوري خوړل هم حرام دي .

حق منتر هغه دم او عملیاتو ته وايي چي په هغه کي ذکر الله او د قرآن کریم آیاتونه وي که د هغه تعلق د ويلو سره وي او که د تعویذ وغیره په شکل کي د لیکلو سره وي .

د حدیث الفاظ فلعمري (یعني قسم دی زما په ژوند) ددې څخه دا اشکال واقع کیدای سي چي د الله تعالی څخه پرته د نورو شیانو قسم اخیستل منع دي نو بیا رسول الله ﷺ د خپل ژوند قسم څرنګه واخیستی ، ددې جواب دادی چي لفظ د فلعمري څخه دا مراد نه دی بلکه دا په اصل کي د عربو د کلام یو خاص لفظ دی چي د اکثرو خبرو په دوران کي د هغوی پر ژبه جاري وي ، یا به دا وويل سي چي دا د هغه وخت واقعه ده کله چي د غیر الله د قسم خوړلو منع نه وه سوې .

علامه طیبي رحمه الله فرمايي چي کیدای سي رسول الله ﷺ ته ددا ډول قسمونو اخیستلو اجازه سوې وي نو ددې تعلق ه د هغه شیانو سره وي کوم چي د رسول الله ﷺ سره مختص دي چي هغه د رسول الله ﷺ لپاره جائز وه او د نورو لپاره جائز نه دي .

## د مزدور په مزدورۍ ورکولو کي زنډ مه کوئ

﴿۲۸۵۸﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْطُوا الْأَجِيرَ أَجْرَهُ قَبْلَ أَنْ يَجِفَّ عَرَقُهُ . رواه ابن ماجة .

د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : مزدور ته د هغه د خولو د وچېدو تر مخه خپله مزدوري ور کړئ . (ابن ماجه)

**تخریج**: ابن ماجه في السنن ۲\۸۱۷، رقم: ۲۴۴۳.

﴿۲۸۵۹﴾: وَعَنِ الْحُسَيْنِ ابْنِ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلسَّائِلِ حَقٌّ وَإِنْ جَاءَ عَلَى فَرَسٍ. رواه احمد وابوداؤد في المصابيح مرسل.

د حضرت حسين بن علي رضي الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د سوال کوونکي حق دي اګر چي پر آس سپور راسي. (يعني سوال کونکي ته څه ناڅه يو شی ورکول پکار دي) (احمد ابو داؤد او په مصابيح کي مرسلا دي).

**تخريج**: احمد في المسند ۲۰۱/۱، رقم: ۱۶۶۵.

**تشريح**: ددغه حديث شريف مقصد دا تعليم ورکول دي چي سوال کونکی خالي لاس جوابول نه دی پکار که څه هم هغه د سوال کولو لپاره پر آس راغلی وي، نو د هغه سوال دي پوره کړل سي، قاضي رحمة الله عليه ويلي دي چي سوال کونکی خالي لاس مه استوئ که څه هم هغه په داسي حالت کي تاسو ته راغلی وي چي د هغه پر مستغني کېدو باندي دلالت کوي ځکه تاسو بايد دا فکر وکړئ که چيري هغه ته د سوال کولو حاجت نه وي نو هغه به ولي د سوال لاس غزولای او تاسو ته په يې خپل ځان ذليل او خوار کولای.

دا حديث په ظاهره ددغه باب سره هيڅ تعلق نه لري پرته ددې چي څخه دا وويل سي چي سوال کونکي ته بايد يو څه ورکړل سي يعني دا د هغه د سوال اجرت دی نو ددې مناسبت سره دغه حديث په باب الاجاره کي نقل سوی دی.

ددغه حديث په اسنادو کي علماؤ ويلي دي چي امام احمد رحمة الله عليه خو دا ويلي دي چي ددغه حديث اصل نه سته، امام ابوداؤد رحمة الله عليه په دې کي سکوت اختيار کړی دی، ددې مطلب دادی چي د هغه په نزد دغه حديث د استدلال وړ دی، په مصابيح کي دغه حديث ته مرسل ويل سوي دي مګر تحقيقي خبره داده چي دا مسند دی د مصابيح په ځينو نسخو کي لفظ د مرسل هم مذکور نه دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د مزدورۍ په اړه د حضرت موسی عليه السلام ذکر

﴿۲۸۶۰﴾: عَنْ عُتْبَةَ بْنِ النُّذَّرَ قَالَ كُنَّا عِنْدَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عتبه بن نذر رضي الله عنه څخه روايت دی چي موږ د رسول الله ﷺ سره ناست وو چي

فَقَرَأَ طسم حَتَّى إِذَا بَلَغَ قِصَّةَ مُوسَى قَالَ إِنَّ مُوسٰى علیه السلام آجَرَ نَفْسَهُ

نبي کریم ﷺ سورة طسم د موسی علیه السلام تر کیسې پورې ولوست او ویې فرمایل: حضرت موسی علیه السلام

ثَمَانِيَ سِنِينَ أَوْ عَشْرًا عَلَى عِفَّةِ فَرْجِهِ وَطَعَامِ بَطْنِهِ. رواه احمد وابن ماجة.

د اتو یا لسو کلو پورې مزدوري وکړه او دا یوازې د دې لپاره چې خپله شرمگاه د حرامو څخه وساتي او د نس لپاره غذا تیاره کړي. (احمد ابن ماجه)

**تخریج**: سنن ابن ماجه ۲\ ۸۱۷، رقم: ۲۴۴۴. لم نجده عند الامام احمد.

**تشریح** طسم یعني په سورة قصص کې د حضرت موسی علیه السلام یادونه ده په هغه کې بنوول سوي دي ي حضرت موسی علیه السلام مدین ته ورسیدی نو هلته د حضرت شعیب علیه السلام سره یې ملاقات وسو بیا د هغه د لور سره د حضرت موسی علیه السلام نکاح وسوه او حضرت موسی علیه السلام د هغه په عوض کې خپل ځان د حضرت شعیب علیه السلام په مزدورۍ کې ولګوی، رسول الله ﷺ د دغه سورت په تلاوت کولو سره چې کله د حضرت موسی علیه السلام دغه یادوني ته ورسیدی نو پورتنی ارشاد یې وفرمایه. د شرمګاه ساتلو څخه مراد نکاح ده، د دې تفصیل دادی چې حضرت موسی علیه السلام د حضرت شعیب علیه السلام د لور سره په دې معاهده نکاح وکړه چې زه به اتلس کاله پورې ستاسو پسونه پیایم، یعني تر دومره وخته پورې د پسو پېول هغه د خپل ښځې مهر وګرځوی، د هغوی په شریعت کې دا جائز وه چې د ازاد سړي خدمت د هغه د ښځې مهر وګرځول سي مګر د حضرت موسی علیه السلام په دغه معامله کې دا احتمال هم دی چې هغه به د خپل ښځې مهر بل څه تاکلی وي او د پسو پېول به یې د احسان په توګه قبول کړي وي.

## د خاوند خدمت د ښځې مهر کیدای سي که یا؟

په دې باره کې د علماء فقهي اختلاف دی، حنفي علماء وایي چې دا جائز نه دي چې د یوې ښځې نکاح د هغه شي په عوض کې وکړل سي چې د هغه ازاد خاوند د مثال په توګه تر یو کال پورې د هغې خدمت کوي مګر دا جائز دي چې د ښځې نکاح د هغه شي په عوض کې وکړل سي چې د هغې د خاوند غلام د مثال په توګه تر یو کال پورې د هغې خدمت وکړي، د شافعي علماؤ په نزد د ځینو کارو د مزدورۍ او خدمت په عوض کې صحیح کله چې مستاجر له او مخدوم فیه معلوم او متعین شی وي.

## د ديني تعليم پر ورکولو باندي د اجرت مسئله

﴿۲۸۶۱﴾: وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ رَجُلٌ أَهْدَى إِلَيَّ

د حضرت عباده بن صامت رضی اللہ عنہ څخه روايت دی چي ما وويل يا رسول الله ﷺ! ما به يوه سړی ته قرانکريم ښودي نو هغه و ماته په هبه کي راکړه

قَوْسًا مِمَّنْ كُنْتُ أُعَلِّمُهُ الْكِتَابَ وَالْقُرْآنَ وَلَيْسَتْ بِمَالٍ وَأَرْمِي عَلَيْهَا فِي

يو ه ليندہ او دا چي ليندہ څه مال نه دي زه به په دې باندي د خداي تعالي په لاره کي غزا کوم،

سَبِيلِ اللّٰهِ قَالَ إِنْ كُنْتَ تُحِبُّ أَنْ تُطَوَّقَ طَوْقًا مِنْ نَارٍ فَاقْبَلْهَا . رواه ابوداؤد وابن ماجة .

نبي کريم ﷺ راته وفرمايل: که ته دا (خبره) خوښوې چي ستا په غاړه کي د اور طوق واچول سي نو دا هديه قبوله کړه. (ابو داؤد ابن ماجه).

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\۷۰۱، رقم: ۳۴۱۶، وابن ماجه ۲\۷۳۰.

**د لغاتو حل**: وليست بمال (ای عظيم) ډېر.

**تشريح** ليندی مال نه دی، د حضرت عباده رضی اللہ عنہ دا مراد وو چي ليندی دا سي شی نه دی چي په مال يا مزدوری کي وشمېرل سي بلکه دا خو د جنګ يو سامان دی چي د الله تعالی په لاره کي به يې زه استعمالوم، په دې توګه چي په جهاد کي به زه دد دې په ذريعه غشي ولم مګر رسول الله ﷺ هغه خبر دار کړ چي دغه ليندی که څه هم تا ته د کلام الله د تعليم د مزدوری په توګه حاصل سوې نه ده او نه دا يو داسي شی دی چي مزدوري وګڼل سي مګر په دې کي هم څه شک نه سته چي دا به ستا هغه اخلاص ختم کړي کوم چي ستا د خدمت تعليم محور وو، او د هغه څخه په سرشاد کېدو سره تا هغه خلکو ته د قرآن او دين تعليم ورکړی وو نو ستا لپاره دا مناسب دي چي ته دغه ليندی قبوله نه کړې، کوم علماء چي د قرآن او ديني تعليم پر ورکولو باندي د اجرت اخيستلو ته حرام وايي هغوی د دغه حديث ظاهري مفهوم څخه استدلال کوي.

=========

# بَابُ اِحْيَاءِ الْمَوْاتِ وَالشِّرْبِ

## (د ورانې مځکې ابادول او اوبه کولو بیان)

په نهايه کې ليکلي دي چې موات هغه مځکې ته ويل کيږي چې په هغه کې نه کښت وي، نه سراى او نه د هغه يو څوک مالک وي، او په هدايه کې ليکلي دي چې موات هغه مځکې ته وايي چې د اوبو څخه د قطع کېدو يا تر ډېرو اوبو لاندې کېدو په وجه د کرني ور نه وي يا په هغه کې يو داسي شى وي چې د کرني څخه مانع وي او داسي مځکه چې عادي يعني قديم وي د هغه څوک نه وي يا د اسلامي پاچاهۍ مملوک وي او د هغه د مالک معلومات نه وي او هغه مځکې د کلي څخه دومره ليرې وي که يو سړى د کلي پر غاړه باندي په درېدو سره اواز پورته کړي نو د هغه اواز هغه مځکې ته و نه رسيږي نو هغه مځکه موات ده.

د احياء موات څخه مراد دادى چې د هغه مځکې ابادول او د هغه مځکې د ابادولو صورت دادى چې يا خو په هغه مځکه کې سراى جوړ کړل سي يا په هغه کې درختي ولګول سي يا په هغه کې کښت وکړل سي يا هغه اوبه کړل سي او يا هغه يوي کړل سي.

د دغه ډول مځکې يعني د موات شرعي حکم دادى چې کوم څوک هغه مځکه اباده کړي هغه د دغه مځکې مالک دى مګر په دې باره کې د علماؤ لږ اختلاف دى او هغه دا چې امام ابوحنيفة رحمة الله عليه فرمايي چې د هغه مځکې د ابادولو لپاره د امام (يعني حکومت) اجازه اخيستل شرط دي، د امام شافعي او صاحبينو (يعني د حنفيه امام ابويوسف او امام محمد) په نزد اجازه شرط نه ده.

د شرب لغوي معنى د څښلو ده او د شريعت په اصطلاح کې د دغه لفظ مفهوم دادى چې د اوبو څخه د ګټې اخيستلو هغه حق چې د څښلو لپاره، د فصل او باغ اوبه کولو، او د حيوانانو د اوبو کولو لپاره هر انسان ته حاصل وي، اوبه چې تر څو پوري په خپل معدن (يعني درياب، تالاب وغيره) کې وي نو هغه د يو چا ذاتي ملکيت نه دى ځکه بېله خاصوالي هر انسان د هغه څخه د ګټې اخيستلو حق لري چې د هغه څخه منع کول د هيچا لپاره جائز نه دي.

مګر په دې باره کې د دريابو، ويالو، تالابو او ځينو نورو اوبو کې چې لوښي ور څخه ډکيږي فرق دى چې د هغه تفصيل د فقهي په کتابو کې موجود دى، دلته يوازي په دې پوه سئ چې د حنفي مذهب سره سم د درياب پر اوبو باندي د ټولو انسانانو يو ډول حق دى که هغه څوک

د اوبو څښلو لپاره استعمال کړي که ځمکه په اوبه کړي او که که یو څوک د ویالو په ذریعه د هغه اوبه خپل ځمکي او باغ ته بوځي په هیڅ صورت کي هم څوک د دریاب د اوبو څخه منع نه سي کولای او نه چا ته دا حق دی چي څوک منع کړي ، د دریاب د اوبو څخه ګټه اخیستل او د سپوږمی، لمر او هواء څخه د ګټي اخیستلو په ډول دي چي الله تعالی دغه نعمتونه بېله تخصیصه د کائناتو د هر فرد لپاره عام کړي دي ، ددغه شیانو څخه ګټه اخیستل د یو سړي یا یو خاص ډلي سره مخصوص نه دي بلکه ددې څخه په ګټه اخیستلو کي ټول یو ډول شریک دي .

همدارنګه د څاه او ویالو پر اوبو باندي د ټولو حق دی مګر که یو سړی دا وغواړي چي د یو څاه یا ویالې د اوبو څخه د موات احیاء وکړي یعني وېرانه ځمکه کي کښت وکړي نو په دغه صورت کي به هغه خلکو ته چي د چا په سیمه کي هغه څاه یا ویاله وي د منع کولو حق حاصل دی که څه هم هغه سړی په وېرانه ځمکه کي په اوبو بېولو سره د هغه څاه یا د هغه ویالې په اوبو کي کمي او تاوان واقع کېږي یا نه واقع کېږي ځکه چي د هغوی په سیمه کي د څاه یا ویالې کېدو په وجه د هغوی پر اوبو هغوی ته په هر حال یو حق حاصل دی او کومي اوبه چي په یو لوښي یا تالاب وغیره کي وي نو د هغه لوښي او تالاب والا ملکیت کېږي ددې مطلب دادی چي په هغه اوبو کي د هر سړي حق وي هر څوک چي یې غواړي تر لاسه کولای یې سي مګر کله چي هغه یو ښکاري ونیسي نو دهغه په قبضه کي په راتلو سره د هغه ښکاري ملکیت سي او پر هغه د پاته خلکو حق ساقط سي او که چیري یو څاه یا ویاله یا چینه په داسي ځمکه کي وي چي د یو خاص سړي ملکیت وي نو هغه سړي ته به دا حق حاصل وي که هغه وغواړي نو هغه په خپل حدود کي د اوبو غوښتونکي باندي پابندي ولګوي په شرط ددې چي د اوبو هغه غوښتونکی سړی هلته د یو داسي نژدې ځای څخه اوبه تر لاسه کولای سي چي د بل په ملکیت کي نه وي او که چیري هلته د نژدې ځای څخه د اوبو تر لاسه کول ممکن نه وي نو بیا هغه مالک ته دي وویل سي چي یا خو هغه خپل د خپل څاه یا ویالې څخه د اوبو راوړلو اجازه ورکړي یا هغه ته اجازه ورکړي چي هغه هلته په ورتلو سره اوبه ترلاسه کړي مګر په دې شرط چي هغه د څاه یا ویالې غاړي ته تاوان ونه رسوي .

که په موات ځمکه کي یو څاه وکښل سي نو د هغه ځمکي ابادونکي ته دا حق نه دی چي د هغه څاه څخه خلک منع کړي ځکه چي د ابادولو په وجه څرنګه چي هغه ځمکه د هغه په ملکیت کي راغلې ده همدارنګه د هغه څاه اوبه د هغه په ملکیت کي نه دي که هغه یو داسي سړی منع کړي چي هغه د څاه څخه خپله اوبه راکښل غواړي یا حیوان په اوبه کوي او د اوبو څخه د

حاصليدو په صورت کي خپله د هغه يا د هغه د حيوان د هلاکت بېره وي نو هغه ته به ددې اجازه وي چي هغه په زور سره د هغه ځاه څخه اوبه تر لاسه کړي که څه هم ددې مقصد لپاره هغه ته جنګ کول پکار سي او په هغه جنګ کي د وسلې را اخيستلو ضرورت هم پېښ سي.

ځاه بېله شکه د يو چا ذاتي ملکيت کيدای سي مګر د هغه ځاه اوبه د ځاه والا ملکيت نه وي بلکه هغه د هر چا لپاره مباح دي پر خلاف د هغه اوبو چي چا په خپل لوښي کي اچولي وي چي هغه ذاتي ملکيت دی.

که چيري يو څوک د تندي څخه بې حاله وي او د هغه سړي څخه اوبه وغواړي کوم چي خپل په لوښي کي اچولي وي او هغه د اوبو ورکولو څخه انکار وکړي نو د هغه تږي سړي دا حق دی چي هغه په زور د هغه څخه اوبه واخلي په شرط ددې چي د اوبو نه تر لاسه کېدو په صورت کي د مرګ بېره وي او هغه دي په جنګ کي وسله وغيره نه استعمالوي ، دا بالکل داسي ده لکه څرنګه چي يو سړی د لوږي څخه مړ کيږي او د يو چا څخه خوراک وغواړي او هغه خوراک نه ورکوي نو هغه ته دا حق دی چي د خپل ځان ساتني لپاره د هغه څخه په زور خوراک واخلي مګر هغه ته په جنګ کي وسلې وغيره استعمالولو قطعا اجازه نه سته.

ځيني علماء وايي که يو سړی د خپل ځاه څخه اوبه نه ورکوي نو په دې باره کي په زور د اوبو تر لاسه کولو غوره درجه داده چي د هغه ځاه د خاوند سره بېله وسلې استعمالولو جګړه وکړي او ددې اجازه هم ځکه ورکړل سوې ده چي د اوبو په ډول د الله تعالی د نعمت څخه يو څوک منع کول ګناه ده او په جګړې سره تر لاسه کول به د هغه په حق کي د سزا قائم مقام وي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### دوراني مځکي ابادونکی د هغه مالک دی

﴿۲۸۶۲﴾: عَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ عَمَرَ أَرْضًا لَيْسَتْ لِأَحَدٍ فَهُوَ أَحَقُّ قَالَ عُرْوَةُ قَضَى بِهِ عُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فِي خِلَافَتِهِ. رواه البخاري.

د حضرت بي بي عائشې رض څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي يو نا آباده مځکه آباده کړي چي د بل چا ملکيت نه وي نو هغه د دې مځکي حقداره دی، عروه وايي

حضرت عمر رضی اللہ عنہ په خپل خلافت کي د دې حديث په مطابق پرېکړه کړې وه . (بخاري)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۵\۱۸، رقم: ۲۳۳۵.

**تشريح** د عروه رحمۃ اللہ علیہ دغه الفاظ چي حضرت عمر رضی اللہ عنہ د خپل خلافت په زمانه کي د دې مطابق فيصله کړې وه ، دغه الفاظ د دې خبري دليل دي چي دا حديث منسوخ نه دی .

## د يو ځر ځای د ځان لپاره خاص کول منع دي

﴿۲۸۶۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ الصَّعْبَ بْنَ جَثَّامَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَا حِمَى إِلَّا لِلَّهِ وَلِرَسُولِهِ . رواه البخاري.

د حضرت ابن عباس رضی اللہ عنہ څخه روايت دی چي صعب بن جثامه رضی اللہ عنہ بيان وکړ چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اورېدلي دي چي د وښو لرونکې مځکه د خداي تعالي او د هغه د رسول ده .(د هيچا لپاره هغه د ځان لپاره مخصوصه کول جائز نه ده ).(بخاري) .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۵\۴۴، رقم: ۲۳۷۰.

**تشريح** حمى (د حاء په زېر سره) هغه مځکي ته وايي چي په هغې کي د څارويو لپاره واښه ساتل کيږي او په هغه کي د بل چا د څارويو د څرولو اجازه نه وي .

د حديث مطلب دا دی چي دا مناسب نه ده چي د الله تعالى او د هغه د رسول د اجازې څخه پرته يو مځکه يوازي د خپل څارويو لپاره خاص کړل سي او په هغه کي د نورو خلکو د څاريو د څرولو څخه پابندي وي، ددغه حکم ضرورت داسي پېښ سو چي د جاهليت په زمانه کي دا رواج وو چي په کومه مځکه کي به واښه او اوبه وې هغه به د عربو سردارانو د خپلو څارويو لپاره خپل خاص د څرولو ځای جوړوی چي په هغه کي به دهغوی څخه پرته د نورو خلکو څارويو ته بالکل اجازه نه وه ، رسول الله ﷺ ددې څخه منع وفرمايل مگر بياهم رسول الله ﷺ په جهاد کي د کار راتلونکو آسانو او اوښانو او په زکوة کي د راتلونکو څارويو لپاره داسي خاص څرځای قائمولو اجازه ورکړې وه مگر اوس د رسول الله ﷺ څخه وروسته هيڅ يو حاکم او سردار ته دا جائز نه ده چي هغه يو څرځای د ځان لپاره يا د بل چا لپاره خاص کړي .

په دې باره کي د علماؤ مختلف قولونه دي چي د هيڅ فرد چا لپاره بلکه د اکثر مسلمانانو لپاره هم د يو څر ځای خاصول جائز دي او که څنگه؟ ، ځيني حضرات وايي چي دا جائز دي لکه څرنگه چي رسول الله ﷺ د جهاد د آسانو او اوښانو لپاره او په زکوة کي د راتلونکو څارويو

لپاره د ځمکې ځای خاصولو اجازه ورکړې وه، مګر ځينې حضرات دې ته هم ناجائز وايي په شرط ددې چې يو ځمکه ځای خاص کول د بناريانو د تکليف او پريشانۍ باعث وي.

**د کښتو پر اوبو باندې يو جګړه او د رسول الله ﷺ فيصله**

﴿۲۸۶۴﴾: وَعَنْ عُرْوَةَ قَالَ خَاصَمَ الزُّبَيْرُ رَجُلًا مِنَ الْأَنْصَارِ فِي شَرِيجٍ مِنَ

د حضرت عروه رضي الله عنه څخه روايت دی چې د اوبو د لويو ويالو په خاطر د زبير رضي الله عنه او د انصارو تر

الْحَرَّةِ فَقَالَ النَّبِيُّ ﷺ اسْقِ يَا زُبَيْرُ ثُمَّ أَرْسِلِ الْمَاءَ إِلَى جَارِكَ فَقَالَ الْأَنْصَارِيُّ

مينځ جګړه پيدا سوه مقدمه رسول الله ﷺ ته ورسېده نو نبي کريم ﷺ وفرمايل: (اې) زبيره! ته خپل کښت اوبه کړه او وروسته اوبه د خپل همسايه و لور ته پرېږده انصاري چې دا پرېکړه واورېدل نو ويې ويل:

أَنْ كَانَ ابْنَ عَمَّتِكَ فَتَلَوَّنَ وَجْهُ ثُمَّ قَالَ اسْقِ يَا زُبَيْرُ ثُمَّ احْبِسِ الْمَاءَ حَتَّى

تاسو د اسې پرېکړه ځکه وکړه چې زبير ستاسو د اکا زوی دی، په دې اورېدو سره د نبي کريم ﷺ د مخ رنګ بدل سو او ويې فرمايل: زبيره! خپل کښت اوبه کړه او اوبه د کښت د باندې مه پرېږده کله چې

يَرْجِعَ إِلَى الْجَدْرِ ثُمَّ أَرْسِلِ الْمَاءَ إِلَى جَارِكَ وَاسْتَوْعَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

کښت بنه اوبه سي نو د ويالې رخ د همسايه و لور ته کړه غرض دا چې نبي کريم ﷺ و زبير رضي الله عنه ته پوره حق ورکړ (ځکه چې وياله د زبير د کښت سره ځرمه وه او کښت يې پورته وو او د انصاري کښت کښته او ځيني ليري وه)

وَسَلَّمَ لِلزُّبَيْرِ حَقَّهُ فِي صَرِيحِ الْحُكْمِ حِينَ أَحْفَظَهُ الْأَنْصَارِيُّ كَانَ أَشَارَ عَلَيْهِمَا بِأَمْرٍ لَهُمَا فِيهِ سَعَةٌ. متفق عليه.

انصاري نبي کريم ﷺ ته قهر ور وستلي وو او هغه مخکې فيصله د دوی دواړو په ګټه وه. (بخاري او مسلم).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۵\ ۳۴، رقم: ۴۵۸۵، ومسلم ۴\ ۱۸۲۸، رقم: ۱۲۹- ۲۳۵۷.

**د لغاتو حل**: شِراج: مسايل الماء، احدها شرجة. الجدر: قيل هو الجدار (دېوال).

**تشريح** حضرت عروه ابن زبير بن العوام د سترو تابعينو څخه دي، هغه وخت په مدينه كي چي كوم اووه فقيه كسان وه او د هغوى علم او فضل پر ټولو حاوي وو په هغوى كي يو حضرت عروه رحمه الله هم دى، د هغه مور مشهوره صحابيه بي بي اسماء رضي الله عنها ده چي د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه لور وه او د هغه پلار حضرت زبير رضي الله عنه مشهور صحابي او د رسول الله ﷺ د اكا د لور بي بي صفيه بنت عبد المطلب زوى وو، د حضرت زبير رضي الله عنه يو خاصيت دا هم دى چي قديم الاسلام دى يعني د رسول الله ﷺ د دعوت په شروع كي په اسلام مشرف سوى وو هغه وخت يې عمر شپاړلس كاله وو، يوې خوا ته يې دغه سعادت وو چي په دومره كم عمر كي د اسلام په دولت مشرف سوى دى او بلي خوا ته د هغه د ظالم اكا شقاوت وو چي هغه د اسلام راوړلو په جرم كي هغه ته ډول ډول سزاوي او تكليفونه وركول تر دې چي هغه بدبخت د صراط مستقيم څخه د ليري كولو لپاره په دود كي اچولى وو مگر دغه كم عمره ماشوم به ټول تكليفونه زغمل او د اسلام په لاره كي چي يې كوم قدم پورته كړى وو د وروسته كېدو پر ځاى به پر مخ تلى، د نبي كريم ﷺ سره يې په ټولو غزاوو كي گډون كړى دى او د اسلام د بېرغ لوړولو لپاره يې د مېړاني او شجاعت جوهر ښوولى دى، رسول الله ﷺ چي كوم خوشبخته صحابه كرامو ته په دغه دنيا كي د جنت زيرى وركړى وو او هغوى ته عشره مبشره ويل كيږي په هغوى كي حضرت زبير رضي الله عنه هم دى.

د حضرت زبير رضي الله عنه يوه واقعه ده چي ده او يو انصاري د يو ويالې په ذريعه خپلي مځكي اوبه كولې، يو وار د دوى په مينځ كي د اوبو په باره كي دا جگړه را منځته سوه چي انصاري به ويل مخكي به زه خپل مځكه اوبه كوم او حضرت زبير رضي الله عنه به ويل چي مخكي به زه خپل مځكه اوبه كوم، كله چي دا خبره سخته سوه او هغوى په خپل منځ كي صلح ونه كړاى سول نو د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر سول، د موقع نوعيت داسي وو چي د حضرت زبير رضي الله عنه مځكه پر لوړه باندي وه او ويالې ته نژدې هم وه او د انصاري مځكه لاندي وه او د ويالې څخه ليري هم وه، د قاعدې سره سم اوبه مخكي د حضرت زبير رضي الله عنه د مځكي څخه تېرېدلې، نو رسول الله ﷺ د دغه صورت سره سم منصفانه فيصله وكړل چي مخكي دي زبير رضي الله عنه خپل مځكه اوبه كړي او وروسته دي د هغه همسايه انصاري خپل مځكه اوبه كړي، د حق د صداقت د شعور ضائع كونكى انسان جبلت دا وي چي هر كله هغه په يو معامله كي پر حق باندي نه وي او د هغه په وجه فيصله د هغه د خواهش پر خلاف وي نو هغه پر ځاى د دې چي په قبلولو سره د انصاف فيصله

ومني هغه داسي وکړل چي د فيصله کونکي پر فيصله باندي يې د جانبدارۍ الزام ولګوي، دلته هم داسي وسول هغه انصاري پر حق نه وو ځکه د رسول الله ﷺ له خوا چي کومه فيصله وسوه نو د هغه فيصلې په شوق سره د قبلولو پر ځای هغه دا وويل چي زبير رضي الله عنه ستاسو د ترور زوی دی ځکه تاسو داسي فيصله وکړه، په داسي کولو سره هغه پر رسول الله ﷺ باندي د جانبدارۍ الزاز ولګوی چي د يو منصف او عادل لپاره د ذهني اذيت څخه لوی بل هيڅ سبب نه سي جوړيدای چي د هغه پر منصفانه فيصله باندي د جانبدارۍ او عصبيت الزام ولګول سي.

انصاري چي دا خبره وکړه نو د غصې سختو جذباتو د رسول الله ﷺ د مخ مبارک رنګ بدل کړ او د هغه نتيجه دا سوه چي د رسول الله ﷺ فيصلې د دغه صريح حکم صورت اختيار کړی چي زبيره ! اوس ته خپل حق پوره واخله او هغه دا چي نه يوازي ته خپل مځکه اوبه کړه بلکه مځکه په پوره توګه اوبه کړه هغه ته په بنه ډول اوبه ورکړه کله چي ستا مځکه تر پولو پوري ډکه سي نو بيا د وياله رخ د دغه انصاري مځکي ته کړه.

د روايت د آخري جملو مطلب دادی چي په شروع کي رسول الله ﷺ کومه فيصله کړې وه په هغه کي حضرت زبير رضي الله عنه ته اشاره هم وه چي خپل يو څه حق د احسان له مخي د خپل همسايه لپاره پرېږده چي ستا کار هم وسي چي د انصاف غوښتنه ده او د انصاري سره هم څه رعايت وکړل سي، که څه هم پر تا واجب نه دي مګر په معاملاتو کي د غوره والي پيدا کولو له مخکي مناسب دي مګر هغه انصاري چي د فيصلې قبلولو څخه انکار وکړ نو بيا رسول الله ﷺ حضرت زبير رضي الله عنه ته د خپل پوره حق تر لاسه کولو حکم وکړ.

اوس پاته سوه دا خبره چي د رسول الله ﷺ په شان کي د هغه انصاري د دغه بې ادبۍ سبب څه وو نو ځيني حضرات وايي چي هغه به د رسول الله ﷺ د بې ادبۍ او ذهني اذيت کي د اخته کولو هيڅ موقع د لاسه نه ورکول بيا دا سوال پيدا کيږي چي کله هغه منافق وو نو هغه ته انصاري ولي ويل کيږي ؟ ددې جواب دادی چي هغه ته انصاري په دغه مناسبت سره ويل کيږي چي هغه د انصارو د قبيلې سره تعلق درلودی، د انصارو په قبيلو کي ځيني منافقان هم مثلا عبد الله ابن اُبی او داسي نور.

دلته يو بل سوال پيدا کيږي چي کله هغه منافق وو او هغه د رسول الله ﷺ په شان کي دومره لويه بې ادبي کړې ده نو هغه ته سزا ولي ور نه کړل سوه د هغه سمدستي قتلول پکار وه نو په دې اړه دا ويل کيږي چي هغه ته د سزا نه ورکولو سبب يا خو د هغه تاليف يعني د الفت او رعايت له مخي د هغه پر حق لاره بېول وه يا د رسول الله ﷺ صبر او تحمل د هغه قتلول خوښ نه

کړل چي همېشه د منافقانو پر ايذاء رسولو او تکليف ورکولو باندي ظاهريدی، بيا که چيري هغه قتل سوی وای نو د اسلام مخالفينو به طعنه ورکولای چي محمد ﷺ خو خپل ملګري وژني ځکه منافقانو به په هر حال په ظاهري توګه ځان ته مسلمان ويل او د رسول الله ﷺ د ملګرتيا اظهار به يې کوی.

د ځينو علماؤ تحقيق دادی چي هغه انصاري مؤمن وو مګر غصې د هغه زړه او دماغ داسي کړی وو چي د هغه څخه په پريشانۍ کي د رسول الله ﷺ په شان کي بې ادبي وسوه. والله اعلم.

## کومي اوبه چي تر تاسو زياتي وي هغه مه منع کوئ

﴿۲۸٦۵﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَمْنَعُوا فَضْلَ الْمَاءِ لِتَمْنَعُوا بِهِ فَضْلَ الْكَلَإِ . متفق عليه .

د حضرت ابوهريره رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: مه منع کوئ زياتي اوبه چي په هغه سره بيا د وښو زيات کښت منع کيږي، (يعني په دې خيال سره که اوبه منعه سي نو خلک به هلته وابښه نه شنه کوي ځکه چي په عموم کي وابښه هلته کرل کيږي چيري چي اوبه وي).(بخاري او مسلم)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۳۱\۵، رقم: ۲۳۵۴، ومسلم ۳\۱۱۹۸، رقم: ۲۷- ۱۵٦٦.

**تشريح** په عامه توګه ځاروي په هغه ځای کي څرول کيږي چيري چي اوبه وي ځکه نو که چيري ځاروي د اوبو څښښلو څخه منع کړي نو خلک به خپل ځاروي چيري څروي، همدارنګه د اوبو څخه د منع کولو مطلب به دا وي چي تاسو بالواسطه په وابښو کي د څرولو څخه منع ياست او وابښه د ځارويو د عامي غذا کېدو په وجه د ځارويو لپاره ډېر ضروري دي ځکه نو ددې څخه منع کول صحيح نه دي، نو رسول الله ﷺ منع وفرمايل چي ځاروي د اوبه کولو څخه هيڅوک مه منع کوئ چي ددې په وجه په وابښو کي د څرولو څخه منع لازم نه سي، د ضرورت څخه زيات قيد ځکه لګول سوی دی که اوبه او وابښه د خپل ځان او خپلو ځارويو د ضرورت په قدر وي نو په دغه صورت کي د خپل ضرورت مقدم کولو کي څه پروا نه سته مګر که چيري تر ضرورت زيات وي نو بيا د بل چا منع کول بالکل نامناسب خبره ده.

﴿۲۸۶۶﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَةٌ لَا يُكَلِّمُهُمُ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: د قيامت په ورځ به خداي تعالى د درو کسانو سره خبرې نه کوي

اللهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلَا يَنْظُرُ إِلَيْهِمْ رَجُلٌ حَلَفَ عَلَى سِلْعَةٍ لَقَدْ أَعْطَى بِهَا أَكْثَرَ

او نه به د هغوی ولور ته د رحمت په نظر وګوري: ۱-هغه کس چې خپل سامان خرڅوي او قيمت د هغه شی کم وي خو قسم پر اخلي چې دا ماته په ګرانه پروت دي

مِمَّا أَعْطَى وَهُوَ كَاذِبٌ وَرَجُلٌ حَلَفَ عَلَى يَمِينٍ كَاذِبَةٍ بَعْدَ الْعَصْرِ لِيَقْتَطِعَ بِهَا

۲-هغه کس چې د مازديګر څخه وروسته قسم خوري چې هغه به د دې مسلمان مال نه

مَالَ رَجُلٍ مُسْلِمٍ وَرَجُلٌ مَنَعَ فَضْلَ مَاءٍ فَيَقُولُ اللهُ الْيَوْمَ أَمْنَعُكَ فَضْلِي

رانيسي. ۳- هغه کس چې د زياتو اوبو د چينلو څخه يې منعه کړي د دې کس په اړه الله تعالى فرمايي: تا له هغه زياتو اوبو چې تا نه وي پيدا کړي څوک منعه کول نن ورځ زه ستا څخه خپل

كَمَا مَنَعْتَ فَضْلَ مَا لَمْ تَعْمَلْ يَدَاكَ. متفق عليه و ذكر حديث جابر في باب المنهي عنها من البيوع.

فضل وکرم منعه کوم. (بخاري او مسلم) او د جابر رضي الله عنه په اړه حديث به د ((رانيولو او پلورلو)) د ممنوعاتو په باب کې بيانيږي.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۵\۴۳، رقم: ۲۳۶۹، ومسلم ۱\۱۰۳، رقم: ۱۷۳-۱۰۸.

**تشريح** د مازديګر څخه وروسته تخصيص يا خو ددې لپاره دی چې ټينګ قسمونه په دغه وخت کې اخيستل کيږي او يا دغه تخصيص ددې لپاره دی چې د مازديګر څخه وروسته وخت ډېر د فضيلت او برکت وخت دی ځکه نو دغه وخت د دروغو قسم اخيستل ډېره ګناه لري.

د دې سره چې اوبه تا په خپل لاس سره نه وي راکښلې يعني الله تعالى پر هغه سړي طعن کوي که هغه اوبه ستا د قدرت منونکي وي او تا هغه پيدا کړې وي نو ستا دغه عمل به د يو موزون هم وي مګر په دغه صورت کې کله چې هغه اوبه محض زما په قدرت سره پيدا سوي وي او ما

هغه د یو عام نعمت په توګه د ټولو مخلوقاتو لپاره مباح کړي وي نو بیا ستا دغه مجال به څرنګه وي چې ته د الله تعالی مخلوق د دغه نعمت څخه منع کړې.

که څه هم څاه او ویاله د انسان په محنت سره په وجود کې راځي مګر د دغه اصل شي یعني اوبه یوازې د الله تعالی په قدرت سره پیدا کیږي که یو سړی څاه وکاږي یا ویاله جوړه کړي او په هغه کې اوبه نه راوځي نو د هغه څاه یا ویالې هیڅ حقیقت نه وي ځکه د څاه کښل یا ویالې وغیره جوړول ددې خبرې دلیل نه سي کیدای چې هغه سړي ته پر نورو خلکو باندې د اوبو د استعمال پابندي لګولو حق حاصل سوی دی.

(وذکر حدیث جابر في باب المنهی عنها من البیوع) د حضرت جابر ﷺ روایت په باب المنهی عنها من البیوع کې ذکر سوی دی یعني حضرت جابر ﷺ دغه روایت (نهی رسول الله ﷺ عن بیع فضل الماء) یعني رسول الله ﷺ د ضرورت څخه زیاتې اوبه خرڅولو څخه منع فرمایلې ده، دغه روایت صاحب د مصابیح دلته نقل کړی دی مګر صاحب د مشکوة دغه روایت په باب المنهی عنها من البیوع کې نقل کی دی چې مخکې تېر سوی دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### پر ناباده مځکې باندې دیوال ګرځول

﴿۲۸۶۷﴾: عَنِ الْحَسَنِ عَنْ سَمُرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ أَحَاطَ حَائِطًا عَلَى أَرْضٍ فَهِيَ لَهُ. رواه ابوداؤد.

حضرت حسن ﷺ د سمره څخه روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل: څوک چې په یوه (نا اباده) مځکه باندې دیوال را وګرځوي هغه مځکه د هغه ده. (ابو داؤد)

**تخریج**: ابوداود في السنن ۳\۴۵۶، رقم: ۳۰۷۷.

**تشریح** مطلب دادی چې کوم څوک د موات (یعني وېرانه او غیر اباده مځکه) څخه دیوال راوګرځوي نو هغه مځکه د هغه ملکیت کیږي یعني دغه حدیث د خپل ظاهري مفهوم سره سم پر دې خبره دلالت کوي چې د موات مځکې د ملکیت د ثبوت لپاره پر هغه دیوال ګرځول کافي دي لکه څرنګه چې د مشهور روایت سره د امام احمد رحمه الله دا مذهب دی او د پاته درو امامانو په نزد د داسې مځکې د ملکیت د ثبوت لپاره احیاء یعني د هغه ابادول شرط دي چې د هغه وضاحت د باب په شروع کې تېر سوی دی، او دا بالکل ظاهره خبره ده چې دیوال را ګرځول

احياء يعني د ابادولو په مفهوم كي داخل دى نو ددغه درو امامانو د مذهب سره ددغه حديث تاويل به داوي چي د دېوال كرځولو څخه مطلب هلته سكونت اختيارول مراد دي.

## د رسول الله ﷺ له خوا صحابه كرامو ته ځمكي وركول

﴿۲۸۶۸﴾: وَعَنْ اَسْمَاءَ بِنْتِ اَبِيْ بَكْرٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَقْطَعَ لِلزُّبَيْرِ نَخِيْلاً. رواه ابوداؤد

د بي بي اسماء بنت ابي بكر رض څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ د خرماؤ ونى زبير رضي الله عنه ته د ځاى په ډول وركړي وې. (ابو داؤد)

**تخريج**: ابوداود في السنن ۳\۴۵۱، رقم: ۳۰۶۹.

**تشريح**: په دې باره كي يو احتمال دادى چي كومي د خرماو درختي چي حضرت زبير رضي الله عنه ته وركړل سوي وي هغه په اصل كي د خمس څخه وې چي د هغه حق وو او دا هم كيداى سي چي هغه درختي په موات ځمكه كي وي او هغه حضرت زبير رضي الله عنه اباده كړې وي.

﴿۲۸۶۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ أَقْطَعَ لِلزُّبَيْرِ حُضْرَ فَرَسِهِ فَأَجْرَى فَرَسَهُ حَتَّى قَامَ ثُمَّ رَمَى بِسَوْطِهِ فَقَالَ أَعْطُوهُ مِنْ حَيْثُ بَلَغَ السَّوْطُ. رواه ابوداؤد.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ حضرت زبير رضي الله عنه ته د آس د يوې ځغستيا په برابري ځمكه وركړې وه كله چي زبير خپل آس وځغلوي كوم وخت او ځاى چي آس و دريدى بيا يې وغورزول غمچينه خپل نو نبي كريم ﷺ وفرمايل: تر كوم ځايه چي غمچينه ورسيدا تر هغه ځايه پوري ځمكه وركړئ. (ابو داؤد).

**تخريج**: ابوداود في السنن ۳\۴۵۳، رقم: ۳۰۷۲.

**د لغاتو حل**: حُضر: اى عدوها (ځغاسته).

﴿۲۸۷۰﴾: وَعَنْ عَلْقَمَةَ بْنِ وَائِلٍ عَنْ اَبِيْهِ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ أَقْطَعَهُ أَرْضًا بِحَضْرَمَوْتَ قَالَ فَاَرْسَلَ مَعِيَ مُعَاوِيَةَ قَالَ اَعْطِهَا اِيَّاهُ. رواه الترمذي والدارمي

حضرت علقمه بن وائل رضي الله عنه د خپل پلاره څخه روايت كوي چي رسول الله ﷺ وائل ته په حضر

موت کي یوه مځکه ورکړه د وائل ﷺ بیان دي نبي کریم ﷺ زما سره معاویه ﷺ ولېږي او حکم یې وکړ چي فلاني مځکه و ده ته ورکړئ. (ترمذي او دارمي).

**تخریج**: الترمذي في السنن ۳\۶۶۵، رقم: ۱۳۸۱، والدارمي ۲\۳۴۷، رقم: ۲۶۰۹.

**تشریح** د اوسنی جغفرافیایي نقشې سره سم د جبل السراة یوه لړۍ د یمن څخه په تېرېدو سره د جزیرة العرب په جنوب مغربي کونج ته د مشرق خوا ته چاپېره سوې ده بیا د جنوبي ساحل نژدې تر لیري پوري تللې ده، د جبل السراة دغه لړۍ چي پر کومو سیمو مشتمل ده هغه ته حضرموت ویل کیږي، د حضرت موت ټوله سیمه پر غیر اباد مځکو او غرو باندي مشتمل ده چي نه زیاته لوړه ده او نه د باران د کم اورېدو په وجه د کښت وړ ده مګر په دغه سیمو کي یو څو شېلې دي چي نسبتا ابادي دي چي په هغو کي د یوې شیلې نوم حضرت موت دی.

حضرت وائل ابن حجر ﷺ د دغه سیمي د پخوانی شاهي خاندان یو فرد وو، د رسول الله ﷺ د اسلام د دعوت د اورېدو سره د خپل هیواد د یو وفد سره د رسول الله ﷺ په خدمت کي د حاضرېدو لپاره د حضرت موت څخه روان سو او رسول الله ﷺ په مدینه کي د هغوی په راتګ باندي اکثر صحابه کرام خبر کړي وي او (وهو بقیة ابناء الملوک) چي هغه د شاهي کورنی د سترګو تور دی، د دغه الفاظو په ذریعه د هغه تعارف یې کړی وو، کله چي هغوی مدینې ته راوسېدل او د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سول نو رسول الله ﷺ د هغوی د حیثیت سره سم د هغوی استقبال وکړ او د ځان سره یې نژدې کښېنول او د هغوی لپاره یې خپل څادر مبارک وغوړوی او بیا رسول الله ﷺ د حضرت موت د سیمي حاکم وټاکی او هلته یې یو څه مځکه ورکړه.

﴿۲۸۷۱﴾: وَعَنْ اَبْيَضَ بْنِ حَمَّالٍ الْمَارِبِيِّ اَنَّهُ وَفَدَ اِلَى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابیض بن حمال ماربي ﷺ څخه روایت دی چي هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کي

وَسَلَّمَ فَاسْتَقْطَعَهُ الْمِلْحَ الذي بمارب فاقطعه اياه فَلَمَّا وَلَّى قال قَالَ رَجُلٌ

حاضر سو هغه د مالګي هغه کان وغوښتي کوم چي په مارب کي وو نبي کریم ﷺ و هغه ته کان د جائیداد په ډول ورکړ وروسته چي کله ولاړی نو یوه سړی وویل

يارسول الله اِنَّمَا قَطَعْتَ لَهُ الْمَاءَ الْعِدَّ قَالَ فرجعه مِنْهُ قَالَ وَسَاَلَهُ مَاذَا

یا رسول الله ﷺ! هغه کان خو تیار جائیداد دي په هغه کي د مالګه تیارېږي د محنت او مشقت ضرورت نه پېښېږي د راوي بیان دي د دې معلومات څخه وروسته نبي کریم ﷺ هغه کان بېرته واخیست (ځکه

چي په هغه کي د ټولو مسلمانانو حق وو او د يو چا په قبضه کي را وستل جائز نه دي) وروسته هغه سړي د نبي کريم ﷺ څخه پوښتنه وکړه

يُحْمَى مِنَ الْأَرَاكِ قَالَ مَا لَمْ تَنَلْهُ اِخْفَافُ الْإِبِلِ. رواه الترمذي وابن ماجة والدارمي.

چي کوم قسم شاړه ځمکه په ابادولو سره ملکيت ګرځي (يعني په يوه نا اباده ځمکي کي د ابادي لپاره ډېوالونه جوړلو سره اباده سي) نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل: هغه ځمکه چي هلته د اوښانو پښې نه رسيږي (يعني د حيوانانو د څرېدو ځاي نه وي يا کوم ځاي چي ابادي نه وي). ترمذي ابن ماجه دارمي.

**تخريج**: الترمذي في السنن ٣\ ٦٦٤، رقم: ١٣٨٠، وابن ماجه في السنن ٢\ ٨٢٧، رقم: ٢٤٧٥، والدارمي ٢\ ٣٤٧، رقم: ٢٦٠٨.

**د لغاتو حل**: مارب: موضع باليمن (په يمن کي يوه سيمه). الماء العد: اي الدائم الذي لاينقطع.

**تشريح**: مارب د يمن د يو ښار نوم دی چي د صنعاء څخه شپېته ميله په مشرق کي تقريبا د ځمکي د سطح پر څلور زره فټه لوړوالي واقع دی، په يمن کي تر اولي عيسوي پيړۍ پوري د سبا د نسل د حکومت زمانه کي مارب د يمن د دار الخلافة کېدو په وجه نه يوازي دا چي لوی ښار وو بلکه يو ستر تجارتي مرکز هم وو، حضرت ابيض رضي الله عنه د دغه ښار اوسيدونکی وو ځکه هغه ته ماربي ويل کيږي.

الماء العد: يعني د تيارو اوبو مطلب دادی چي بالکل تياري او همېشه وي چي د هغه ماده منقطع نه وي، ددې څخه په رنګ کي بالکل د مالګي حالت ته اشاره ده، د رسول الله ﷺ دا خيال وو چي ابيض رضي الله عنه چي د مالګي د کان خواست کړی دی هغه بالکل په ابتدائي حالت کي دی چي د هغه څخه به په محنت او مشقت او سخت تکليف څخه وروسته مالګه راوځي مګر د حضرت اقرع رضي الله عنه د توجه په ګرځولو سره رسول الله ﷺ ته معلومه سوه چي هغه کان په ابتدائي حالت کي نه دی بلکه په هغه کي مالګه تياره سوې ده چي بېله محنته او مشقته د تيارو اوبو او وابنو په ډول تر لاسه کېدای سي نو رسول الله ﷺ هغه کان بېرته واخيستی ځکه چي په دغه صورت کي هغه کان او په هغه کي تياره سوې مالګه باندي د ټولو خلکو حق وو هغه د يو کس ملکيت ګرځول مناسب نه وه ځکه رسول الله ﷺ د ټولو خلکو د حقوقو په نظر ساتلو څخه وروسته بېرته اخيستل غوره وګڼل.

ددې څخه معلومه سوه چي د امام (حکومت) له طرفه د یو کان یو سړي ته ورکول کیدای سي په شرط ددې چي هغه کان په مځکه کي وي او د هغه څخه د محنت او مشقت پرته هیڅ شی تر لاسه کیدای نه سي مګر کوم کانونه چي را ایستل سوي دي او د هغه څخه وتونکی مال د محنت او تکلیف څخه پرته تر لاسه کیدای سي نو هغه کان د یو چا ملکیت ګرځول جائز نه دي بلکه د وابښو او اوبو په ډول د هغه په ګټه کي ټول خلک شریک دي او پر هغه به د ټولو حق وي، ددغه حدیث څخه دا خبره هم معلومه سوه که یو حاکم په یو معامله کي یو فیصله وکړي او بیا هغه فیصله او حکم منسوخ کړي او د هغه څخه رجوع وکړي نو دا صحیح دی.

هغه مځکه چي هغه ته د اوښانو پښې نه رسیږي ددې څخه مراد هغه مځکه ده چي د څر ځای او سرایو څخه بېله وي، ددې څخه معلومه سوه چي د هغه موات مځکي احیاء یعني ابادول جائز نه دي کوم چي سرایو ته نژدې وي ځکه چي هغه څارویو د څرولو او د کلي د خلکو د نورو ضرورتو لپاره استعمالیږي.

## د الله ﷻ درې نعمتونه

﴿۲۸۷۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُسْلِمُونَ شُرَكَاءُ فِي ثَلَاثٍ فِي الْمَاءِ وَالْكَلَإِ وَالنَّارِ. رواه ابوداؤد وابن ماجة.

د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: په درو شیانو کي ټول مسلمانان سره شریکان دي یعني اوبه وابښه او اور دي چي پکښې د ټولو مسلمانانو حق دي (هیڅوک دي یو د بله سره نه منعه کوي). (ابو داؤد ابن ماجه).

**تخریج**: ابوداود في السنن ۳\۷۵۰، رقم: ۳۴۷۷، وابن ماجه في السنن ۲\۸۲۶، رقم: ۲۴۷۲.

**تشریح** په دغه حدیث شریف کي د الله تعالی د هغه درو نعمتو ذکر دی کوم چي د کائناتو د هر فرد لپاره دي او په هغه کي د یو چا ذاتي او خصوصي دخل نه سته.

د اوبو څخه مراد د دریاب، څاه، تالاب او داسي نورو شیانو اوبه دي او هغه اوبه مراد نه دي چي یو سړي په لوښي کي اچولي وي، ددې وضاحت د باب په شروع کي سوی دی، همدارنګه د وابښو څخه هغه وابښه مراد چي هغه په ځنګل کي شنه سوي وي.

د اور څخه مراد دادی که د یو چا سره اور وي نو هغه ته دا حق نه سته چي هغه نور خلک د اور اخیستلو څخه منع کړي یا د څراغ بلولو څخه یې منع کړي یا د هغه په رڼا کي د ناستي څخه

يې منع کړي ، او داسي نور، مګر که چيري يو سړی د هغه اور ځخه هغه لرګي اخيستل غواړي
کوم چي په هغه اور کي سوځي نو په دغه صورت کي د هغه منع کول جائز دي ځکه چي د هغه په
اور کي کمي راځي او اور مړ کيږي او ځيني علماء وايي چي هغه ډبره چي د هغه په وهلو سره
اور راوځي ددې ځخه مراد دادی چي يو سړی دي د هغه ډبري د اخيستلو ځخه نه منع کوي په
شرط ددې چي هغه ډبري په وېرانه ځکه کي وي.

**يو مباح شی چي هر څوک تر مخه حاصل کړي د هغه سو**

﴿۲۸۷۳﴾: وَعَنْ اَسْمَرَ بْنِ مُضَرِّسٍ قَالَ اَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبَايَعْتُهُ فَقَالَ مَنْ سَبَقَ إِلَى مَاءٍ لَمْ يَسْبِقْهُ إِلَيْهِ مُسْلِمٌ فَهُوَ لَهُ. رواه ابوداؤد.

د حضرت اسمر بن مضر رضی الله عنه ځخه روايت دی چي زه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوم
اسلام مي قبول کړ نبي کريم ﷺ وفرمايل : څوک چي اوبو ته اول ورسي. چي مخکي يو بل
مسلمان ورور نه وي ورسېدلي نو هغه اوبه د هغه دي .(ابو داؤد)

**تخريج**: ابوداود في السنن ۳\۴۵۲، رقم: ۳۰۷۱.

**تشريح**: مطلب دادی چي کوم سړی مباح اوبه يعني د درياب ، تالاب يا بل شي ځخه په يوه
اندازه واخلي نو د اوبو هغه اخيستی مقدار د هغه سړي ملکيت کيږي او کومي اوبه چي هغه
ځای يعني درياب او تالاب وغيره کي پاته سي هغه د هغه په ملکيت کي نه دي بلکه هغه مباح
دي همدارنګه نور مباح شيان لکه واښه او د لرګي وغيره هم دا حکم دی.

**په کوم قوم کي چي د کمزورو انسانانو حقوق محفوظ نه وي...**

﴿۲۸۷۴﴾: وَعَنْ طَاوُسٍ مُرْسَلاً أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ

د حضرت طاؤس رحمه الله ځخه مرسلا روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي

أَحْيٰى مَوَاتًا مِنَ الْأَرْضِ فَهُوَ لَهُ وَعَادِيُّ الْأَرْضِ لِلّٰهِ وَرَسُوْلِهِ ثُمَّ هِيَ لَكُمْ مِنِّيْ.

نا اباده ځمکه آباده کړي نو ځمکه د هغه ده او پخوانی ځمکه د الله جل جلاله او د هغه د رسول ﷺ ده
او زما له لوري ستاسو ده

رواه الشافعي وروى في "شرح السنة" : أن النبي ﷺ أقطع لعبد الله بن

او شافعي او په شرح السنة كي دا روايت داسې ذكر سوي دي : چي نبي كريم ﷺ عبد الله بن

مسعود الدور بالمدينة وهي بين ظهراني عمارة الأنصار من المنازل والنخل

مسعود رضي الله عنه ته په مدينه كي كورونه وركړه دا كورونه د انصارو په آباديو كي د ننه د هغوی د كورونو او د خرماؤ د ونو تر مينځ واقع وه

فقال بنو عبد بن زهرة : نكتب عنا ابن أم عبد فقال لهم رسول الله : "

فلم ابتعثني الله إذا ؟ إن الله لا يقدس أمة لا يؤخذ للضعيف فيهم حقه .

د عبد الله بن زهره زامنو نبي كريم ﷺ ته وويل : د ام عبد زوي زموږ څخه ليري ساته نو رسول الله ﷺ و هغه ته وويل : خداي تعالي زه د څه دپاره را لېږلي يم ؟(يعني كه زه د كمزور مرسته و نه كړم) خداي تعالي هغه قوم نه پاكوي چي په هغوی كي د كمزوري حق نه وي محفوظ .

**تخريج** : الشافعي في الام ۱۴\۴۵ .

**د لغاتو حل** : عادي الارض : الابنية والضياع القديمة. (پخوانۍ ځمكه او ابادۍ).

**تشريح** : د عادي الارض (پخوانۍ ځمكي) څخه مراد هغه وېرانه او غير اباد ځمكه ده چي د هغه د مالک خبر نه وي ، دلته په دغه ځمكي د عاد د لفظ نسبت د حضرت هود عليه السلام قوم ته محض د داسې ځمكي د قدامت په اظهار كي د مبالغې لپاره سوی دی ځكه چي حضرت هود عليه السلام او د هغه د قوم د قدامت وخت ډېر زيات دی .

او د هغه د رسول لپاره ده : ددې مطلب دادی چي داسې ټولي وېراني ځمكي چي د هغه مالک نه وي زما په تسلط كي دي د خپل مرضۍ او مصلحت سره سم په هغه كي تصرف كوم چا ته چي يې وغواړم وركوم يې او د هغه د ابادولو اجازه وركوم .

قاضي رحمه الله عليه وايي چي : ثم هي لكم مني (او بيا هغه زما له طرفه ستا سو ده) ددې څخه معلومه سوه چي دغه جمله : او پخوانۍ ځمكه د الله تعالى او د هغه د رسول لپاره ده ، دلته د الله او د رسول ذكر د عظمت شان سره سم د رسول الله ﷺ د ذكر د تمهيد په توګه دی كنه نو په ظاهره خو د الله جل جلاله ضرورت نه سته ځكه چي د رسول الله ﷺ حكم او فيصله د الله جل جلاله حكم او فيصله ده .

د عبد ابن زهره زامنو چي د خپل سرای او د خرما د درختو په مينځ كي حضرت عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه ته د سرای وركولو كوم مخالفت وكړ ددې يو جذباتي علت وو او هغه دا چي د

حضرت عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه پلار يعني مسعود د جاهليت په زمانه كي د عبدابن زهره د زامنو مقابل وو او د حضرت عبدالله رضی الله عنه مور يعني ام عبد د هغوی د خدمتگارو څخه وه ، كله چي رسول الله ﷺ حضرت عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه ته په داسي ځای كي سرای وركړی چي د عبدالله ابن زهره د سرايو او خرماوو د باغو په مينځ كي واقع وو نو دا هغوی ته ناخوښه سوه چي د عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه سرای دي د هغوی د سرايو په مينځ كي واقع وي ، يعني په داسي كولو سره هغوی د خپل هغه حقارت اظهار وكړ كوم چي هغوی د حضرت عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه سره درلودی .

نو رسول الله ﷺ د هغوی پر غلطو جذباتو باندي د غصې اظهار وكړ او وه يې فرمايل : كه د بندگانو حقوق د داسي احساسانو سره متعلق وي او د كمزورو انسانانو په اړه دا جذبات او حقارت جائز وي نو زه به د الله په رسول كېدو سره دغه دنيا ته ولي راتللای كه زه د كمزورو خلكو او مسكينانو د تقويت باعث او د هغوی مرسته كونكی جوړ نه سم نو زما د پيغمبری يو لوی مقصد به څنگه پوره سي او زما په را استولو كي به څه حكمت پاته سي ، تاسو بايد دا هېر نه كړي چي زما په بنيادي مقاصدو كي دا خبره داخل ده چي زه د انسانانو په مينځ كي كښته ، پورته او د ټولني فرق او امتياز له منځه يوسم ، كوم خلك چي خپل ځان طاقتور او لوی گڼي هغوی د اعتدال لاري ته راولم او څوک چي كمزوري او ناتوانه وي هغوی ته د خپل مرستي او نصرت سره طاقت وبخښم، بيا رسول الله ﷺ د قومونو د كردار يو نازک طرف ته اشاره وكړه چي كوم قوم د خپل كمزوري كس د حقوقو ساتنه نه كوي او په كوم قوم كي چي د كمزورو انسانانو اهميت نه وي هغه قوم نه يوازي دا چي د كائنات انساني يوه غوره برخه نه ده بلكه الله تعالی هغه قوم ته د گناهونو او خرابيو څخه پاكي نه وركوي، د كوم قوم طاقتور خلک چي د كمزورو خلكو حقوق تر پښو لاندي كوي د هغوی پر ټولنيز ژوند باندي د بدعنوانو او د گناه او معصيت بار لوېږي چي د هغه نتيجه دا سي چي هغه قوم نه خو په ټولنه كي يو صالح او باوقاره كردار تر سره كوي او نه د الله تعالی له خوا پر هغوی رحمت او بركت نازلېږي، نو رسول الله ﷺ د عبدابن زهره زامن خبردار كړل چي تاسو دا مه گڼي چي عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه په دنياوي توگه ستاسو څخه كم دی او هغه كمزوری انسان دی ځكه تاسو د هغه دا جائز حق چي هغه پر كوم ځای باندي غوارم خپل سكونت اختيار كړي غصب به وكړئ زه د هغه مرسته كونكی او معين يم او پر ما دا لازمه ده چي زه د هغه مرسته وكړم .

## په ویاله وغیره سره د کښت اوبول

﴿۲۸۷۵﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

حضرت عمرو بن شعيب رضي الله عنه د خپل پلاره څخه روايت كوي چي رسول الله ﷺ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضَى فِي السَّيْلِ الْمَهْزُورِ أَنْ يُمْسَكَ حَتَّى يَبْلُغَ الْكَعْبَيْنِ ثُمَّ يُرْسِلُ الْأَعْلَى عَلَى الْأَسْفَلِ. رواه ابوداؤد وابن ماجة.

د خلاصو اوبو په اړه داسي فرمايلي دي: چي (نژدې و کښت ته د) خپلي اوبه را وګرځوئ کله چي اوبه تر بجلكو پوري ورسيږي نو د پورته كښت لرونكي دي او به د كښته كښت ولور ته ايله كړي. (ابو داؤد ابن ماجه).

**تخريج**: ابوداود في السنن ۴\۵۳، رقم: ۳۶۳۹، وابن ماجه ۲\۸۳۰، رقم: ۲۴۸۲.

**د لغاتو حل**: المهزور: هو واد في بني قريظه(په بني قريظه كي يوه شبله).

**تشريح**: مهروز د مديني منورې د يو شيلې نوم دی چي د بني قريظه په سيمه كي واقع ده، د بني قريظه مځكو او باغو ته به د دغه شيلې څخه اوبه راتلې، په دې باره كي رسول الله ﷺ حكم وكړ چي دغه شيلې ته نژدې چي د كوم چا مځكه وي د هغه حق مقدم دی چي مخكي هغه خپل مځكي ته اوبه وركړي كله چي د هغه مځكه اوبه سي بيا دي هغه د اوبو رخ د خپل مځكي څخه واړوي چي هغه مځكي ته ولاړي سي كوم چي د هغه سره متصل او تر هغه لاندي دي.

## د خپل جائيداد په ذريعه چا ته تكليف مه وركوئ

﴿۲۸۷۶﴾: وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ أَنَّهُ كَانَتْ لَهُ عَضُدٌ مِنْ نَخْلٍ فِي حَائِطِ رَجُلٍ

د حضرت سمره بن جندب رضي الله عنه څخه روايت دی چي د هغه يو څو د خرماؤ درختي د يوه انصاري

مِنَ الْأَنْصَارِ وَمَعَ الرَّجُلِ أَهْلُهُ فَكَانَ سَمُرَةُ يَدْخُلُ عليه فَيَتَأَذَّى بِهِ فَأَتَى

په باغ كي وې او دی د خپل كور او اولاد سره په باغ كي اوسېدي كله چي هغه (سمره) به باغ ته تلي نو د هغه له لوري څخه به ده ته تكليف رسېدی، انصاري

النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ ذَلِكَ لَهُ فَطَلَبَ إِلَيْهِ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر سو د دې خبري يادونه يې ورته وكړه رسول الله ﷺ سمره را وغوښت او حكم يې ورته وكړ چي

وَسَلَّمَ أَنْ يَبِيعَهُ فَأَبَى فَطَلَبَ إِلَيْهِ أَنْ يُنَاقِلَهُ فَأَبَى قَالَ فَهِبْهُ لَهُ وَلَكَ وَكَذَا

خپلي درختي پر انصاري باندي خرڅي كړه . سمره د درختو خرڅولو څخه انكار وكړ بيا رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : د دغه انصاري د درختو سره چي هغه بل ځاى دى خپل درختي بدلي كړه سمره رضی الله عنه له دې څخه هم انكار وكړ بيا نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل : خپلي درختي و انصاري ته هبه كړه

أَمْرًا رَغَّبَهُ فِيهِ فَأَبَى فَقَالَ أَنْتَ مُضَارٌّ فَقَالَ لِلْأَنْصَارِيِّ اذْهَبْ فَاقْطَعْ نَخْلَهُ

تا ته به په اخرت كي د دې اجر دركول سي سمره رضی الله عنه له دې څخه هم انكار وكړ نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل : ته انصاري ته ضرر رسونكى يې (او څوك چي چا ته ضرر رسونكي وي نو د هغه دفعه كول ضروري دي) بيا نبي كريم ﷺ انصاري ته حكم وكړ چي ولاړ سه او د هغه درختي پرېكړه او وه يې غورځوه .

رواه ابوداؤد و ذكر حديث جابر من احيى ارضا في باب الغصب برواية

(ابو داؤد) او د جابر رضی الله عنه حديث په من احي ارضا د سعيد بن زيد څخه د غصب په باب كي بيان

سعيد بن زيد و سنذكر حديث ابي صرمة من ضار اضر الله به في باب ما ينهى من التهاجر .

سوي دي او د هر ژر به د ابو صرمه په حديث كي من ضار اضر الله په باب ما ينهى من التهاجر كي بيان سوي دي .

**تخريج** : ابوداود في السنن ۴/ ۵۰، رقم: ۳۶۳۶.

**د لغاتو حل** : عضد : اى طريقة (لاره).

**تشريح** رسول الله ﷺ چي حضرت سمره رضی الله عنه ته د خپل درختو د انصاري په لاس د خرڅولو يا تبادله كولو يا هبه كولو كوم حكم وركړى وو او هغه حكم ونه مني نو د هغه برخه دا ده چي رسول الله ﷺ هغه حكم د وجوب په توګه نه وو وركړى چي د هغه منل ضروري وه بلكه د

غوښتني په توګه يې حكم وركړى وو ، همدا وجه ده چي رسول الله ﷺ كوم آخري صورت د حضرت سمره رضي الله عنه په وړاندي كښېښودى په هغه كي د ثواب ترغيب وركړل سوى دى.

كه چيري د رسول الله ﷺ د دغه حكم تعلق د وجوب سره وي نو دا تصور هم نه سي كيداى چي حضرت سمره رضي الله عنه به دومره په صفائي سره انكار كړى واى.

اوس پاته سوه دا خبره چي د رسول الله ﷺ دغه حكم د وجوب په توګه نه وو بلكه ددغه تعلق د غوښتني سره وو نو بيا رسول الله ﷺ انصاري ته د هغه درختو د پرېكولو حكم ولي وركړ.

ددې جواب بالكل څرګند دى چي مخكي خو رسول الله ﷺ د غوښتني په ذريعه په اخلاقي توګه سره حضرت سمره رضي الله عنه دې ته تيارول غوښتل چي هغه د خپلو درختو څخه تېر سي مګر سمره رضي الله عنه انكار وكړ نو رسول الله ﷺ باندي دا خبره ظاهره سوه چي سمره رضي الله عنه د انصاري په باغ كي عاريتا درختي لګولي دي مګر اوس هغه درختي نه خرڅوي او نه يې تبادله كوي او نه يې هبه كوي نو دا واقعتا انصاري ته تكليف او ضرر رسول وه نو په دغه صورت كي دا ضروري وه چي انصاري ته د هغه ضرر او تكليف څخه خلاصون وركړل سي ځكه د هغه آخري صورت دا پاته سو چي رسول الله ﷺ د هغه درختو د پرېكولو حكم وركړ.

د حضرت جابر رضي الله عنه حديث (من احيى ارضا الخ) د حضرت سعيد ابن زيد رضي الله عنه په روايت سره په باب الغصب كي نقل سوى دى او د حضرت ابي صرمه حديث (من ضار ضرا الله به..الخ) په باب ما ينهى من التهاجر كي نقل سي. دغه دواړه حديثونه صاحب د مصابيح دلته نقل كړي دي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د اوبو، مالګي او اور وركولو څخه منع مه كوئ

﴿۲۸۷۷﴾: عَنْ عَائِشَةَ اَنَّهَا قَالَتْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ مَا الشَّيْءُ الَّذِي لَا يَحِلُّ مَنْعُهُ

د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه روايت دى چي ما د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وكړه چي هغه كوم شى دي چي د هغه د استعمال څخه منعه نه ده راغلې

قَالَ الْمَاءُ وَالْمِلْحُ وَالنَّارُ قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ هَذَا الْمَاءُ قَدْ عَرَفْنَاهُ فَمَا

نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل: اوبه، مالګه او اور دي. بيا ما پوښتنه وكړه يا رسول الله! د اوبو په اړه خو زه پوه سوم (يعني د دې د نه وركولو څخه انسانانو او حيوانانو ته تكليف رسيږي)

بَالُ الْمِلْحِ وَالنَّارِ قَالَ يَا حُمَيْرَاءُ مَنْ أَعْطَى نَارًا فَكَأَنَّمَا تَصَدَّقَ بِجَمِيعِ مَا

ليکن د مالګي او اور په اړه معلومات نسته نبي کریم ﷺ وفرمایل : اې حمیرا ! (د ګلاب د ګل په شان سور رنګه) څوک چې چاته اور ورکړي هغه ته دومره ثواب رسیږي لکه هغه چې خپل

أَنْضَجَتْ تِلْكَ النَّارُ وَمَنْ أَعْطَى مِلْحًا فَكَأَنَّمَا تَصَدَّقَ بِجَمِيعِ مَا طَيَّبَتْ تِلْكَ

ټول شیان په دې اور پخ سوي وي صدقه کړل او څوک چې چا ته مالګه ورکړي هغه ته دومره ثواب رسیږي لکه هغه چې خیرات کړه ټول هغه طعام (خوراک) چې په دغه مالګه خوندور

الْمِلْحُ وَمَنْ سَقَى مُسْلِمًا شَرْبَةً مِنْ مَاءٍ حَيْثُ يُوجَدُ الْمَاءُ فَكَأَنَّمَا أَعْتَقَ رَقَبَةً

کیږي او څوک چې د مسلمان په هغه ځاي کي اوبه و څیښي کوم ځاي چي اوبه وي په یوه وار اوبو چښلو سره لکه یو غلام چي آزاد کړ

وَمَنْ سَقَى مُسْلِمًا شَرْبَةً مِنْ مَاءٍ حَيْثُ لَا يُوجَدُ الْمَاءُ فَكَأَنَّمَا أَحْيَاهَا . رواه ابن ماجة

او په داسي ځاي کي چي اوبه نه وي په یو مسلمان اوبه چیښل داسي دي لکه هغه مسلمان ته چي یې نوی ژوند ورکړ .(ابن ماجه) .

**تخریج**: سنن ابن ماجه ۸۲۶\۳، رقم: ۲۴۷۴.

**تشریح**: بي بي عائشې رضي الله عنها د اوبو د ارزښت او د هغه د کیفیت حال د پوهېدو دعوه کړې وه ځکه رسول الله ﷺ د هغې د دعوې په ضمن کي په پای کي د اوبو ورکولو او د څښلو د ثواب او د هغه د فضیلت په ذکر کولو دا ظاهره کړه چي تا ته خو یوازي دا معلومه وه چي اوبه د یو عام ضرورت شی کېدو په وجه یو لوی نعمت دی مګر په دې باره کي دا تفصیل چي د اوبو ورکونکي څه درجه وي او هغه ته څومره زیات ثواب تر لاسه کیږي تا ته دا معلومه نه وه .

=======

# بَابُ الْعَطَايَا (د بخښې بيان)

لفظ د عطايا د عطيه جمع ده او معنى يې د بخښې يعني د خپل يو شي ملكيت او د هغه د حق تصرف بل چا ته منتقل كول يا يو چا ته خپل يو شى بېله عوضه وركول، په دغه باب كي به د عطايا او بخښې ټول ډولونه مثلا وقف، هبه، عمرى او رقبى ذكر وسي.

ملا علي قاري رحمة الله عليه ليكلي دي چي د عطايا څخه د اميرانو او پاچاهانو بخشش او د هغوى انعامونه مراد دي.

امام غزالي رحمة الله عليه په منهاج العابدين كي ليكلي دي چي د اميرانو او پاچاهانو د بخشش په قبلولو كي د علماء اختلافي قولونه دي همدارنګه ځيني علماء وايي چي هغه بخشش او انعام چي د داسي مال په صورت كي وي چي د هغه د حرام كېدو يقين نه وي نو د هغه قبلول صحيح دي مګر د ځينو حضرات دا قول دى چي تر څو پوري د هغه مال د حلال كېدو يقين نه وي نو هغه نه قبلول غوره او بهتر دي ځكه چي په اوسنى زمانه كي د پاچاهانو او حكومتي خلكو په خزانو كي اكثره مال په غير شرعي ذرائعو سره ترلاسه كيدونكى مال او زروي.

ځيني علماء فرمايي چي د غني او فقير دواړو لپاره د اميرانو او پاچاهانو تحفې حلالي دي كله چي د هغوى د مال د حرام كېدو په تحقيقي توګه سره ثابت نه وي د هغوى دليل دادى چي رسول الله ﷺ د اسكندريه د پاچا مقوقس تحفه قبوله كړې وه او د يو يهودي څخه يې پور اخيستى وو سره ددې چي د يهوديانو په باره كي قرآن كريم (اكالون للسحت) يعني حرام خوړونكي، فرمايلي دي.

ځيني حضرات وايي چي د كوم مال د حرام كېدو يقين نه وي هغه د فقير لپاره حلال دى مګر د غني لپاره حلال نه دى.

په پاى كي په دې مسئله هم پوه سئ چي كوم څوك مفلس او غريب وي نو د هغه لپاره په دې كي څه پروا نه سته چي هغه د پاچاهانو مال قبول كړي ځكه كه چيري هغه مال د پاچا د ذاتي ملكيت نه وي نو د هغه اخيستل بېله شكه صحيح دي او كه چيري هغه مال د بيت المال څخه وي نو بيا مفلس د هغه حقدار دى همدارنګه په داسي مال كي د اهل علم هم دا حق دى چي هغه مال واخلي، نقل سوي دي چي حضرت علي رضي الله عنه فرمايلي دي كوم سړى چي په رضا او رغبت سره په اسلام كي داخل سي او هغه قرآن كريم ياد كړي نو هغه د بيت المال څخه هر كال د دوه سوه

درهمو اخيستو حقدار دی که هغه خپل دغه حق په دنيا کي وانه خلي نو ددې اجر به الله تعالی په آخرت کي ورکړي. ددې څخه معلومه سوه چي مفلس او عالم بايد دبيت المال څخه خپل حق تر لاسه کړي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د حضرت عمر رضی الله عنه له خوا د خپل مځکي وقف

﴿۲۸۷۸﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ عُمَرَ أَصَابَ أَرْضًا بِخَيْبَرَ فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه څخه روايت دی چي حضرت عمر رضی الله عنه ته په خيبر کي يوه مځکه د غنيمت حاصله سوه حضرت عمر رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کي حاضر سو

وَسَلَّمَ فَقَالَ يَارَسُوْلَ اللهِ إِنِّي أَصَبْتُ أَرْضًا بِخَيْبَرَ لَمْ أُصِبْ مَالًا قَطُّ أَنْفَسَ

او عرض يې وکړ يا رسول الله! په خيبر کي يوه مځکه ماته را کول سوې ده د دې څخه بهتره تر ننه پوري ماته داسي شی نه دي حاصل سوي

عِنْدِي مِنْهُ فَمَا تَأْمُرُ بِهِ قَالَ إِنْ شِئْتَ حَبَسْتَ أَصْلَهَا وَتَصَدَّقْتَ بِهَا فَتَصَدَّقَ

تاسو په دې اړه څه فرمايا ست؟ نبي کريم صلی الله علیه وسلم ورته و فرمايل: که ته و غواړې چي مځکه وقف کړه او پيداوار يې صدقه کړه

بِهَا عُمَرُ أَنَّهُ لَا يُبَاعُ وَلَا يُوهَبُ وَلَا يُورَثُ وَتَصَدَّقَ بِهَا فِي الْفُقَرَاءِ وَفِي الْقُرْبَى

نو حضرت عمر رضی الله عنه مځکه په دې شرط سره د خداي تعالي په لاره کي چي اصل مځکه به نه ورکول کيږي نه يې هبه کولای سي او په ميراث کي به زما وي او پيداوار به يې په فقيرانو

وَفِي الرِّقَابِ وَفِي سَبِيلِ اللَّهِ وَابْنِ السَّبِيلِ وَالضَّيْفِ لَا جُنَاحَ عَلَى مَنْ وَلِيَهَا

دوستانو په قريبانو په مجاهدينو مسافرو او مېلمنو باندي خرڅيږي او د غلامانو په ازادېدو کي به ور سره مرسته او کومک کيږي او متولي به يې هم په اندازه د حاجت شی ځيني وصولوي

أَنْ يَأْكُلَ مِنْهَا بِالْمَعْرُوفِ وَيُطْعِمَ غَيْرَ مُتَمَوِّلٍ قَالَ ابْنَ سِيرِينَ غَيْرَ مُتَأَثِّلٍ

مَالًا . متفق علیه .

نو څه حرج نسته که یې متولي په خپلو قریبانو باندي خوري نو په شرط د دې ځان غني او مالدار نه کړي ، ابن سیرین ویلي دي چي د دغه مال څخه دي مال نه جمع کوي . (بخاري او مسلم) .

**تخریج**: البخاري في الصحیح (فتح الباري): ۵\ ۳۵۴، رقم: ۲۷۳۷، ومسلم ۳\ ۱۲۵۵، رقم: ۱۵- ۱۶۳۲.

**د لغاتو حل**: غیرمتاثل: ای غیر مجمع لنفسه منه راس مال.

**تشریح** دغه حدیث شریف د وقف د صحیح کېدو دلیل دی، د ټولو مسلمانانو په اتفاق دا مذهب دی که یو سړی خپل یو جائیداد مثلا مځکه، سرای یا بل شي د یو نیک مقصد او ښه کار لپاره د الله تعالی د رضا او خوښۍ په لاره کي وقف کړي نو دا جائز دی او هغه وقف کونکی به په بې شمېره ثواب سره ونازول سي ، او دغه حدیث شریف د دې خبري دلیل هم دی چي د وقف جائیداد نه سي خرڅېدلای او نه هبه کیدای سي او نه د چا مېراث کېدای سي، دغه حدیث د وقف فضیلت هم څرګندوي ځکه چي وقف یو صدقه جاریه ده چي د هغه ثواب وقف کونکي ته همېشه رسیږي .

خیبر د یو کلي نوم دی چي د مدینې منورې څخه تقریبا پر شپېته میله فاصله په شمال کي واقع دی ، په دغه کلي کي د خرما وغیره کښت کیږي د رسول الله ﷺ په زمانه کي پر دغه کلي باندي مسلمانانو یعني د طاقت په زور فتح او غلبه تر لاسه کړې وه په دغه وخت کي د غنیمت اخیستونکو د دغه مځکي او باغونه واخیستل او هغوی په خپلو کي وویشل چي د هغه یوه برخه حضرت عمر فاروق رضي الله عنه ته حاصله سوه هغه د خپل برخي مځکه د الله تعالی په لار کي وقف کړل .

په شرح السنه کي لیکلي دي چي دغه حدیث د دې خبري دلیل دی چي د وقف کونکي لپاره دا جائز دي چي هغه خپل د وقف څخه د ضرورت په اندازه ګټه تر لاسه کړي په دې توګه چي د آمدنی یو څه برخه د ځان او خپل کورنکی د ژوند د اړتیاوو لپاره خرڅ کړي یا د هغه څخه ګټه تر لاسه کړي ځکه چي رسول الله ﷺ د حضرت عمر رضي الله عنه د وقف شرطونه ومنل یعني توثیق یې وفرمایه او د وقف د آمدنی څخه د ضرورت په اندازه یو څه برخه د هغه لپاره مباح وګرځول سوه کوم چي د هغه متولي وي او دا بالکل ظاهره ده چي وقف کونکی د خپل وقف متولي وي .

او د دې خبري یو دلیل دا هم دی چي رسول الله ﷺ فرمایلي وه چي داسي یو څوک نه سته چي بېرومه (د مدینې منورې یو څاه چي د یهودي په ملکیت کي وو) رانیسي کوم څوک چي دغه څاه رانیسي او د مسلمانانو لپاره یې وقف کړي نو په دغه څاه کي به د هغه سړي سلواغه د

مسلمانانو د سلواغې په ډول وي (یعني څرنګه چي عام مسلمانان د دغه څاه څخه اوبه راکاږي همدارنګه دغه سړی به هم د دغه څخه اوبه راکاږي) نو حضرت عثمان رضی الله عنه هغه څاه رانیوی او د مسلمانانو لپاره یې عام وقف کړی.

## عمری جائز ده

﴿۲۸۷۹﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْعُمْرٰى جَائِزَةٌ. متفق علیه

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: عمری یعني د چا له عمر لپاره (تر څو پوري چي ژوندی وي) یو شی ورکول جائز دي. (بخاري او مسلم)

**تخریج**: البخاري في الصحیح (فتح الباري)؛ ۵\۲۳۸، رقم: ۲۶۲۶. ومسلم ۳\۱۲۴۸، رقم: ۳۲-۱۶۲۶.

**تشریح**: رانیول او پلورل د انساني ټولني د یو تربله ربط او تعلق د استحکام ذریعه ده، په خپلو کي تعلقات د یو بل سره مینه او یو تر بله ربط په خپلو کي پر هدایا او تحفو باندي هم منحصر وي ځکه چي ددې په ذریعه فطرت انساني د یو خاص ډول محبت او مسرت څخه سمسور وي دا په خپلو کي د معاملاتو په څو طریقو سره کیږي، د هدیې، تحفې او هبې سره سره یو صورت د عمری هم دی چي په ظاهره د هبې یو ښاخ دی نو پورتنی حدیث د دغه هبې جواز ظاهروي.

**عمری څه شي ده**؟ د باب په شروع کي د عمری معنی بیان سوې ده دلته هم په دې پوه سئ چي د عمری صورت دادی چي مثلاً یو سړی یو چا ته ووایي چي ما دغه خپل سرای تا ته ستا تر ژوند پوري درکړی نو دا جائز دی او په دغه صورت کي تر څو چي هغه سړی ژوندی وي نو د هغه څخه هغه سرای بېرته نه سي اخیستل کیدای مګر د هغه د مرګ څخه وروسته هغه سرای بېرته اخیستل کیدای سي په دې باره کي د علماؤ اختلافي اقوال دي چي تفصیل یې دادی چي د عمری درې صورتونه دي: اول دا چي کوم څوک خپل سرای یو چا ته ورکړي او ورته ووایي چي ما دغه خپل سرای تا ته درکړ تر څو چي ته ژوندی یې دا به ستا په ملکیت کي وي ستا د مرګ څخه وروسته به ستا د وارثانو او اولاد سي نو په دغه صورت کي د ټولو علماؤ په اتفاق سره دا مذهب دی چي دا هبه ده په دغه صورت کي سرای د مالک د ملکیت څخه وځي او کوم چا ته چي یې ورکړی دی د هغه په ملکیت کي راځي د هغه سړي د مړ کېدو څخه وروسته د هغه

وارثان د هغه سرای مالکان کیږي که وارثان نه وي نو په بیت المال کي به جمع کیږي .

د عمرٰی دوهم صورت دادی چي ورکونکی بېله قید او شرطه یعني مطلقا دا ووایي چي دغه سرای ستا تر ژوند پوري ستا دی په دغه صورت کي د علماء اکثریت وایي چي د دغه حکم هم هغه دی کوم چي دد ې څخه مخکي د اول صورت حکم دی د حنفیه مذهب هم دادی او صحیح قول دادی چي د امام شافعي رحمة الله علیه قول هم دادی مگر ځیني علماء وایي چي په دغه صورت کي هغه سرای د هغه سړي د مرگ څخه وروسته د هغه د وارثانو حق نه دی بلکه د اصل مالک دی .

دریم صورت دادی چي ورکونکی داسي ووایي چي دغه سرای ستا تر ژوند پوري ستا دی ستا د مرگ څخه وروسته به زما او زما د وارثانو ملکیت وي نو په دغه صورت کي هم صحیح خبره داده چي دد ې حکم هغه دی کوم چي مخکني صورت دی د حنفیه په آند دا شرط چي ستا د مرگ څخه وروسته به زما او زما د وارثانو ملکیت وي فاسد دی ، او مسئله داده چي د یو فاسد شرط په وجه هبه نه فاسد کیږي .

د امام شافعي رحمة الله علیه صحیح قول دادی مگر امام احمد رحمة الله علیه فرمایي چي دا صورت د یو فاسد شرط په وجه فاسد دی .

د عمری په باره کي د امام مالک رحمة الله علیه قول دادی چي په دغه ټولو صورتو کي بنیادي مقصد د ورکړي شي د منفعت مالک کېدل دي .

## عمری د وارثانو ملکیت وي

﴿۲۸۸۰﴾: وَعَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ قَالَ اِنَّ الْعُمْرٰى مِيرَاثٌ لِأَهْلِهَا . رواه مسلم .

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : چي عمری د هغه د کور والاؤ میراث دي یعني ټول عمر لپاره څه شی چي ورکړل سو د هغه د کور خلک به د هغه د وفات څخه وروسته د هغه وارثان وي . (مسلم) .

**تخریج**: مسلم في الصحیح ۳\۱۲۴۸، رقم: ۳۱- ۱۶۲۵.

**تشریح** معمرله هغه سړي ته وایي چي هغه ته د عمرٰی په توگه یو شی ورکول سي ، د حدیث مطلب دادی چي کوم چا ته یو سرای د عمرٰی په توگه ورکړل سي نو هغه سرای د هغه تر ژوند پوري د هغه ملکیت وي او د هغه د مرگ څخه وروسته د هغه وارثانو ملکیت وي یعني دا د خپل

ظاهري مفهوم په اعتبار د جمهورو علماؤ د مذهب دليل دی.

﴿۲۸۸۱﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّمَا رَجُلٍ أُعْمِرَ عُمْرَى

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د چا لپاره چي عمری وكول

لَهُ وَلِعَقِبِهِ فَإِنَّهَا لِلَّذِي أُعْطِيَهَا لَا تَرْجِعُ إِلَى الَّذِي أَعْطَاهَا لِأَنَّهُ أَعْطَى عَطَاءً وَقَعَتْ فِيهِ الْمَوَارِيثُ. متفق عليه.

سوه هغه د هغې مالک دي او بيا د هغه قريبان عمری په حقيقت کي د هغه چا وي چاته چي ور کړل سي د ورکونکي و لور ته نه را ګرځي او په دې کي ميراث هم وي. (بخاري او مسلم)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۵\۲۳۸، رقم: ۲۶۲۵، ومسلم ۳\۱۲۴۵، رقم: ۲۰- ۱۶۲۵.

**تشريح**: د حديث خلاصه داده چي كوم شی يو چا ته د عمرٰی په توګه ور کړل سي نو هغه شی د هغه سړی سي او د هغه د مرګ څخه وروسته د هغه د وارثانو ملكيت كيږي د وركونكي ملكيت ته بېرته نه راځي، د حضرت ابوهريره رضی الله عنه روايت چي مخكي تېر سوی دی د هغه د تشريح په ضمن کي د عمرٰی درې صورتونه بيان سوي دي، په دغه حديث کي د اول صورت بيان دی په دې باره کي چي کوم فقهي اختلاف دی د هغه تفصيل هم هلته ذكر سوی دی.

**د حضرت جابر رضی الله عنه روايت او د هغه تاويل**

﴿۲۸۸۲﴾: وَعَنْهُ قَالَ إِنَّمَا عُمْرَى الَّتِي أَجَازَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روايت دی چي كومه عُمری چي رسول الله ﷺ جائز ګرځولې ده هغه داده چي (د شي وركونكي)

أَنْ يَقُولَ هِيَ لَكَ وَلِعَقِبِكَ فَأَمَّا إِذَا قَالَ هِيَ لَكَ مَا عِشْتَ فَإِنَّهَا تَرْجِعُ إِلَى صَاحِبِهَا. متفق عليه.

داسي ووايي: دا عمری ستا او ستا د وارثانو لپاره ده او كله چي داسي ووايي چي دا عمری ستا لپاره ده تر څو پوري چي ته ژوندی يې نو دا بېرته اصلي خاوند ته را ګرځي. (بخاري او مسلم).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۵\۲۳۸، رقم: ۲۶۲۵، ومسلم ۳\۱۲۴۶، رقم: ۲۳- ۱۶۲۵.

**تشریح** دغه حدیث په ظاهره د جمهورو علماؤ د مذهب خلاف دی او د جمهورو علماؤ مذهب د حضرت ابوهریره رضی الله عنه د روایت د تشریح په ضمن کي ذکر سوی دی ، جمهور علماء ددغه حدیث په باره کي فرمایي چي دغه حدیث مرفوع نه دی یعني دا د رسول الله ﷺ ارشاد نه دی بلکه خپله د حضرت جابر رضی الله عنه قول دی چي د هغه خپل پر خپل رایه او اجتهاد باندي مبني دی په دغه صورت کي ددغه قول د جمهورو علماؤ پر مذهب هیڅ اثر نه اچوي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د عمری او رقبی څخه د رسول الله ﷺ منع

﴿۲۸۸۳﴾: عَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُرْقِبُوا وَلَا تُعْمِرُوا فَمَنْ أُرْقِبَ شَيْئًا أَوْ أُعْمِرَهُ فَهِيَ لِوَرَثَتِهِ .رواه ابوداؤد .

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : رقبیٰ او عمری مه کوئ او چا لپاره چي رقبی یا عمری سوي وي هغه او د هغه وارثان د هغو مالکان دي .(ابو داؤد)

**تخریج**: ابوداود في السنن ۳\۸۲۰، رقم: ۳۵۵۶.

**د لغاتو حل**: لاترقبوا : من الارقاب بمعنى المراقبة وهي ان يقول: وهبت لک داري، فان مت قبلي رجعت الي وان مت قبلک فهي لک. (مرقات).

**تشریح**: د عمری په ډول رقبی هم د هبې یو ښاخ دی ، ددې وضاحت هم د باب په شروع کي سوی دی ، د رقبی صورت دادی چي د مثال په توګه یو سړی بل سړي ته دا ووایي چي زه خپل سرای تا ته په دې شرط درکوم که زه ستا څخه مخکي مړ سوم نو دغه سرای به ستا په ملکیت کي وي او که ته زما څخه مخکي مړ سوې نو بیا به دا زما په ملکیت کي وي ، لفظ درقبی مشتق دی د ارقاب څخه چي د مراقبه په معنی کی دی یعني په رقبی کي هر یو د دوهم د مرګ منتظر وي.

په دغه حدیث کي د عمری او رقبی څخه منع سوې ده او ددې علت دا بیان سوی دی چي تاسو کوم شی د عمری یا رقبی په توګه یو چا ته ورکړئ هغه د هغه سړي ملکیت سي او ستاسو ملکیت ختمیږي ځکه نو د هغه سړي د مرګ څخه وروسته هغه شی د هغه د وراثانو ملکیت ته منتقل کیږي نو تاسو خپل مال د عمری او رقبی په توګه د خپل ملکیت څخه په ایستلو سره خپل تاوان مه کوئ .

اوس پاته سوه دا خبره چي کله موږ ته دا مخکي معلومه سوې ده چي عمری او رقبی جائز

ده نو ددې منع به محمول څه شي وي ؟ ددې جواب دادی چې یا خو دا منع په هغه وخت کې فرمایل سوې ده کله چې دواړه جائز نه وه په دغه صورت کې دا هم ویل کیدای سي چې دغه حدیث منسوخ دی یا دا چې ددغه ارشاد مراد ظاهر دی چې عمری او رقبی که څه هم د مصلحت خلاف کار دی مګر کله چې دا واقع سي نو په شرعي توګه سره صحیح کیږي او د هغه نتیجه دا سي چې هغه شی نه یوازې د هغه په ملکیت کې راسي چا ته چې ورکړل سوی دی بلکه د هغه د مرګ څخه وروسته د هغه د وارثانو په ملکیت کې وي په دغه صورت کې ددغه حدیث د منسوخ کېدو هیڅ صورت نه پاته کیږي .

د عمری په باره کې دا بنوول سوي دي چې د حنفیه په نزد جائز ده مګر د رقبی په باره کې ملا علي قاري رحمة الله عليه فرمایي چې دا د امام ابوحنیفة او امام احمد رحمة الله علیهما په نزد جائز نه ده مګر د امام ابویوسف رحمة الله عليه په نزد جائز دي .

په حنفي علماؤ کې ځیني شارحین د حدیث په باره کې دا لیکلي دي چې دا نهي (ممانعت) ارشادي دی، مطلب دا چې خپل مال تر یو ټاکلي وخت پورې مه هبه کوئ چې کله هغه وخت پوره سي نو خپل مال بېرته واخلئ ځکه چې کله خپل یو شی یو چا ته ورکړی نو هغه ستاسو د ملکیت څخه ووځي اوس هغه ستاسو په ملکیت کې نه راځي که څه هم تاسو هغه شی دهبې په صراحت کولو سره ورکړی وي یا د عمری او رقبی په توګه مو ورکړی وي .

## عمری او رقبی جائز ده

﴿۲۸۸۴﴾ وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْعُمْرٰى جَائِزَةٌ لِأَهْلِهَا وَالرُّقْبٰى جَائِزَةٌ لِأَهْلِهَا. رواه احمد والترمذي وابوداؤد.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمایل : عمری (یعني هغه شی چې د ټول عمر لپاره ورکول سوي وي ) عمری والاؤ لپاره جائز ده او رقبی د رقبی خلکو لپاره . (احمد ترمذي ابو داؤد) .

**تخريج** : احمد في المسند ۳\۳۰۲، الترمذي في السنن ۳\۶۳۳، رقم: ۱۳۵۱، وابوداود في السنن ۳\۸۲۱، رقم: ۳۵۵۸.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د جواز عمری يو بل حديث

﴿۲۸۸۵﴾: عَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمْسِكُوا أَمْوَالَكُمْ

د حضرت جابر ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: خپل مال د ځانه سره ساته

عَلَيْكُمْ لَا تُفْسِدُوهَا فَإِنَّهُ مَنْ أَعْمَرَ عُمْرَى فَهِيَ لِلَّذِي أُعْمِرَ حَيًّا وَمَيِّتًا وَلِعَقِبِهِ. رواه مسلم

مه يې کوه او مه يې خرابوه چا چي څوک د يو شی لپاره ټول عمر مالک جوړ کړ نو هغه دهغه شی حقيقي مالک دي په ژوند کي او د وفات څخه وروسته هم د مرګ څخه وروسته د هغه قريبان دهغه وارثان دئ. (مسلم).

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۳\۱۲۴۶، رقم: ۲۶- ۱۶۲۵.

**تشريح**: ددغه حديث په ظاهري مفهوم سره د عمری په جواز کي اشکال پيدا کيږي مګر د دوهم فصل په حديث کي پر تشريح باندي که نظر وکړل سي نو دا اشکال ختميږي ځکه چي ددغه حديث تاويل هغه دی کوم چي د هغه حديث په تشريح کي بيان سوی دی.

=======

## بَــــابٌ

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّل (لومړی فصل)

### د خوشبو داره شي تحفه مه رد کوئ

﴿۲۸۸۶﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ عُرِضَ عَلَيْهِ رَيْحَانٌ فَلَا يَرُدُّهُ فَإِنَّهُ خَفِيفُ الْمَحْمِلِ طَيِّبُ الرِّيحِ. رواه مسلم.

د حضرت ابوهريره ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: چا ته چي يو خوشبودار

ګل (د تحفې په شکل کې) ورکړل سي هغه دي بیر ته نه ور کوي ځکه چي دا یو ډېر معمولي احسان دي او خوشبو ښه شی ده. (مسلم)

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۴\۱۷٦٦، رقم: ۲۰- ۲۲۵۳.

**تشريح** دغه حکم چي هغه دي بېرته نه ورکول کيږي د هر هغه تحفې دي چي په ظاهره د کم کېدو په وجه زيات احسان نه لري مګر د ګټې او خوښۍ په اعتبار ډېر ګټور وي چي کوم چا هغه ته تحفه ورکړې ده د هغه زړه مات نه سي.

﴿۲۸۸۷﴾: وَعَنْ اَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ لَا يَرُدُّ الطِّيبَ. رواه البخاري.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د خوشبو تحفه نه واپس کول. (بخاري)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۵\ ۲۳۴، رقم: ۲٦۲۲.

**تشريح** د حديث د آخري جملې مطلب دادی چي زموږ ملت او زموږ قوم د کوم عزت او شرافت حامل دی او د انسانيت کوم لوړ اصول، شرافت او تهذيب په لوړ معيار سره نازول سوي دي د هغه سره سم زموږ د ملت او قوم د هيچا لپاره دا مناسب نه ده چي هغه داسي کار وکړي چي د هغه د ملي شرف او قومي عظمت خلاف وي او د هغه په وجه پر هغه باندي يو خراب مثال جوړ سي. په دې سره رسول الله ﷺ دې ته اشاره وفرمايل چي يو چا د تحفې ورکول او بېرته اخيستل داسي دي لکه څرنګه چي سپی خپل قی بېرته څټي ځکه نو د مسلمان لپاره مناسب نه ده چي هغه يو چا ته يو شی په تحفه ورکړي او بيرته يې ځيني واخلي او همدارنګه په هغه خراب مثال سره ياد کړل سي.

دا خو د حديث وضاحت او د هغه څخه پيدا کېدونکې يو اخلاقي او نفسياتي اړخ وو مګر ددې فقهي او شرعي اړخ دادی چي د امام ابو حنيفة رحمه الله د مذهب سره سم يو چا ته د تحفې په توګه يا د هبې او صدقې په توګه يو شی ورکول او بيا د اخيستونکي په قبضه کي د راتلو څخه وروسته هغه شی بېرته اخستل جائز خو دي مګر مکروه دي البته په ځينو صورتو کي جائز نه دي چي د هغه تفصيل به د دوهم فصل په اول حديث کي راسي، او په دې باره کي يو حديث هم نقل سوی دی.

دلته د ذکر سوي حدیث په باره کي حنفیه وایي چي دا پر کراهت باندي محمول دی او د دې مقصد دا ظاهرول دي چي یو چا ته د یو شی په ورکولو سره بېرته اخیستل نامردي او ناخوښه خبره ده مګر د امام شافعي، امام مالک او امام احمد بن حنبل رحمة الله علیهم په نزد دا حدیث پر حرمت باندي محمول دي ځکه د دغه حضرات مذهب دا دی چي یو چا ته د تحفې او صدقې په ورکولو سره بېرته اخیستل جائز نه دي البته امام شافعي رحمة الله علیه فرمایي که یو پلار خپل زوی ته یو شی په تحفه کي ورکړي نو هغه بېرته ځیني اخیستلای سي.

د یوه روایت سره د امام احمد رحمة الله علیه قول هم دادی، او راتلونکي ځیني حدیثونه هم پر دې دلالت کوي مګر د دغه حدیثو معنی چي حنفیه اخیستې ده هغه به هم مخته ذکر سي.

## د یو شي ورکول او بیرته اخیستل بد کار دی

﴿۲۸۸۸﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعَائِدُ فِي هِبَتِهِ كَالْكَلْبِ يَعُودُ فِي قَيْئِهِ لَيْسَ لَنَا مَثَلُ السَّوْءِ. رواه البخاري.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د هبې د واپس اخیستونکي حال داسي دی لکه سپی چي قی ووهي او وروسته یې وخوري دا بد مثال زموږ سره نه ښائي. (بخاري).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۵\ ۲۳۴، رقم: ۲۶۲۲.

## د یو شي په ورکولو کي د اولاد په مینځ کي فرق مه کوئ

﴿۲۸۸۹﴾: وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ أَنَّ أَبَاهُ أَتَى بِهِ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د نعمان بن بشیر رضي الله عنه څخه روایت دی چي زما پلار زه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر کړم

وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنِّي نَحَلْتُ ابْنِي هٰذَا غُلَامًا فَقَالَ أَكُلَّ وَلَدِكَ نَحَلْتَ مِثْلَهُ قَالَ لَا

او وه یې ویل: ما خپل و دې زوي ته یو غلام هبه کړی دی نبي کریم ﷺ ځیني پوښتنه وکړه چي ایا تا و هر یوه زوي ته یو یو غلام هبه کړی دی؟ هغه وویل یا!

قَالَ فَارْجِعْهُ. وفي رواية أَنَّهُ قَالَ أَيَسُرُّكَ أَنْ يَكُونُوا إِلَيْكَ فِي الْبِرِّ سَوَاءً قَالَ

نبي کریم ﷺ وفرمایل خپل غلام بیرته واخله او په یوه بل روایت کي دا الفاظ دي چي نبي

كريم ﷺ وفرمايل : ايا ته دا خبره خوښوې چي ستا ټول زامن ستا سره ښه چلن وكړي ؟هغه

بَلَى قَالَ فَلَا إِذًا و فِي رِوايَةٍ أَنَّهُ قَالَ أَعْطَانِي أَبِي عَطِيَّةً فَقَالَتْ عَمْرَةُ بِنْتُ رَوَاحَةَ

وويل : هو ! (نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل) كه دا خبره وي نو يوازي دې زوي ته غلام مه وركوه . په يو بل روايت كي راغلي دي چي نعمان وويل : زما پلار ما ته يو شى راكړ عمره بن رواحه (د بشير ښځي) وويل :

لَا أَرْضَى حَتَّى تُشْهِدَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَتَى رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى

زه دا هديه تر هغه وخته پوري نه خوښوم تر څو پوري چي رسول الله ﷺ د دې شاهد نه زما پلار نبي كريم ﷺ ته ورغلی

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنِّي أَعْطَيْتُ ابْنِي مِنْ عَمْرَةَ بِنْتِ رَوَاحَةَ عَطِيَّةً فَأَمَرَتْنِي

او عرض يې وكړ ما خپل دې زوي ته چي د عمره بنت رواحه د نس څخه پيدا سوي دي يو شى وركړې دي عمره ما ته وويل چي زه په دې معامله كي (يا رسول الله!)

أَنْ أُشْهِدَكَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ أَعْطَيْتَ سَائِرَ وَلَدِكَ مِثْلَ هَذَا قَالَ لَا قَالَ

تا شاهد وم نبي كريم ﷺ ځيني پوښتنه وكړه ايا تا خپلو ټولو زامنو ته داسي شى وركړي دي ؟ هغه وويل نه ! نو نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل:

فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْدِلُوا بَيْنَ أَوْلَادِكُمْ قَالَ فَرَجَعَ فَرَدَّ عَطِيَّتَهُ و فِي رِوايَةٍ أَنَّهُ قَالَ

لَا أَشْهَدُ عَلَى جَوْرٍ . متفق عليه.

د خداي تعالي څخه وبېرېږه او د اولادو په مينځ كي انصاف كوه نعمان وايي چي د دې په اورېدو سره زما پلار بيرته راغي او خپله هبه يې بيرته واخيسته او په يوه بل روايت كي راځي چي رسول الله ﷺ د شهادت مطالبه واورېده نو ويې فرمايل :زه په ظلم باندي شاهد نه جوړېږم . (بخاري او مسلم) .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۵\ ۲۱۱، رقم: ۲۵۸۶، ومسلم ۳\ ۱۲۴۲، رقم: ۱۳- ۱۶۲۳.

**تشريح** د حديث شريف څخه معلومه سوه چي د خپل اولاد په مينځ كي فرق او امتياز كول

مناسب نه دي ، د حديث شريف په رڼا کي دا مستحب دي چي يو شی يوازي خپل يوه زوی يا يوې لور ته نه ورکول کيږي بلکه هغه شی دي پر ټولو زامنو او لوڼو باندي برابر ووېشل سي .

حضرت بشير رضي الله عنه د رسول الله ﷺ دغه حکم چي غلام بېرته واخله پر غوره والي محمول دي يعني ددغه غلام بېرته اخيستل غوره او بهتر دي ، حضرت امام ابوحنيفة، امام شافعي او امام مالک رحمة الله عليهم فرمايي که يو سړی په خپل اولاد کي ځينو ته يو شی ورکړي نو د هغه تحفه به صحيح وي مگر په کراهت سره .

ددې برعکس د امام احمد، ثوري او اسحاق رحمة الله عليهم او نورو حضراتو په نزد دا حرام دي ، د رسول الله ﷺ ارشاد (لا اشهد على جور) يعني زه پر ظلم شاهدي نه ورکوم، ددغه حضراتو دليل دی حال دا چي اول الذکر يعني امام ابوحنيفة رحمه الله د رسول الله ﷺ د الفاظو څخه استدلال کوي چي په يوه روايت کي نقل سوي دي (فاشهد على هذا غيري) يعني رسول الله ﷺ بشير رضي الله عنه ته وويل چي ته په دې باره کي زما څخه پرته بل څوک شاهد کړه .

دغه حضرات فرمايي که چيري دغه تحفه (يعني د حضرت بشير رضي الله عنه خپل يوه زوی ته غلام ورکول ) حرام يا باطل وای نو رسول الله ﷺ به دا نه فرمايلای چي بل څوک شاهد کړه ځکه چي د رسول الله ﷺ ارشاد پر دې دلالت کوي چي د بشير رضي الله عنه دغه تحفه صحيح او جائز ده مگر ناخوښه او مکروه ده ، ځکه رسول الله ﷺ خپل ځان شاهد گرځول مناسب ونه گڼل او دا يې وفرمايل چي بل شاهد جوړ کړه .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### تحفه بيرته اخيستل ښه کار نه دی

﴿۲۸۹۰﴾ : عَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ يَرْجِعُ اَحَدٌ فِيْ هِبَتِهِ اِلاَّ الْوَالِدُ مِنْ وَلَدِهِ . رواه النسائي وابن ماجة .

د عبدالله بن عمرو رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هيڅوک دي خپله هبه واپس نه اخلي خو هغه هبه واپس اخيستل جائز دي چي پلار زوي ته ورکړي وي .(نسائي ابن ماجه)

**تخريج** : سنن النسائي ٦\ ٢٦٤، رقم: ٣٦٨٩، وابن ماجه ٢\ ٧٩٦، رقم: ٢٣٧٨.

**تشريح** دغه حديث شريف د امام شافعي رحمه الله دليل دی ځکه د هغه په نزد تحفه بېرته اخيستل جائز نه دي مگر پلار د خپل زوی څخه تحفه بېرته اخيستلای سي .

امام ابو حنیفة رحمة الله علیه فرمایي چي پلار د خپل زوی څخه تحفه بېرته اخیستلای سي، ددې مطلب دادی چي څرنګه یو پلار د ضرورت او حاجت په وخت کي د خپل اولاد د مال او زر څخه یو شی اخیستلای او مصرف کولای سي همدارنګه کوم شی چي هغه خپل زوی ته د تحفې په توګه ورکړی دی نو هغه هم د ضرورت په وخت کي اخیستلای او مصرف کولای سي.

## په اووه ۷ صورتونو کي تحفه بېرته اخیستل جائز نه دي

دا خبره مخکي سوې ده چي د امام ابو حنیفة رحمة الله علیه په نزد تحفه بېرته اخیستل جائز دي مګر مکروه دي، په کومو حدیثو کي چي د تحفې بېرته اخیستلو عدم جواز ثابتېږي هغه یې پر کراهت باندي محمول کړي دي مګر د تحفې اووه صورتونه داسي دي چي په هغو کي د امام ابو حنیفة رحمة الله علیه په نزد هم تحفه بېرته اخیستل جائز نه دي.

د فقهي په ځینو کتابو کي ددغه اوو حروفو د مجموعې (دمع خرمه) څخه هغه اوو صورتونو ته اشاره سوې ده په دې توګه چي ددغه لفظ د مجموعې هر حرف یو صورت ته اشاره کوي چي د هغه تفصیل او وضاحت دادی.

د دال د حرف څخه مراد زیادتي متصله ده یعني په کومه تحفه کي چي د یو شی اضافه سوې وي یا په هغه کي یو شی ګډ سوی وي نو د هغه تحفې بېرته اخیستل صحیح نه دي د مثال په توګه زید بکر ته د مځکي یوه داسي برخه تحفه کړه چي په هغه کي نه سرای وو او نه درختي وغیره، اوس بکر په هغه مځکه کي سرای جوړ کړی یا په هغه کي یې درختي ولګولې نو په دغه صورت کي تحفه ورکونکی یعني زید لپاره دا جائز نه دي چي هغه خپل تحفه یعني مځکه د هغه څخه بېرته واخلي.

د میم حرف د واهب یا موهوب له مرګ ته اشاره کوي، ددې تفصیل دادی چي د مثال په توګه زید بکر ته یو شی په تحفه کي ورکړ بیا زید مړ سو نو اوس د حسن وارثانو ته دا حق نه سته چي هغوی د موهوب له یعني بکر څخه د هغه شي د بېرته اخیستلو غوښتنه وکړي کوم چي زید هغه ته تحفه کړی دی، یا بکر مړ سي او واهب یعني زید ته دا حق نه سته چي هغه د بکر د وارثانو څخه د هغه شي په باره کي غوښتنه وکړي کوم چي هغه بکر ته تحفه کړی دی.

د ع حرف هبه بالعوض ته اشاره کوي یعني که یو څوک یو چا ته خپل یو شی د یو شي په عوض کي تحفه کړي نو واهب ته د خپل هغه تحفه سوي شي د بېرته اخیستلو حق نه سته.

د خ حرف خروج طرف ته اشاه کوي یعني که چیري موهوب د مرهوب له د ملکیت څخه وتلي وي په دې توګه چي هغه د تحفې شی خرڅ کړی وي یا یې یو چا ته ورکړی وي نو په دغه

صورت کي واهب د موهوب له څخه د هغه شی غوښتنه نه سي کولای .

د زاء حرف څخه زوجین ته اشاره ده یعني خاوند خپل ښځي ته یا ښځه خپل خاوند ته یو شی په تحفه کي ورکړي نو هغوی د یو بل څخه د هغه شي د بېرته اخیستلو حق نه لري .

د ق حرف قرابت ته شاره کوي او قرابت هم هغه چي په هغه کي محرمیت وي یعني که یو پلار خپل زوی ته یا یو زوی خپل پلار ته یا مور ته یا انا ته یا ورور ته یا بل یو قریب ته چي د هغه سره د محرمیت قرابت وي خپل یو شی په تحفه کي ورکړي نو د هغه تحفې بېرته اخیستل د هغه لپاره جائز نه دي .

د هاء حرف د موهوب د هلاکت او ضائع کېدو طرف ته اشاره ده یعني که چیري موهوب د موهوب له څخه هلاک یا ضائع سوي وي نو د واهب لپاره دا جائز نه ده چي هغه د موهوب له څخه د هغه شي غوښتنه وکړي .

## د یو شي ورکول او بیرته اخیستل ښه کار نه دی

﴿۲۸۹۱﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ وَابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه او حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

يَحِلُّ لِرَجُلٍ أَنْ يُعْطِيَ عَطِيَّةً ثُمَّ يرجع فِيهَا إِلَّا الْوَالِدَ فِيمَا يُعْطِي وَلَدَهُ

ورکړل سوی شی واپس اخیستل جائز نه دي خو پلار خپل زوي ته ورکول سوي شی واپس اخیستلای سي

وَمَثَلُ الَّذِي يُعْطِي الْعَطِيَّةَ ثُمَّ يَرْجِعُ فِيهَا كَمَثَلِ الْكَلْبِ اكل فَإِذَا شَبِعَ قَاءَ ثُمَّ عَادَ فِي قَيْئِهِ . رواه ابوداؤد.

د هغه مثال د هغه سپي په شان دي چي ښه په موړ نس خوراک وکړي او کله چي يې نس ډک سي قی ووهي او بیا هغه قی وخوري . (ابو داؤد ترمذي نسائي ابن ماجه) او په ترمذي کي د دې حدیث تصحیح سوېده .

**تخریج**: ابوداود في السنن ۳\۸۰۸، رقم: ۳۵۳۹، الترمذي في السنن ۴\۳۸۴، رقم: ۲۱۳۲، والنسائي ۶\۶۵، رقم: ۳۶۹۰، وابن ماجه في السنن ۲\۷۹۵، رقم: ۲۳۷۷.

## د تحفې بدله تحفه

﴿۲۸۹۲﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ أَعْرَابِيًّا أَهْدَى لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي يوه صحرائي يوه اوښه رسول الله ﷺ ته په هبه کي

بَكْرَةً فَعَوَّضَهُ مِنْهَا سِتَّ بَكَرَاتٍ فَتَسَخَّطَهُ فَبَلَغَ ذٰلِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

ورکړه نبي کريم ﷺ و هغه ته په تحفه کي شپږ ځواني اوښي ور کړې مگر هغه خوشحاله نه سو رسول الله ﷺ ته چي د دې خبر ورسيدی

وَسَلَّمَ فَحَمِدَ اللّٰهَ وَأَثْنَى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ إِنَّ فُلَانًا أَهْدَى إِلَيَّ نَاقَةً فَعَوَّضْتُهُ مِنْهَا

نو نبي کريم ﷺ (د خلکو په مينځ کي ودرېدی) اول يې د خداي تعالي حمد او ثنا بيان کړه بيا يې وفرمايل: فلاني سړي ماته يوه اوښه په هديه کي را کړل ما و هغه ته په بدله کي شپږ ځواني

سِتَّ بَكَرَاتٍ فَظَلَّ سَاخِطًا لَقَدْ هَمَمْتُ أَنْ لَا أَقْبَلَ هَدِيَّةً إِلَّا مِنْ قُرَشِيٍّ أَوْ أَنْصَارِيٍّ أَوْ ثَقَفِيٍّ أَوْ دَوْسِيٍّ. رواه الترمذي و ابوداؤد والنسائي.

اوښي ورکړې مگر په دې هم هغه خوشحاله نه سو اوس ما اراده کړېده چي د قرشي، انصاري ثقفي او دوسي خلکو څخه پرته د بل چا هديه نه قبلوم. (ترمذي ابو داؤد نسائي).

**تخريج**: الترمذي في السنن ٥\٦٨٦، رقم: ٣٩٤٥، وابوداود ٣\٨٠٧، رقم: ٣٥٣٧، والنسائي ٦\٢٨٠، رقم: ٣٧٥٩.

**تشريح**. که تاسو يو چا ته خپل يو شی د تحفې په توگه ورکړی نو د هغه د عوض او بدلې توقع کول ستاسو د خلوص خلاف کار دی مگر که تاسو ته ځوک خپل يو شی د تحفې په توگه درکړي نو په هيڅ صورت کي هم ستاسو له خوا د بدلې ادا کول به ستاسو د لوړ همتۍ او ستاسو ميني مطابق وي . کله چي به يو صحابي رسول الله ﷺ ته يو شی د تحفې په توگه ورکړی نو د هغه د بدلې معمولي خواهش به هم د هغه په ذهن کي نه وو ځکه چي د هغه تحفه به سر تر پايه د خلوص او ميني يو اظهار وو مگر د دې سربېره د رسول الله ﷺ په خدمت کي چي به يو شی د تحفې په توگه راوړل سو نو رسول الله ﷺ به يو صورت کي د هغه بدله د هغه څخه زياته ورکول او د رسول الله ﷺ دا معمول د سخاوت، برکت، لوړ همتۍ او تعلق د يو عظيمي جذبې مظهر وو.

کله چي یو صحرائي سړي د رسول الله ﷺ په خدمت کي یو اوښه راوستل نو رسول الله ﷺ د معمول سره سم د هغه د تحفې څخه څو برابر زیاته بدله یعني شپږ ځواني اوښي هغه ته ورکړې مګر هغه په دې هم خوشحاله نه سو ، دا خبره یقینا ډېره عجیبه وه یو خو په دې وجه چي په ظاهره هغه په خپله تحفه کي مخلص نه وو د هغه مطلب دا وو چي هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کي اوښه ددې لپاره راوستلې وه چي رسول الله ﷺ هغه ته بدله ورکړي او بدله هم داسي چي د هغه د خواهش مطابق وي کوم وخت چي رسول الله ﷺ هغه ته شپږ اوښي ورکړې نو هغه په دې خوشحاله نه سو او همدرانګه هغه په دنیوي مال کي د حرص د جذبې اظهار وکړ د هغه دغه کار رسول الله ﷺ ته دومره ناخوښه سو چي رسول الله ﷺ دا اعلان وکړ چي ما د قریشي، انصاري، ثقفي او دوسي څخه پرته د بل چا څخه د تحفې نه قبلولو اراده کړې ده .

قریشي هغه خلکو ته وایي چي د هغوی تعلق د قریشو سره وي او د انصاري څخه مراد د مدینې منورې انصار دي ، ثقفي او دوسي د دوو قبیلو نومان دي ، رسول الله ﷺ دغه قبیلې په خاصه توګه ځکه ذکر کړې او د هغوی استثناء یې وکړه چي دغه قبیلې په لوړ همتۍ، لوړې حوصلې، او سخاوت کي د امتیازي حیثیت خاوندان دي .

﴿۲۸۹۳﴾: وَعَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ أُعْطِيَ عَطَاءً

د حضرت جابر ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : چا ته چي یو شی ورکول سي

فَوَجَدَ فَلْيَجْزِ بِهِ وَمَنْ لَمْ يَجِدْ فَلْيُثْنِ فَإِنَّ مَنْ أَثْنَى فَقَدْ شَكَرَ وَمَنْ كَتَمَ

او د هغه د ورکولو توان ولري نو خامخا دي دهغې په بدله کي یو شی ورکړي او کوم څوک چي د هبې د بدلې توان و نه لري نو هغه دي د هبې د ورکونکي تعریف وکړي ځکه چي چا تعریف وکړ هغه شکر ادا کړ او چا چي احسان پټ کړ یعني نه یې بدله ورکړه او نه یې تعریف

فَقَدْ كَفَرَ وَمَنْ تَحَلَّى بِمَا لَمْ يُعْطَهُ كَانَ كَلَابِسِ ثَوْبَيْ زُورٍ . رواه الترمذي وابوداؤد

وکړ نو هغه د نعمت ناشکري وکړه او څوک چي په ځان کي هغه شی ظاهره کړي چي په هغه کي نه وي (مثلا د دین او د دنیا د کمال اظهار یا علماؤ او صلحاؤ لباس په اغوستو سره خپل ځان عالم او صالح ښکاره کړي نو د هغه مثال د هغه چا په شان دي چي یوه داسي جامه واغوندي چي دوه ښکاري). (ابو داؤد ترمذي) .

**تخریج**: الترمذي في السنن ۴\۳۳۲، رقم: ۲۰۳۴، وابوداود ۵\۱۵۸، رقم: ۴۸۱۳.

**تشریح** د مُحسن (احسان کونکي) تعریف کول د هغه د شکر ادا کولو قائم مقام ځکه ګرځول سوی دی چي تعریف کول په اصل کي د شکر ادا کولو یو ښاخ دی، د شکر مفهوم دادی چي په زړه کي مینه ساتل په ژبه سره تعریف کول او په لاسو او پښو سره خدمت کول.

د حدیث د آخري برخي مطلب دادی چي کوم څوک په خپل ځان کي د یو داسي دیني یا دنیوي کمال او صفت اظهار وکړي چي په حقیقت کي په هغه کي نه وي نو هغه په دروا غو باندي د دوو جامو اغوستونکي په ډول دی، په درواغو د دوو جامو اغوستونکي څخه مراد هغه سړی دی چي د علماؤ او صالحینو د جامې په اغوستلو سره خپل ځان عالم او صالح ظاهر کړي حالانکه په حقیقت کي نه هغه عالم وي او نه صالح وي.

ځیني حضرات وايي چي ددې څخه مراد هغه سړی دی چي هغه داسي قمیص اغوندي چي د هغه د لستوڼو لاندي نور دوه لستوڼي لګېدلې وي چي لیدونکی دا وګڼي چي هغه دوه قیمصه اغوستي دي، او ځیني حضرات وايي چي په عربو کي یو سړی وو چي دوه ډوله جامې به یې اغوستلې چي خلک یې عزتمند او د حیثیت خاوند وګڼي او کله چي به هغه د درواغو شاهدي ورکول نو د هغه د ظاهري شک په لېدو سره خلکو به هغه درواغجن نه ګڼی رسول الله ﷺ دغه سړي ته د هغه سړي سره تشبیه ورکړې ده چي خپل ځان د داسي کمال خاوند ظاهر کړي چي په هغه کي یې نوم او نښان هم موجود نه وي.

## د احسان کونکي لپاره د خیر دعاء

﴿۲۸۹۴﴾: وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ مَنْ صُنِعَ إِلَيْهِ مَعْرُوفٌ فَقَالَ لِفَاعِلِهِ جَزَاكَ اللّٰهُ خَيْرًا فَقَدْ أَبْلَغَ فِي الثَّنَاءِ. رواه الترمذي.

د حضرت اسامه بن زید رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د چا سره چي احسان وسي او هغه د خپل محسن په حق کي دا الفاظ ووايي جزاک الله خیرا (خداي دي تاته د خیر جزا درکړي) نو هغه د خپل محسن پوره تعریف وکړ. (ترمذي).

**تخریج**: الترمذي في السنن ۴\۳۳۳، رقم: ۲۰۳۵.

**تشریح** او پوره تعریف یې وکړ یعني هغه د خپل محسن په حق کي د دعاء د الفاظ په ویلو سره هغه شکر ادا کړی ځکه چي هغه د خپل محسن په بدله ورکولو او د هغه په تعریف کولو کي د

خپل کوتاهي، اعتراف او د ځان د عاجز کېدو په اقرار سره د هغه بدله الله تعالی ته منسوب کړل چي الله تعالی دي هغه ته په دنیا او آخرت کي پوره اجر ورکړي او ظاهره ده چي د الله تعالی د اجر څخه غوره اجر څوک ورکولای سي.

یو جلیل القدر بزرګ او شیخ حضرت عبدالوهاب متقي رحمه الله به ویل چي صوفي ته پکار دي چي هغه د الله تعالی د مخلوق د ورکولو یا نه ورکولو په دواړو صورتو کي د استقامت د دائرې څخه دباندي ونه وځي او نه د حق د لارې څخه قدم بلې خوا ته کړي که یو فاسق او نااهل سړی هغه ته یو شی د تحفې په توګه ورکړي نو د هغه دي دومره تعریف نه کوي چي هغه د یو صالح او ولي په صف کي ودروي بلکه د هغه په حق کي دي دغه الفاظ ووایي چي الله تعالی دي ت ته د خیر جزا درکړي او که هغه ته د یو صالح او متقي سړي یو تکلیف ورسیږي نو محض د هغه په وجه دي د هغه د صالح کېدو او تقوا نفي نه کوي او هغه ته دي بد او رد نه وایي بلکه د هغه په حق کي دي دغه الفاظ ووایي چي (غفر الله له ولنا) یعني الله تعالی دي د هغه او زموږ مغفرت په برخه کړي، د اهل استقامت دا طریقه ده او دا د هغوی د عمل لاره ده.

## د انسان شکر نه ادا کونکی د الله جل جلاله شکر هم نه ادا کوي

﴿۲۸۹۵﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ لَمْ يَشْكُرِ النَّاسَ لَمْ يَشْكُرِ اللَّهَ. رواه احمد والترمذي.

د حضرت ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: څوک چي د انسانانو شکریه ادا نه کړي نو هغه د الله تعالي شکر هم نه ادا کوي. (احمد ترمذي)

**تخریج**: احمد في المسند ۳\۳۲، والترمذي في السنن ۴\۲۹۹، رقم: ۱۹۵۵

**تشریح** مطلب دادی چي د الله تعالی د شکر ادا کولو تکمیل پر دې منحصر دی چي د هغه پیروي وکړل سي په دې توګه چي هغه د هغه انسانانو چي تر هغه پوري د الله تعالی د نعمتونو د رسیدو ظاهري وسیله جوړه سوې ده د شکر ادا کولو کوم حکم چي ورکړل سوی دی د هغه پیروي وکړل سي نو کوم څوک چي د الله تعالی پیروي ونه کړي او د هغه حکم یې پر ځای نه کړی په دې معنی چي هغه د هغه خلکو شکر ادا نه کړ چي د هغوی په وسیله سره الله تعالی خپل نعمتونه هغه ته ورکړي دي نو ددې مطلب به دا وي چي هغه د الله تعالی د نعمتونو شکر هم ادا نه کړ، او یا ددغه حدیث مطلب دادی چي کوم څوک د خپل محسن شکر نه ادا کوي او د هغه

سره د سوي احسان او ښه چلن اقرار نه کوي نو هغه د نعمت د کفران (ناشکرئ) خپل دغه عادت په وجه د الله تعالی شکر هم نه ادا کوي.

## د نعمت د شکر اهمیت

﴿۲۸۹۶﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ لَمَّا قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ أَتَاهُ

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ و مدینې منورې ته تشریف راوړ نو

الْمُهَاجِرُوْنَ فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا رَأَيْنَا قَوْمًا أَبْذَلَ مِنْ كَثِيْرٍ وَلَا أَحْسَنَ

مهاجرین د نبي کریم ﷺ په خدمت کي حاضر سول او عرض یې وکړ: یا رسول الله! د کوم قوم چي موږ یې په کورو کي او سیږو (انصار) د هغوی په شان مو بل غوره قوم نه دي لیدلئ

مُوَاسَاةً مِنْ قَلِيْلٍ مِنْ قَوْمٍ نَزَلْنَا بَيْنَ أَظْهُرِهِمْ لَقَدْ كَفَوْنَا الْمُؤْنَةَ وَأَشْرَكُوْنَا

ډېر غنیان زموږ لپاره زیات خرڅونکي او په لږ مال باندي ښه خدمت او کومک کوونکي او موږ د دوي په وسیله باندي د خوارئ څخه خلاص یو او په خپلي ګټي کي یې موږ شریکان کړو

فِي الْمَهْنَإِ حَتّٰى لَقَدْ خِفْنَا أَنْ يَذْهَبُوْا بِالْأَجْرِ كُلِّهِ فَقَالَ لَا مَا دَعَوْتُمُ اللّٰهَ لَهُمْ وَأَثْنَيْتُمْ عَلَيْهِمْ. رواه الترمذي و صححه.

تر دې پوري چي هغوی زموږ سره (دومره ښه) چلن وکړ چي زموږ سره دا ویره پیدا سوه چي ټول ثواب یوازي دوی یو نسي نبي کریم ﷺ وفرمایل یا هغوی ټوله ثواب نسي وړلاي تر څو پوري چي تاسو د هغوی لپاره دعاوي کوئ او د هغوی تعریف کوئ. (ترمذي).

**تخريج**: الترمذي في السنن ۴\۵۶۳، رقم: ۲۴۸۷.

**د لغاتو حل**: في المهنا: ما يقوم بالكفاية واصلاح المعيشة.

**تشریح** کله چي نبي کریم ﷺ د مکې مکرمې څخه په هجرت کولو سره په مدینه منوره کي هستوګنه اختیار کړل او د رسول الله ﷺ سره د مهاجرینو یو لوی شمېر هم په مدینه کي هستوګنه اختیار کړه نو د مدینې او سیدونکو یعني انصارو چي د هغوی سره کوم ښه چلن وکړ او د سخاوت، اخوت او مینې کوم عظیم روایت یې چي قائم کړی ښېله مبالغې انساني تاریخ د هغه د مثال وړاندي کولو څخه قاصر دی د مدینې انصارو د مکې د مهاجرینو لپاره نه یوازي د

زړه سترګي د لاري فرش کړې بلکه د خپل ويني او خولې ګټه به يې هم د هغوی لپاره وقف کړل، هغوی خپل مځکي، خپل باغونه او خپل سرايونه نيم په نيم په هغوی کي وويشل د هغوی په خدمت او خاطر کي د شرافت انساني ټولي بلندۍ يې تر شا وغورځولې د هغوی دغه طرز عمل او بې پايه احساناتو مهاجرين دومره متاثر کړل چي هغوی د رسول الله ﷺ په خدمت کي خپل دغه انديښنه وړاندي کړه چي اې د الله رسوله ! دا سي نه وي چي دغه انصار ټول ثواب واخلي ځکه چي موږ خو تر ننه پوري تر دوی زيات قرباني کونکي، مخير او سخي او احسان کونکي قوم نه دی ليدلی ، د وئ د مال او زر د کموالي او زياتوالي څخه په بې نيازه کېدو سره زموږ سره احسان کوي د چا سره چي زيات مال وو هغه يې پر موږ هم دومره زيات خرڅ کړ او د چا سره چي کم مال وو هغه د هغه مطابق زموږ مرسته وکړه، يعني دچا چي څومره وس وو هغه په خپل حيثيت سره زموږ مېلمستيا وکړه تر دې چي د هغوی په ذريعه موږ د محنت او مشقت څخه هم وساتل سو په دې توګه چي د کرني محنت د باغو او د درختو د ساتني تکليف او د سرايو د جوړولو مشقت هغوی پر خپل ذمه واخيستی مګر په ګټه او حاصلاتو کي موږ د هغوی شريک يو چي هغوی په خپل مځکه او باغو کي په محنت سره په محنت او تکليف سره څه کري نو هغه نيم په نيمه زموږ سره ويشي اوس خو زموږ سره دا بېره ده چي زموږ دغه ټول ثواب هغوی تر لاسه نه کړي او دا بېره ده چي زموږ هجرت او زموږ د عبادتو ثواب الله تعالی د هغوی د بې پايه مرستي په وجه د هغوی په عمل نامه کي ونه ليکي .

مګر رسول الله ﷺ هغوی ته وفرمايل چي داسي نه سي کيدای ځکه چي د الله تعالی فضل او کرم ډېر پراخ دی د هغه سره د اجر کمي نه سته تاسو ته به ستاسو د عبادت ثواب تر لاسه کيږي او انصارو ته به د هغوی د مرستي او د هغوی د سخاوت اجر ورکول کيږي تر څو چي تاسو د هغوی لپاره د خير دعاء کوئ ځکه چي دهغوی په حق کي ستاسو دغه دعاء به د هغوی د احسان بدله سي او ستاسو د عبادت ثواب به تاسو ته تر لاسه کيږي .

## يو بل ته تحفې ورکول عداوت له منځه وړي

﴿۲۸۹۷﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ تَهَادَوْا فَإِنَّ الْهَدِيَّةَ تُذْهِبُ الضَّغَائِنَ . رواه الترمذي.

د بي بي عائشې رض څخه روايت دی چي نبي کريم ﷺ و فرمايل : په خپلو کي تحفې او هديې

ليږئ په دې سره د انسان بغض او كينه ليري كيږي (او محبت زياتيږي). (ترمذي)

**تخريج**: بياض في الاصل، قال ملا علي في المرقاة ۳\۳۸۰: والحق به: الترمذي.

**تشريح** مطلب دادى چي د تحفې په وركولو سره يو تر بله د بغض او عداوت جذبات ختميږي او د دې پر ځاى الفت او مينه پيدا كيږي.

د مشكوة شريف په اصل نسخه كي د لفظ رواه څخه وروسته خالي ځاى وو چي د هغه مطلب دادى چي د مشكوة مؤلف ته د دغه حديث د ماخذ علم نه وو سوى او وروسته بيا يو چا د الترمذي لفظ زيات كړى دى.

### د كم شي تحفه سپكه مه ګڼئ

﴿۲۸۹۸﴾: وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ تَهَادَوْا فَإِنَّ الْهَدِيَّةَ تُذْهِبُ وَحَرَ الصَّدْرِ وَلَا تَحْقِرَنَّ جَارَةٌ لِجَارَتِهَا وَلَوْ شِقَّ فِرْسِنِ شَاةٍ. رواه الترمذي.

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په خپلو كي تحفې او هديې ليږئ ځكه چي په هديه سره د سينو خيري ليري كيږي او يوه همسايه و بل همسايه ته هديه ليږل سپک مه ګڼئ كه څه هم هغه هديه د پسه د ښونګري يوه ټوټه وي. (ترمذي)

**تخريج**: الترمذي في السنن ۴\۳۸۳، رقم: ۲۱۳۰.

**د لغاتو حل**: وَحر: اى غشه و وسوسته.

**تشريح**: مطلب دادى چي يو څوک دي خپل همسايه ته د يو كم شي د تحفې په توګه استول د هغه همسايه په حق كي حقير نه ګڼي بلكه څه چي استول غواړي هغه دي واستوي كه څه هم هغه ډېر كم او معمولي شى وي، همدارنګه كوم همسايه ته چي تحفه استول سوي وي د هغه لپاره دا مناسب نه ده چي د خپل همسايه تحفه سپكه وګڼي بلكه هغه ته چي كومه تحفه راواستول سي هغه دي په شوق او خوشحالي سره قبوله كړي كه څه هم هغه لږ او معمولي شى وي.

﴿۲۸۹۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثٌ لَا تُرَدُّ الْوَسَائِدُ وَالدُّهْنُ وَاللَّبَنُ. رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب قِيْلَ اَرَادَ بِالدُّهْنِ الطِّيْبَ.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دى چي نبي كريم ﷺ وفرمايل: درې شيان داسي دي چي د

هغه د قبلولو څخه انکار باید ونسي، یو تکیه (بالښت)، دویم تیل د سر غوړولو او دریم شیدې، امام ترمذي دا حدیث نقل کړی دی او فرمایي چي دا حدیث غریب دی.

**تخریج**: الترمذي في السنن ۵\ ۱۰۰، رقم: ۲۷۹۰.

**تشریح** مطلب دادی که چیري یو سړی خپل مېلمه ته د تواضع په توګه بالښت ورکړي یا خوشبویي ورکړي یا د څښېنلو لپاره شیدې یا بل شی ورکړي د هغه مېلمه لپاره مناسب نه دي چي د هغه د قبلولو څخه انکار وکړي، د ځینو حضراتو رایه ده چي د دُهن (تېل) څخه مراد خوشبویي ده لکه څرنګه چي په ترجمه کي ذکر سوي دي مګر صحیح خبره داده چي د دُهن څخه تېل مراد دي ځکه چي په هغه زمانه کي د عربو اکثرو خلکو په خپل سرونو کي تېل لګول.

**د خوشبوداره ګلانو تحفه مه رد کوئ**

﴿۲۹۰۰﴾: وَعَنْ أَبِي عُثْمَانَ النَّهْدِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ إِذَا أُعْطِيَ أَحَدُكُمُ الرَّيْحَانَ فَلَا يَرُدَّهُ فَإِنَّهُ خَرَجَ مِنَ الْجَنَّةِ. رواه الترمذي مرسلا.

د حضرت ابو عثمان نهدی رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: که څوک در ته خوشبوداره ګل درکړي نو انکار مه کوه ځکه چي ګل د جنت څخه راغلي دي دا حدیث ترمذي مرسلا روایت کړی دی.

**تخریج**: الترمذي في السنن ۵\ ۱۰۰، رقم ۲۷۹۱.

**تشریح** هغه ګل د جنت څخه راغلی دی: ددې مطلب دادی چي د خوشبویي لرونکي ګل یو فضیلت او خصوصیت دادی چي د هغه تخم د جنت څخه راغلی دی همدارنګه د هغه څخه چي کومه خوشبویي راځي هغه د جنت خوشبویي ده او بیا دا چي د ګل تحفه ډېر لږ احسان لري لکه څرنګه چي په تېرو مخونو کي ددې وضاحت بیان سوی دی نو کله چي یو چا ته ګل ورکړل سي نو د هغه د قبلولو څخه دي انکار نه کوي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

**په اولاد کي د یوه سره ترجیحي سلوک کول مناسب نه دي**

﴿۲۹۰۱﴾: عَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَتْ امْرَأَةُ بَشِيرٍ انْحَلْ ابْنِي غُلَامَكَ وَأَشْهِدْ لِي

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دی چي د بشیر رضي الله عنه ښځي و بشیر ته وویل زما زوی (نعمان) ته

يو غلام وركړه او رسول الله ﷺ شاهد كړه پر دې خبره

رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَتَى رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ

هغه د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر سو او عرض يې وكړ (يا رسول الله!)

إِنَّ ابْنَةَ فُلَانٍ سَأَلَتْنِي أَنْ أَنْحَلَ ابْنَهَا غُلَامِي وَقَالَتْ أَشْهِدْ لِي رَسُولَ اللهِ صَلَّى

د فلاني سړي لور (يعني دده ښځي) هغه ته دا حكم څرګند كړ چي زه د هغې و زوی ته خپل يو غلام وركړم او دا يې ويلي دي چي په دې رسول الله ﷺ شاهد جوړول غواړم

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَلَهُ إِخْوَةٌ قَالَ نَعَمْ قَالَ أَفَكُلَّهُمْ أَعْطَيْتَ مِثْلَ مَا أَعْطَيْتَهُ

نبي كريم ﷺ ځيني پوښتنه وكړه ايا د دې هلك نور وروڼه سته ؟ بشير ﷺ وويل : هو! نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل ايا تا خپلو ټولو زامنو ته غلامان وركړي دي ؟

قَالَ لَا قَالَ فَلَيْسَ يَصْلُحُ هَذَا وَإِنِّي لَا أَشْهَدُ إِلَّا عَلَى حَقٍّ . رواه مسلم .

هغه وويل يا ! نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل : دا مناسبه نه ده او زه د ناحقه شاهد نه جوړېږم د حق شاهد كېږم .(مسلم).

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۳\ ۱۲۴۴، رقم: ۱۹- ۱۶۲۴.

**د لغاتو حل**: انحل: اى اعط . (وركړه).

**تشريح**. د حق څخه مراد يا خو دادی چي زه يوازي د هغه پر خبره باندي شاهد جوړېږم چي ښېله شكه او ښېله كراهته په خاصه توګه حق او صحيح وي يا دا چي رسول الله ﷺ په عمومي توګه سره دا وفرمايل چي زه پر حق باندي شاهد جوړېږم پر باطل باندي شاهد نه جوړېږم ، په هر حال په دې اړه تفصيلي بحث د اول فصل په حديث كي تېر سوی دی .

## رسول الله ﷺ به د نوي ګل تحفه څرنګه قبلول

﴿۲۹۰۲﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أُتِيَ

د حضرت ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي ماليدلي دي چي كله به د رسول الله ﷺ په خدمت

بِبَاكُورَةِ الْفَاكِهَةِ وَضَعَهَا عَلَى عَيْنَيْهِ وَعَلَى شَفَتَيْهِ وَقَالَ اللَّهُمَّ كَمَا أَرَيْتَنَا

کي به مېوه حاضره سول نو نبي کريم ﷺ به په خپلو سترګو او شونډو مبارکو با ندي ايښودل او فرمايل به يې: اې الله! څنګه چي تا موږ ته د دې ميوې شروع وښوده همد غسي د دې انجام

أَوَّلَهُ فَأَرِنَا آخِرَهُ ثُمَّ يُعْطِيهَا مَنْ يَكُونُ عِنْدَهُ مِنَ الصِّبْيَانِ . رواه البيهقي في الدعوات الكبير.

هم را وښايه بيا به نبي کريم ﷺ هغه مېوه و هغه کوچني ته ورکړه چي هغه وخت به د نبي کريم ﷺ سره موجود وو . (په بيهقي دعوات کبير کي).

**تخريج**: رواه البيهقي في الدعوات الكبير.

**تشريح**: د تازه ميوې پر خپلو سترګو ايښودل په دې سره د رسول الله ﷺ مقصد د الله تعالی د يو تازه نعمت تعظيم او شکر ادا کول وو ، د انتهاء تعلق که چيري د دنيا سره وي نو بيا دغه دعاء به د عمر د اوږدوالي لپاره وي او که ددې تعلق د آخرت سره وي نو ددې څخه به دې ته اشاره وي چي د آخرت په وړاندي د دنيا څه حقيقت دی ؟ لوی نعمت خو د آخرت نعمت دی همدارنګه ددغه دعاء مطلب به دا وي چي اې الله ! څرنګه چي تا موږ ته ددغه دنيا نعمتونه راکړي دي همدارنګه د آخرت نعمتونه هم چي حقيقي نعمتونه دي راکړه .

==========

## بَابُ اللُّقْطَةِ (دورک سوي شي بيان)

لُقطه د لام په پېښ او د قاف په زبر سره يعني لُقِطه هم نقل سوې ده او د قاف په جزم سره يعني لُقطه هم ويل کيږئ د محدثينو په نزد د قاف په جزم سره مشهوره ده .

لقطه هغه شي ته وايي چي يو ځای (په لاره يا بل ځای کي) پروت وي او تر لاسه سي او د هغه د مالک علم نه وي ، په دې باره کي شرعي حکم دا دی چي چيري يو ورک سوی شی تر لاسه سي نو هغه پورته کول مستحب دي په شرط ددې چي پر خپل ځان باندي باور وي چي ددغه شي په تشهير کولو سره به يې د هغه مالک ته وسپاري ، که چيري پر خپل ځان باور نه وي نو بيا د هغه شي هلته پرېښودل غوره دي ، مګر که چيري دا ېېره وي که هغه شی هلته پرېښودل سي نو ضائع به سي نو په دغه صورت کي د هغه پورته کول واجب دي که چيري ليدونکی هغه پورته نه کړي او هغه شی ضائع سي نو ګناه کار به وي، دا خو د لقطې اصول حکم دی اوس دلقطې يو څو مسائلو ته راسئ :

لقطه د هغه چا سره امانت وي چا چي هغه پورته کړې ده په شرط ددې چي يو څوک شاهد کړي چي زه دغه شی د ساتلو يا د هغه مالک ته د رسولو لپاره پورته کوم ، په دغه صورت کي هغه لقطه که د پورته کونکي څخه ضائع سي نو پر هغه تاوان نه واجبېږي او که چيري پورته کونکی يو څوک پر هغه شاهد کړی او هغه لقطه د هغه څخه ضائع سوه نو پر هغه به تاوان واجب وي په شرط ددې چي د لقطې مالک دا انکار وکړي چي هغه دغه شی ما ته د راکولو لپاره نه وو پورته کړی .

لقطه چي د کوم ځای څخه را پورته کړل سي پر هغه ځای هم او چيري چي د خلکو اجتماع وي هلته دي د هغه تشهير وکړي يعني پورته کونکی دي داسي ووايي چي دا شی د چا دی او دغه تشهير تر هغه وخته پوري کول پکار دی تر څو چي پورته کونکی ته دا يقين وسي چي اوس د دومره ورځو څخه وروسته به د هغه مالک غوښتنه نه کوي مګر د صاحبينو په نزد د تشهير وخت يو کال دی يعني د دوی په نزد مسئله داده چي تر يو کال پوري دي د لقطې تشهير وکړل سي او کوم شی چي تر زياتو ورځو پوري نه سي پاته کيدای د هغه تشهير دي يوازي تر هغه وخته پوري وکړل سي تر څو چي د هغه د خرابېدو بيره نه وي .

د لقطې د تشهير په دوران کي که چيري د هغه مالک راسي نو هغه ته دي خپل شی ورکړي کنه نو د تشهير د وخت تېرېدو وروسته دي هغه شی خيرات کړل سي اوس که چيري د خيرات کولو څخه وروسته د هغه مالک راسي نو مالک ته اختيار دی که هغه وغواړي نو خيرات دي برقرار وساتي او د هغه د ثواب دي حقدار سي او که وغواړي د پورته کونکي څخه دي د هغه تاوان واخلي يا د هغه سړي څخه دي خپل شی بېرته واخلي کوم ته چي د خيرات په توګه ورکړل سوی دی او که چيري هغه شی د هغه سره موجود نه وي نو د هغه څخه دي تاوان واخلي لکه څرنګه چي د لقطې د حيوان حکم دی .

په حيوانانو کي لقطه کېدل هم جائز دي يعني که د چا ورک سوی حيوان يو څوک تر لاسه کړي نو د هغه نېول او د هغه په تشهير کولو سره د هغه مالک ته رسول جائز دي په دې باره کي مسئله داده چي د تشهير د وخت په دوران کي پر هغه حيوان باندي چي د خوراک او څښاک څه خرڅ سوی دی نو هغه به احسان ګڼل کيږئ يعني د هغه مطالبه به د مالک څخه نه کيږي په شرط ددې چي هغه خرڅ د حاکم د اجازې څخه پرته سوی وی او که حيوان تر لاسه کونکی په دې شرط سره په حيوان باندي خرڅ وکړي چي د حيوان د مالک څخه به يې اخلم او د حاکم په اجازه سره يې پر هغه حيوان خرڅ کړی وي نو د هغه ادا کول به پر مالک واجب سي کله چي مالک هغه

حیوان تر لاسه کړي نو د هغه حیوان نیونکي چي څه مصرف سوی دی هغه ټول به ادا کوي ، په دغه صورت کي لقطه پورته کونکي ته به دا حق حاصل وي چي تر څو پوري مالک هغه ته ټول مصرف ادا نه کړي هغه به لقطه د خپل ځان سره ساتي .

په دې اړه د قاضي او حاکم لپاره هم دا هدایت دی که چیري د لقطې پیدا کېدونکی شی یو داسي شی وي چي د هغه څخه ګټه تر لاسه کیدای سي لکه تښتېدلی غلام نو په هغه باندي کار او مزدوري کولای سي او هغه چي څه وګټي د هغه څخه دي دده مصرف پوره کړل سي او که چیري لقطه داسي شی وي چي د هغه څخه ګټه نه سي تر لاسه کیدای او د هغه په ساتلو کي مصرف وي لکه حیوان ، او قاضي د هغه د مصرف کولو اجازه ورکړي او دا فیصله وکړي چي پر هغه څه مصرف و سي هغه دي د مالک څخه تر لاسه سي په شرط ددې چي په هغه کي د مالک لپاره ګټه وي او که چیري قاضي ته معلومه سي چي په دغه صورت کي مالک ته د ګټي پر ځای تاوان دی نو بیا دي هغه شی خرڅ کړي او د هغه قیمت دي د ځان سره وساتي کله چي مالک راسي نو هغه دي ورکي .

که چیري د یو چا سره لقطه (پیدا سوی شی) وي او یو څوک د هغه د نښو په ښوولو سره د خپل ملکیت دعوه وکړي نو د هغه شي هغه ته ورکول جائز دي په دغه صورت کي د شاهدانو ضرورت نه سته مګر که چیري هغه نښي ونه ښیي نو بیا د شاهدانو څخه پرته هغه شی هغه ته نه ورکول کیږي که چیري د هغه شي پیدا کونکی مفلس او غریب وي نو د تشهیر د وخت ختمېدو څخه وروسته دي هغه په خپل کار راولي او که چیري هغه شتمن وي نو بیا دي هغه شی خیرات کړي، په دې باره کي به هغه ته دا اجازه وي که چیري هغه وغواړي نو خپل اُصول یعني مور، پلار او یا خپل فروع یعني زوی، لور او ښځي ته دي یې د خیرات په توګه ورکړي په شرط ددې چي هغه خلک مفلس او غریب وي .

د تښتېدلي غلام نیول د هغه چا لپاره مستحب دي چي د هغه د نیولو توان ولري همدارنګه هغه غلام هم د ځان سره ساتل مستحب دي چي د هغه څخه لاره ورکه سوې وي .

که د یو چا غلام وتښتي او تر درو ورځو فاصلې یا ددې څخه زیات لیري یو سړی هغه ونیسي او مالک ته یې ورسوي نو هغه راوستونکی به ددې حقدار وي چي د غلام د مالک څخه د خپل مزدوری په توګه څلوېښت درهمه تر لاسه کړي که څه هم د هغه غلام د څلوېښتو درهمو څخه کم وي مګر شرط دادی چي راوستونکی پر دې خبره یو شاهد راولي چي زه دغه غلام ددې لپاره نیسم چي د هغه مالک ته یې ورسوم او که چیري یو سړی یو تښتېدلی غلام د

هغه د مالک څخه د درو ورځو په کم فاصلې باندي راولي نو هغه ته دي په هغه حساب سره مزدوري ورکړل سي مثلاً د یوې نیمي ورځي د فاصلې څخه یې راوستلی وي نو هغه ته به شل درهمه ورکوي او که چیري هغه غلام د هغه سړي څخه هم وتښتېږي کوم چي هغه نیولی وو نو په هغه به تاوان واجب نه وي په شرط ددې چي هغه یو ثوک شاهد کړي او که چیري هغه شاهد نه لري نو په دغه صورت کي نه یوازي دا چي هغه ته به مزدوري نه ورکول کیږي بلکه پر هغه به تاوان هم واجب وي.

## د بې وارثه کوچني د پورته کولو مسئله

که چیري لقیط (بې وارثه کوچنی) پیدا کړل سي نو د هغه پورته کول مستحب دي او که چیري د هغه د هلاکېدو بېره وي نو بیا د هغه پورته کول واجب دي د داسي کوچني تر څو چي غلام کېدل ثابت نه سي آزاد دی، د هغه کوچنی نفقه به د بیت المال (یعني حکومت) پر ذمه وي، همدارنګه د هغه میراث به هم د بیت المال وي، کوم ثوک چي بې وارثه کوچنی پورته کړي نو د هغه څخه به چا ته د اخستلو حق نه وي که یو سړی دا دعوه وکړي چي دا زما کوچنی دی نو په قسم سره د هغه قول معتبر دی او د هغه کوچنی نسب به د هغه څخه ثابتیږي او که چیري دوه کسان په یوه وخت کي د هغه دعوه وکړي نو د هغه کوچنی زیات حقدار هغه ثوک دی کوم چي د هغه کوچنی په بدن کي یو نښه وښیي او په کتلو سره هغه نښه موجوده وي مثلاً هغه دا وښیي چي د هغه پر شا باندي ټکی دی او بیا چي کله کوچنی وکتل سي نو د هغه پر شا ټکی موجود وي، که چیري یو غلام دعوه وکړي چي دغه کوچنی زما زوی دی نو د هغه دعوه به هم صحیح وي مګر هغه کوچنی به مسلمان وي په شرط ددې چي هغه د مسلمانانو په سیمه کي پیدا سوی وي او که چیري هغه د ذمیانو په کلي کي یا د هغوی په سیمه کي پیدا سوی وي یا د هغوی په سیمه کي د هغوی په مندر (عبادت ګاه) یا بل ځای کي پیدا سوی وي نو په دغه صورت کي به هغه ذمي وي، که چیري د پیدا سوي کوچني سره مال د هغه پر بدن مال باندي زیورات یا بل شی وي نو هغه به د قاضي د حکم څخه وروسته پر هغه کوچني مصرف کیږي که څه هم ځیني علماء وایي چي د قاضي د حکم او اجازې څخه پرته هم د هغه مال پر هغه مصرف کیدای سي، د صحیح قول سره سم د پورته کونکي لپاره دا جائز ده چي هغه په کوچني باندي د یو کسب زده کولو لپاره کسب کونکي ته حواله کړي مګر د هغه لپاره دا جائز نه دی چي د هغه نکاح وکړي یا د هغه په مال کي تصرف وکړي یا په هغه باندي مزدوري وکړي.

## د لقطې په باره یو څو نوري مسئلې

مسئله : که چیري یو سړی په یو ځای کي خپل څپلۍ وکاږي او ددې څخه وروسته یو بل سړی راسي او هغه هم خپل څپلۍ هلته وکاږي اوس اول سړی چي د هغه څخه روان سو نو د خپل څپلۍ په ښنو کولو پر ځای یې د هغه دوهم سړي څپلۍ په ښنو کړې او ولاړی ، نو اوس دا سوال پیدا کیږي چي په دغه صورت کي هغه دوهم سړي څه وکړي ایا د هغه لپاره دا جائز ده چي هغه د اول سړي څپلۍ په ښنو کړي؟ په دې باره کي مختاره مسئله داده چي دا جائز نه دي په شرط ددې چي د هغه اول سړي څپلۍ ددغه دوهم سړي د څپلیو په ډول وي یا د هغه د څپلیو څخه غوره وي مګر که چیري هغه څپلۍ خرابي وي نو د بیا د هغه استعمالولو بېله شکه جائز دي .

مسئله : که یو څوک د یو چا یو شی پیدا کړي نو ددې دوه ډولونه دي یو خو دا چي هغه شی دومره کمتر او معمولي وي چي د هغه په باره کي پیدا کونکی په دې پوهیږي چي ددې مالک به ددې غوښتنه نه کوي لکه هډوکي او داسي نور شیان یا په بېلابېلو ځایو کي پراته د انار پوستکي او داسي نور شیان نو دداسي شیانو په باره کي مسئله داده چي د هغه پیدا کونکی هغه په خپل استعمال کي راوستلای سي سره ددې چي د هغه په ملکیت کي نه راځي او د هغه مالک ته د اخیستلو حق دی مګر د شیخ الاسلام رحمة الله علیه قول دادی چي داسي شی د اخیستونکی په ملکیت کي راځي ، دوهم قسم داسي مال دی چي د هغه په باره کي پیدا کونکی په دې پوهیږي چي د هغه مالک به ددې غوښتنه کوي لکه سره زر، سپین زر او داسي نور شیان نو د داسي شیانو په باره کي دا حکم دی چي د هغه شي په لېدلو سره د هغه پورته کول او د ځان سره اېښودل پکار دي او د هغه تشهیر دي وکړي تر څو چي هغه شی د هغه مالک ته ورسوي .

مسئله : که یو څوک یوه روپې یا د یوې ډوډۍ په اندازه خوراک یا تر دې کم شي پیدا کړي نو هغه ته د پراخۍ په حالت کي هم د هغه خوړل جائز دي .

مسئله: که په یو ژرنده کي غنم اوړه کیږي او د هغه په اوړو کي هغه اوړه یو ځای سي کوم چي په عامه توګه سره په ژوند کي پاته کیږي نو په دې کي څه پروا نه سته ، همدارنګه که د یو چا د جارو څخه یو خاشه د غاښنو د خلالولو لپاره واخیستل سي نو په دې کي هم څه پروا نه سته .

مسئله : په یو سرای کي چي د مسافرو حیوانان خوشایي ، پچي او داسي نور شیان کوي نو د هغه د مالک د تللو څخه وروسته د هغه چا ملکیت کیږي څوک چي یې مخکي پورته کړي ، د سرای د مالک یا د چوکیدار په ملکیت کي نه راځي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړى فصل)

## كه يو څوك يو شى پيدا كړي نو څه وكړي؟

﴿۲۹۰۳﴾: عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت زيد بن خالد رضي الله عنه څخه روايت دى چي يو سړى د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر سو

فَسَأَلَهُ عَنِ اللُّقَطَةِ فَقَالَ اعْرِفْ عِفَاصَهَا وَوِكَاءَهَا ثُمَّ عَرِّفْهَا سَنَةً فَإِنْ جَاءَ

او د ((لقطه)) (د ورك سوي شى) په باره كي يې ځيني پوښتنه وكړه نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل: هغه شى چي په هغه كي بند دي په ښه ډول يې و پېژنه او د هغه سر بند (سر پټ) هم

صَاحِبُهَا وَإِلَّا فَشَأْنَكَ بِهَا قَالَ فَضَالَّةُ الْغَنَمِ قَالَ هِيَ لَكَ أَوْ لِأَخِيكَ أَوْ

ښه و پېژنه بيا تر يوه كاله پوري د هغه شى اعلان كوه كه د هغه مالك پيدا سو نو شى و خپل مالك ته وركړه او كه پيدا نسو نو په خپل خرڅ كي يې راوله

لِلذِّئْبِ قَالَ فَضَالَّةُ الْإِبِلِ قَالَ مَا لَكَ وَلَهَا مَعَهَا سِقَاؤُهَا وَحِذَاؤُهَا تَرِدُ الْمَاءَ

هغه سړي پوښتنه وكړه چي د ورك سوي پسه په اړه څه بيان دي؟ نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل: هغه ستا دي يا ستا د ورور دي يا د شرموښ بيا هغه د ورك سوي اوښ په اړه پوښتنه وكړه

وَتَأْكُلُ الشَّجَرَ حَتَّى يَلْقَاهَا رَبُّهَا. متفق عليه وفي رواية للمسلم فقال عرفها

نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل: د اوښ سره ستا څه كار دي؟ هغه خپلي اوبه لري (مشك) او د هغه پښې دى او بو ته رسوي او هغه د د رختو پاڼي خوري اخير دا چي د هغه مالك پيدا كيږي. (بخاري او مسلم) د مسلم شريف په روايت كي دا الفاظ زيات دي

سنة ثم اعرف وِكَائَهَا وَعِفَاصَهَا ثُمَّ اسْتَنْفِقْ بِهَا فَإِنْ جَاءَ رَبُّهَا فَأَدِّهَا إِلَيْهِ.

نبي كريم ﷺ دا وفرمايل: د يوه كاله پوري د دې اعلان كوه بيا په ښه شان يې شناخت وكړه د دې او د دې د سر بند او بيا هغه خپل په خرڅ كي راوله وروسته كه د هغه مالك پيدا سي نو څو مره مال چي يې كيږي هغه وركړه يا يې قيمت وركړه.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۵\ ۸۴، رقم: ۲۴۲۹، ومسلم ۳\ ۱۳۴۶، رقم: ۱- ۱۷۲۲،

**د لغاتو حل**: وِکائها: الخيط الذي تشد به الصرة والكيس ونحوهما. (هغه تار چي کڅوړه يا بل شی په تړل کيږي.). عِفاصها: ای وعاءها.

**تشریح** ابن مالک رحمه الله فرمايي چي رسول الله ﷺ د هغه شي د ظرف پيژندلو حکم ځکه وکړ چي کوم سړی د هغه شي د ملکيت دعوه وکړي نو د دغه پيژندني په وجه به د هغه رېښتينوالی او د رواغ معلوم سي مګر په دې اړه د علماؤ اختلاف دی که يو سړی د لقطې پورته کولو ته راسي او خپل ظرف د هغه د پيژندلو سره د هغه لقطه د مالک کېدو دعوه وکړي نو هغه لقطه هغه ته ورکول واجب دي که يا ؟ امام مالک او امام احمد رحمه الله وايي چي په دغه صورت کي هغه لقطه هغه ته د شاهدانو ځخه پرته ورکول واجب دي لکه څرنګه چي ظرف د هغه د پيژندلو دا مقصد وي ، مګر امام شافعي او امام ابو حنيفة رحمة الله عليهما وايي که چيري يو سړی د لقطې او د هغه د سربند (سرپټ) او د هغه لقطې وزن يا شمېر و ښيي او د لقطه پورته کونکي په زړه کي دا خبره راسي چي دغه سړی رېښتيا وايي نو بيا هغه لقطه هغه سړي ته ورکول جائز دي مګر هغه سړی د شاهدانو ځخه پرته د لقطې پورته کونکی مجبوره کولای نه سي ، په دغه صورت کي به دا ويل کيږي چي ظرف او سربند د ياد ساتلو ګټه به دا وي چي ددې په وجه به هغه لقطه د پورته کونکي په مال کي داسي نه ګډيږي چي کله د لقطې مالک راسي نو لقطه پورته کونکی د خپل مال او اسباب او د هغه لقطې په مينځ کي فرق نه سي کولای .

ثم عرفها : (بيا د هغه تشهير او اعلان وکړئ) ددې مطلب دادی چي چيري هغه لقطه پيدا سوې ده نه يوازي هلته بلکه په بازار، مسجدو او ټولو هغه ځايو کي چيري د خلکو اجتماع وي د هغه لقطې په اړه اعلان وکړل سي چي د کوم سړی يو شی ورک سوی وي هغه دي فلاني ته په رسيدو سره د هغه شي تفصيل او نښي وښيي او خپل شی دي واخلي، د تشهير د وخت په باره کي د علماؤ اختلافي قولونه دي، امام شافعي ، امام مالک، امام احمد او په حنفيه کي امام محمد رحمة الله عليهم د حديث پر ظاهري مفهوم باندي عمل کوي چي ددې لپاره د يو کال وخت ټاکل سوی دی مګر د لقطې تر يو کال پوري تشهير کول پکار دي مګر د صحيح روايت سره سم د امام ابو حنيفة او امام ابو يوسف رحمة الله عليهما قول دادی چي د وخت په ټاکني کي يو قيد نه ستا بلکه په حديث کي د يو کال اعتبار اتفاقي دی مګر بيا دا سوال هم پيدا کيږي که چيري په حديث کي د يو کال وخت اتفاقي وي نو بيا د تشهير وخت به څومره وټاکل سي ؟ ددې وضاحت په هدايه کي د امام ابو حنيفة رحمه الله د يوه روايت سره سم داسي کړی دی که چيري لقطه د لسو درهمو ځخه د کم قيمت وي نو د هغه اعلان کول تر څو ورځو پوري کافي دی او که چيري

د لسو درهمو شی وي نو بیا تر یوې میاشتي پوري د هغه تشهیر دي وکړل سي او که چیري هغه د سل درهمو شی وي نو بیا تر یو کال پوري د هغه تشهیر دي وکړل سي.

ځیني علماء وایي چي د مالیت د پورتني مقدار چي کوم مختلف وختونه بیان سوي دي په دې کي هیڅ یو وخت لازم نه دی بلکه هغه د لقطې پورته کونکي پر رایه موقوف دی چي هغه د لقطې تر هغه وخته پوري تشهیر وکړي تر څو چي هغه ته غالب گمان وسي چي اوس به هیڅوک نه راځي او ددغه وخت څخه وروسته به هغه لقطه نه غواړي ، ددغه علماؤ دلیل د مسلم هغه روایت دی چي په هغه کي د سنة د لفظ څخه پرته یوازي عَرِّفْها نقل سوي دي.

که چیري لقطه د یو داسي شي په صورت کي وي چي تر زیاتو ورځو پوري پاته کیدای نه سي او د موسم په تبدیلۍ سره متاثره کیږي لکه د خوراک یو شی یا میوه او داسي نور شیان نو په دې باره کي دا حکم دی چي د هغه تشهیر دي تر هغه وخته پوري وکړل سي تر څو چي هغه خراب نه وي او که چیري لقطه یو معمولي شی وي نو د هغه حکم دادی چي د هغه د تشهیر ضرورت نه سته بلکه د هغه بېله اعلان او تشهیر کولو د هغه د استعمال اجازه ده مگر د هغه مالک ته به دا حق وي که چیري هغه وغواړي نو د خپل هغه شي غوښتنه وکړي.

فان جاء صاحبها والا فشانک بها : ددې مطلب دادی چي د لقطې د تشهیر او اعلان څخه وروسته که چیري د هغه مالک راسي نو هغه لقطه دي ورکړل سي او که چیري د هغه مالک سره شاهد هم وي چي د هغه د ملکیت شاهدي ورکړي نو د لقطې پر اخیستونکي باندي دا واجب دي چي هغه لقطه ورکړي او که شاهد نه وي نو بیا ورکول جائز نه دي لکه څرنگه چي مخکي وضاحت سوی دی او که چیري د اعلان کولو د وخت څخه وروسته د هغه لقطې مالک را نه سي نو بیا لقطه اخیستونکی دی هغه لقطه په خپل استعمال کي راولي ، ددې څخه دا معلومه سوه چي لقطه اخیستونکی د اصل مالک نه راتلو په صورت کي د هغه لقطې مالک کیږي که څه هم هغه شتمن وي یا مفلس او غریب وي ، د اکثرو صحابه کرامو او امام شافعي رحمه الله دا مذهب دی مگر د ځینو صحابه کرامو قول دی چي لقطه دي مسکین او مفلس ته د صدقې په توگه ورکړل سي ، د حضرت ابن عباس رضي الله عنه ، سفیان ثوري رحمه الله ، ابن المبارک رحمه الله او د حنفیه قول دادی او په دې باره کي دا حکم هم دی که د صدقه کولو څخه وروسته مالک راسي نو هغه ته به اختیار وي که وغواړي نو صدقه به برقرار وساتي او د هغه ثواب حقدار به سي او که وغواړي د لقطه اخیستونکي یا د هغه مفلس او غریب سړي څخه کوم ته چي لقطه د صدقې په توگه ورکړل سوې وي د هغو څخه تاوان واخلي، په شرط ددې چي هغه ضائع سوې وي مگر که چیري په

دوا ړو کي يو سړي تاوان ورکړي نو هغه د دوهم کس څخه غوښتنه نه سي کولای يعني که چيري د لقطې اخيستونکی تاوان ورکړي نو هغه د مفلس او غريب سړي څخه د غوښتنه کولو هيڅ حق نه لري او که چيري د غريب سړي څخه تاوان واخلي نو بيا هغه د لقطې اخستونکي څخه غوښتنه نه سي کولای مګر که چيري هغه لقطه ضائع سوې نه وي بلکه هم هغسي موجوده وي نو بيا به هغه لقطه ورکول کيږي ، يعني ددې مطلب دا سو چي مالک ته به د تاوان اخيستلو حق په هغه صورت کي وي کله چي هغه شی ضائع سوی وي او که چيري هغه ضائع سوی نه وي نو بيا به هغه شي اخلي، د شرح وقايه په ځينو حاشيو کي د نهايه دا قول نقل سوي دي چي د تشهير څخه وروسته د لقطې صدقه کول جائز دي مګر د هغه ايښودل عزيمت دی .

هي لک (هغه ستا ده) ددې مطلب دادی که چيري يو پسه تا پيدا کړی او بيا تا د هغه تشهير وکړی چي دهغه په نتيجه کي د هغه مالک راغلی نو هغه به خپل پسه واخلي مګر که چيري د تشهير څخه وروسته مالک نه راسي نو هغه پسه ستا سو او ته د هغه څخه ګټه اخيستلای سې .

او لاخيک ...الخ (يا ستا د ورور لپاره ده...): ددې مطلب دادی که چيري تا پسه پيدا کړی او د هغه مالک راغلی نو هغه به يې واخلي او که چيري تا پسه پيدا کړی او هغه مالک ته په لاس ورسي نو هغه به يې واخلي ، يا ددې مطلب دادی که چيري تا پسه پيدا کړی نو ستا پر ځای يو بل مسلمان ورور به واخلي او که چيري په دغه کي يو صورت هم نه وي نو بيا شرموښ به هغه پسه وخوري، يعني ددغه حديث شريف مطلب په دې خبره اګاه کول دي که چيري يو پسه پيدا سي نو هغه واخله او د مالک د نه راتلو په صورت کي د هغه څخه ګټه اخيستل جائز دي چي هغه پسه په خپله ضائع نه سي او شرموښ يا بل حيوان يې ونه خوري، دا حکم د هر هغه حيوان په باره کي دی چي د خپل ساتونکي د نه موجودتيا په حالت کي د شرموښ يا بل حيوان په لاس د ورتلو څخه خوندي نه سي پاته کيدای .

د اوښ د ژي څخه مراد هغه نس دی، يعني د اوښ نس د ژي په ډول دی په هغه کي دومره رطوبت وي چي هغه تر ډېرو ورځو پوري بېله اوبه ژوندی پاته سي ، اوښ تر څو ورځو پوري تنده زغملای سي حال دا چي دا په نورو حيواناو کي نه وي ، په دې باره کي مشهوره ده چي اوښ تر پنځلس ورځو پوري خپل تنده زغملای سي .

د اوښ د موزو څخه مراد د هغه ټينګ او قوي قدمونه دي چي هغه پر لاره باندي د تللو او اوبو او واښو ته تر رسيدو پوري او د درندګانو څخه د ساتني طاقت لري ، په حديث شريف کي

د ژي او موزو په ذریعه اوبښ ته د هغه مسافر سره تشبیه ورکړل سوې ده چي هغه د ځان سره د سفر سامان ولري چي د هغه په موجودتیا کي هغه ته هیڅ خطره نه وي، علماء وایي چي په دې اړه هر هغه حیوان د اوبښ په حکم کي دی کوم چي د خپل ساتونکي په نه موجودتیا کي د شرموښ یا بل درنده په پنجو کي ضائع او هلاک نه سي لکه آس، غوا، خر او داسي نور، امام شافعي او امام مالک رحمة الله علیهما ددغه حدیث څخه دا استدلال کړی دی چي په ځنګله کي اوبښ، غوا او داسي نور حیوانان د لقطې په توګه نه سي نیول کیدای ځکه چي هلته د هغوی د ضائع کېدو بېره نه وي البته په کلیو او ښارو کي که دغه حیوان پیدا سي نو هغه د لقطې په توګه نیول جائز دي ، د حنفیه په نزد د ټولو حیوانانو د لقطې په توګه نیول او تشهیر کول د خلکو د مال د ساتني سره سم په هر ځای کي مستحب دي که څه هم ځنګل وي یا ښار وي، د حضرت زید رضی الله عنه ددغه روایت په باره کي حنفیه وایي چي په دې کي ذکر سوی حکم چي د اوبښ د نیولو ضرورت نه سته دا په هغه زمانه کي وو کله چي امانت داري او ښېګڼه د خلکو ډېره وه چي د هغه په وجه د یو چا حیوان بل چا نه نیوی او د یو خائن په لاس نه ورتلی ، مګر په اوس زمانه کي دا خبره نه سته او د امانت او دیانت خلک ډېر کم دي ځکه د الله تعالی د مخلوق د مال د ساتني تقاضا داده چي کوم حیوان په یو ځای کي تر لاسه سي هغه دي د لقطې په توګه ونیول سي او د هغه مالک ته د رسولو هڅه دي وکړل سي .

## دورک سوي شي بېله تشهیره اېښودل خیانت دی

﴿۲۹۰۴﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ آوَى ضَالَّةً فَهُوَ ضَالٌّ مَا لَمْ يُعَرِّفْهَا . رواه مسلم .

د زید بن خالد رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : څوک چي ورک سوي شی پورته کړي په کور کي یې کښېږدي تر څو پوري چي د هغه اعلان ونه کړي ګمراه دی . (مسلم).

**تخریج** : مسلم في الصحيح ۳\۱۳۵۱، رقم: ۱۲- ۱۷۲۵.

**تشریح** مطلب دادی چي یو څوک یو ورک سوی د ځان سره وساتي نو هغه ته پکار دي چي د هغه شي تشهیر او اعلان وکړي بېله تشهیره دي هغه د ځان سره نه ساتي ځکه چي دا خیانت او ګمراهي ده .

## د حاجیانو ورک سوي شیان

﴿۲۹۰۵﴾: وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عُثْمَانَ التَّيْمِيِّ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ لُقَطَةِ الْحَاجِّ. رواه مسلم

د حضرت عبد الرحمن بن عثمان تیمي رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د حاجیانو د ((لقطه)(ورک سوي شی)) د پورته کولو څخه منعه فرمایلې ده .(مسلم).

**تخریج**: مسلم في الصحیح ۳\۱۳۵۱، رقم: ۱۱- ۱۷۲۴.

**تشریح**: د حدیث خلاصه داده چي د مکې مکرمې د حرم په حدودو کي د پیدا کېدونکي شي د تشهیر او اعلان څخه وروسته هم د هغه مالک کېدل جائز نه دي بلکه د اخیستونکي لپاره دا واجب دي چي هغه دځان سره تر هغه وخته پوري وساتي تر څو چي د هغه مالک پیدا سي که هر څومره وخت تېر سي، د امام شافعي رحمه الله دا مذهب دی مگر د حنفیه په مذهب کي د حرم د حدودو او د غیر حرم د ځکي لقطه یو ډول ده او ددې بیان په باب حرم مکه کي تېر سوی دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د غیر اباد ځکي لقطه

﴿۲۹۰۶﴾: عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

حضرت عمرو بن شعیب رضی الله عنه د خپل پلاره څخه او هغه د خپل پلاره څخه روایت کوي چي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ سُئِلَ عَنِ الثَّمَرِ الْمُعَلَّقِ فَقَالَ مَنْ أَصَابَ مِنْهُ من ذِي

د رسول الله ﷺ څخه د هغو مېوو په اړه پوښتنه وسوه چي په ونو کي دي نو یې وفرمایل: اړ کس دي مېوه وخوري

حَاجَةٍ غَيْرَ مُتَّخِذٍ خُبْنَةً فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ وَمَنْ خَرَجَ بِشَيْءٍ مِنْهُ فَعَلَيْهِ

او خپله کڅوړه دي نه ډکوي نو په ده کي څه گناه نسته او څوک چي ځیني مېوه وخوري او بیا یې وشکوي د ځانه سره یې هم یوسي نو پر هغه باندي د هغه

غَرَامَةُ مِثْلَيْهِ وَالْعُقُوبَةُ وَمَنْ سَرَقَ شَيْئًا مِنْهُ بَعْدَ أَنْ يُؤْوِيَهُ الْجَرِينُ فَبَلَغَ

دوه چنده تاوان واجب دي او سزا هم او څوک چي مېوه د درمند څخه غلا کړي او د غلا سوي

ثَمَنَ الْمِجَنِّ فَعَلَيْهِ الْقَطْعُ وذكر في ضالة الابل والغنم كما ذكر غيره قال و

مېوې قیمت د یوه ډهال د قیمت سره برابر سي د هغه سزا لاس پرېکول دي . د دې څخه وروسته راوي د ورک سوي اوښ او ورک سوي پسه په اړه پوښتنه وکړه څنګه چي نورو راویانو بیان

سئل عَنْ اللُّقَطَةِ فَقَالَ مَا كَانَ منها فِي طَرِيقٍ سياء والقرية جامعة فَعَرِّفْهَا

کړې ده بیا د نبي کریم ﷺ څخه د ورک سوي شي پوښتنه وسوه نبي کریم ﷺ وفرمایل : کوم ورک سوي شی چي په عامه لاره کي پیدا سي کلي او یا یوې آبادۍ ته نژدې وي نو د هغه اعلان

سَنَةً فَإِنْ جَاءَ صَاحِبُهَا فَادْفَعْهَا إِلَيْهِ وَإِنْ لَّمْ يَأْتِ فَهُوَ لَكَ وَ مَا كَانَ فِي

دي تر یوه کاله پوري کوي که یې مالک راسي هغه دي ومالک ته ورکول سي او که را نسي نو بیا هغه ستا دي او ورک سوي شی چي په زړو خزانو

الْخَرَابِ الْعَادِيِّ فَفِيهِ وَفِي الرِّكَازِ الْخُمُسُ . رواه النسائي و روى ابوداؤد عنه من قوله و سئل عن اللقطة الى آخره.

او خرابو کي پیدا سي نو په هغه کي یو ازي پنځمه برخه د خداي تعالي ده .(نسائي ابو داؤد هم دومره د سئل عن اللقطة څخه پیل کړې بیا تر اخیره پوري) .

**تخریج** : سنن النسائي ۸\ ۸۵، رقم: ۴۹۵۸، وابوداود ۲\ ۳۳۵، رقم: ۱۷۱۰.

**د لغاتو حل**: خُبنة: ای ذخیرة محمولة. الجرین: موضع تجفیف التمر (د خرما وچولو ځای). المجن: ای الترس. المیناء: ای الطریق العام.

**تشریح** د اړ کس څخه مراد یا خو مطلق فقیر او مفلس دی که څه هم هغه د اضطرار په حالت کي نه وي او یا ددې څخه مضطر یعني هغه څوک مراد دی چي هغه د لوږي څخه مړ کیږي ، خلاصه داده چي اړ کس دي د درختي څخه د ضرورت په اندازه مېوه وخوري مګر ځولۍ دي نه په ډکوي چي د ځان سره یې یوسي او پر داسي کس باندي څه ګناه نه سته ، ابن مالک رحمه الله فرمایي چي ددې مطلب دادی چي داسي سړی ګناه کار خو نه دی مګر پر هغه به تاوان یعني د

هغه میوې قیمت ورکول واجب وي ، او بیا دا چي ددغه حکم تعلق د اسلام د ابتدائي زمانې سره وو او بیا منسوخ سو . او پر هغه دوه برابر تاوان دی : ددې مطلب دادی چي کوم څوک مېوه وخوري او ځولۍ هم په ډکه کړي نو د هغه څخه به د هغه میوې دوه برابر قیمت اخیستل کیږي مګر ابن مالک رحمۃ اللہ علیہ فرمایي چي دا حکم د خبرداری په توګه دی کنه مسئله خو داده چي د هغه میوې دوه برابر قیمت نه واجبیږي بلکه یوازي د هغه اصل قیمت اخیستل کیږي که څه هم د حضرت عمر رضی اللہ عنہ په اړه نقل سوي دي چي ددغه حدیث د ظاهري حکم سره سم هغه پر هغه دوه برابر قیمت دی ، او د امام محمد رحمۃ اللہ علیہ مذهب هم دادی او ځیني علماء وایي چي دغه حکم د اسلام د ابتدائي زمانې سره خاص دی بیا منسوخ دي .

او سزا ده : دلته د سزا څخه مراد تقدیر دی، مطلب دادی چي د هغه لاس به نه پرې کیږي مګر که چیري تعزیر ورکول کیدای سي او دا ځکه دي چي په هغه زمانه کي باغونه خوندي او په دیوالونو کي دننه وه ، که چیري په درمن کي اېښودل سوې غله په دومره اندازه غلا کړل سي چي د یوه سپر د قیمت برابر وي نو د شرعي قانون سره سم د هغه لاس پرې کیږي ، هغه وخت د یوه سپر قیمت درې یا څلور درهمه وو ، د امام شافعي رحمۃ اللہ علیہ په نزد د غلا د مال هغه مقدار چي پر هغه د لاس پرې کېدو سزا ورکول کیږي څلورم درهمه یا تر دې زیات مالیت دی مګر د حنفیه په مذهب کي ابتدائي مالیت لس درهمه دی ، شمني رحمۃ اللہ علیہ لیکلي دي چي په هغه زمانه کي د سپر قیمت لس درهمه وو .

او کومه لقطه چي په داسي لار کي پیدا کړل سي چي ښار ته د نژدې کېدو په وجه د خاص او عام خلکو لاره وي نو د هغه تشهیر او اعلان واجب دی ځکه ددې غالب ګمان کیدای سي چي هغه د یو مسلمان وي ، او کومه لقطه چي په یو پخواني او وېران کلي یا پخوانۍ غیر ابادي مځکي کي پیدا سي چیري چي د مسلمانانو کورونه نه وي او نه هغه د یو مسلمان په ملکیت کي وي نو د هغه دا حکم دی چي د هغه څخه دي پنځمه برخه د الله تعالی په لار کي صدقه او خیرات کړي او پاته برخه دي خپل په استعمال کي راولي که څه هم هغه لقطه د سرو او سپینو زرو په شکل کي وي یا ددې څخه پرته د نور سامان یا زیوراتو په شکل وي، همدارنګه که د یو پخواني ځای څخه یو ښخ سوې خزانه یا بل شي تر لاسه سي نو د هغه دغه حکم دی .

## دورک سوي شي استعمال او د مالک غوښتنه

﴿۲۹۰۷﴾ : وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ أَنَّ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ وَجَدَ دِينَارًا فَأَتَى بِهِ

د حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه څخه روایت دی چي حضرت علي رضي الله عنه یو دینار پیدا کړاو بي بي

فَاطِمَةَ فَسَأَلَ عَنْهُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ هٰذا رِزْقُ اللّٰهِ عَزَّ

فاطمې رضي الله عنها ته یې راوړ او وروسته حضرت علي رضي الله عنه د دې په اړه د نبي کریم ﷺ څخه پوښتنه وکړه رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: دا د خدای تعالي رزق دي

وَجَلَّ فَأَكَلَ مِنْهُ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَكَلَ عَلِيٌّ وَفَاطِمَةُ فَلَمَّا كَانَ

نو د هغه دیناره څخه حضرت علي رضي الله عنه بي بي فاطمې او نبي کریم ﷺ ټولو وخوړه د دې څخه

بَعْدَ ذٰلِكَ أَتَتْهُ امْرَأَةٌ تَنْشُدُ الدِّينَارَ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا

عَلِيُّ أَدِّ الدِّينَارَ. رواه ابوداؤد.

وروسته یوه ښځه د دینار په لټه پسي راغله نو رسول الله ﷺ وفرمایل: چي اې علي! دینار ورکړه. (ابوداؤد).

**تخریج**: ابوداود في السنن ۲\۳۳۷، رقم: ۱۷۱۴.

**تشریح**: ددغه روایت څخه دا څرګندیږي چي حضرت علي رضي الله عنه د تشهیر او اعلان څخه پرته هغه دینار مصرف کړل بلکه دا احتمال دی چي مخکي یې د هغه تشهیر وکړی او بیا وروسته یې هغه مصرف کړل، رسول الله ﷺ د هغه په محض ویلو باندي هغه ته دینار ورکړل نو ددې وجه داده چي یا خو هغه ښځي د دینار نښه بیان کړې وي یا رسول الله ﷺ ته به په یو ذریعه علم سوی وي چي هغه دینار د هغه ښځي وه.

## ورک سوی شی په بد نیت سره مه پورته کوئ

﴿۲۹۰۸﴾: وَعَنِ الْجَارُودِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ضَالَّةُ الْمُسْلِمِ حَرَقُ النَّارِ. رواه الدارمي.

د حضرت جارود رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د مسلمانانو ورک سوي شی د اور سکروټي دي (یعني څوک چي پورته کړي او د لقطې احکامورباندي نافذ نه کړي نو هغه به یې دوږخ ته ورسوي). (دارمي)

**تخریج**: الدارمي ۲\۳۴۴، رقم: ۲۶۰۱.

**د لغاتو حل**: حرق: ای لهیبها.

**تشریح** مطلب دادی که چیري یو سړی یو لقطه (ورک سوی شی) په بدنیت سره پورته کړي چي زه به ددې مالک سم او هغه د لقطې په اړه احکام پوره نه کړي نو هغه لقطه به هغه سړی د دوږخ اور ته حواله کړي.

## کله چي ورک سوی شی پورته کړئ نو یو ځوک شاهد کړئ

﴿۲۹۰۹﴾: وَ عَنْ عِيَاضِ بْنِ حِمَارٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عیاض بن حمار ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

مَنْ وَجَدَ لُقَطَةً فَلْيُشْهِدْ ذَا عَدْلٍ اَوْ ذَوَي عَدْلٍ وَلاَ يَكْتُمْ وَ لاَ يُغَيِّبْ فَاِنْ

ځوک چي لقطه پیدا کړي نو هغه دي منصف مزاجه خلک شاهدان جوړ کړي بیا دي لقطه نه پټوي او نه دي غائبوي بیا که د هغه مالک راسي نو هغه دي بیرته ورکړي او که یې

وَجَدَ صَاحِبَهَا فَلْيَرُدَّهَا عَلَيْهِ وَاِلاَّ فَهُوَ مَالُ اللّٰهِ يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَاءُ . رواه احمد وابوداؤد والدارمي.

مالک را نه سي نو بیا هغه د خدای تعالي مال دي چاته چي یې خدای غواړي ورکوي یې (یعني بیا هغه د پیدا کونکي لپاره حلال دي هغه ته خدای تعالي ورکړي دي) (احمد ابو داؤد دارمي).

**تخریج**: احمد في المسند ۴\۱۶۱، رقم: ۱۷۰۹، والدارمي ۲\۳۴۵، رقم: ۲۶۰۲.

**تشریح**: کله چي یو سړی لویدلی شی (لقطه) پورته کړي نو هغه وخت دي یو ځوک پر دې شاهد کړي چي ما دغه شی پیدا کړی دی ددې لپاره چي یو ځوک پر هغه باندي د غلا تهمت ونه لګوي او نه د کموالي او زیاتوالي دعوه وکړلای سي، په شاهد جوړولو کي یو حکمت او ګټه دا هم ده چي په دغه صورت کي به د هغه نفس په حرص او طمع کي نه اخته کیږي ځکه چي بېله شاهده دا احتمال کیدای سي چي هغه په بد نیتۍ کي اخته سي او په دا فکر کولو سره چي یو ځوک شاهد نه سته هغه شی مالک ته د ورکولو پر ځای د خپل ځان سره وساتي او د شاهد په پیدا کولو سره نه یوازي دا چي طمع نه سي کیدای بلکه د هغه لقطې مالک ته حواله کول هم ضروري کیږي او په دې کي یو حکمت دا هم دی چي د پورته کونکي د ناڅاپه مرګ څخه وروسته د هغه وارثان هغه لقطه په خپل میراث او ترکه کي نه سي داخلولای.

ځيني حضرات فرمايي چي د شاهد جوړولو دغه حکم د استحباب په توګه دی او حال دا چي ځيني نور علماء فرمايي چي دغه حکم د وجوب په توګه دی ، په دغه حديث کي خو دا فرمايل سوي دي چي هغه د الله تعالی ورکړی مال دی او په مخکني حديث کي د الله تعالی ورکړی رزق ورته ويل سوي دي نو د دغه دواړو څخه مراد حلال دی ، مطلب دا چي د مالک د نه راتلو په صورت کي هغه لقطه يو داسي حال مال دی چي هغه سړی ګټه ځيني اخيستلای سي کوم چي الله تعالی هغه ته دغيب څخه ورکړی دی مګر که چيري وروسته مالک راسي نو بيا دهغه بدله به ورکوي لکه څرنګه چي مخکي ذکر سوي دي .

**د پيدا سوي شي هغه مقدار چي د اعلان ضرورت يې نسته**

﴿۲۹۱۰﴾ : وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ رَخَّصَ لَنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْعَصَا

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم اجازه ورکړې ده که يوه سړي لکړه

وَالسَّوْطِ وَالْحَبْلِ وَأَشْبَاهِهِ يَلْتَقِطُهُ الرَّجُلُ يَنْتَفِعُ بِهِ . رواه ابوداؤد و ذکر حديث المقدام بن معديکرب الا لا يحل في باب الاعتصام .

يا رسی يا يو بل ورک سوي شی پيدا کړي د ګټي د اخيستلو . (ابو داؤد)

**تخريج** : ابوداود في السنن ۲\۳۳۹، رقم: ۱۷۱۷.

**تشريح** : يعني که چيري لقطه ددغه شيانو څخه وي نو د هغه پورته کونکی بېله اعلان کولو هغه په خپل استعمال کي راوستلای سي .

په شرح السنة کي ليکلي دي چي دغه حديث ددې خبري دليل دی که چيري لقطه د يو کم شي په صورت کي وي نو د هغه اعلان دي نه کيږي مګر پر دغه قول باندي تنقيد سوی دی ، پاته سو دا سوال چي د کم شي حد څه شي دی ؟ نو ځيني علماء وايي چي لقطه د لسو درهمو څخه کمه وي نو هغه کم شی دی او ځيني حضرات وايي چي کومه لقطه د يوه دينار وي يا تر يوه دينار کمه وي نو هغه معمولي او کم شی دی لکه څرنګه چي د حضرت علي رضی الله عنه په باره کي د نقل سوي حديث څخه معلومه سوه .

او د حضرت مقدام ابن معديکرب رضی الله عنه روايت (الا لا يحل ...الخ) په باب الاعتصام بالکتاب والسنة کي نقل سوی دی .

# كِتَابُ الْفَرَائِضِ وَالْوَصَايَا

## (د فرائضو (میراث) او وصیت بیان)

فرائض جمع د فریضة ده او د فرض څخه مشتق ده، فرائض د میراث هغه برخو ته وایي چي په قرآن کریم یا حدیثو کي ټاکلي سوې دي، په دغه باب کي دا بیان کیږي چي یو څوک مړ سي نو د هغه کوم کوم قریبان د هغه وارثان دي او د هغه پرې ایښی مال او اسباب به په هغه وارثانو کي څرنګه ویل کیږي، دغه باب د یو ارزښتناکه موضوع سره اړوند دی ځکه نو مناسب دي چي په ابتدائي توګه سره یو څو اصولي خبري او یو څو ضروري مسائل دلته نقل کړل سي.

### دوارثانو ترتیب

علماؤ لیکلي دي چي د مړي د ترکه (یعني د هغه د پرېښودل سوي مال او سامان) سره څلور حقونه متعلق وي چي د هغو ترتیب دادی:

۱. اول خو دي د مړي د کفن او ښخولو بندوبست وکړل سي یعني هغه ته دي غسل ورکړل سي بیا دي کفن ورکړل سي او بیا دي د جنازې د لمانځه څخه وروسته هدیرې ته یووړل سي او بیا دي د هغه قبر وکښل سي، په دغه شیانو کي د مصرف کولو چي څه ضرورت وي هغه دي د مړي د ترکه (میراث) څخه داسي مصرف کړل سي چي نه تنګي وکړل سي او نه اسراف وکړل سي.

۲. ددې څخه وروسته که چیري د مړي پر ذمه پور او یا بله غوښتنه وي نو د هغه ادا کول دي وکړل سي او د بیا د پور او غوښتني د ادا کولو څخه وروسته دي:

۳. کوم مال او سامان چي پاته سي د هغه په دریمه برخه کي دي وصیت جاري کړل سي په شرط ددې چي هغه وصیت کړی وي، ددغه درو مرحلو څخه وروسته.

۴. د هغه پاته ټول مال او سامان دي د هغه په وارثانو کي وویشل سي چي ترتیب یې دادي: تر ټولو مخکي دي ذوالفروض ته د هغوی ټاکل سوي برخي ورکړل سي او هغوی ته د ورکولو څخه وروسته چي څه پاته سي هغه دي د مړي نسبي عصبات ته ورکړل سي ځکه چي ذوالفروض ته د ورکولو څخه وروسته چي څه پاته سي هغه د نسبي عصبات حق دی او که چیري د مړي په وارثانو کي ذوي الفروض نه وي نو بیا د هغه ټول میراث به نسبي عصبات ته ورکول کیږي او که چیري د هغه په وارثانو کي نسبي عصبات هم نه وي نو بیا ذوي الفروض ته د ورکولو څخه

وروسته چي څه پاته سي هغه به ازادونكي ته وركول كيږي په شرط ددې چي مړی غلام وي او كه چيري هغه ازاد سوی وي مگر ازاد كونكی موجود نه وي نو بيا د هغه ازاد كونكي سړي عصبه ته به وركول كيږي كه دا هم نه وي نو بيا پاته سوی مېراث به ذوالفروض ته بېرته وركول كيږي پرته د زوجين څخه ځكه چي په دوهم وار وېش كي د زوجين هيڅ برخه نه سته او كه چيري د مړي په وارثانو كي نه ذوالفروض وي او نه نسبي عصبات او سببي عصبات وي نو د هغه ميراث ذوالارحام ته وركول كيږي كه چيري ذوي الارحام هم نه وي نو بيا مولا موالات ته وركول كيږي كه چيري مولی موالات هم نه وي نو بيا د هغه مېراث به هغه چا ته وركول كيږي چي د هغه د نسب مړي اقرار كړی وي مثلا هغه د زيد په باره كي ويلي وي چي هغه زما د پلار زوی دی حالانكه د زيد د غه نسب د د غه اقرار څخه پرته په بل صورت كي ثابت نه وي مگر بيا به هم هغه د مړي د ميراث حقدار وي او كه چيري داسي څوک هم نه وي نو بيا دي هغه ميراث داسي سړي ته وركول كيږي چي د هغه لپاره مړي د خپل ټول ميراث وصيت كړی وي او كه چيري داسي څوک هم نه وي چي د هغه لپاره مړي د خپل مال او سامان وصيت كړی وي نو بيا د هغه ټول مال او سامان په بيت المال كي جمع كيږي او كه چيري بيت المال هم نه وي نو بيا په پای كي د بيت المال په مصرف كي دي مصرف كړل سي يعني په مدرسو، مسجدو او مسكينانو دي مصرف كړل سي.

## د ذوي الفروض تفصيل

ذوي الفروض دَوولس ۱۲ دي ۱ -: پلار، ۲: نيكه (كه څه هم نوري لوړي درجې يې وي لكه ور نيكه، ترنيكه او داسي نور)، ۳: اخيافي ورور چي پلار يې بېل بېل وي او مور يې يوه وي، ۴: ښځه، ۵: خاوند، ۶: مور، ۷: انا (كه څه هم نوري د لوړي درجې وي لكه د انا مور، د انا انا او داي نور ...) ۸: لور، ۹: ملسی، ۱۰: حقيقي خور، ۱۱: ميرېزی خور، ۱۲: اخيافي خور.

## د ذوي الفروض برخي

د مړي په مېراث كي د پلار شپږمه برخه حق كيږي كله چي د مړي زوی، ملسی، كړوسی او كوسی هم موجود وي او كه چيري دا نه وي بلكه لور يا ملسی او كړوسی موجود وي نو پلار ته به شپږمه برخه وركول كيږي او هغه به عصبه هم وي او كه چيري نه زوی وي نه ملسی او نه كړوسی وي او نه لور يا ملسی يا كړوسی وي نو پلار به يوازي عصبه وي، خلاصه دا چي په اول صورت كي خو پلار يوازي صاحب فرض دی او په دوهم صورت كي صاحب فرض هم دی او عصبه هم، او په دريم صورت كي يوازي عصبه دی كه چيري د مړي پلار نه وي نو په پورتنيو درو صورتو كي د هغه نيكه به د پلار په ځول وي او كه چيري د مړي پلار او نيكه دواړه ژوندي

وي نو بيا نيكه به محروم وي يعني هغه ته به د مړي د مېراث څخه هيڅ نه ورکول کيږي .

اخيافي ورور او اخيافي خور د مېراث شپږمه برخه ورکول کيږي په شرط د دې چې هغه يو وي ، که چيري دوه يا تر دوو زيات وي نو د هغوی لپاره دريمه برخه ده چې په سړي او ښځي کي برابر ويشل کيږي او که چيري د مړي پلار يا نيکه ژوندي وي يا د هغه زوی يا د زوی اولاد موجود وي نو بيا اخيافي ورور او خور به محروم وي .

که ښځه مړه سي او د هغه زوی او لور نه وي او د زوی اولاد يې هم نه وي نو د هغې د مېراث څخه به خاوند ته نيمه برخه ورکول کيږي او که چيري زوی، لور يا د زوی اولاد يې موجود وي نو خاوند ته به څلورمه برخه ورکول کيږي .

که چيري خاوند مړ سي او د هغه لور يا زوی او د زوی اولاد نه وي نو د هغه د مېراث څخه ښځي ته څلورمه برخه ورکول کيږي او که چيري د مړي زوی، لور يا د زوی اولاد موجود وي نو ښځي ته اتمه برخه ورکول کيږي ، ددې خبري بايد خيال وساتل سي که چيري د مړي يوه ښځه وي نو هغې ته به هغه برخه ورکول کيږي کوم چې ذکر سوې ده او که چيري تر يوې زياتي ښځي يې وي نو بيا هم دغه برخه ورکول کيږي فرق يوازي دومره دی که ښځه يوه وي نو د پورتنۍ برخي څخه به هغه يوازي حقدار وي او که چيري دوې يا درې وي نو هغوی به دغه برخه په خپلو کي ويشي.

د مړي په مېراث کي مور ته شپږمه برخه ورکول کيږي په شرط د دې چې د مړي زوی ، لور يا ملسی يا د هغه اولاد يا يوه خور يا دوه وروڼه او دوې خويندي وي يا تر دوو زيات وروڼه او خويندي وي ( که څه هم حقيقي وروڼه يا خويندي وي او که ميرېزي يا اخيافي) که په دوی کي هيڅوک هم موجود نه وي نو مور ته به د ټولي ترکې څخه دريمه برخه ورکول کيږي او که د مور سره پلار او خاوند يا ښځه هم وي نو په دغه صورت کي به پلار او خاوند يا ښځي ته په برخه ورکولو کي څه چې پاته سي د هغه څخه به مور ته دريمه برخه ورکول کيږي او که چيري په ذکر سوي صورت کي د ښځي يا خاوند سره د پلار پر ځای نيکه موجود وي نو بيا مور ته به د ټولي ترکې څخه دريمه برخه ورکول کيږي ځکه چې په دغه صورت کي نيکه د پلار قائم مقام نه دی.

د انا (د مور مور او د پلار مور) شپږمه برخه کيږي که يوه وي يا ډېري وي، مطلب دادي که چيري يوازي انا يعني د مور مور وي يا يوازي د پلار مور وي يا دوې اناوي وي نو هغوی ټولي به دغه شپږمه برخه په خپلو کي ويشي په شرط ددې چې هغوی ټولي په درجه کي برابر وي او که چيري په درجه کي برابر نه وي بلکه په درجه کي متفاوت وي (لکه يوه انا وي او بله د انا مور

وي ) نو د لوى درجې والا (يعني د مور مور) به د نژدې درجې والا (يعني انا) په وړاندي محروم وي همدارنګه د مور په موجودتيا كي ټولي اناګاني محروم دي ، او د نيكه په موجوتيا كي د پلار د اناګاني محرومي دي مګر د نيكه ښځه يعني د پلار مور نه محروم كيږي .

د مړي مور د مړاث څخه هيڅكله نه محروم كيږي كه د هغې ورور يعني د مړي زوى موجود وي نو هغه عصبه جوړيږي كنه نو ذوالفروض به وي ، د لور د مړاث دري صورتونه دي : اول دا چي يوازي يوه لور وي او د هغې سره حقيقي يا ميرېزى ورور نه وي نو د مړي د تركې څخه به هغې ته نيمه برخه وركول كيږي (او كه چيري بل وارث هم نه وي نو بيا پاته نيمه برخه هم د هغې كيږي)، دوهم دا كه چيري دوې لوڼې وي يا تر دوو زياتي وي او د هغوى سره حقيقي يا ميرېزى ورور نه وي نو هغه لوڼو ته د تركې څخه دوه پر درې برخه وركول كيږي چي هغه به يې ټولي په خپل مينځ كي مساوي ويشي، دريم دا كه چيري د لوڼو سره د مړي زوى موجود وي نو په دغه صورت كي د لور هيڅ برخه ټاكلې نه ده بلكه هغه عصبه جوړيږي ددې مطلب دادى چي د مړي د مړاث څخه څومره چي زوى ته وركول كيږي د هغه نيمه به هري لور ته وركول كيږي كه يوه لور وي يا درې څلور لوڼې يې وي او كه چيري د يو مړي ډېر زامن او ډېري لوڼې وي نو په هغوى كي د مړاث تقسيم به داسي وي چي هر زوى ته به دوې برخي او هري لور ته به يوه برخه وركول كيږي .

كه چيري د مړي لور، زوى يا ملسى نه وي بلكه يوازي يوه ملسۍ يې وي نو هغې ته به د مړاث څخه نيمه برخه وركول كيږي او كه چيري دوې يا تر دوو زياتي ملسياني يې وي نو هغوى ته به د ټول مړاث څخه دوه پر درې برخه وركول كيږي چي هغوى ټول به يې په خپلو كي مساوي ويشي، او كه چيري د مړي زوى، ملسى او كړوسى موجود نه وي بلكه يوازي يوه لور يې وي نو ملسي ته به شپږمه برخه وركول كيږي كه يو ملسى يې وي يا ډېر ملسيان يې وي او كه چيري د مړي دوې يا تر دوو زياتي لوڼې وي نو په دغه صورت كي به ملسۍ محروم وي مګر كه چيري د ملسۍ سره د مړي ملسى هم وي نو بيا كه چيري د مړي يوه لور وي يا ډيري لوڼې يې وي هغه ملسۍ به عصبه سي ، مطلب دا چي د ذوالفروض د برخو وركولو څخه وروسته چي څه پاته سي دغه ملسى او ملسۍ به يې په خپلو كي د عصوبت په توګه ويشي يعني ملسي ته دوې برخي او ملسۍ ته به يوه برخه وركول كيږي مګر دا خبره بايد په ذهن كي وي كه چيري د مړي زوى موجود وي نو بيا ملسۍ په هر حال كي محرومه ده او كه نه د قوميت اولاد موجود وي او نه د مړي د زوى اولاد موجود وي نو په پورتنيو ټولو صورتو كي د مړي كړوسۍ به د هغه د

ملسۍ قائم مقام وي او که چیري لور یې وي نو د لور اولاد به محروم وي او که ملسۍ موجود وي نو د ملسۍ اولاد به محروم وي .

که چیري د مړي زوی، لور، ملسی، ملسۍ یا کړوسیان موجود نه وي بلکه یوازي یوه حقیقي خور یې وي نو هغه به په هر حال کي د لور قائم مقام وي یعني که چیري یوه خور وي نو هغې ته به د مړي د ټول مېراث څخه نیم مال ورکول کیږي او که چیري دوې یا زیاتي خویندي یې وي نو هغوی ته به د ټول مېراث څخه دوه پر درې برخه ورکول کیږي چي هغوی به یې په خپل مینځ کي ویشي ، په پورتني صورت کي د میرېزی خور هم دغه حکم دی په شرط ددې چي حقیقي خور هم موجود نه وي .

که چیري د مړي لور، ملسی یا کړوسۍ موجود وي نو په دغه صورت کي حقیقي خور عصبه جوړیږي مطلب دا چي د مړي د مېراث څخه ذوي الفروض ته د ورکولو څخه وروسته چي څه پاته سي هغه به خور ته ورکول کیږي .

که د مړي حقیقي ورور موجود وي نو د حقیقي خور سره په یو ځای کېدو سره عصبه جوړیږي او که حقیقي ورور نه وي بلکه میرېزی ورور وي نو حقیقي خور د هغه میرېزی ورور په موجودتیا کي په ذوي الفروض کي شامل دی .

که د مړي یو حقیقي (سکه) ورور وي او د هغه سره مېرېزي وړونه او خویندي هم وي نو د هغه حقیقي ورور په موجودتیا کي هغه مېریزی وړونه او خویندي محروم دي .

که د مړي یوه حقیقي خور وي نو د هغې په موجودتیا کي مېرېزی خور ته شپږمه برخه ورکول کیږي که هغه یوه وي یا تر یوې زیاتي وي او که چیري حقیقي خویندي د یوې څخه زیاتي وي نو بیا میرېزۍ خور ساقط کیږي او هغې ته به هیڅ نه ورکول کیږي مګر که چیري د مېریزۍ خور سره میریزی ورور هم وي که یو وي یا تر یوه زیات وي په هر صورت کي میریزۍ خور به د مېرېزي ورور سره عصبه سي مطلب دا چي ذوي الفروض ته د ورکولو څخه وروسته د مړي د مېراث څخه چي څه پاته سي هغه ټول به د هغه مېریزي خویندو او وړونو په مینځ کي د عصوبت په توګه ویشل کیږي او که د مړي حقیقي خور د مړي د لور ، ملسۍ او یا کړوسۍ سره عصبه سي نو په دغه صورت کي مېریزۍ لور او میریزۍ خور بالکل محروم دي .

دا خبره باید په ذهن کي وي که چیري د مړي زوی یا ملسۍ یا کړوسي یا کوسۍ موجود وي نو د مړي حقیقي ورور ، حقیقي خور او مېریزی ورور او خور محروم دي همدارنګه د مړي د پلار یا نیکه په موجودتیا کي د مړي حقیقي او میریزي خویندي او وړونه محروم دي .

## د عصباتو تفصيل

د مړي د مېراث څخه ذوي الفروض ته د خپلو برخو ورکولو څخه وروسته چې څه پاته سي هغه به په عصباتو کي وېشل کېږي، يعني ذوي الفروض د اولي درجې وارثان دي او عصبات د دوهمي درجې وارثان دي، د عصباتو هم څلور درجې دي: ۱: اول زوی، ملسی، کړوسی (يا ددې څخه د لاندي درجې)، ۲: دوهم: پلار، نيکه (يا ددوی څخه د لوړي درجې)، ۳: دريم حقيقي او ميريزي وړونه او د هغوی زامن (که څه هم د لاندي درجې وي). ۴: څلورم د مړي اکا، د مړي د پلار اکا، دمړي نيکه اکا او د هغه اکاګانو زامن، اوس ددغه څلورو درجو ترتيب دادی: په دغه څلورو درجو کي زامن مقدم دي بيا ملسيان بيا کړوسيان بيا پلار بيا نيکه بيا ور نيکه بيا تر نېکه بيا ورور بيا خور بيا د ورور زامن، بيا اکا يا د اکا زامن، کله چې په دغه څلورو درجو کي د اولي درجې يو عصبه موجود وي نو پاته د درو درجو عصبات به بالکل محروم وي همدارنګه که چيري د اولي درجې عصبه يعني زوی يا ملسی يا کړوسی موجود نه وي او د دوهمي درجې عصبه موجود وي نو د پاته دوو درجو عصبات به محروم وي همدارنګه په دغه څلورو درجو کي هره درجه قريب عصبه پر ليري عصبه مقدم وي يعني د نژدې عصبه په موجودتيا کي ليري عصبه ته هيڅ نه ورکول کيږي مثلاً د مړي زوی موجود دی او ملسی هم موجود دي او دغه دواړه د اولي درجې عصبه دي مګر په دغه صورت کي نژدې عصبه يعني زوی مقدم دی چي هغه ته به د مړي مېراث ورکول کيږي او ليري عصبه يعني ملسی به محروم وي، همدارنګه حقيقي عصبه پر مېريزي عصبه مقدم دي او د مړي د پلار د اکاګانو ملسيان به د مړي د نيکه پر اکاګانو مقدم وي.

## د ذوي الارحام تفصيل

لکه څرنګه چي مخکي بيان سو يدی چي د مړي په وارثانو کي تر ټولو لومړۍ درجه د ذوي الفروض ده او دوهمه درجه د عصباتو ده اوس په دې پوه سئ که چيري د مړي په وارثانو کي نه ذوي الفروض وي او نه عصبات وي نو بياً د هغه مېراث به ذوي الارحام ته ورکول کيږي، يعني ذوي الارحام د وارثانو دريمه درجه ده، لکه څرنګه چي د عصباتو څلور درجې دي همدارنګه د ذوي الارحام هم څلور درجې دي چي تفصيل يې دادی: اول د مړي دلور، ملسۍ او کړوسۍ اولاد يعني د مړي ملسی، کړوسی او دمړي د زوی ملسی او کړوسی او د مړي د کړوسي د زوی لور او داسي نور...

دوهم : فاسد نيكه، فاسده انا (كه څه هم د ټولو سرېيره درجې وي) ، دلته په دې پوه سئ چي فاسد نيكه هغه ته ويل كيږي چي د هغه او د مړي په مينځ كي د ښځي واسطه وي لكه د مړي نيكه او د مړي انا يا د انا پلار ، او فاسده انا هغه انا ته وايي چي د هغې او د مړي په مينځ كي فاسد نيكه واسطه وي لكه د انا مور يا د پلار مور ، دا ټول ذوي الارحام دي حال دا چي صحيح نيكه او صحيح انا ذوي الفروض دي، صحيح نيكه هغه نيكه ته ويل كيږي چي د هغه او د مړي په مينځ كي د ښځي واسطه نه وي لكه نيكه ، ور نيكه (يا تر دې سرېيره درجې) او صحيح انا هغه انا ته ويل كيږي چي د هغې او د مړي په مينځ كي فاسد نيكه واسطه نه وي لكه انا ، ور انا (يا تر دې د لوړي درجې) .

دريم : د حقيقي خوېندو اولاد ، د ميريزي خويندو اولاد ، د اخيافي خويندو اولاد ، د اخيافي وروڼو اولاد ، د حقيقي وروڼو لوڼي او د ميريزي ورور لوڼي .

څلورم : د اكا ماينې كه حقيقي وي او كه ميريزى يا اخيافي وي ، اخيافي اكا ، ماما او خاله ګاني .

د ذوي الارحام څلور درجې دي او د عصباتو په ډول د دوى ترتيب هم دادى كه په هغه څلورو درجو كي د اول درجې ذوي الارحام وارث موجود وي يا د هغوى اولاد وي نو د پاته درو درجو ذوي الارحام به محروم وي ، همدارنګه د دوهمي درجې د ذوي الارحام په موجودتيا كي د دريمي او څلورمي درجې او د دريمي درجې د ذوي الارحام په موجودتيا كي د څلورمي درجې ذوي الارحام محروم دي او د عصباتو په ډول په ذوي الارحام كي هم په هره درجه كي د نژدې ذي رحم به پر ليري ذي رحم باندي مقدم وي .

## د ميراث څخه محروم كوونكي شيان

الله تعالى چي د مړي د مال او سامان د هغه وارثانو ته د ټاكلو برخو او ټاكل سوو قواعدو سره سم كوم حكم وركړى دى نو په هغه كي د مړي او د هغه د وارثانو په مينځ كي د يو خاص علاقې او تعلق لحاظ ساتل سوى دى ، كه يو داسي خبره رامنځته سي چي په هغه سره نه يوازي دا چي د مړي او وارث په مينځ كي د يو خاص علاقې او تعلق اظهار نه كيږي بلكه هغه د يو ډول بېلوالي او نفرت ثابتولو ذريعه جوړه سي نو هغه وارث به د مړي د مېراث حقدار نه وي او هغه ته به هيڅ مېراث نه وركول كيږي ، داسي څلور شيان دي چي يو سړى د مېراث اخيستلو څخه محروم كوي چي تفصيل يې دادى :

۱. غلام : نه غلام د یو ازاد سړي وارث کیدای سي او نه ازاد سړی د غلام وارث کېدای سي ځکه چي غلام په شرعي توګه د یو شي د مالک کېدو وړتیا نه لري او نه یو شی د هغه ملکیت وي.
۲. قتل : که یو بالغ وارث خپل مورث قتل کړي نو هغه وارث به د مېراث اخیستلو څخه محروم وي مګر دلته د قتل څخه مراد هغه قتل دی چي د هغه په وجه پر قاتل باندي قصاص یا کفاره واجبېږي، د قتل پنځه ډولونه دي (چي تفصیل به یې وروسته راسي) په هغو کي څلور ډولونه داسي دي چي یا قصاص پکښي واجبېږي او یا کفاره او دیت پکښي واجبېږي نو په دغه څلورو صورتو کي د حنفي مذهب سره سم قاتل د مېراث څخه محروم دی کله چي هغه خپل مورث په ناحقه قتل کړي ، مګر که چیري وارث خپل مورث په ظلم سره قتل نه کړي بلکه د خپل ځان په دفاع کولو سره پر هغه مورث باندي وار وکړی او مورث ووژل سي مثلا مورث په ناحقه پر هغه وارث حمله وکړه او بیا هغه وارث د خپل ځان ساتني لپاره پر مورث وار وکړی او د هغه په نتیجه کي مورث مړ سو ، یا پر مورث باندي شرعا په یو وجه د قتل سزا واجب وي (مثلا د قصاص په توګه) یا پر هغه یو حد جاري کول ضروري وي او د پاچا یا قاضي په حکم سره وارث هغه قتل کړي یا پر هغه حد جاري کړي او هغه مړ سي نو په دغه صورت کي به هم وارث د مېراث څخه محروم نه وي . د قتل په پنځو ډولو کي یو ډول قتل بالتسلیب دي د قتل په دغه ډول سره نه قصاص لازمېږي او نه کفاره بلکه یوازي دیت واجبېږي، په دغه ډول قتل کي قاتل د مېراث څخه نه محروم کیږي ، د قتل بالتسلیب صورت دادی چي د مثال په توګه یو سړی د بل سړي په مځکه کي د مالک د اجازې څخه پرته ډبري کښېږدي یا څاه وکاږي او د ډبري سره په لګېدو یا په څاه کي په لوېدو سره یو سړی مړ سي نو پر هغه سړي دیت واجبېږي ، همدارنګه د حنفیه مذهب دادی که یو نابالغ یا لیونی خپل مورث قتل کړي نو هغه د مېراث څخه نه محروم کېږي ځکه چي د نابالغ او لیوني پر اکثرو افعالو باندي په شرعي توګه سزا او جزاء نه واجبېږي.
۳. د مذهب اختلاف : د دوو مذهبو اختلاف د مېراث څخه محرومیت راولي یعني که چیري یو وارث مسلمان وي او مورث غېر مسلم (کافر) وي نو د هغه مېراث به مسلمان ته نه ورکول کیږي همدارنګه که چیري وارث غیر مسلم وي او مورث مسلمان وي نو د هغه مېراث به غیر مسلم ته نه ورکول کیږي .

۴. د دارينو اختلاف: يعني د هيوادو اختلاف، د مړي او وارث د هيوادو مختلف كېدل د مېراث څخه محروم كوي د مثال په توګه يو سړى په دارالاسلام كي اوسيږي او بل سړى په دارالحرب كي اوسيږي نو دواړه د يو بل د مېراث څخه محروم دي مګر دا حكم د غير مسلم لپاره دى د مسلمان مورث او وارث د هيوادو په اختلاف سره د ميراث څخه نه محروم كيږي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړى فصل)

### د مړي تركه د هغه د وارثانو حق دى

﴿۲۹۱۱﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ انا اولى بالمؤمنين

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زه و مسلمانانو ته د خپلو

من انفسهم فَمَنْ مات وعليه دين و لم يترك وفاء فعلي قضاءه و من تَرَكَ

ځانو هم ګران يم په مسلمانانو كي چي څوك مړ سي او په هغه باندي قرض وي او دومره مال پرې نه ږدي چي د هغه قرض په ادا سي نو د هغه قرض زما په ذمه دي او څوك چي مړ سي او مال

مَالًا فَلِوَرَثَتِهِ و في رواية مَنْ تَرَكَ دينا او ضياعا فلياتني فانا مولاه وفي رواية من ترك مالا فلورثته ومن ترك كَلًّا فَإِلَيْنَا. متفق عليه.

پرېږدي نو هغه د هغه د وارثانو دي په يوه بل روايت كي دا الفاظ دي رسول الله ﷺ فرمايلي دي څوك چي مړ سي او قرض يا كوچيان پرېږدي هغه ولي دي ما ته راسي زه به د هغه انتظام كوم او په يوه بل روايت كي دا الفاظ سته څوك چي مړ سي مال ځيني پاته سي نو هغه مال د هغه د وارثانو دي او څوك چي مړ سي قرض يا اولاد پرېږدي نو د هغه انتظام زما پر ذمه دي. (بخاري او مسلم)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۲\۴۹، رقم: ۶۷۶۳، ومسلم ۳\۱۲۳۸، رقم: ۱۷\۱۶۱۹.

**د لغاتو حل**: ضِياعا: اى عيالا(عيال). كَلا: اى ثقلا وهو يشمل الدين والعيال (پور او عيال).

**تشريح**: په پيل كي د رسول الله ﷺ دا معمول وو چي كله به يو سړى مړ سو نو كه چيري د هغه پر ذمه به پور وو او د هغه په مېراث كي به دومره مال نه وو چي د هغه د پور ادا كولو لپاره كافي وي نو رسول الله ﷺ به د هغه د جنازې لمونځ نه وركوى مګر څه وخت چي الله تعالى پراخي

راوستل او د مال د پراخئ نعمت ور په برخه سو نو رسول الله ﷺدا معمول جوړ کړی چي کوم سړی به پوروړی مړ سو نو رسول الله ﷺ به د هغه پور ادا کوی او د هغه د جنازې لمونځ به يې کوی ، دغه خبره د حضرت ابوهريره ﷜ ددغه روايت ځخه مفهوم کيږي چي کومه خبره د الافلاس والانظار په اول فصل کي تېره سوې ده او دا د رسول الله ﷺ د بې پايه شفقت، مهربانۍ او د زيات رحمت ځرګندونه ده کوم چي رسول الله ﷺ د ټولو مسلمانانو لپاره درلودی.

## د مړي ترکه اول ذوي الفروض ته ورکړئ

﴿۲۹۱۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلْحِقُوا الْفَرَائِضَ بِأَهْلِهَا فَمَا بَقِيَ فَهُوَ لِأَوْلَى رَجُلٍ ذَكَرٍ . متفق عليه.

د حضرت ابن عباس ﷜ ځخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :د ميراث برخه دي د هغه وارثانو ته ورکړل سي وروسته چي څه پاته سي نو هغه د زيات نژدې سړی لپاره دي .بخاري او مسلم

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۲\۱۱، رقم: ۶۷۳۲، ومسلم ۳\۱۲۳۸، رقم: ۱۷\۱۶۱۹.

**تشريح**: مطلب دادی چي د مړي ترکه تر ټولو مخکي هغه خلکو ته ورکول کيږي د کومو برخي چي قرآن کريم ټاکلي دي چي هغوی ته ذوي الفروض ويل کيږي ، هغوی د ټاکل سوو برخو ورکولو ځخه وروسته چي څه پاته سي هغه عصبات ته ورکول کيږي او بيا په عصبات کي مقدم هغه عصبه دي کوم د مړي تر ټولو نژدې قريبان وي ، د نژدې عصبه په موجودتيا کي د ليري عصبه حق نه سته ، د باب په شروع کي د ذوي الفروض او عصباتو تفصيلي ذکر سوی دی

د حديث په آخري الفاظو (رجل ذکر) کي لفظ د ذکر د تاکيد لپاره هم استعمال سوی دی او ددې مقصد دا هم دی چي د خنثی ځخه دي منع وکړل سي .

په شرح السنه کي ليکلي دي چي دغه حديث شريف ددې خبري دليل دی چي ځيني وارثانو د ځينو نورو وارثانو په حق کي حاجب (يعني د مېراث ځخه منع کونکی ) وي، حجب يعني د مېراث ځخه منع کول پر دوه ډوله دي : اول حجب نقصان، دوهم حجب حرمان، دلته په اجمالي توګه سره ددغه دواړو په تعريف پوه سئ چي ځيني وارثان داسي وي چي د هغوی په وجه د نورو وارثانو برخه کميږي مثلا د مړي اولاد نه وي نو د مړي مور ته به د ټولي مځکي ځخه دريمه برخه ورکول کيږي او که چيري د مړي اولاد وي نو د مړي مور ته به شپږمه برخه ورکول کيږي دې ته حجب نقصاني وايي همدارنګه ځيني وارثان داسي وي چي د هغوی په وجه

ځينو قريبانو ته د ميراث څخه هيڅ نه ورکول کيږي د مثال په توګه د مړي د زوی په موجودتيا کي ورور د ميراث څخه بالکل محروم وي .

## د مذهب اختلاف د ميراث څخه محرومتيا راولي

﴿۲۹۱۳﴾: وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ قال قال رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَرِثُ الْمُسْلِمُ الْكَافِرَ وَلَا الْكَافِرُ الْمُسْلِمَ . متفق عليه

د حضرت اسامه بن زيد رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : مسلمان د کافر او کافر د مسلمان نسي وارث کېدای .(بخاري او مسلم)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۲\۵۰، رقم: ۶۷۶۴، ومسلم ۳\۱۲۳۳، رقم: ۱\۱۶۱۴.

**تشريح**: علامه نووي رحمة الله عليه فرمايي چي پر دې خبره باندي د ټولو علماؤ اتفاق او اجماع ده چي کافر د مسلمان وارث نه سي کيدای يعني که يو مورث مسلمان وي او وارث کافر وي نو د مسلمان مورث د مړ کېدو څخه وروسته د هغه کافر وارث به د ميراث څخه محروم وي مګر په دې باره کي اختلاف دی چي مسلمان د کافر وارث کيدای سي که يا ؟ اکثر علماء وايي چي څرنګه کافر د مسلمان وارث نه سي کيدای همدارنګه مسلمان هم د کافر وارث کيدای نه سي مګر په صحابه کرامو او تابعينو کي د ځينو حضرات قول دادی چي مسلمان د کافر وارث کيدای سي د امام مالک رحمة الله عليه هم دا مذهب دی .

همدارنګه پر دې باندي هم د ټولو مسلمانانو اتفاق دی چي د کافر په ډول مرتد هم د مسلمان وارث کيدای نه سي مګر په دې باره کي اختلاف دی چي مسلمان د مرتد وارث کيدای سي که يا ؟ امام مالک ، امام شافعي، حضرت ربيعه او حضرت ابن ابي ليلی رحمة الله عليهم او داسي نور علماء وايي چي مسلمان هم د مرتد وارث کېدای نه سي ، امام ابوحنيفة رحمة الله عليه فرمايي چي مرتد د خپل ارتداد په ژوند کي چي څه ګټلي وي هغه به د بيت المال وي او د اسلام په حالت کي چي يې څه ګټلي وي نو هغه به د هغه د مسلمانانو وارثانو وي .

## ازاد کونکی د غلام وارث وي

﴿۲۹۱۴﴾: وَعَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَوْلَى الْقَوْمِ مِنْ أَنْفُسِهِمْ . رواه البخاري.

د حضرت انس رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د یوه قوم ازاد سوي غلام د هغه د خپل قوم څخه نه شمېرل کیږي . (هغه په میراث کي شریک کیږي) (بخاري)

**تخریج** : البخاري في الصحیح (فتح الباري): ۱۲\۴۸، رقم: ۶۷۶۱.

**تشریح**: په حدیث شریف کي د مولا څخه مراد ازادکونکی دی ، ددغه حدیث مطلب دادی چي د ازاد سوي غلام وارث هغه څوک دی چا چي هغه ازاد کړی دی، ددې پر خلاف ازاد سوی غلام خپل ازادونکي وارث نه دی، ځیني حضرات وایي چي د مولی څخه مراد ازاد سوی غلام دی یعني کومه قبیله او فرد چي یو غلام ازاد کړي نو د هغه ازاد سوی غلام به هغه حکم وي کوم چي د هغه د ازادونکي قبیلې یا فرد وي مثلا بني هاشم یو غلام ازاد کړی نو اوس هغه ازاد سوی غلام د زکوة په اړه د بني هاشم په ډول حکم لري لکه څرنګه چي پر بني هاشم باندي د زکوة مال حرام دی همدارنګه پر هغه ازاد سوي غلام باندي هم د زکوة مال حرام دی .

## خوریی د ماما وارث وي

﴿۲۹۱۵﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ابْنُ أُخْتِ الْقَوْمِ

د حضرت انس رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د قوم خوریي د هغو سره دي

مِنْهُمْ. متفق علیه" وذکر حدیث عائشة : " إنما الولاء " في باب قبل " باب

(یعني خوریي د ماما د مال وارث وي). (بخاري او مسلم) د بي بي عائشې حدیث دي د بلوغ

السلم و سنذکر حدیث البراء الخالة بمنزلة الام في باب بلوغ الصغیر و حضائته ان شاء الله تعالى.

الصغیر و حضالته په باب کي به انشاء الله بیان کړل سي .

**تخریج** : البخاري في الصحیح (فتح الباري): ۱۲\۴۸، رقم: ۶۷۶۲، ومسلم ۱۲\۷۳۵، رقم: ۱۳۳\۱۰۵۹

**تشریح**: مطلب دادی چي خوریی د خپل ماما وارث دی او هغه د ذوي الارحامو څخه دی، د امام ابوحنیفة او امام مالک رحمة الله علیهما په نزد ذوي الارحام د مړي وارثان دي مګر دا خبره ضروري ده چي ذوي الارحکام ته به د مړي میراث هغه صورت کي ورکول کیږي کله چي د مړي ذوي الفروض او عصبات نه وي ، ددغه دواړو په موجودتیا کي ذوي الارحامو ته هیڅ نه ورکول کیږي ددې تفصیل د باب په شروع کي تېر سوی دی .

په هر حال امام ابو حنيفة رحمه الله عليه د ذوي الارحامو پر وارث كېدو باندي ددغه حديث څخه استدلال كړی دی .

او د بي بي عائشې رضي الله عنها روايت (انما الولاء ...الخ) د باب السلم څخه مخكي په باب كي نقل سوی دی او د حضرت براء رضي الله عنه روايت (بمنزلة الام ...الخ) به په باب بلوغ الصغير وحضانته كي ذكر سي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### كافر د مسلمان او مسلمان د كافر وارث كيداى نه سي

﴿۲۹۱۶﴾: عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَتَوَارَثُ أَهْلُ مِلَّتَيْنِ شَتَّى . رواه ابوداؤد وابن ماجة و رواه الترمذي عن جابر .

د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : دوه جلا مذهبه خلک يو دبله نسي وارث كيداى .(ابو داؤد ابن ماجه)او په ترمذي كي د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت نقل سوي دي .

**تخريج**: ابوداود في السنن ۳\ ۳۲۸، رقم: ۲۹۱۱، وابن ماجه ۲\ ۹۱۳، رقم: ۲۷۳۱.

**تشريح**: مطلب دادی چي نه خو مسلمان د غير مسلمان وارث كېداى سي او نه غير مسلمان د مسلمان وارث كېداى سي .

### د خپل مورث قاتل د ميراث څخه محروم وي

﴿۲۹۱۷﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْقَاتِلُ لاَ يَرِثُ . رواه الترمذي وابن ماجة.

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : قاتل د مقتول د مال وارث نه دي . (ترمذي ابن ماجه)

**تخريج**: الترمذي في السنن ۴\ ۳۷۰، رقم: ۲۱۰۹، وابن ماجه ۲\ ۹۱۳، رقم: ۲۷۳۵.

**تشريح**: مطلب دادی چي كوم څوک خپل مورث په ناحقه قتل كړي نو هغه د مېراث څخه محروم دی په دې باره كي تفصيل د باب په شروع كي تېر سوی دی .

## د انا شپږمه برخه ده

﴿۲۹۱۸﴾: وَعَنْ بُرَيْدَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَعَلَ لِلْجَدَّةِ السُّدُسَ إِذَا لَمْ تَكُنْ دُونَهَا أُمٌّ. رواه ابوداود.

د حضرت بریده رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د انا لپاره شپږمه برخه ټاکلې ده په دې شرط چي مور نه وي موجوده .(ابو داؤد)

**تخريج**: ابوداود في السنن ۳\۳۱۷، رقم: ۲۸۹۵.

**تشريح** مطلب دادی که چیري د مړي مور ژوندۍ وي نو د هغې په وجه د مړي انا محرومه کیږي مګر که چیري د مړي مور ژوندۍ نه وي نو د هغه د مړاث څخه به انا ته شپږمه برخه ورکول کیږي دلته د جده څخه د مور مور او د پلار مور دواړي مراد دي .

## ژوندی پیدا کېدونکی ماشوم وارث دی

﴿۲۹۱۹﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اسْتَهَلَّ الصَّبِيُّ صُلِّيَ عَلَيْهِ وَوُرِثَ. رواه ابن ماجة والدارمي .

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل :کوچنی (د پیدا کېدو څخه وروسته)که چغه ووهي (یا دهغه د خولې څخه یو اواز را وو ځي وروسته مړ سي )نو په هغه جنازه کول پکار ده او هغه دي وارث جوړ کړل سي . (ابن ماجه دارمي) .

**تخريج**: ابن ماجه في السنن ۲\۹۱۹، رقم: ۲۷۵۰، والدارمي ۲\۴۸۵، رقم: ۳۱۲۶.

**تشريح**: د اواز کښلو څخه مراد د ژوند نښه ده ، مطلب دادی چي کوچنی د زېږېدني پر وخت د مور څخه نیم راووځي او په هغه کي د ژوند یو نښه پیدا سي په دې توګه چي د هغه د خولې څخه اواز راووځي یا ساه واخلي یا د هغه یو اندام وښوریږي او بیا مړ سي نو د هغه کوچني دي د جنازې لمونځ هم وکړل سي او د هغه په وارث ګرځولو سره د هغه ورثه دي هم وویشل سي .

اوس د حدیث د دغه وضاحت په رڼا کي په دغه مسئله باندي هم پوه سئ که یو سړی مړ سي او د هغه وارث د مور په نس کي وي نو د هغه میراث دي وساتل سي بیا که چیري هغه ژوندی پیدا سي نو هغه به وارث وي او د هغه میراث به د هغه وارثانو ته منتقل کړل سي او که چیري هغه ژوندی پیدا نه سي نو بیا وارث نه دی او د هغه میراث به نورو وارثانو ته ورکول کیږي .

## د اسلام د ابتداء يو حكم

﴿۲۹۲۰﴾: وَعَنْ كَثِيْرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ

حضرت كثير بن عبد الله ﷺ د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار څخه روايت كوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَوْلَى الْقَوْمِ مِنْهُمْ وَحَلِيْفُ الْقَوْمِ مِنْهُمْ وَابْنُ أُخْتِ الْقَوْمِ مِنْهُمْ. رواه الدارمي

د يوه قوم ازاد سوي غلام د قوم څخه دي (يعني كه د غلام څوك عصبه نه وي نو دهغه دمال وارث دهغه ازادونكي دي )او د قوم حليف (قريب) هم د قوم څخه دي .(د احكم د اسلام په پېل كي وو وروسته منسوخ كړل سو ) او د قوم خوريي د قوم څخه دي . (دارمي) .

**تخريج**: سنن الدارمي ۲\۳۱۷، رقم: ۲۵۲۸.

**تشريح** په اول فصل كي د حضرت انس ﷺ روايت تېر سوى دى او د هغه په تشريح كي د مولى وضاحت سوى دى .

او نه د يو قوم حليف د هغه قوم څخه دى : ددې مطلب دادى چي مخكي په عربو كي دا رواج وو چي دوو كسانو به په خپل مينځ كي د قسم او حلف په ذريعه اقرار وكړ چي موږ دواړه به د يو بل سره په غم او خوشحالي، مرګ او ژوند كي شريک يو ، د يوه وينه به د بل وينه وي د يوه صلح به د بل صلح وي او د يوه جګړه به د بل جګړه وي كه په موږ كي پر يوه تاوان راسي نو دوهم به يې ادا كوي همدارنګه د يو بل په ميراث كي هم دا اقرار كوي چي زه به ستا وارث يم او ته به زما وارث يې ، د ميراث په اړه د اسلام په ابتدائي زمانه كي هم پر دې عمل كيدى مګر وروسته په قرآن كريم كي د وراثت يوه واضحه قاعده نازل سوه او وارثان او د هغوى برخي وټاكل سوې نو دغه پخوانى رواج هم ختم سو او د رسول الله ﷺ دغه ارشاد هم منسوخ سو .

## خوريى د خپل ماما ذي رحم وارث وي

﴿۲۹۲۱﴾: وَعَنِ الْمِقْدَامِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَا أَوْلَى

د حضرت مقدام ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : زه د هر مؤمن لپاره د هغه د

بِكُلِّ مُؤْمِنٍ مِنْ نَفْسِهِ فَمَنْ تَرَكَ دَيْنًا أَوْ ضَيْعَةً فَإِلَيْنا وَمَنْ تَرَكَ مَالًا

ځان څخه زيات ګران يم نو څوک چي قرض يا اولاد پرېږدي او مړ سي زه د هغه کفيل يم او څوک چي مال پرېږدي

فَلِوَرَثَتِهِ وَأَنَا مَوْلَى مَنْ لَا مَوْلَى لَهُ أَرِثُ مَالَهُ وَأَفُكُّ عَانَهُ وَالْخَالُ مَوْلَى مَنْ لَا

نو هغه د هغه د وارثانو دي او زه د هغه سړي مولا يم چي د هغه هيڅوک مولا نه وي او د هغه د مال وارث يم (يعني د چا چي هيڅوک وارث نه وي د هغه وارث زه يم زه به د هغه مال په بيت المال کي جمعه کړم ځکه چي انبياء عليهم السلام په حقيقت کي د چا د مال وارثان نه وي) او د هغه قيدي د عذاب د قيد څخه خلاصونکي يم او ماما د هغه چا وارث دي چي د هغه نور څوک

مَوْلَى لَهُ يَرِثُ مَالَهُ وَيَفُكُّ عَانَهُ و في رواية وَأَنَا وَارِثُ مَنْ لَا وَارِثَ لَهُ أَعْقِلُ لَهُ

وارث نه وي هغه به د هغه مال بيا پيدا کوي او د هغه قيدي به خلاصوي او په يو بل روايت کي دا الفاظ دي چي نبي کريم ﷺ وفرمايل: زه د هغه چا وارث يم چي د هغه بل څوک وارث نه وي

وَأَرِثُهُ وَالْخَالُ وَارِثُ مَنْ لَا وَارِثَ لَهُ يَعْقِلُ عَنْهُ وَيَرِثُهُ.

زه به د هغه قصاص ادا کوم او د هغه وارث به جوړېږم ماما د هغه وارث دي چي د هغه بل هيڅوک وارث نه وي د هغه قصاص به ادا کوي او هغه به يې مال اخلي. (ابوداؤد).

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\۳۲۰، رقم: ۲۹۰۰،

## ښځه د چا ميراث تر لاسه کولای سي؟

﴿۲۹۲۲﴾: وَعَنْ وَاثِلَةَ بْنِ الْأَسْقَعِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَحُوزُ الْمَرْأَةُ ثَلَاثَةَ مَوَارِيثَ عَتِيقَهَا وَلَقِيطَهَا وَوَلَدَهَا الَّذِي لَاعَنَتْ عَلَيْهِ. رواه الترمذي وابوداؤد وابن ماجة.

د حضرت واثله بن اسقع رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ښځه د درو سرو ميراث اخيستلای سي: ۱-يو خو د خپل ازاد سوي غلام يا مينزي. ۲-د لقيط (يعني د هغه يا

هغې کوچني چيري پروت وي او د هغه روزنه وکړي ۳-او هغه کوچنی چي د هغه په پيدائش لعان سي . (ترمذي ابو داؤد ابن ماجه) .

**تخریج**: سنن الترمذي ۴\ ۳۷۳، رقم: ۲۱۱۵، وابوداود ۳\ ۳۲۵، رقم: ۲۹۰۶، وابن ماجه ۲\ ۹۱۶، رقم: ۲۷۴۲.

**تشریح**. د خپل ازاد سوي غلام څخه مراد دادی چي د مثال په توګه يو ښځه خپل غلام ازاد کړي او هغه ازاد سوی غلام په داسي حالت کي مړ سي چي د هغه نسبي عصبه نه وي نو څرنګه چي يو سړی په دغه صورت کي د خپل ازاد سوي غلام وارث کيږي همدارنګه دغه ښځه هم د خپل ازاد سوي غلام ميراث تر لاسه کولای سي .

د لقيط څخه مراد دادی چي د مثال په توګه يو ښځه په لاره کي يو پروت کوچنی پيدا کړی او د هغه روزنه وکړي او لوی يې کړي نو اوس دغه ښځه د هغه وارثه سوه چي د هغه لقيط د مړ کېدو څخه وروسته د هغه ميراث تر لاسه کړي ، د حضرت اسحاق ابن راهو رحمه الله دا مذهب دی مګر د نورو علماؤ مذهب دادی چي ملتقط (يعني د کوچني پورته کونکی) د ولاء حق نه لري ، مطلب دادی چي کومه ښځه يو کوچنی پيدا کړي او لوي يې کړي نو د هغه نه وارثه کيږي ځکه چي رسول الله ﷺ د خپل ارشاد (لا ولاء لها الا ولاء العتاقة) په ذريعه د ليقط حق د ازادونکي سره مختص کړی دی، ددغه علماؤ په نزد دغه حکم دی چي ښځه د خپل لقيط وارثه وي دا منسوخ دی .

قاضي رحمه الله چي ددغه حکم کوم مطلب بيان کړی دی د هغه سره سم دې ته د منسوخ ويلو ضرورت هم نه سته ، قاضي رحمه الله وايي چي ددغه جملې معنی داده چي د لقيط پرې ايښی مال او سامان د بيت المال حق دی مګر کومي ښځي چي لقيط پورته کړی دی او د هغه روزنه يې کړې ده نو هغه د نورو مسلمانانو په مقابله کي ددې زياته حقداره ده چي د بيت المال له طرفه هغه مال کوم چي لقيط پرې ايښی دی په هغه ښځي باندي مصرف کړل سي .

لعان دې ته وايي چي يو سړی پر خپل ښځي باندي زنا تهمت ولګوي يا کوم ماشوم چي پيدا سوی دی د هغه په باره کي دا ووايي چي دا زما کوچنی نه دی او هغوی په دغه وجه په خپلو کي پر يو بل لعنت او ملامتيا وکړي ، ددې تفصيلي ذکر به په باب اللعان کي راسي انشاء الله ، نو د کوم کوچني په پيدا کېدو کي چي لعان سوی وي د هغه کوچني نسب د پلار څخه ثابت نه دی او نه هغه کوچنی او پلار په خپلو کي د يو بل وارث کيدای سي ځکه چي د وراثت تعلق د نسب سره دی چي په دغه صورت کي نه سته البته د هغه کوچني نسب د مور څخه ثابتيږي ځکه

هغه کوچنی او مور به خپلو کي د يو بل وارث وي ، د ولد الزنا هم دغه حکم دی .

## د ولد الزنا حکم

﴿۲۹۲۳﴾ : وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

حضرت عمرو بن شعيب رضي الله عنه د خپل پلار ه څخه او هغه د خپل پلار ه څخه روايت کوئ چي رسول

وَسَلَّمَ قَالَ أَيُّمَا رَجُلٍ عَاهَرَ بِحُرَّةٍ أَوْ أَمَةٍ فَالْوَلَدُ وَلَدُ زِنَا لَا يَرِثُ وَلَا يُورَثُ .

رواه الترمذي.

الله ﷺ وفرمايل : څوک چي ازادي ښځي يا مينزي سره زنا وکړي او د هغه د زنا د نطفي څخه کوچنی پيدا سي نو کوچني ته ولد زنا ويل کيږي نه هغه د چا وارث کيږي او نه د هغه ميراث د چا کيږي . (ترمذي) .

**تخريج** : الترمذي في السنن ۴\ ۳۷۲، رقم: ۲۱۱۳.

**تشريح**: مطلب دادی چي د زنا په نتيجه کي پيدا کېدونکی کوچنی نه د زنا کونکي وارث وي او نه د هغه د قريبانو ميراث به هغه ته ورکول کيږي ځکه چي وراثت د نسب په وجه وي او د ولد الزنا او د زنا کونکي په مينځ کي د نسب هيڅ وجود نه وي همدارنگه زنا کونکی به هم د خپل ولد الزنا وارث نه وي او نه د هغه قريبان به د هغه ميراث تر لاسه کولای سي ، ددې برعکس د ولد الزنا مور به د هغه وارثه وي او ولد الزنا به د مور وارث وي .

## د ازاد سوي غلام ميراث

﴿۲۹۲۴﴾ : وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ مَوْلًى لرسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَاتَ وَتَرَكَ

د حضرت بي بي عائشي رضي الله عنها څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ يو ازاد سوی غلام مړ سو او د

شَيْئًا وَلَمْ يَدَعْ حميما ولا وَلَدًا فَقَالَ رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْطُوا مِيرَاثَهُ رَجُلًا مِنْ أَهْلِ قَرْيَتِهِ . رواه ابوداؤد والترمذي.

هغه هيڅ خپل پاته نسو چي وارثان سوي يې واي رسول الله ﷺ وفرمايل: د هغه مال په کليوالو کي (مستحق) ته دي ورکول سي . (ابو داؤد ترمذي)

**تخريج** : ابوداود في السنن ۳\ ۳۲۲، رقم: ۲۹۰۲، والترمذي ۴\ ۳۶۸، رقم: ۲۱۰۶.

**دلغاتو حل**: حميما: اى قريبا. (دوست).

**تشريح** د هغه ازاد سوي غلام وارث نه وو ځکه د هغه مېراث د بيت المال حق سو او د بيت المال مصرف د فقيرانو او مسکينانو دي ځکه رسول الله ﷺ د هغه مال د هغه د کلي يو اړ او مستحق سړي ته ورکول غوره وګڼل.

## انبياء عليهم السلام د چا وارثان نه وي

دا خبره مخکي واضح سوې ده که چيري د ازاد سوي غلام عصبات نسبي نه وي نو د هغه حق ولاء د هغه ازادونکي سړي ده يعني د هغه دمرګ څخه وروسته د هغه ازادونکى د هغه د ميراث مالک کيږي ددغه قاعدې سره کله چي د رسول اللهﷺازاد سوى غلام مړ سو او د هغه نسبي وارث نه وو نو د هغه مېراث رسول الله ﷺته اخيستل پکار وه مګر انبياء عليهم السلام د چا وارثان نه وي او نه څوک د انبياء عليهم السلام وارثان وي ځکه د هغه ازاد سوي غلام مېراث رسول الله ﷺ خپله وانه خيستى بلکه د بيت المال په مصرف کي يې ورکړ.

اوس دا سوال پيدا کيږي چي انبياء عليهم السلام د چا وارثان ولي نه دي او د هغوى مېراث ولي يو چا ته نه ورکول کيږي ؟ ددې جواب دادى چي انبياء عليهم السلام د دنيا د بې ثباتۍ او د دنيا د مال او سامان سره د بې تعلقۍ او د دنيا د خواهشاتو څخه د پرهيز کولو نه يوازي دا چي تعليم ورکوي بلکه خپل تعليم يې خپله هم عملي کوى او د دنيا هيڅ يو شى د هغوى لپاره ارزښت نه درلودى، د هغوى پر حقيقت شناس نظر باندي د غفلت پرده نه وه ځکه د الله تعالى د حقيقي مالک او متصرف کېدو مشاوره او کامل يقين هغوى ته ترلاسه وو، د دنيا د مال او سامان د مستعار کېدو او په دنيا کي د انسان د مسافرانه حالت نقشه د هغوى په ذهن کي وه ځکه نو نه خو د هغوى د دنيا د مال او سامان سره څه مينه وه او نه د هغوى دا خواهش وو چي زموږ د قريبانو ميراث موږ ته ترلاسه سي او نه به هغوى ته ددغه دنيا څخه د رخصت کېدو پر وخت د خپل مال او سامان د پرېښودو څه افسوس وو ځکه چي اول خو د انبياء عليهم السلام سره د دنيا مال او سامان نه وو او که چيري يو لږ مال او سامان به وو نو د هغه سره به يې هيڅ مينه نه وه چي انبياء عليهم السلام ددغه دنيا څخه د رخصتېدو وروسته که مال او سامان پرېږدي نو هغه به هم د چا وراثت نه وي او نه انبياء عليهم السلام په خپل ژوند کي د خپل قريبانو د مېراث څخه برخه اخيستې ده، رسول الله ﷺ د ټولو انبياؤ عليهم السلام شان په دغه الفاظو کي ظاهر کړ: انا معاشر الانبياء لا نورث ما ترکنا صدقة: يعني زموږ د نبيانو په مال او سامان کي ميراث نه جاري کيږي موږ چي څه پرېږدو هغه صدقه ده.

## د چا چي هيڅوک وارث نه وي ...

﴿۲۹۲۵﴾: وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ مَاتَ رَجُلٌ مِنْ خُزَاعَةَ فَأُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

د حضرت بريده رضي الله عنه څخه روايت دی چي د خزاعه د قبيلې يو سړی مړ سو د هغه ميراث يې و

وَسَلَّمَ بِمِيرَاثِهِ فَقَالَ الْتَمِسُوا لَهُ وَارِثًا أَوْ ذَا رَحِمٍ فَلَمْ يَجِدُوا لَهُ وَارِثًا وَلَا ذَا

رسول الله ﷺ ته راوړ نو رسول الله ﷺ وفرمايل: د ده د وارث تلاش وکړئ نو يې هيڅوک

رَحِمٍ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْطُوهُ الْكُبْرَ مِنْ خُزَاعَةَ . رواه

ابوداؤد وفي رواية له انْظُرُوا أَكْبَرَ رَجُلٍ مِنْ خُزَاعَةَ .

وارث پيدا نسو نبي کريم ﷺ وفرمايل: د بنو خزاعه په قبيله کي چي کوم يو مشر وي دا مال و هغه ته ورکړي . (ابو داؤد)او د ابوداؤد په يوه بل روايت کي راغلي دي نبي کريم ﷺ وفرمايل: د بنو خزاعه په قبيله کي تر ټولو د مشر تلاش وکړئ.

**تخريج**: ابوداود في السنن ۳\ ۳۲۴، رقم: ۲۹۰۴.

**تشريح**: د دغه حديث تشريح هم هغه ده کوم چي په پورتني حديث کي سوې ده ، د هغه سړي هيڅوک وارث نه وو ځکه د هغه ترکه به په بيت المال کي جمع کېدل ، رسول الله ﷺ دا مناسب وګڼل چي د هغه ترکه دي د هغه قبيلې يو ډېر سپين ږيري سړي ته ورکړل سي ځکه چي داسي سړی د بيت المال مصرف هم دی او د هغه د قبيلې د يو فرد کېدو او د خپل سپين ږيرتوب په وجه تر ټولو زيات مستحق هم دی .

## د مړي د پور ادا کول د هغه تر وصيت مخکي دی

﴿۲۹۲۶﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ إِنَّكُمْ تَقْرَءُونَ هَذِهِ الْآيَةَ { مِنْ بَعْدِ وَصِيَّةٍ تُوصُونَ

حضرت علي رضي الله عنه (يوه ورځ) خلکو ته يې وويل :تاسو دا ايت وایاست : من بعد وصية توصون

بِهَا أَوْ دَيْنٍ } وَإِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَضَى بِالدَّيْنِ قَبْلَ الْوَصِيَّةِ

بها او دين (چي په دې کي مخکي تر قرض د وصيت حکم سوی دی ) ليکن د رسول الله ﷺ دا

وَإِنَّ أَعْيَانَ بَنِي الْأُمِّ يَتَوَارَثُونَ دُونَ بَنِي الْعَلَّاتِ الرَّجُلُ يَرِثُ أَخَاهُ لِأَبِيهِ

معمول وو چي حقيقي ورونه به د پلاره وارثان وي نه مورني ورونه او دا چي سړی به د خپل

وَأُمِّهِ دُونَ أَخِيهِ لِأَبِيهِ . رواه الترمذي و ابن ماجة و في رواية الدارمي قال الاخوة من الام يتوارثون دون بني العلات الى آخره .

ورور وارث وي نه مورني ورونه .(ترمذي ابن ماجه)او د دارمي په يو . بل روايت كي راغلي دي چي حضرت علي رضي الله عنه فرمايلي دي : د يو مور پلار ورونه (سكني ورونه) د يو بل وارثان دي نه هغه ورور چي فقط په پلار كي سره شريكان وي (يعني مورني ورونه) تر اخر د حديث پوري .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۴\ ۳۶۲، رقم: ۲۰۹۴، وابن ماجه في السنن ۲\ ۹۱۵، رقم: ۲۷۳۹، والدارمي ۲\ ۴۶۴، رقم: ۲۹۸۴.

**د لغاتو حل**: بني العلات : وهم الاخوة لاب وامهاتهم شتى.

**تشريح**: په حديث شريف كي د ذكر سوي آيت كريمه خلاصه داده كه چيري مړي وصيت كړی وي نو د هغه د پوره كولو څخه وروسته، او كه چيري د هغه پر ذمه پور وي نو د هغه د ادا كولو څخه وروسته د هغه په وارثانو كي دي د هغه مال وويشل سي ، په دغه آيت كريمه كي په ظاهره د وصيت تعميل د پور پر ادا كولو مقدم سوی دی ، او حال دا چي د رسول الله ﷺ دا معمول وو چي د وصيت د تعميل څخه مخكي به يې د پور ادا كولو حكم وركوی ، په دې باره كي حضرت علي رضي الله عنه د خلكو څخه پوښتنه وكړه چي تاسو دغه آيت واياست ايا ددې په معنى پوهيږئ كه يا ؟ يعني په داسي ويلو سره حضرت علي رضي الله عنه خلك خبردار كړل چي داسي مه ګڼئ چي د قرآن كريم دغه آيت او د رسول الله ﷺ په مينځ كي اختلاف دی يا دا چي په آيت كريمه كي وصيت مقدم سوی دی ځكه چي د وصيت تعميل د پور پر ادا كولو مقدم دی بلكه دا خبره بايد په ذهن كي وي چي په آيت كريمه كي د الفاظو په اعتبار د پور ادا كول كه څه هم وروسته ذكر سوي دي مګر په حقيقت كي او د حكم په اعتبار داسي ده لكه څرنګه چي رسول الله ﷺ د خپل حكم په ذريعه واضحه كړې ده ، اوس پاته سوه دا خبره چي په آيت كريمه كي د وصيت ذكر ولي مخكي سوی دی؟ نو ددې مختصر جواب دادی چي د مړي د وصيت تعميل مشكل كار دی او په دې كي كوتاهي كيدای سي ځكه د وصيت ذكر مقدم كولو سره خبرداری وركړل سو چي د مړي د وصيت تعميل دي اسانه او غير ضروري نه ګڼل كيږي بلكه دا دي يو ارزښتناكه او ضروري شي په ګڼلو سره پوره كړل سي .

## د میراث د آیت شان نزول

﴿۲۹۲۷﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ جَاءَتْ امْرَأَةُ سَعْدِ بْنِ الرَّبِيعِ بِابْنَتَيْهَا مِنْ سَعْدٍ

د حضرت جابر رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي د سعد بن ربیع ښځي خپلي دواړي لوڼي چي د سعد

بن الربيع إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ هَاتَانِ

رضی اللہ عنہ د نطفې څخه وې د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضري کړې او عرض يې وکړ يا رسول الله! دا دواړي انجوني

ابْنَتَا سَعْدِ بْنِ الرَّبِيعِ قُتِلَ أَبُوهُمَا مَعَكَ فِي أُحُدٍ شَهِيدًا وَإِنَّ عَمَّهُمَا أَخَذَ

د سعد بن ربيع دي د دوي پلار د احد په غزا کي چي ستاسو ملګري وو شهيد سو او د دوی اکا د دوی مال (چي په ميراث کي دوي ته رسيدل) واخيستي

مَالَهُمَا وَلَمْ يَدَعْ لَهُمَا مَالًا وَلَا تُنْكَحَانِ إِلَّا وَلَهُمَا مَالٌ قَالَ يَقْضِي اللَّهُ فِي

او د دوی دواړو لپاره يې هيڅ نه پرېښوده او اوس د مال نه درلودلو په خاطر د دوی سره څوک نکاح نه کوي نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل: د دې معاملې فيصله به خداي تعالي کوي (يعني د

ذَلِكَ فَنَزَلَتْ آيَةُ الْمِيرَاثِ فَبَعَثَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى عَمِّهِمَا

وحي په ذريعه به وسي) نو د ميراث ايت نازل سو (يوصيكم الله فی اولادكم) نبي کريم ﷺ سمدستي د انجونو اکا را وغوښت

فَقَالَ أَعْطِ لِابْنَتَيْ سَعْدٍ الثُّلُثَيْنِ وَاعْطِ أُمَّهُمَا الثُّمُنَ وَمَا بَقِيَ فَهُوَ لَكَ. رواه

او حکم يې ورته وکړ چي د سعد و لوڼو ته دوه پر دري ۲/۳ مال ورکړه او اتمه برخه د انجونو و مور ته ورکړه او وروسته چي څومره پاته سي هغه ستا دي.

احمد والترمذي وابوداؤد وابن ماجة وقال الترمذي هذا حديث حسن غريب.

(ترمذي ابو داؤد احمد ابن ماجه) او په ترمذي کي دا حديث حسن غريب ګڼل سوي دي.

**تخريج**: احمد في المسند ۳\ ۳۵۲، والترمذي في السنن ۴\ ۳۶۱، رقم: ۲۰۹۲، وابوداود في السنن ۳\ ۳۱۶، رقم: ۲۸۹۲، وابن ماجه في السنن ۲\ ۹۰۸، رقم: ۲۷۲۰.

**تشریح** د رسول الله ﷺ د پیغمبری او د اسلام د رڼا خپرېدو څخه مخکي د جاهلیت په زمانه کي دا طریقه رواج وه چي د مړي مېراث به یوازي هغه چا اخیستی کوم چي پوره نارینه، ځوان او د جنګ ډګر ته د تللو وړ وو ، ښځو ، کوچنیانو او کمزورو ته به مېراث نه ورکول کیدی ، غریب ، بې وزلي ، معصوم او یتیم کوچنیان او د رحم وړ انجوني به په ژړا او ارمان کي پاته سوې او د هغوی د پروا کولو څخه پرته به ځوان ، قوي او شتمن اکا او ورور راغلی او د مړي ټول مال به یې واخیستی ، د ظلم او جبر دغه طریقه رواج وه چي رسول الله ﷺ د کونډو، یتیمانو، مسکینانو، انجونو او بې چاره خلکو د همدرد جوړېدو سره دغه دنیا ته تشریف راوړ او د اسلام نور یې د هر ظلم او جبر او د هري بدۍ او هري نا انصافۍ تیاره له منځه یووړل ، تر دې چي د مېراث په اړه د ښځو او انجونو سره د کیدونکي نا انصافۍ ختمولو وخت هم راغلی د ښځو په حق کي د دغه څرګند ظلم د خاتمې ابتداء داسي وسوه چي یو صحابي حضرت اوس ابن ثابت انصاري رضي الله عنه وفات سو ، د هغه په قریبانو کي یوه ښځه ام کمحه او درې انجوني (لوڼي) پاته سوې (په ځینو روایتو کي دادي چي دوې لوڼي او یو کوچنی زوی یې وو) حضرت اوس رضي الله عنه د خپل مال او سامان د دوو کسانو لپاره وصیت کړی دی ، هغه د جاهلیت د زمانې د رواجي طریقې سره سم د اوس رضي الله عنه ټول سامان د هغه د اکا زوی (یا د ځینو روایتو سره سم د هغه دوو حقیقي وړونو) خالد او عرفطه ته ورکړل ، چي د هغه نتیجه دا سوه چي د اوس رضي الله عنه بې وزلي ښځه او د هغه کوچنۍ لوڼي په ژړا سوې او هغوی ته هیڅ هم ور نه کړل سول ،

څرګنده ده چي د داسي بې وزلي او لا چاره غریب مسلمانانو همدرد او مرستیال د رسول الله ﷺ څخه پرته بل څوک کیدای سي، هغوی د پریشانۍ او بیري په حالت کي د رسول الله ﷺ په دربار کي په منډه حاضر سول او وه یې ویل چي د خاوند د مال څخه ما ته څه را کړل سول او نه زما لوڼو ته څه ورکړل سول ، څه چي وه هغه خالد او عرفطه ته ورکړل سول . اوس به موږ څه کوو ، د دغه حالت په لېدو سره رسول الله ﷺ ته ډېر افسوس وسو مګر په سمدستي توګه رسول الله ﷺ هیڅ نه سوای کولای ځکه چي رسول الله ﷺ خود مختاره حاکم او د خدای جل جلاله په خدایي کي شریک نه وو ځکه د خپل ځان څخه یې یو فیصله نه سوه کولای ، مګر بیا هم رسول الله ﷺ د اوس ښځي ته په ډاډ ورکولو سره وفرمایل چي ته خپل کور ته بېرته ولاړه سه او په دې اړه تر څو چي د الله تعالی له خوا فیصله کیږي انتظار او صبر کوه ، نو رسول الله ﷺ د الله جل جلاله د حکم او فیصلې په انتظار کي وو چي دغه آیت کریمه نازل سو :

لِّلرِّجَالِ نَصِيبٌ مِّمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالأَقْرَبُونَ وَلِلنِّسَاء نَصِيبٌ مِّمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالأَقْرَبُونَ مِمَّا قَلَّ مِنْهُ أَوْ كَثُرَ نَصِيبًا مَّفْرُوضًا،

ژباړه: د نارينوو لپاره هم د هغه شي برخه ده کوم چي مور او پلار او نژدې قريبان يې پريږدي او د ښځو لپاره هم د هغه څخه برخه ده کوم چي مور او پلار او نژدې قريبان يې پريږدي که څه هم هغه شي لږ وي يا ډېر وي دا قطعي برخه ده.

د دغه آيت کريمه د نازلېدو څخه دا معلومه سوه چي د مېراث په اړه د ښځو او لوېو سره تر ننه چي کومه نا انصافي کېدل اوس هغه ختمه سوې ده او په مېراث کي يوازي د خلکو حق نه دی بلکه د ښځو حق هم دی مگر په هر حال آيت مجمل وو چي په هغه کي يوازي د ښځو حق ثابت سوی وو اوس دا وضاحت نه وو سوی چي په مېراث کي د خلکو څومره برخه ده او د ښځو څومره برخه ده ځکه چي د الله تعالی د حکم د نازلېدو څخه وروسته رسول الله ﷺ د اوس رضي الله عنه قريبانو ته وفرمايل چي الله تعالی په مېراث کي د ښځو حق هم ټاکلی دی مگر تر اوسه پوري حقدار او د هغه برخه ټاکل سوې نه ده ځکه نو تاسو د اوس رضي الله عنه مال وساتئ د هغه څخه هيڅ شی مه مصرف کوئ ، ډېر ژر دا سي يو حکم نازلېدونکی دي چي په هغه کي به د برخو ټاکنه وکړل سي نو د دغه پيښي ډېري ورځي نه وې تېري سوي چي هغه واقعه پيښه سوه کوم چي په پورتني حديث کي ذکر سوې ده چي د خرزج قبيلي يو ستر انصاري حضرت سعد ابن ربيع رضي الله عنه په دريم هجري کال کي د احد په غزا کي د دوولس زخمونو خوړلو څخه وروسته شهيد سو ، د هغه د شهادت څخه وروسته د هغه ورور د جاهليت د زمانې د رواج سره سم د حضرت سعد رضي الله عنه پر ټول مال باندي قبضه وکړل او د هغه ښځه او دواړي لوڼي يې محرومي کړې نو د حضرت سعد رضي الله عنه ښځه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضره سوه او ددغه نا انصافۍ پر خلاف يې درخواست وکړ ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چي لږ صبر وکړه الله تعالی ډېر ژر يو آخري او قطعي فيصله کونکی دی ، نو څو ورځي وروسته دغه آيت کريمه د مېراث په اړه نازل سو :

يُوصِيكُمُ اللهُ فِي أَوْلاَدِكُمْ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الأُنثَيَيْنِ...،

ژباړه : الله تعالی تاسو ته ستا د اولاد په باره کي حکم درکوي چي د هلک برخه د دوو انجونو برابر ده ... الخ.

ددغه آخري فيصلې څخه وروسته کله چي د ټولو وارثانو برخي وټاکل سوې نو رسول الله ﷺ د سعد ابن ربيع ورور ته وفرمايل چي د الله تعالی د حکم سره سم د خپل ورور د مېراث څخه دوه

پر درې برخي انجونو ته ورکړه او اتمه برخه د هغوی مور ته ورکړه ، د دې څخه وروسته چې څه پاته سي هغه ته واخله یعني سعد ﷺ چي څه پرې ایښي دي د هغه ځلورویشت برخي جوړي کړه بیا د هغه ځلورویشتو برخو څخه اته اته برخي دواړو انجونو ته ورکړه ، درې برخي د هغوی مور ته ورکړه او پاته پنځه برخي ته واخله .

## د لور، ملسی او خور برخي

﴿۲۹۲۸﴾: وَعَنْ هُزَيْلِ بْنِ شُرَحْبِيلٍ قَالَ سُئِلَ أَبُو مُوسَى عَنْ بِنْتٍ وَابْنَةِ ابْنٍ

د حضرت هزیل بن شرحبیل ﷺ څخه روایت دی چي د حضرت ابو موسی څخه پوښتنه وسوه یو سړی مړ سو او د هغه یوه لور یوه لمسی.

وَأُخْتٍ فَقَالَ لِلْبِنْتِ النِّصْفُ وَلِلأُخْتِ النِّصْفُ وَأْتِ ابْنَ مَسْعُودٍ فَسَيُتَابِعُنِي

او یوه خور وارثان پاته سوه نو مال به یې څنګه تقسیمیږي هغه ورته وویل: لور ته به یې نیمه او خور ته به یې نیمه (او لمسی ته به یې نه ورکوي) بیا ابو موسی ﷺ وویل :تا سو و ابن مسعود ته ورسئ او د هغه څخه پوښتنه وکړئ

فَسُئِلَ ابْنُ مَسْعُودٍ وَأُخْبِرَ بِقَوْلِ أَبِي مُوسَى فَقَالَ لَقَدْ ضَلَلْتُ إِذًا وَمَا أَنَا مِنَ

چي هغه زما سره اتفاق کوي (که یا) نو ابن مسعود ﷺ څخه هم دا مسئله و پوښتل او ابو موسی چي څه ویلي وه د هغه څخه هم اګاه سو ابن مسعود ﷺ وویل :زه به ګمراه و شمېرل سم

الْمُهْتَدِينَ أَقْضِي فِيهَا بِمَا قَضَى النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلابْنَةِ النِّصْفُ

او ځان بیا د هدایت په لار بیایم که زه د دې فتوی سره موافقت وکړم زه خو به هغه فیصله ورکوم کومه چي رسول الله ﷺ ورکړې ده (یعني) لور ته نیمه

وَلِابْنَةِ ابْنِ السُّدُسُ تَكْمِلَةَ الثُّلُثَيْنِ وَمَا بَقِيَ فَلِلأُخْتِ فَأَتَيْنَا أَبَا مُوسَى

لمسی ته شپږمه چي دوه پر دریمه کیږي (یعني د دوو لوڼو حق دوه پر دریمه دي نو کله چي یوې لور دوه یا د دوو څخه زیاته برخه ورکول کیږي نو لمسی ته شپږمه برخه په ورکولو سره دوه پر دریمه کیږي او پاته چي څومره جوړیږي هغه یوه په دریمه د خور ده بیا موږ یعني سوال کوونکی و ابو موسی ﷺ ته راغلو

فَأَخْبَرْنَاهُ بِقَوْلِ ابْنِ مَسْعُودٍ فَقَالَ لَا تَسْأَلُونِي مَا دَامَ هٰذَا الْحَبْرُ فِيكُمْ.

رواه البخاري.

او د دې فيصلې څخه مو هغه اګاه کړ نو هغه وويل: تر څو پورې په تاسو کې چې يو لوی عالم موجود وی (يعني ابن مسعود رضی الله عنه) تر هغه وخته پورې تاسو زما څخه د هيڅ يوې مسئلې پوښتنه مه کوئ).(بخاري).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۲\۱۷، رقم: ۶۷۳۶.

**تشريح**: د حضرت عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه د جواب خلاصه داده چې د مړي د ټول ميراث په شپږ برخو کولو سره داسي وويشل سي، يعني مور ته درې برخي، ملسي ته يوه برخه او خور ته دوې برخي ورکړئ.

## د نيکه برخه

﴿۲۹۲۹﴾: وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت عمران بن حصين رضی الله عنه څخه روايت دی چې يو سړي رسول الله ﷺ ته راغلی

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنَّ ابن ابْنِي مَاتَ فَمَا لِي فِي مِيرَاثِهِ قَالَ لَكَ السُّدُسُ فَلَمَّا

او ويې ويل چې زما د زوی زوی (لمسی) مړ سوی دی ايا د هغه په مال کې زما يو څه برخه سته ؟نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل: د هغه په مال کې ستا شپږمه برخه جوړيږي کوم وخت چې هغه

وَلَّى دَعَاهُ فَقَالَ لَكَ سُدُسٌ آخَرُ فَلَمَّا وَلَّى دَعَاهُ قَالَ إِنَّ السُّدُسَ الْآخَرَ طُعْمَةٌ

ولاړی نو هغه يې را وغوښت او ورته يې وفرمايل: تا ته شپږمه برخه نوره رسيږي هغه ولاړی نبي کريم ﷺ هغه بيا را وغوښت او ورته يې وفرمايل: دويمه شپږمه برخه به ستا لپاره وی د

لَكَ. رواه احمد والترمذي و ابوداؤد وقال الترمذي هذا حديث حسن صحيح.

رزق په ډول به وي. (احمد ترمذي ابو داؤد) او په ترمذي کې دا حديث حسن صحيح شمېرل سوی دی.

**تخريج**: احمد في المسند ۴\۴۲۸، رقم: ۲۸۹۶، والترمذي في السنن ۴\۴۱۹، رقم: ۲۰۹۹.

**تشریح** دغه آخري شپږمه برخه ستا رزق دی، ددې مطلب دادی چې اوله شپږمه برخه ستا د ذوي الفروض کېدو په وجه تا ته تر لاسه سوه او دغه دوهمه شپږمه برخه ستا د عصبه کېدو په حیثیت سره تا ته درکړل سوه همدارنګه هغه سړي ته د ټول میراث څخه دریمه برخه تر لاسه سوه مګر رسول الله ﷺ په یو وار هغه ته دریمه برخه نه ورکړل چې هغه دا ګمان ونه کړي چې په مېراث کي د نیکه برخه د ذي فرض کېدو په حیثیت سره دریمه برخه کیږي ، دا خو د حدیث وضاحت سو اوس د مسئلې پر نوعیت باندي فکر وکړئ، کله چې یو سړی وفات سي نو د هغه په وارثانو کي دوې لوڼې وې او یو نیکه وو نو د مړي د مېراث څخه د هغه دواړو لوڼو دوه پر درې برخي سوې او په پاته دریمه برخه کي نیم یعني د ټول مېراث شپږمه برخه نیکه ته د ذي فرض کېدو په حیثیت سره تر لاسه سوه او د ټول مېراث شپږمه برخه چې پاته سوه هغه هم د عصبه کېدو په وجه ورکړل سول .

## دانا برخه

﴿۲۹۳۰﴾: وَعَنْ قَبِيصَةَ بْنِ ذُؤَيْبٍ قَالَ جَاءَتْ الْجَدَّةُ إِلَى أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ

د حضرت قبیصه بن ذویب رضی الله عنه څخه روایت دی چې د یو وفات سوی سړی انا (د پلار مور) او انا (د مور مور) د حضرت ابو بکر صدیق رضی الله عنه څخه د خپلي حصې په اړه پوښتنه وکړه هغه

تَسْأَلُهُ مِيرَاثَهَا فَقَالَ لَهَا مَا لَكِ فِي كِتَابِ اللَّهِ شَيْءٌ وَمَا لَكِ فِي سُنَّةِ رَسُولِ اللَّهِ

ورته وفرمایل : چې کتاب الله او سنة رسول (حدیث)کي ستا برخه نسته

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا فَارْجِعِي حَتَّى أَسْأَلَ النَّاسَ فَسَأَلَ فَقَالَ الْمُغِيرَةُ

اوس ته ولاړه سه زه به د خلکو څخه پوښتنه وکړم او وروسته به درته ووایم (یعني چې زما ځو مره حدیثونه پیاد وي په هغه کي به پلار د مور او د مور د مور د حصې ذکر نسته او د خلکو څخه به پوښتنه وکړم چې د چا په دې اړه حدیثونه پیاد وی ) حضرت ابو بکر صدیق رضی الله عنه د خلکو څخه پوښتنه وکړه نو مغیره رضی الله عنه بن شعبه ورته وویل :

بْنُ شُعْبَةَ حَضَرْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْطَاهَا السُّدُسَ فَقَالَ

زه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر وم نبي کریم ﷺ د پلار مور ته شپږمه برخه ورکړې وه او حضرت ابو بکر صدیق رضی الله عنه پوښتنه وکړه

أَبُو بَكْرٍ هَلْ مَعَكَ غَيْرُكَ فَقَالَ مُحَمَّدُ بْنُ مَسْلَمَةَ مِثْلَ مَا قَالَ الْمُغِيرَةُ

ستا سره بل څوک هم وو؟ (دا چي هغه دا اورېدلي وی) محمد بن مسلمه رضي الله عنه د مغيره بن شعبه رضي الله عنه د قول تائيد وکړ

فَأَنْفَذَهُ لَهَا أَبُو بَكْرٍ الصِّدِّيقُ ثُمَّ جَاءَتِ الْجَدَّةُ الْأُخْرَى إِلَى عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ

نو حضرت ابو بکر صديق رضي الله عنه د پلار مور ته د شپږمه برخه ورکړه بيا د مور مور حضرت عمر رضي الله عنه ته راغله

تَسْأَلُهُ مِيرَاثَهَا فَقَالَ هو ذَلِكَ السُّدُسُ فَإِنِ اجْتَمَعْتُمَا فَهُوَ بَيْنَكُمَا وَأَيَّتُكُمَا

او خپل ميراث يې وغوښت هغه ورته وويل : دغه شپږمه برخه ستا ده که تاسو دواړه ياست (د پلار مور او د مور مور) نو بيا هم دواړو ته شپږمه برخه ورکول کيږي او که په تاسو کي يوه وی

خَلَتْ بِهِ فَهُوَ لَهَا . رواه مالك واحمد والترمذي وابوداؤد والدارمي وابن ماجة .

نو هم شپږمه برخه به ورکول کيږي .(مالک احمد ترمذي ابو داؤد دارمي ابن ماجه).

**تخريج**: مالک في الموطا ۲\۵۱۳، رقم: ۴، واحمد في المسند ۴\۲۲۵، والترمذي ۴\۳۶۶، رقم: ۲۱۰۱، وابوداود ۳\۳۱۶، رقم: ۲۸۹۴، والدارمي ۲\۴۵۶، رقم: ۲۹۳۹، وابن ماجه ۲\۹۰۹، رقم: ۲۷۲۴.

**تشريح**: جده (انا) د پلار مورته هم وايي او د مور مور ته هم وايي، د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه په خدمت کي چي کومه ښځه حاضره سوې وه هغه د مړي انا (د مور مور) وه او د حضرت عمر رضي الله عنه په خدمت کي چي کومه ښځه حاضره سوې وي هغه د مړي انا (د پلار مور) وه لکه څرنګه چي په يو بل روايت کي دا وضاحت سوی دی.

د حديث د آخري جملې مطلب دادی چي د مړي په مېراث کي د انا (د پلار مور) شپږمه برخه وي که يوه وي يا ډيري وي او که يوه انا وي نو د هغه شپږمي برخي به يوازي حقداره وي او که ډيري وي نو هغه شپږمه برخه دي په خپلو کي وويشي، حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه هغه شپږمه برخه يوازي يوې انا ته د ورکولو حکم ځکه وکړه چي هغه ته دا معلومه نه وه چي د مړي دوهمه انا هم موجود ده مګر حضرت عمر رضي الله عنه ته چي دا معلومه سوه چي د مړي دوهمه انا هم سته نو هغه دا حکم وکړ چي په دغه شپږمه برخه کي دواړي اناګاني ګډون لري.

## د پلار په موجود کېدو کي انا ته د شپږمي برخي ورکولو يو واقعه

﴿۲۹۳۱﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ فِي الْجَدَّةِ مَعَ ابْنِهَا إِنَّهَا أَوَّلُ جَدَّةٍ أَطْعَمَهَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُدُسًا مَعَ ابْنِهَا وَابْنُهَا حَيٌّ. رواه الترمذي والدارمي والترمذي ضفعه.

د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه څخه روايت دئ چي د هغه انا (د پلار مور) په نسبت چي د هغې زوی ژوندی وی وویل چي دا او اولني انا (د پلار مور) ده چي رسول الله ﷺ د زوی په موجودي کي شپږمه برخه ورکړې وه. (ترمذي دارمي)

**تخريج**: الترمذي في السنن ۴\۳۶۷، رقم: ۲۱۰۲، والدارمي ۲\۴۵۵، رقم: ۲۹۳۷.

**تشريح**: د مسئلې صورت دادی چي يو سړی مړ سي او د هغه پلار او انا پاته وي نو رسول الله ﷺ د هغه د مېراث څخه انا ته شپږمه برخه ورکړل سره ددې چي د هغه زوی يعني د مړي پلار موجود وو حالانکه د علماؤ مذهب دادی که د مړي پلار موجود وي نو د هغه د مېراث څخه انا ته هيڅ نه ورکول کيږي يعني انا د خپل زوی يعني د مړي د پلار په موجودتيا کي د مېراث څخه محرومه وي، په پورتني حديث باندي علماؤ ځکه عمل نه دی کړی چي دغه حديث ضعيف دی او د هغه څخه استدلال نه سي کيدای، د دليل په توګه صحيح اختيار کېدای سي، يا به دا وويل سي چي دا يو خاص صورت چي په هغه کي رسول الله ﷺ انا ته د هغې د زوي يعني د مړي د پلار په موجودتيا کي تبرعًا يعني د احسان له مخي برخه ورکړې وه او د مېراث په توګه يې نه وه ورکړې.

## ديت د مقتول وارثانو ته ورکول کيږي

﴿۲۹۳۲﴾: وَعَنِ الضَّحَّاكِ بْنِ سُفْيَانَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَتَبَ

د حضرت ضحاک بن سفيان رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ هغه ته وليکل:

إِلَيْهِ أَنْ وَرِّثْ امْرَأَةَ أَشْيَمَ الضِّبَابِيِّ مِنْ دِيَةِ زَوْجِهَا. رواه الترمذي وابوداؤد وقال الترمذي هذا حديث حسن صحيح.

د اشيم ضبابي ښځي ته د هغې د خاوند د قتل د ديت څخه ميراث وركړه .(ترمذي ابو داؤد)او په ترمذي كي دا حديث حسن صحيح دی .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۴\ ۳۷۱، رقم: ۲۱۱۰، وابوداود في السنن ۳\ ۳۳۹، رقم: ۲۹۲۷.

**تشريح**: اشيم ضبابي د رسول الله ﷺ په زمانه كي وژل سوی وو مګر دا قتل په قصد سره نه وو سوی بلكه په خطا سره سوی وو ، د كوم سړي په خطا او غلطۍ سره چي قتل سوی وو پر هغه ديت واجب سو او كله چي هغه ديت ادا كړنو رسول الله ﷺ ضحاك ته وليكل چي د مقتول يعني اشيم ضبابي د ديت په توګه چي كوم مال تر لاسه سوی دی د هغه څخه دي د هغه ښځي ته مېراث وركړل سي .

په شرح السنه كي ليكل سوي دي چي دا حديث ددې دليل دی چي اول خو ديت د مقتول لپاره واجبيږي او بيا په ديت كي تر لاسه كېدونكی مال د مقتول د نور مال او سامان په ډول د هغه وارثانو ته نقل كيږي د اكثرو علماؤ دا قول دی .

نقل سوي دي چي امېر المؤمنين حضرت عمر فاروق رضي الله عنه به دا فرمايل چي ښځه د خپل خاوند په ديت كي د تر لاسه كېدونكي مال وارثه نه ده ، حضرت ضحاك رضي الله عنه د هغه په مخكي دغه حديث بيان كړ او دا يې ثابته كړه چي د خاوند په ديت كي په تر لاسه كېدونكي مال كي د هغه ښځي ته مېراث رسيږي .

## موالي د يو بل وارث نه وي

﴿۲۹۳۳﴾: وَعَنْ تَمِيمٍ الدَّارِيِّ قَالَ سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا

د حضرت تميم داری رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وكړه د هغه سړي

السُّنَّةُ فِي الرَّجُلِ مِنْ أَهْلِ الشِّرْكِ يُسْلِمُ عَلَى يَدَيْ رَجُلٍ مِنَ الْمُسْلِمِينَ

په اړه څه حكم دی چي يو د مشركانو د يو مسلمان په لاس مسلمان سي (يعني دا مسلمان د هغه مولی وارث كېدای سي او كه نه ؟)

فَقَالَ هُوَ أَوْلَى النَّاسِ بِمَحْيَاهُ وَمَمَاتِهِ . رواه الترمذي وابن ماجة والدارمي.

رسول الله ﷺ وفرمايل: دا سړی (يعني چي د چا په لاس مسلمان سوی دی)د هغه په ژوند او مرګ كي د هغه مولی دی (دا حكم د اسلام په ابتداء كي وو وروسته منسوخ سو ). (ترمذي ابن ماجه دارمي)

**تخريج**: الترمذي في السنن ۴\ ۳۷۲، رقم: ۲۱۱۲، وابن ماجه في السنن ۲\ ۹۱۹، رقم: ۲۷۵۲، والدارمي ۲\ ۴۷۱، رقم: ۳۰۳۳.

**تشريح**: حضرت تميم داري رضي الله عنه يو ستر او مشهور صحابي دی نوموړی مخکي عيسائي وو بيا الله تعالی هدايت ور په برخه کړ او په نهم هجري کال کي د اسلام په دولت مشرف سو، د اسلام قبلولو څخه وروسته د هغه ژوند د الله تعالی په بېره او عبادت کي تېر سو چي د شپې وېښېدلو په ډول عظيم وصف کي د امتيازي حيثيت خاوند سو، د شپې په يوه رکعت کي به يې ټول قرآن کريم ختم کوی او کله کله به يې د يوه آيت په ويلو سره سهار کوئ، يوه شپه يې د تهجد لمونځ ونه کړلای سو نو خپل ځان ته يې دا سزا ورکړه چي يو کال به پرله پسې نه بېده کيږي، حضرت تميم داري رضي الله عنه ته يو تاريخي امتياز هم تر لاسه دی چي دی لومړنی سړی دی چي تر ټولو مخکي يې په مسجد کي څراغ بل کړی دی. رضي الله عنه.

د حديث شريف څخه معلوميږي چي کوم څوک د يو مسلمان په لاس اسلام قبول کړي نو هغه مسلمان د هغه نوي مسلمان مولی کيږي نو د اسلام په شروع کي دا حکم وو چي مولی به په خپلو کي د يو بل وارث وو وروسته بيا دا حکم منسوخ سو.

ځيني حضرات وايي چي د حديث الفاظ (هغه تر ټولو زيات حقدار دی) ددې مراد دادی چي پر مسلمان کونکي باندي دا حق تر ټولو زيات دی چي د هغه نوي مسلمان په ژوند کي د هغه مرسته او خيرخواهي وکړي او د هغه د مړېدو څخه وروسته د هغه د جنازې لمونځ وکړي.

## ازاد سوی غلام د خپل بادار وارث دی که يا؟

﴿۲۹۳۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَجُلًا مَاتَ وَلَمْ يَدَعْ وَارِثًا إِلَّا غُلَامًا كَانَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي يو سړی مړ سو او هغه د يوه غلام څخه پرته چي

أَعْتَقَهُ فَقَالَ النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلْ لَهُ أَحَدٌ قَالُوا لَا إِلَّا غُلَامًا لَهُ كَانَ

هغه په خپله ازاد کړی وو بل هيڅ وارث يې نه درلود رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه چي څوک (وارث) يې سته؟ يو چا وويل چي

أَعْتَقَهُ فَجَعَلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِيرَاثَهُ لَهُ . رواه ابوداؤد والترمذي وابن ماجة.

د يوه ازاد سوي غلام څخه پرته بل څوک وارث پې نسته نبي کريم ﷺ د مړي د ميراث برخه هغه (غلام) ته ورکړه . (ابو داؤد ترمذي ابن ماجه) .

**تخريج**: ابوداود في السنن ۳\ ۳۲۴، رقم: ۲۹۰۵، والترمذي ۴\ ۳۶۸، رقم: ۲۱۰۶، وابن ماجه في السنن ۲\ ۹۱۵، رقم: ۲۷۴۱.

**تشريح**: ازاد سوی غلام د خپل ازادونکي وارث نه وي ځکه ددغه حديث شريف مطلب دا بيانيږي چي رسول الله ﷺ ازاد سوي غلام ته د هغه ازادونکي ميراث د احسان له مخي ورکړی وو لکه څرنګه چي د بي بي عائشې رضي الله عنها په حديث کي تېر سول چي رسول الله ﷺ د يو لا وارثه مړي د مېراث په باره کي وفرمايل چي د هغه مېراث د هغه د کلي يو سړي ته ورکړئ ، هلته چي کوم وضاحت سوی وو هغه وضاحت دلته هم دی .

حضرت شريح او حضرت طاوس (رح) ددې حديث د ظاهري مفهوم په نظر کي نيولو سره وايي لکه څرنګه چي ازادونکی د خپل ازاد سوي غلام وارث دی همداسي ازاد سوی غلام د ازادونکی وارث کيدای سي.

## دولاء مسئله

﴿۲۹۳۵﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَرِثُ الْوَلَاءَ مَنْ يَرِثُ الْمَالَ . رواه الترمذي وقال هذا حديث إسناده ليس بالقوي .

حضرت عمرو بن شعيب رضي الله عنه د خپل پلار څخه او هغه بيا د خپل پلار څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي د ولاء مالک وي هغه د مال وارث دی .(ترمذي دا حديث قوي نه دی) ولاء د يوه ازاد سوی غلام مال ته ويل کيږي ) .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۴\ ۳۷۳، رقم: ۲۱۱۴.

**تشريح**: د ازاد سوي غلام مال ته ولاء وايي د حديث مطلب دادی چي يو سړی د مثال په توګه د زيد پلار مړ سو او بيا د هغه وروسته د هغه د پلار ازاد سوی غلام مړ سو نو اوس دغه سړی يعني زيد به د هغه د مال وارث وي ځکه څرنګه چي هغه دخپل پلار د نور مال وارث سوی دی همدارنګه د خپل پلار د ولاء هم وارث دی مګر دا حکم يوازي د عصبه سره خاص دی يعني کوم عصبه چي وارث بنفسه د عصبه کېدو په حيثيت سره د مړي د مال وارث کيږي هغه عصبه به د

ولاء هم وارث کیږي، نو ازادونکې لور به د خپل پلار د ولاء وارثه نه وي که څه هم هغه د خپل پلار د مال وارثه ده مګر عصبه کیږي نه بلکه عصبه بنفسه خو یوازي نارینه کیږي ښځي عصبه بنفسه نه کیږي مګر ښځه د داسي ازاد سوي غلام د مال وارثه کیږي چي هغې خپله ازاد کړی وي یا د هغه ازاد سوي غلام ازاده کړې وي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د اسلام څخه مخکي تقسیم سوی میراث ...

﴿۲۹۳۶﴾: عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا

د حضرت عبد الله بن عمرو رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: کوم میراث چي د

كَانَ مِنْ مِيرَاثٍ قُسِمَ فِي الْجَاهِلِيَّةِ فَهُوَ عَلَى قِسْمَةِ الْجَاهِلِيَّةِ وَمَا كَانَ مِنْ

جاهلیت په زمانه کي تقسیم سوی دي هغه په جاهلیت کي ختم سو (یعني اوس په هغه میراث کي بدلون نسي کېدای) او کوم

مِيرَاثٍ أَدْرَكَهُ الْإِسْلَامُ فَهُوَ عَلَى قِسْمَةِ الْإِسْلَامِ. رواه ابن ماجة.

میراث چي په اسلام کي دی هغه به د اسلام په طریقه باندي ویشل کیږي. (ابن ماجه).

**تخریج**: سنن ابن ماجه ۲\۹۱۸، رقم: ۲۷۴۹.

**تشریح**: د دغه حدیث شریف مطلب دا دی چي کوم مېراث د جاهلیت په زمانه کي ختم سوی وي اوس په هغه کي هیڅ نه کیږي چا ته چي څومره تر لاسه سوي وي د هغه به مالک وي، که چیري په هغه زمانه کي چا زیات مال تر لاسه کړی وي نو د هغه د بېرته ورکولو ضرورت نه سته او که چا ته لږ مال تر لاسه سوی وي نو هغه ته د پاته برخي د غوښتني حق نه وي، مګر د اسلام راوړلو څخه وروسته چي کوم مېراث ویشل کیږئ هغه به د اسلامي احکامو او قواعدو سره سم وېشل کیږي.

### د عمه او وراره وارث کېدل

﴿۲۹۳۷﴾: وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي بَكْرِ بْنِ حَزْمٍ أَنَّهُ سَمِعَ أَبَاهُ كَثِيرًا يَقُولُ كَانَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ يَقُولُ عَجَبًا لِلْعَمَّةِ تُورَثُ وَلَا تَرِثُ. رواه مالك.

د حضرت محمد بن ابي بكر بن حزم رضي الله عنه څخه روايت دى چي هغه د خپل پلاره څخه په كثرت دا اوريدلي دي چي عمر بن خطاب رضي الله عنه به دا فرمايل: پر عمه تعجب دى چي د هغې وراره د هغې وارث وي او هغه د خپل وراره وارثه كېداى نسي. (مالک).

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۲\۵۱۷، رقم: ۹.

**تشريح** د حضرت عمر رضي الله عنه تعجب كول محض د عقل او قياس پر بنياد دى كه چيري د حكم پر ځاى راوړلو په نظر وكتل سي يا دا خبره په ذهن كي وي چي ددغه په حكمت او مصلحت الله تعالى پوهيږي نو د تعجب هيڅ خبره نه سته.

د حديث مفهوم دادى كه د يو سړي عمه مړه سي نو هغه دخپل عمه وارث كيداى سي ددې برعكس كه هغه سړى مړ سي نو د هغه عمه د هغه سړي وارث كېداى نه سي، د حديث دا مفهوم او د حضرت عمر رضي الله عنه دا تعجب د هغه علماؤ د مذهب مطابق دى چي د هغوى په نزد د ذوي الارحام مړي وارث نه وي حال دا چي عمه د ذوي الارحام نه كېدو په وجه د هغه علماؤ په نزد د خپل وراره وارثه كيداى سي چي ذوي الارحام په فرائضو كي د پورتني تفصيل سره سم وارث كيداى سي.

## د فرضو زده كولو حكم

﴿۲۹۳۸﴾: وَعَنْ عُمَرَ قَالَ تَعَلَّمُوا الْفَرَائِضَ وَزَادَ ابْنُ مَسْعُوْدٍ وَالطَّلاَقَ وَالْحَجَّ قَالاَ فَإِنَّهُ مِنْ دِيْنِكُمْ. رواه الدارمي

د حضرت عمر رضي الله عنه څخه روايت دى چي د فرضو (ميراث) احكام زده كړئ او ابن مسعود رضي الله عنه په دې الفاظو دا خبره زياته كړې ده او د طلاق او حج احكام او مسائل هم زده كړئ ځكه چي دا د ديني ضروورياتو څخه ګڼل كيږي. (دارمي).

**تخريج**: سنن الدارمي ۲\۴۴۲، رقم: ۲۸۵۶.

=========

# بَابُ الْوَصَـايَا (دوصيت بيان)

وصايا د وصيت جمع ده او خطايا د خطيه جمع ده ، وصيت دې ته وايي چې يو سړى په خپل ژوند کي خپلو وارثانو ته دا ووايي چې زما د مرګ څخه وروسته فلانى فلانى کار وکړئ مثلا زما له خوا مسجد جوړ کړئ ، څاه وکاږئ، يا په مدرسه ، خانقاه او داسي نورو شيانو کي دومره روپۍ ورکړئ، يا فلاني سړي ته دومره روپۍ يا مال ورکړئ ، يا پر فقيرانو او مسکينانو باندي خوراک، غله يا جامې وغيره وويشئ ، يا کوم فرضونه او واجبات مثلا لمونځ، زکوة او داسي نور چي د هغه د غفلت په وجه قضاء سوي وي د هغه په باره کي خپلو وارثانو ته ووايي چي دا ادا کړئ يا د هغه کفاره ورکړئ ، همدارنګه په ځينو ځايو کي د وصيت لفظ د نصيحت په معنى هم استعماليږي .

د ظواهر علماء (يعني هغه علماء چي په هر صورت کي د قرآن او حديث پر ظاهري مفهوم باندي عمل کوي) په نزد وصيت کول واجب دى حال دا چي د نورو ټولو علماؤ په نزد وصيت کول مستحب دى او واجب نه دى، د اسلام په ابتدائي زمانه کي (د مېراث د آيت نازلېدو څخه مخکي) وصيت واجب وو يعني په خپل اختيار سره د مور او پلار او نورو قريبانو لپاره د خپل مال او سامان څخه برخي ټاکل پر هر چا باندي واجب وه مګر کله چي د مېراث آيت نازل سو او الله تعالى د ټولو قريبانو برخي و ټاکلې نو دا حکم منسوخ سو ځکه د وارث لپاره وصيت کول صحيح نه دي البته د مېراث د آيت نازلېدو څخه وروسته هم په دريمه برخه مال کي د وصيت کولو اختيار پاته سو که يو سړى په خپل آخري وخت کي د الله تعالى په لار کي د مال خرڅ کولو سره د خپل ټول عمر د کوتاهيو مثلا بخل وغيره کفاره او مکافات کول غواړي نو دا سعادت تر لاسه کولاى سي يا که چيري خپل يو قريب يا د ليري قريب يا خادم وغيره ته يو څه ورکول غواړي نو د دغه دريمي برخي څخه هغه ته په ورکولو سره خپل زړه خوشحاله کولاى سي .

علماء کرام وايي که چيري پر يو سړي باندي پور يا بل څه وي يا د هغه سره د چا امانت پروت وي نو پر هغه لازم دي چي د هغه د ادا کولو او د امانت بېرته ورکولو وصيت وکړي او په دې باره کي يو وصيت نامه وليکي او پر هغه دي شاهدان هم وي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د وصيت ليکلو حکم

﴿۲۹۳۹﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ مَا حَقُّ امْرِئٍ مُسْلِمٍ لَهُ شَيْءٌ يُوصِي فِيهِ يَبِيتُ لَيْلَتَيْنِ إِلَّا وَوَصِيَّتُهُ مَكْتُوبَةٌ عِنْدَهُ. متفق عليه.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د کوم مسلمان معاملات يا تعلقات چي کومه خبره د وصيت قابله وی هغه ته پکار ده چي د دوو شپو د تېرېدو څخه مخکي هغه وليکي. (بخاري او مسلم)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۵\۳۵۵، رقم: ۲۷۳۸، ومسلم ۳\۱۲۴۹، رقم: ۱\ ۱۶۲۷.

**تشريح**: مطلب دادی چي د کوم چا پر ذمه د يو چا حق وي يا د خلکو يو معامله هغه ته حواله وي نو هغه بايد د دوو شپو تېرولو څخه مخکي وصيت وليکي، د دوو شپو څخه مراد لږ وخت دی يعني کم وخت داسي تېرول نه دي پکار چي په هغه کي وصيت نه وي ليکلی ځکه چي د انسان په ژوند هيڅ باور نه سته، معلومه نه ده چي په کوم وخت کي د انسان د ژوند لړی پای ته ورسيږي او د وصيت نه ليکلو په نتيجه کي د وارثانو د ناخبرتيا په وجه د حق تلفي ګناه د دنيا څخه د هغه سره ولاړه سي.

ظواهر علماء د دغه حديث سره سم د وصيت د واجب کېدو قائل دي حالانکه دا حديث په عمومي توګه پر وصيت واجب کېدو باندي دلالت نه کوي البته ددې څخه دا ثابتيږي چي پر کوم چا باندي پور وي يا د هغه سره د چا امانت وي نو پر هغه لازم ده چي د هغه پور يا امانت په باره کي وصيت وکړي.

علماء کرام وايي چي په کومو معاملو کي وصيت کول لازم وي (د مثال په توګه پور، امانت يا داسي نورو شيانو کي) نو د هغه وصيت ژر تر ژره ليکل مستحب دي او دا ضروري ده چي د وصيت په ليکلو سره پر هغه باندي دوه شاهدان هم پيدا کړي.

### د مال په دريمه برخه کي وصيت کيدای سي

﴿۲۹۴۰﴾: وَعَنْ سَعْدِ ابْنِ أَبِيْ وَقَّاصٍ قَالَ مَرِضْتُ عَامَ الْفَتْحِ مَرَضًا أَشْفَيْتُ

د حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه څخه روايت دی چي زه د مکې د فتحي په کال داسي سخت

ناروغه سوم چي مرګ ته نژدې سوی وم

عَلَى الْمَوْتِ فَأَتَانِيْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَعُوْدُنِيْ فَقُلْتُ يَارَسُوْلَ اللهِ

رسول الله ﷺ ما ته راغلی نو ما عرض وکړ یا رسول الله ﷺ!

اِنَّ لِيْ مَالاً كَثِيْرًا وَ لَيْسَ يَرِثُنِيْ اِلاَّ ابْنَتِيْ اَفَاُوْصِيْ بِمَالٍ كُلِّهٖ قَالَ لاَ قُلْتُ

زما سره زيات مال دی او د يوې لور څخه پرته بل څوک زه وارث نلرم ايا زه د خپل ټول مال وصيت د هغې په حق کي وکړم؟ نبي کريم ﷺ وفرمايل: يا! ما عرض وکړ

فَثُلُثَيْ مَالِيْ قَالَ لاَ قُلْتُ فَالشَّطْرُ قَالَ لاَ قُلْتُ فَالثُّلُثُ قَالَ اَلثُّلُثُ وَالثُّلُثُ

د دوه برخو د ريمه مال وصيت وکړم؟ نبي کريم ﷺ وفرمايل: يا! ما عرض وکړ چي د نيم مال وصيت وکړم؟ نبي کريم ﷺ وفرمايل: يا! ما عرض وکړ چي د يو پر دريمه د مال وصيت وکړم؟ نبي کريم ﷺ وفرمايل: هو! د يو پر دريمي مال برخه هم

كَثِيْرٌ اِنَّكَ اَنْ تَذَرَ وَرَثَتَكَ اَغْنِيَاءَ خَيْرٌ مِّنْ اَنْ تَذَرَهُمْ عَالَةً يَتَكَفَّفُوْنَ

ډېره ده که ته خپل وارثان مالداره او خوشحاله پرېږدې نو دا د دې څخه بهتره ده چي هغوی مفلس پرېږدې او هغوی د خلکو په مخکي (د سوال لپاره) لاس غځوي او ته چي څه د خداي

النَّاسَ وَاِنَّكَ لَنْ تُنْفِقَ نَفَقَةً تَبْتَغِيْ بِهَا وَجْهَ اللهِ اِلاَّ اُجِرْتَ بِهَا حَتَّى اللُّقْمَةَ

تَرْفَعُهَا اِلٰى فِيْ امْرَاَتِكَ. متفق عليه.

تعالي د رضا لپاره خرڅ کوې د هغې به اجر درکول سي تر دې چي تا ته به د هغې څخه نور زيات ثواب درکول کيږي تر دې چي ته د خپلي بي بي (ښځي) په خوله کي ګوله واچوې. بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۵\ ۳۵۳، رقم: ۲۷۴۲، رقم: ۶۷۳۳، ومسلم في الصحيح ۳\ ۱۲۵۰، رقم: ۵\ ۱۶۲۸.

**تشريح**: زما وارث نسته: د حضرت سعد رضی الله عنه مراد دا وو چي په ذوي الفروض کي زما څوک وارث نه سته يا دا چي داسي وارثانو ته چي د هغوی په باره کي ما ته ډېره وي چي هغوی به زما مال ضائع کړي پرته د يوې لور څخه بل څوک وارث مي نه سته، د حضرت سعد رضی الله عنه د دغه

جملې تاويل ځكه سوى دى چې د هغه څو عصبي وارثان وه .

دا حديث د يوې خوا ددې خبرې دليل دى چې د مال جمع كول مباح دي او د بلې خوا ددې خبرې دليل هم دى چې د وارثانو په حق كي د عدل او انصاف خيال ساتل پكار دي .

د ټولو علماؤ پر دې خبره اتفاق دى چې د كوم مړي وارث موجود وي نو د هغه وصيت د هغه د دريمي برخي څخه په زيات مال كي نه جاري كيږي البته كه چيري هغه وارثان په خپل اجازه او خوښي سره دا وغواړي نو د دريمي برخي څخه په زيات كي بلكه په ټول مال كي وصيت جاري كيداى سي په شرط ددې چي ټول وارثان عاقل، بالغ او موجود وي، او د چا چي وارث نه وي نو په دغه صورت كي هم د اكثرو علماؤ دا مذهب دى چي د هغه وصيت هم د دريمي برخي څخه په زيات كي نه سي جاري كيداى البته امام ابوحنيفة رحمة الله عليه او د هغه پيروان علماء په دغه صورت كي د دريمي برخي څخه په زيات كي هم وصيت جاري كول جائز ګرځوي او د امام احمد او حضرت اسحاق رحمة الله عليهما يو قول دا هم دى .

په دغه حديث شريف كي ددغه خبري ترغيب وركړل سوى دى چي د قريبانو او عزيزانو سره سره دي ښه چلن وكړل سي د هغوى په حق كي دي همېشه د خېرخواهی جذبه وي او د وارثانو په اړه دي د شفقت او ميني طريقه اختيار كړل سي ، ددې څخه پرته ددغه حديث څخه نوري يو څو خبري هم معلوميږي : اول دا چي خپل مال بل چا ته د وركولو څخه افضل دادى چي په خپلو قريبانو باندي خرڅ كړل سي، دوهم دا چي پر خپل كورنۍ باندي په خرڅ كولو سره ثواب تر لاسه كيږي په شرط ددې چي د الله تعالى رضا او خوښي مقصد وي، دريم دا كه چيري په يو مباح كار كي د الله تعالى د رضا او خوښۍ نيت وكړل سي نو هغه مباح كار هم په طاعت او عبادت كي شمېرل كيږي ، ښځه كه څه هم د بدني او دنيوي لذت او راحت ذريعه ده او د خوشحالۍ پر وخت د هغې په خوله ګوله وركول محض يو خوش طبعي ده چي د هغه د طاعت او عبادت او د اخرت د امورو سره هيڅ تعلق نه سته مګر ددې سربېره رسول الله ﷺ دا وښودل چي د ښځي په خوله ګوله وركولو كي چي كله د الله تعالى د رضا او خوښۍ نيت وكړل سي نو په دې كي هم ثواب دى ، ددې څخه پرته په نورو حالاتو كي په طريقه اولى ثواب تر لاسه كيږي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

﴿۲۹۶۱﴾ : عَنْ سَعْدِ بْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ قَالَ عَادَنِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه څخه روايت دى چي زما د ناروغى په ورځو كي رسول الله ﷺ زما پوښتنه وكړه او رسول الله ﷺ زما څخه وپوښتل

وَأَنَا مَرِيضٌ فَقَالَ أَوْصَيْتَ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ بِكَمْ قُلْتُ بِمَالِي كُلِّهِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ

چي ايا ته د څه وصيت اراده لرې؟ ما عرض وكړ چي هو! نبي كريم ﷺ وفرمايل: د څومره مال؟ ما عرض وكړ د خداي تعالي په لار كي د ټول مال اراده لرم؟

قَالَ فَمَا تَرَكْتَ لِوَلَدِكَ قُلْتُ هُمْ أَغْنِيَاءُ بِخَيْرٍ قَالَ أَوْصِ بِالْعُشْرِ فَمَا زِلْتُ أُنَاقِصُهُ حَتَّى قَالَ أَوْصِ بِالثُّلُثِ وَالثُّلُثُ كَثِيرٌ. رواه الترمذي.

نبي كريم ﷺ وفرمايل: د خپل اولاد لپاره تا يو څه پرېښودل؟ ما عرض وكړ چي هغوى غنيان او خوشحاله دئ نبي كريم ﷺ وفرمايل: د لسمي حصې وصيت وكړه ما زيات ټينگار وكړ تر دې پوري چي نبي كريم ﷺ وفرمايل: د دريمي حصې مال وصيت وكړه او دا چي دريمه برخه هم ډېره ده. (ترمذي).

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\۳۰۵، رقم: ۹۷۵.

## د وارث په حق كي وصيت صحيح نه دى

﴿۲۹۴۲﴾: وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ

د حضرت ابو امامه رضي الله عنه څخه روايت دى چي ما د حجة الوداع په خطبه كي د رسول الله ﷺ څخه

فِي خُطْبَتِهِ عَامَ حَجَّةِ الْوَدَاعِ إِنَّ اللَّهَ قَدْ أَعْطَى كُلَّ ذِي حَقٍّ حَقَّهُ فَلَا وَصِيَّةَ

دا اورېدلي دي خداي تعالي حق د هر چا حق ټاكلى دى (يعني خداي تعالي د ټولو وارثانو لپاره حصې ټاكلى دي) اوس د يو وارث په حق كي د وصيت ضرورت نسته

لِوَارِثٍ. رواه أبو داود وابن ماجه وزاد الترمذي: "الولد للفراش وللعاهر

.(ابو داؤد ابن ماجه) او په ترمذي كي دا الفاظ زيات كړى دى چي نبي كريم ﷺ وفرمايل: كوچني د صاحب فراش دي (چي په زنا نه وي پيدا سوى) او د زنا كاره لپاره حجر دى

الحجر وحسابهم على الله ويروى عن ابن عباس رضي الله عنهما عن النبي

(سنگسارول) او هغه به د ميراث څخه محرومه وي او د هغوی حساب پر خداي تعالي دی او ابن عباس رضي الله عنه د نبي كريم ﷺ

ﷺ قال: "لا وصية لوارث إلا أن يشاء الورثة" منقطع هذا لفظ المصابيح

څخه دا روايت كړی دي چي نبي كريم ﷺ فرمايلي دی د وارث لپاره د وصيت ضرورت نسته خو دا چي وارث وغواړي د دې څخه وروسته نور الفاظ نسته او دا د مصابيح الفاظ وه

. وفي رواية الدارقطني: قال: "لا تجوز وصية لوارث إلا أن يشاء الورثة"

او په دارقطني كي دا الفاظ دي چي د وارث لپاره وصيت كول جائز نه دي خو دا چي وارث وغواړي

**تخريج**: ابوداود في السنن ۳\ ۲۹۰، رقم: ۲۸۷۰، والترمذي ۴\ ۳۷۶، رقم: ۲۱۲۰، وابن ماجه في السنن ۲\ ۹۰۵، رقم: ۲۷۱۳.

**تشريح**: الله تعالى هر حقدار ته د هغه حق وركړی دئ: ددې مطلب دادئ چي الله تعالى د وارثانو لپاره خپل خپل برخي ټاكلي دي كه هغه ذوي الفروض وي يا عصبه وي، اوس د هيڅ وارث په حق كي وصيت ضروري نه دی او كه مړكېدونكی سړی خپل وارث په حق كي وصيت وكړي چي هغه دي د نورو وارثانو څخه دومره برخه زياته وركړل سي نو په شرعي توګه ددې هيڅ اعتبار نه سته مګر كه چيري ټول وارثان عاقل او بالغ وي او هغوی يو وارثِ ته په شوق او رضا سره د مړي د وصيت سره سم زياته برخه وركوي نو بيا په دې كي هيڅ پروا نه سته لكه څرنګه چي مخكي تېر سوي دي چي د مېراث د آيت نازلېدو څخه مخكي د ټولو قريبانو په حق كي وصيت كول واجب وو مګر د آيت كريمه د نازلېدو څخه وروسته د ټولو وارثانو برخي وټاكل سوې نو د وصيت واجب كېدل هم منسوخ سول.

فراش ښځي ته وايي مګر دلته په (الولد للفراش) كي د فراش څخه مراد صاحب د فراش يعني د ښځي مالک دی، د حديث شريف د دغه جملې مطلب دادي كه چيري يو سړی د يو ښځي سره زنا وكړي او د هغه په نتيجه كي كوچنی پيدا سي نو د كوچني نسب د زنا كونكي سره نه قائميږي بلكه هغه صاحب فراش ته منسوب كيږي كه هغه صاحب فراش د زنا كونكي ښځي خاوند وي يا د (مينزي كېدو په صورت كي) د هغې بادار وي يا هغه سړی وي چي په شبه كي په اخته كېدو سره يې د هغه ښځي سره كوروالي كړې وي.

او د زنا کونکي لپاره ډبري دي : دغه جملې د زنا کونکي محرومي ته اشاره کوي لکه ځرنګه چي زموږ په عامه اصطلاح کي د يو داسي سړي په باره کي چي هغه ته هيڅ نه ورکول کيږي داسي ويل کيږي چي هغه دي خاوري واخلي نو ددغه جملې مطلب دادی چي د زنا په نتيجه کي د پيدا کېدونکي کوچني نسب د زنا کونکي سره نه قائميږي ځکه نو هغه د ولد الزنا د مېراث څخه هيڅ نه سي تر لاسه کولای ، يا دا چي دلته د ډبرو څخه مراد سنګسارول دي چي زنا کونکی به سنګسار کيږي .

د هغه معامله الله ﷻ ته سپارل سوې ده : ددې مطلب دادی چي په بد کارۍ کي د اخته کېدونکو حساب او کتاب پر الله ﷻ دی چي هغه به هر يو ته د هغه د عمل سره سم بدله ورکوي ، دغه جمله د يو بلي معنی سره زيات مناسبت لري هغه دا چي کوم د دنيا تعلق دی نو دلته موږ زنا کونکو ته سزا ورکوو په دې توګه چي پر هغه حد جاري کيږي ، اوس پاته سوه د آخرت معامله نو دا د الله ﷻ پر فرض او منشاء باندي موقوف دی که هغه وغواړي نو مؤاخذه به ځيني وکړي او که وه غواړي نو د خپل بې پايه رحم او کرم په برکت به يې وبخښي .

د ذکر سوي عبارت يو مطلب دا هم کيدای سي چي کوم څوک زنا وکړي يا په يو ګناه کي اخته وي او پر هغه يو حد قائم نه سي يعني په دنيا کي هغه ته سزا ور نه کړل سي نو د هغه معامله الله ﷻ ته حواله ده که چيري هغه وغواړي نو وه به يې بخښي او که وغواړي نو په عذاب کي به يې اخته کړي .

## د بل چا لپاره په وصيت کولو سره وارثانو ته تاوان مه رسوئ

﴿۲۹۴۳﴾ : وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ الرَّجُلَ

د حضرت ابوهريره ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : سړی

لَيَعْمَلُ وَالْمَرْاَةُ بِطَاعَةِ اللّٰهِ سِتِّيْنَ سَنَةً ثُمَّ يَحْضُرُهُمَا الْمَوْتُ فَيُضَارَّانِ فِي

او ښځه د شپېتو کلو پوري د خداي تعالي عبادت او اطاعت کوي بيا چي د هغوی د مرګ وخت راسي نو هغوی وصيت کوئ وارثانو ته نقصان رسوئ (يعني د هغوی حق نه ورکوئ بلکه د نورو په حق کي وصيت کوئ يا و بل چاته خپل ټول حق و رکړئ )

الْوَصِيَّةِ فَتَجِبُ لَهُمَا النَّارُ ثُمَّ قَرَأَ عَلَيَّ أَبُو هُرَيْرَةَ { مِنْ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُوصَى بِهَا

او په دې شکل خپل ځانونه د دوږخ مستحق ګرځوي او وروسته حضرت ابو هريره ﷺ دا ايت و

أَوْ دَيْنٍ غَيْرَ مُضَارٍّ وَصِيَّةً مِنَ اللّٰهِ إِلَى قَوْلِهِ ذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ } . رواه احمد والترمذي و ابو داؤد وابن ماجة.

لوست من بعد وصية يوصى بها او دين غير مضار څخه بيا تر و ذلک الفوز العظيم پوري . (احمد ترمذي ابو داؤد ابن ماجه).

**تخريج**: احمد في المسند ۲\ ۲۷۸، وابوداود في السنن ۳\ ۲۸۸، رقم: ۲۸۶۷، والترمذي في السنن ۴\ ۳۷۵، رقم: ۲۱۱۷، وابن ماجه في السنن ۲\ ۹۰۲، رقم: ۲۷۰۴.

**تشريح**: دغه حديث شريف د بندګانو د حقوقو ارزښت بيانوي، کوم خلک چي خپل ټول ژوند د الله تعالى په عبادت کي تېروي مګر د بندګانو د حقوقو څخه پرهيز نه کوي نو هغه د خپل ټولو عباداتو سربېره د الله تعالى د ناراضۍ مورد ګرځي ، رسول الله ﷺ وفرمايل کوم خلک (که سړی يا ښځه) چي تر شپېته کالو پوري عبادت کوي مګر د خپل ژوند په آخري وخت کي دا ګناه پر خپل سر واخلي چي هغوی په خپل مال کي د دريمي برخي څخه زيات وصيت د يو چا په حق کي وکړي يا خپل ټول مال يو وارث ته په تحفه کي ورکړي او نورو وارثانو ته هيڅ تر لاسه نه سي او همدارنګه هغه خپل وارثانو ته تاوان ورسوي نو هغه د خپل دغه اوږده وخت د عباداتو سره خپل ځان د دوږخ د عذاب حقدار وګرځوی ځکه چي خپل وارثانو ته تاوان رسول د بندګانو په حقوقو کي د کوتاهۍ په وجه غير مناسب او ناجائز کار دی او د الله تعالى د حکم څخه مخ اړول او د هغه د ټاکل سوو هداياتو څخه تجاوز هم دی ، حضرت ابوهريره رضی الله عنه د رسول الله ﷺ د ارشاد بيانولو څخه وروسته د تاکيد په توګه ذکر سوی آيت تلاوت کړي ځکه چي د دغه آيت څخه دا ثابتيږي چي مورث بايد د خپل مال د دريمي برخي څخه په زيات مال کي په وصيت کولو سره خپل وارثانو ته تاوان ونه رسوي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د جائز وصيت کونکي لپاره زيری

﴿۲۹۴۴﴾: عَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ مَنْ مَاتَ عَلَى وَصِيَّةٍ مَاتَ عَلَى سَبِيلٍ وَسُنَّةٍ وَمَاتَ عَلَى تُقًى وَشَهَادَةٍ وَمَاتَ مَغْفُورًا لَهُ . رواه ابن ماجة .

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي وصيت وکړي او مړ سي هغه په صراط المستقيم او سنت طريقه باندي مړ سو او په تقوی او شهادت باندي مړ سو او په داسي حال کي مړ سو چي د هغه بخشش کول کيږي . (ابن ماجه) .

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\۹۰۱، رقم: ۲۷۰۱.

## كافر ته د نيک عمل ثواب نه رسيږي

﴿۲۹۴۵﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ الْعَاصَ بْنَ وَائِلٍ

حضرت عمر بن شعيب رضي الله عنه د خپل پلار څخه روايت کوي چي عاص بن وائل دا وصيت وکړ

أَوْصَى أَنْ يُعْتِقَ عَنْهُ مِائَةُ رَقَبَةٍ فَأَعْتَقَ ابْنُهُ هِشَامٌ خَمْسِينَ رَقَبَةً فَأَرَادَ

چي د هغه له لوري دي سل غلامان ازاد کړل سي نو د هغه زوی هشام پنځوس غلامان ازاد کړل

ابْنُهُ عَمْرٌو أَنْ يُعْتِقَ عَنْهُ الْخَمْسِينَ الْبَاقِيَةَ فَقَالَ حَتَّى أَسْأَلَ رَسُولَ اللَّهِ

بيا د هغه دويم زوی اراده وکړه چي پاته پنځوس غلامان دي هم د خپل پلار له طرفه څخه ازاد کړي بيا هغه په خپل زړه کي سوچ وکړ چي د دي په اړه د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه کول پکار

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ

دي نو هغه د نبي کريم ﷺ په خدمت کي حاضر سو او عرض يې وکړ يا رسول الله ﷺ!

أَبِي أَوْصَى بِعَتْقِ مِائَةِ رَقَبَةٍ وَإِنَّ هِشَامًا أَعْتَقَ عَنْهُ خَمْسِينَ وَبَقِيَتْ عَلَيْهِ

زما پلار د سلو غلامانو وصيت کړی وو هشام خو يوازي پنځوس غلامان ازاد کړل پنځوس غلامان باقي پاته سوه

خَمْسُونَ رَقَبَةً أَفَأُعْتِقُ عَنْهُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ إِنَّهُ لَوْ كَانَ مُسْلِمًا

ايا هغوی زه ازاد کړم؟ نبي کريم ﷺ وفرمايل : که هغه مسلمان وای نو بيا تاسو د هغه له

فَأَعْتَقْتُمْ عَنْهُ أَوْ تَصَدَّقْتُمْ عَنْهُ أَوْ حَجَجْتُمْ عَنْهُ بَلَغَهُ ذَلِكَ . رواه ابوداؤد .

لوري غلامان ازادولای يا مو صدقه کولای يا مو حج کولای نو د هغه ثواب په مو پلار ته

رسېدلای (مگر هغه کافر دی) نو په دې وجه سره هغه ټول دده لپاره بې فائدې دي . ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\۳۰۲، رقم: ۲۸۸۳.

**تشريح** عاص ابن وائل د اسلام زمانه تر لاسه کړې وه مگر په بدبختۍ سره هغه د اسلام په دولت مشرف نه سو او د کفر په حالت کي مړ سو د هغه دوه زامن وه حضرت هشام ابن عاص او حضرت عمرو ابن عاص رضي الله عنهما چي الله تعالى دغه دواړو د هدايت پر لاره روان کړل او دواړه په اسلام مشرف سول او د رسول الله ﷺ د صحابي کېدو اعزازيې تر لاسه کړی .

د رسول الله ﷺ د جواب خلاصه داده چي ستاسو پلار عاص که چيري مسلمان وای او د اسلام په حالت کي د دنيا څخه رخصت سوی وای نو د هغه له طرفه چي کوم عبادت (نيکي) کېدی د هغه ثواب به هغه ته رسيدلای مگر هغه مسلمان نه سو او د کفر په حالت کي د دنيا څخه ولاړی نو اوس تاسو چي تاسو د هغه له طرفه يو عبادت يا نېک کار وکړئ نو هغه ته د عذاب څخه خلاصون نه سي تر لاسه کيدای بلکه دا يوازي د مسلمان لپاره گټور دي .

## دوارث حق خوړونکي لپاره وعيد

﴿۲۹۴۶﴾ : وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَطَعَ مِنْ مِيرَاثِ وَارِثِهِ قَطَعَ اللّٰهُ مِيرَاثَهُ مِنَ الْجَنَّةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ . رواه ابن ماجة و رواه البيهقي في شعب الايمان عن ابي هريرة .

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي خپل وارث د ميراث څخه وباسي نو د قيامت په ورځ به خداي تعالي په جنت کي د هغه ميراث اخلي (جنت ته به يې نه پرېږدي) . (ابن ماجه او بيهقي په شعب الايمان کي د ابو هريره رضی الله عنه څخه روايت کړی دی).

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\۹۰۲، رقم: ۲۷۰۳. لم نجده في الشعب.

**تشريح**: په قرآن کريم کي الله تعالى مؤمنانو ته د جنت د وارث کېدو وعده په دې توگه ورکړې ده چي : يرثون الفردوس: يعني هغوی (مؤمنان) به د جنت وارثان وي .

رسول الله ﷺ ددې مطابق وفرمايل چي کوم سړی په ناجائزه توگه خپل وارث د مېراث څخه محروم کړي نو الله تعالى به د قيامت په ورځ هغه د جنت د وراثت څخه محروم کړي ، مطلب دادی چي داسي سړی به په پيل کي د خلاصون تر لاسه کوونکو خلکو سره په جنت کي نه داخليږي .

======

بِسمِ اللهِ الرَّحمٰنِ الرَّحِيمِ

# كِتَـــابُ النِّكَاحِ

## د نـــكاح بـيان

نكاح په لغت كي جمع كولو او يو ځاى كولو ته وايي مګر د دغه لفظ اطلاق پر مجامعت كولو او د عقد پر معنى هم كيږي ځكه چي په مجامعت او عقد دواړو كي جمع كول او يو ځاى كول تر لاسه كيږي .

په اصول فقه كي د نكاح دغه معنى يعني جمع كېدل په معنى د مجامعت كولو برقرار او ساتل سوى ده، مطلب دا چي په قرآن كريم او حديثو كي چي كله دغه لفظ راسي نو د هغه ځخه بايد دغه لغوي معنى مراد واخيستل سي په شرط د دې چي يو قرينه نه وي كوم چي د دغه معنى خلاف پر بلي معنى دلالت كوي .

د فقهي علماؤ په اصطلاح كي نكاح هغه خاص عقد او معاهدې ته وايي چي د سړي او ښځي په مېنځ كي وي او په هغه سره د دواړو په مېنځ كي د زوجيت تعلق پيدا كيږي .

## د نكاح ارزښت

نكاح يعني واده يوازي د دوو كسانو يو ټولنيز تړون، يو شخصي ضرورت، يو طبعي خواهش او يوازي يوه ذاتي معامله نه ده بلكه دا د انساني ټولني د وجود او بقاء يو بنيادي متن هم دى ، او په شرعي نقطه نظر سره د بنيادي ضرورت اندازه په دې سره لګول كيداى سي چي د حضرت آدم عليه السلام د وخت ځخه تر شريعت محمدي ﷺ پوري هيڅ يو داسي شريعت نه دى تېر سوى چي هغه د نكاح ځخه خالي وي ځكه علماء كرام وايي چي داسي هيڅ عبادت نه سته چي د حضرت آدم عليه السلام ځخه تر اوسه پوري مشروع وي او په جنت كي هم پاته وي پرته د نكاح او ايمان ځخه چي په هر شريعت كي د سړي او ښځي اجتماع د يو خاص معاهدې سره سم مشروع راغلې ده او د دغه معاهدې ځخه پرته د سړي او ښځي يو تر بله اجماع هيڅكله هم شريعت او مذهب جائز نه ده ګرځولې، مګر دا خبره ده چي د دغه معاهدې صورتونه مختلف راغلي دي او د دې په شرطو او احكامو كي تغير او تبديل راغلى دى په دې باره كي اسلام چي كوم شرطونه ټاكلي دي او كوم احكام يې نافذ كړي دي او كوم قواعد يې وضع كړي دي په دغه باب كي د دغه

شيانو څخه شروع کيږي .

## د نکاح ګټې او تاوانونه

د نکاح تر ټولو لويه ګټه د انساني نسل بقاء او د توالد او تناسل جاري پاته کېدل دي ، او همدا رنګه ځيني نوري ګټې هم سته چي په لاندي توګه دي :

۱. په نکاح کولو سره جنسي جوش کميږي، دغه جنسي جوش د انساني د اخلاقي ژوند يو هلاکونکی پړاو وي چي د خپل سکون له کبله نه يوازي د مذهب او اخلاق بلکه د شرافت او انسانيت د ټولو پابنديو ماتولو څخه منع نه کوي ، مګر کله چي په يو جائز طريقه سره سکون تر لاسه سي نو بيا د اعتدال پابند سي او ظاهره ده چي جائز طريقه يوازي نکاح کېداى سي .

۲. په نکاح کولو سره خپل کور جوړيږي د کور لرلو آرام تر لاسه کيږي او په کورني ژوند کي د سکون او اطمينان دولت په برخه کيږي او د کورني ژوند د دغه اطمينان او سکون په ذريعه انساني ژوند ته د فکر او عمل پر هر اړخ باندي مرسته تر لاسه کيږي .

۳. د نکاح په ذريعه کورنۍ زياتيږي چي د هغه په وجه انسان خپل ځان ټينګ او غوره محسوس کوي او په ټولنه کي د خپل حقوقو او مفاداتو د تحفظ لپاره رُعب لري .

۴. په نکاح کولو سره نفس د مجاهدې عادي کيږي ځکه چي د کورنۍ د خبراخيستني او روزني په اړه پر له پسې کوښښ کول وي چي د دغه پرله پسې کوښښ نتيجه دا وي چي انسان د بې عملي او لا پرواهي د ژوند څخه ليري وي چي د هغه لپاره په دنيوي توګه ګټور وي او د دې په وجه هغه په ديني ژوند يعني عبادت او طاعت کي هم بېداره وي .

د نکاح په ذريعه نيک او صالح اولاد پيدا کيږي، څرګنده ده چي د يو سړي د ژوند تر ټولو لويه سرمايه د هغه نېک او صالح اولاد وي چي د هغه په وجه نه يوازي په دنيا کي اطمينان، سکون او د عزت دولت تر لاسه کوي بلکه په اخروي توګه سره هم د کاميابۍ او سعادت برخمن جوړيږي .

دا خو د نکاح ګټې وې او ځيني داسي شيان هم دي چي د نکاح په وجه د ځينو خلکو لپاره د تاوان او تکليف سبب ګرځي چي هغو ته د نکاح آفات ويل کيږي چي په لاندي توګه دي :

۱. د حلال رزق د طلب څخه عاجزه کېدل، يعني د نکاح په وجه د کورنۍ اړتياوي رامنځته کيږي او ډول ډول فکرونه پيدا کيږي ځکه نو په عامه توګه سره د حلال رزق په تر لاسه کولو کي هغه ذوق نه پاته کيږي کوم چي د يو مجرد او يوازي سړي په ژوند کي وي .

۲. په حرامو کارو کي زياتوب ، يعني کله چي د ښځي د راتلو او د کوچنيانو د پيدا کېدو په وجه د ژوند اړتياوي زياتيږي نو ډېره واره د خپل ژوند وجود او معيار برقرار ساتلو لپاره د حرامو کارو څخه هم منع نه کوي چي د هغه نتيجه دا سي چي کرار کرار د ذهن او عمل څخه د حلال او حرام تميز هم ختم سي او حرام شيان اختيار کړل سي .
۳. د ښځو د حقوقو په ادا کولو کي کوتاهي کول، اسلام چي ښځو ته کوم لوړ حقوق ورکړي دي په هغه کي د ښځي سره د ښه چلن او حسن معاشرت يوه خاصه درجه ده مگر داسي ډېر کم خلک دي چي د ښځو د حقوقو لحاظ ساتي بلکه په بدبختۍ سره زورکي گڼل کيږي ځکه د ښځو د حقوقو تر پښو لاندي کول او د هغوی سره بد چلن کول هم د يو ذاتي معاملې څخه زيات څه حيثيت نه لري حالانکه دا شی يوازي يو انساني او ټولنيزه بداخلاقي نه ده بلکه په شرعي توگه هم د لوی گناه خبره ده او په دې سره دين او دنيا دواړو ته تاوان رسيږي
۴. د ښځو پر بد مزاجي باندي صبر نه کول ، په عامه توگه سره سړی خپل ځان پر ښځه غوره گڼي ځکه د ښځي له خوا که يو لږ بد اخلاقي وسي نو د زغملو وړ نه وي او د صبر او تحمل لمن د لاس څخه سمدستي ووځي .
۵. د ښځي د ذات څخه تکليف پورته کول، ځيني ښځي داسي وي چي د خپل بداخلاقۍ په وجه د خپلو خاوندانو لپاره د تکليف او پريشانۍ يو مستقل سبب گرځي چي د هغه په وجه کورنی ژوند غير مطمئن او پريشانه گرځي .
٦. د ښځي او کوچنيانو په وجه د الله تعالی د حقوقو نه ادا کول، يعني داسي خلک ډېر کم وي چي د خپل کورني ژوند د استحکام او د ښځي او کوچنيانو سره د ښه چلن سره سره خپل ديني ژوند هم په پوره توگه سره برقرار وساتي ، حال دا چي په عامه توگه داسي وي چي د ښځي او کوچنيانو د مصروفياتو په بوختيا کي ديني ژوند کمزوری او بې عمله سي، چي د هغه نتيجه دا وي چي نه خو د عبادت او طاعت خيال پاته کيږي او نه د الله تعالی حقوق په پوره توگه سره ادا کيږي .

د نکاح د گټو او آفاتو په مخته اېښودو سره اوس په دې پوه سئ که چيري دغه دواړه مقابل وي يعني گټي او آفات برابر او مساوي وي نو په کوم شي سره چي د دين په کارو کي زياتي کيږي هغه ته دي ترجيح ورکړل سي مثلا يوې خوا ته د نکاح دا گټه وي چي د دې په وجه جنسي جوش کميږي او بلي خوا ته د نکاح په کولو سره دغه ديني تاوان وي چي د ښځي پر بد اخلاقۍ به صبر و نه کړلای سي نو په دغه صورت کي دي نکاح کولو ته ترجيح ورکړل سي ځکه که چيري

نکاح نه وي نو په زنا کي به اخته سي او څرګنده ده چي دغه شی د ښځي پر بد اخلاقۍ باندي د صبر نه کولو څخه زیات د دیني تاوان سبب وي.

## د نکاح احکام

۱. د حنفي مذهب سره سم نکاح کول په هغه صورت کي فرض کیږي کله چي جنسي جوش هغه درجې ته ورسیږي چي د نکاح نه کولو په صورت کي په زنا کي د اخته کېدو یقین وي او د ښځي پر مهر او د هغې پر نفقه باندي قدرت ترلاسه وي او دا بېره نه وي چي د ښځي سره د ښه چلن کولو پر ځای به د هغې سره د ظلم او زیاتۍ چلن وي.

۲. نکاح کول په هغه صورت کي واجبیږي کله چي د جنسي جوش غلبه وي مګر دومره غلبه نه وي چي په زنا کي د اخته کېدو یقین وي او د مهر او نفقې د ادا کولو قدرت وي او پر ښځه باندي د ظلم کولو بېره نه وي که پر یو سړي باندي د جنسي جوش غلبه وي مګر هغه د مهر او د ښځي د نفقې قدرت نه لري نو په داسي صورت کي که چیري هغه نکاح ونه کړي نو پر هغه به ګناه نه وي حال دا چي پر مهر او نفقې باندي د قادر کېدو په وجه د جنسي جوش په صورت کي په نکاح نه کولو سره ګناه کار کیږي.

۳. د اعتدال په حالت کي نکاح کول سنت مؤکده ده، د اعتدال د حالت څخه مراد دادی چي د جنسي جوش غلبه خو نه وي مګر د ښځي سره پر کوروالي کولو باندي قدرت ولري او پر مهر او نفقې باندي هم قادر وي نو په دغه صورت کي نکاح نه کونکی ګناه کار دی، او د زنا څخه د ساتني او د نسل د زیاتېدو په نیت سره نکاح کونکی په اجر او ثواب سره نازول کیږي.

۴. نکاح کول په هغه صورت کي مکروه ده کله چي پر ښځه باندي د ظلم کولو یقین وي، که یو چا ته دا یقین وي چي زه د خپل طبیعت او سختۍ په وجه د ښځي سره ښه چلن نه سم کولای بلکه پر هغې باندي زما له خوا ظلم کېدل یقیني دی نو په داسي صورت کي نکاح کول به پر هغه حرام وي.

د دغه وضاحت څخه څرګنده سوه چي شریعت د نکاح په باره کي د مختلفو حالاتو رعایت ساتلی دی چي په ځینو صورتو کي نکاح فرض وي په ځینو کي واجب او په ځینو کي سنت مؤکده وي. او په ځینو صورتو کي نکاح کول مکروه هم وي او په ځینو کي حرامه هم وي نو هر سړی باید چي پر هغه صورت باندي عمل وکړي کوم چي د هغه د حالت سره سم وي.

# د نكاح مستحبات

كله چي يو څوک نكاح كول غواړي كه سړى وي يا ښځه نو هغه بايد د نكاح د پيغام استولو څخه مخكي د يو بل حالات او عادتونه په ښه ډول معلوم كړي چي داسي نه وي وروسته يو داسي شى معلوم سي چي د طبيعت او مزاج د خلاف كېدو په وجه د ښځي او خاوند په مينځ كي د بدحالۍ او جنجال سبب جوړ سي .

دا مستحب دي چي په عمر، عزت، نسب او مال كي ښځه د خاوند څخه كمه وي او په اخلاقو، عاداتو، خوش طبعۍ او ادابو، حسن او جمال، او تقوا كي د خاوند څخه زياته وي ، د سړي لپاره دا هم سنت دي چي هغه د كومي ښځي سره نكاح كول غواړي نو هغه ښځه د نكاح كولو څخه مخكي ووينې په شرط د دې چي دا يقين وي كه زه هغې ته پيغام ولېږم نو منظور به سي ،

دا مستحب دي چي د نكاح اعلان وكړل سي او د نكاح مجلس په ډاګه جوړ كړل سي چي په هغه كي د دواړو خواوو قريبانو او ځيني علماء او صالح خلك هم ګډون وكړي ، همدارنګه دا مستخب دي چي نكاح تړونكى نېک او صالح سړى وي او شاهدان عادل او پرهېزګاره وي.

# ايجاب او قبول او د هغه د صحيح كېدو شرطونه

نكاح د ايجاب او قبول په ذريعه تر سره كيږي او ايجاب او قبول دواړه د ماضي په لفظ سره كېدل پكار دي (يعني داسي لفظ دي استعمال كړي چي د هغه څخه دا معلومه سي چي نكاح وسوه) د مثال په توګه ښځه داسي ووايي چي ما خپل ځان ستا په زوجيت كي وركړى يا د ښځي سرپرست دا ووايي چي ما فلانۍ ښځه چي د هغې نوم فلانۍ ده تا ته په نكاح دركړل او د هغه په جواب كي سړى دا ووايي چي ما قبوله كړه ، او يا ايجاب او قبول يو دي د ماضي په لفظ سره وي لكه ښځه چي دا سي ووايي چي زما سره نكاح وكړه يا د ښځي سرپرست سړي ته ووايي چي د فلانۍ ښځي سره چي د هغې نوم دادى نكاح وكړه او د هغه په جواب كي سړى ووايي چي ما نكاح وكړه يا د دې برعكس چي سړى ووايي ايا تا خپل ځان زما په زوجيت كي راكړ يا داسي ووايي چي ايا تا زه قبول كړم او د هغه په جواب كي ښځه ووايي چي (هو ما دركړل يا هو ما قبول كړې ) پر ځاى يوازي داسي ووايي چي هو در مي كړل يا هو قبول مي كړې، (يعني لفظ د ما ونه وايي) نو په دغه صورت كي هم نكاح كيږي البته د شاهدانو په مخكي يوازي په دغه ويلو سره چي مور ښځه او خاوند يو نكاح نه كيږي .

لكه څرنګه چي په ايجاب او قبول كي د ماضي لفظ استعمالول ضروري دي همدارنګه دا

هم ضروري ده چي په ايجاب او قبول کي په يو خاصه توګه سره د نکاح او تزويج لفظ استعمال کړل سي مثلا داسي وويل سي چي ما ستا سره نکاح وکړه يا ستا سره مي تزويج وکړ ، يا دنکاح او تزويج هم معنی الفاظ استعمال کړل سي چي د هغه څخه کنايتا دنکاح مفهوم معلوم سي نو دا هم جائز دي ، په شرط ددې چي د هغه سره داسي وي چي د هغه په ذريعه د يو ذات کامل ملکيت في المال تر لاسه کيږي که د هبې لفظ يا د صدقې لفظ يا دتمليک لفظ يا د بيع او شراء لفظ لکه چي ښځه ووايي چي ما ته د دومره روپو په عوض کي رانيولې او ددغه تهولو په جواب کي سړی ووايي چي ما قبوله کړې مګر ددې د صحيح کېدو يو شرط داهم دی چي متکلم دي د لفظ ځخه مراد نکاح اخلي که چيري يو قرينه پر دې دلالت کوي او که يو قرينه نه وي نو قبلونکی دي د متکلم د مراد تصديق وکړي چي شاهدان هم پوه سي چي د ددغه لفظ څخه مراد نکاح ده که څه هم هغوی په يو قرينې سره پوه سوي وي يا په ښودلو سره پوه سوي وي .

د ايجاب او قبول پر وخت په عاقدينو (يعني نر او ښځه) کي د هر يوه لپاره د بل خبري اورېدل ضروري دي که هغه يې خپله واوري يا د يو وکيل په ذريعه يې واوري او يا بالوَلايَة يعني د هغه د ولي په ذريعه يې واوري .

د ايجاب او قبول پر وخت د دوو شاهدانو موجودتيا د نکاح د صحيح کېدو لپاره شرط دی او دوه شاهدان که دوه نارينه وي يا يو نارينه او دوې ښځي وي ، د شاهدانو ازاد کېدل ضروري دي د مينزي او غلام شاهدي معتبره نه ده همدارنګه د شاهدانو عاقل او مسلمان کېدل هم ضروري دي، د مسلمان شاهدي په هر حال کي کافي دي که هغه پرهيزګاره وي يا فاسق او يا پر په د قذف حد لګول سوی وي ، د شاهدانو بينا کېدل يا د زوجينو قريب نه کېدل شرط نه دي ، ړند سړي شاهدي او د زوجينو د قريبانو شاهدي معتبره ده که څه هم هغه په زوجينو کي د يوه زوی وي ، د شاهدانو لپاره دا ضروري ده چي هغوی دواړه د ايجاب او قبول الفاظ يو ځای واوري او په اورېدو سره په دې پوه سي چي نکاح کيږي که څه هم هغوی د الفاظو په معنی پوه نه سي مثلا ايجاب او قبول په يو داسي ژبه وي چي هغوی نه په پوهيږي ، که دواړه شاهدان د ايجاب او قبول الفاظ يو ځای نه واوري بلکه جلا جلا يې واوري نو نکاح به صحيح نه وي ، که يو څوک بل چا ته ووايي چي زما د فلانی نابالغي لور نکاح د فلاني سړي سره وکړه او هغه سړی د هغه انجلۍ نکاح د هغه د پلار يا بل چا په موجودتيا کي وکړي نو دا به جائز سي مګر که چيري پلار موجود نه وي نو بيا د دوو خلکو يا يوه سړي او دوو ښځو د موجودتيا څخه پرته نکاح نه صحيح کيږي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### ځوانانو ته د نکاح کولو حکم

﴿۲۹۴۷﴾: عَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل :

يَا مَعْشَرَ الشَّبَابِ مَنْ اسْتَطَاعَ منكم الْبَاءَةَ فَلْيَتَزَوَّجْ فَإِنَّهُ أَغَضُّ لِلْبَصَرِ

اې ځوانانو ! په تاسو کې چې څوک د جماع د نفقې او ولورتوان ولرئ نو هغه ته پکار ده چې نکاح وکړی ځکه چې نکاح کول پټونکی د نظر

وَأَحْصَنُ لِلْفَرْجِ وَمَنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَعَلَيْهِ بِالصَّوْمِ فَإِنَّهُ لَهُ وِجَاءٌ . متفق عليه

او پاکونکی د فرج دی او څوک چې یې توان و نه لري نو هغه دي روژې نیسي ځکه چې روژه نیول د انسان شهوت ختموي .(بخاري او مسلم) .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\۱۱۲، رقم: ۵۰۶۶، ومسلم ۲\۱۰۱۸، رقم: ۱\۱۴۰۰.

**د لغاتو حل**: وِجاء: اى كسر لشهوته . (د شهوت ختمول).

**تشريح**: انسان ته د بالغ کېدو څخه وروسته زلمی ویل کیږي مګر د ځوانی په حد کې اختلاف دی د امام شافعي رحمه الله علیه په نزد د ځوانی حد دېرش کاله پورې دي ، امام ابو حنیفة رحمه الله علیه فرمایي چې یو انسان تر څلوېښت کاله پورې د ځوان ویلو مستحق دی .

### د نکاح نه کولو څخه منع

﴿۲۹۴۸﴾: وَعَنْ سَعْدِ ابْنِ اَبِيْ وَقَاصٍ قَالَ رَدَّ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى عُثْمَانَ بْنِ مَظْعُوْنٍ التَّبَتُّلَ وَلَوْ أَذِنَ لَهُ لَا خْتَصَيْنَا . متفق عليه.

د حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ عثمان بن مظعون رضي الله عنه ته د ښځو سره د تعلق د پرېښودلو اجازه ور نه کړه که نبي کریم ﷺ و هغه ته اجازت ورکړې وای نو موږ به ځان خصي کړې وای (بخاري او مسلم)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\۱۱۷، رقم: ۵۰۷۳، ومسلم ۲\۱۰۲۰، رقم: ۶\۱۴۰۲.

**د لغاتو حل**: التبتل: ای الانقطاع عن النساء: (د ښځو څخه بېلوالی).

**تشریح** د تبتل معنی ده د ښځو سره انقطاع او نکاح نه کول، د نصارا (د حضرت عیسی علیه السلام د پیروانو) په نزد تبتل یو ښه او غوره کار دی ځکه د هغوی په نزد د دینداری آخري حد دادی چي انسان د ښځو څخه پرهیز وکړي او دنکاح وغیره څخه ځان وساتي، لکه څرنګه چي په عیسائیت یا نورو مذهبو کي نکاح نه کول د ژوند د خوندونو څخه لیري کېدل د عبادت، نیکی او تقوا آخري حد ګڼل کیږي داسي خبره په اسلام کي بالکل نه سته بلکه اسلامي شریعت نکاح د انساني ژوند لپاره یو ضرورت ګرځولی او ددې ارزښت یې واضح کړی دی او ښوولي یې دي چي د ژوند د خوندونو څخه لیري کېدل او تکلیف زغمل عبادت نه دی بلکه رهبانیت دی چي هغه ته په دین فطرت کي هیڅ مقام تر لاسه نه دی، مګر امام شافعي رحمة الله علیه دا وایي چي بېله نکاح ژوند تېرول غوره دي مګر د امام شافعي رحمة الله علیه دغه قول هم د نکاح په باره کي د اسلامي شریعت د بنیادي منشاء خلاف نه دی ځکه چي اول خو ددې تعلق یوازي د افضلیت سره دی او دوهم دا چي دغه افضلیت هم د نفس نکاح په باره کي نه دی بلکه یوازي د تخلي للعبادة (یعني د عبادت لپاره ځان یوازي کولو) په باره کي نه دی یعني د امام شافعي رحمة الله علیه مقصد یوازي دا څرګندول دي چي په عبادت کي بوختیا د نکاح تر بوختیا غوره دي، مثلا علي قاري رحمة الله علیه په مرقات کي د امام شافعي رحمة الله علیه د دلیل نقل کولو څخه وروسته د امام ابوحنیفة رحمة الله علیه ډېر دلیلونه نقل کړي دي چي د هغو څخه ثابتیږي چي د تجرد (بېله نکاح اوسېدلو) په مقابله کي تاهل (نکاح کول) غوره دي.

په هر حال کله چي حضرت عثمان ابن مظعون رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه د تبتل اجازه وغوښتل نو رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه ته د اجازې ورکولو څخه انکار وکړ ځکه اسلام د مسلمانانو په نزد د نکاح په ذریعه نسل خپرول خوښوي چي ددې په وجه په دنیا کي د الله تعالی حقیقي نوم اخیستونکي زیات سي او هغوی همېشه د کفر او باطل پر خلاف جهاد کوي، په دې اړه د حدیث راوي حضرت سعد ابن ابي وقاص رضی الله عنه دا وویل که چیري رسول الله صلی الله علیه وسلم حضرت عثمان ابن مظعون رضی الله عنه ته د تبتل (یعني نکاح نه کولو) اجازه ورکړې وای نو موږ ټولو به ځانونه خصي کړي وای چي موږ ته د ښځو ضرورت نه وای او نه موږ ته د ښځو سره په یو خرابي کي د اخته کېدو بېره وای.

علامه طیبي رحمة الله علیه وایي چي دلته مناسب دا وه چي حضرت سعد رضی الله عنه دا ویلي وای که چیري رسول الله صلی الله علیه وسلم حضرت عثمان ابن مظعون رضی الله عنه ته د تبتل اجازه ورکړې وای نو موږ به هم

تبتل کولای ، مګر د حضرت سعد رضي الله عنه ددغه ویلو پر ځای دا وویل چي موږ به ټولو خپل ځان خصي کړي وای ، نو حضرت سعد رضي الله عنه دا خبره په اصل کي د مبالغې په توګه وکړه یعني ددې خبري څخه د هغه مقصد دا وو که چیري رسول الله ﷺ حضرت عثمان رضي الله عنه د تبتل اجازه ورکړې وای نو موږ به په تبتل کي دومره مبالغه او دومره سخت کوښښ کولای چي په پای کي به د خصي په ډول سوي وای ، یعني ددغه جملې څخه د حضرت سعد رضي الله عنه مراد حقیقتاً خصي کېدل نه وه ځکه چي دغه کار (یعني دځان خصي کول) جائز نه دي.

علامه نووي رحمة الله عليه فرمايي چي حضرت سعد رضي الله عنه دا خبره له دې کبله وکړه چي د هغه ګمان دا وو چي خصي کېدل جائز دي حالانکه د هغه ګمان د حقیقت او واقعیت خلاف وو ځکه چي خصي کېدل د انسان لپاره حرام دي که څه هم د کم عمر وي یا د ډېر عمر وي، دلته د حیوانانو په باره کي په دې پوهېدل پکار دي چي د هر هغه حیوان خصي کول حرام دي کوم چي غیر ماکول (یعني د هغو غوښه نه خوړل کیږي) وي او کوم حیوانان چي غوښه ئې خوړل کیږي د هغو خصي کول په کم عمر کي جائز دي مګر په ډېر عمر کي حرام دي، د حیوانانو د خصي کولو په باره کي پورتنی تفصیل علامه نووي شافعي رحمة الله عليه لیکلي دی، حال دا چي د فقهي په کتابو کي او په مختار او هدایه کي د ډېر عمر او لږ عمر د تفصیل څخه پرته یوازي دا لیکل سوي دي چي د حیوان خصي کول جائز دي.

## د دینداره ښځي سره نکاح کول غوره دي

﴿۲۹۴۹﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ تُنْكَحُ الْمَرْأَةُ لِأَرْبَعٍ لِمَالِهَا وَلِحَسَبِهَا وَجَمَالِهَا وَلِدِينِهَا فَاظْفَرْ بِذَاتِ الدِّينِ تَرِبَتْ يَدَاكَ . متفق عليه.

د حضرت ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د ښځو سره په څلورو وجو نکاح کولای سي ۱- د مالداري په وجه . ۲- د حسب په وجه ۳- د ښائست په وجه . ۴- د مذهب په وجه . په دې کي چي چا د دین او مذهب په وجه نکاح وکړه هغه کامیاب سو او ستا لاس دي په خاورو ککړ سي (که د مال او حسب یا د ښائست په وجه نکاح وکړی) . (بخاري او مسلم).

**تخريج** : البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۳۲\۹، رقم: ۵۰۹۰، ومسلم ۱۰۸۶\۲، رقم: ۱۴۶۶\۵۲.

**تشريح** د حسب او نسب والا څخه مراد هغه ښځه ده چي نه یوازي په ذات کي شرف او لوړي لري بلکه هغه چي د کومي کورنۍ او قبیلې څخه وي هغه کورنۍ او قبیله هم د عزت او شرف

څښتنه وي ، د انسان دا فطري خواهش وي چې هغه د داسي ښځي سره واده وکړي چې د حیثیت او عزت والا کورنۍ او قبیلې څخه وي چې د هغه ښځي په وجه د خپل اولاد په نسب کي د شرف او لوړتیا امتیاز تر لاسه کړي .

په هر حال د حدیث خلاصه داده چې په عامه توګه سره خلک د ښځو سره د نکاح کولو په اړه د پورتنیو څلورو شیانو په خاصه توګه لحاظ ساتي چې ځیني خلک د شتمنو ښځو سره نکاح کول غواړي، ځیني د حسب او نسب ښځه کول خوښوي، د ډېرو خلکو دا خواهش وي چې یو ښکلې او ښائسته ښځه یې د ژوند ملګرې سي او ځیني خلک نېکي او دینداري ښځي ته ترجیح ورکوي ، نو د دین او مذهب سره تعلق لرونکي هر څوک باید چې د هغه دینداره ښځي سره نکاح کول خوښ کړي ځکه چې په دې کي دد نیا خیر هم دی او د آخرت سعادت هم دی .

ستاسو لاسونه دي په خاورو ولړل سي : دغه جملې د لفظي مفهوم په اعتبار د ذلت ، هلاکت او ښېرا لپاره د کنایې په توګه استعمالیږي مګر دلته دد غه جملې څخه ښېرا کول مراد نه دي بلکه دد ې مقصد د دینداره ښځو خپل مطلب ګرځولو ته ترغیب ورکول دي .

## نیک بخته ښځي د دنیا غوره متاع دی

﴿۲۹۵۰﴾ : وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الدُّنْيَا كلها مَتَاعٌ وَخَيْرُ مَتَاعِ الدُّنْيَا الْمَرْأَةُ الصَّالِحَةُ . رواه مسلم .

د حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل : دنیا ټوله متاع (د دنیا فائده) ده او د دنیا بهترین متاع نیکه ښځه ده . (مسلم)

**تخریج** : مسلم في الصحیح ۱۲\۱۰۹۰، رقم: ۶۴\۱۴۶۷.

**تشریح** د متاع معنی ده هغه شی چې د هغه څخه لږ ګټه تر لاسه سي او بیا فناه سي ، نو دنیا ته د متاع ویلو مطلب دادی چې دنیا یو داسي شی دی چې د هغه ګټه تر لږ وخت پوري وي چې د هغه ګټه ژر فنا کېدونکې ده همدارنګه ددین غوره متاع نیکه ښځه ده ، ددې مطلب دادی چې په دغه دنیا کي د کومو شیانو څخه ګټه تر لاسه کیدای سي نو په هغو کي غوره شی نېکه ښځه ده ځکه چې نېکه ښځه د آخرت په کارونو کي مرستیاله او ګټوره ثابتیږي .

## د قریشو د ښځو فضیلت

﴿۲۹۵۱﴾ : وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْرُ نِسَاءٍ

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ و فرمایل: په اوښ سپرېدونکو ښځو

رَكِبْنَ الْإِبِلَ صَالِحُ نِسَاءِ قُرَيْشٍ أَحْنَاهُ عَلَى وَلَدٍ فِي صِغَرِهِ وَأَرْعَاهُ عَلَى زَوْجٍ فِي ذَاتِ يَدِهِ. متفق عليه.

(د عربو په ښځو) کي غوره ښځي د قریشو نېکي ښځي دي چي پر کوچنیانو ډیري مهرباني او د خپل خاوند د مال ساتونکي او امانت داري دي. (بخاري او مسلم).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\۱۲۵، رقم: ۵۰۸۲، ومسلم ۴\۱۹۵۹، رقم: ۲۰۲\۲۵۲۷.

**تشريح**: پر اوښانو د سپرېدونکو ښځو څخه مراد د عربو ښځي دي ځکه چي د عربو ښځي په عامه توګه سره د اوښانو د سپرتیا عادي وي نو د حدیث مطلب دا سو چي په عربي ښځو کي غوره ښځي د قریشو نیکي ښځي دي.

## د ښځو فتنه ډېره تاواني ده

﴿۲۹۵۲﴾: وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا تَرَكْتُ بَعْدِي فِتْنَةً أَضَرَّ عَلَى الرِّجَالِ مِنَ النِّسَاءِ. متفق عليه.

د حضرت اسامه بن زید رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: زه د ځان څخه وروسته د سړو لپاره د ښځو څخه زیاته ضرر رسوونکې بله فتنه نه پرېږدم. (بخاري او مسلم)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\۱۳۷، رقم: ۵۰۹۶. ومسلم ۴\۲۰۹۷، رقم: ۹۷\۲۷۴۰.

**تشريح**: د نارینو لپاره د ښځو فتنې ته تر ټولو زیاته تاواني ځکه ویل سوي دي چي اول خو د نارینو طبیعت په عامه توګه ښځو ته مائل وي، دوهم دا چي نارینه په عامه توګه د ښځو د خواهشاتو زیات پابند وي چي د هغه نتیجه دا سي چي هغوی په حرامو کارو کي اخته سي او د ښځو په وجه په خپلو کي په جنګ، نفرت او عداوت کي اخته سي، دد ې ښه مثال دادی چي د ښځو بې ځایه ناز سړی دنیا ته راغب کوي او څرګنده ده چي د دنیا داري څخه زیات بل کوم شی تاوان رسونکی کیدای سي ځکه چي رسول الله ﷺ په دې باره کي فرمایلي دي: حب الدنیا راس کل خطیئة: یعني د دنیا مینه د ټولو خرابیو رېښه ده.

(د ځان څخه وروسته) د دغه ارشاد څخه دا خبره ثابته سوه چي د ښځو فتنه د رسول الله ﷺ په زمانه کي وه او د دې زیات ظهور د رسول الله ﷺ څخه وروسته وسو ځکه چي هغه وخت د حق

غلبه وه او د نیکۍ طاقت تړولي بدي تر پښو لاندي کړي وي ، کله چي د رسول الله ﷺ څخه وروسته په کراره کراره د باطل قوت زیاتېدی نو د بدۍ غلبه راغله .

## د ښځو د فتني څخه ځان وساتئ

﴿۲۹۵۳﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

الدُّنْيَا حُلْوَةٌ خَضِرَةٌ وَإِنَّ اللّٰهَ مُسْتَخْلِفُكُمْ فِيهَا فَيَنْظُرُ كَيْفَ تَعْمَلُونَ فَاتَّقُوا

دنیا (ډېره) شیرینه او شنه یعني په نظر کي غوره شی دي او خداي تعالی ستاسو په دنیا کي پرېښوونکی دی بیا هغه تاسو ته وخت درکوي چي تاسو څه کوئ ؟ نو

الدُّنْيَا وَاتَّقُوا النِّسَاءَ فَإِنَّ أَوَّلَ فِتْنَةِ بَنِي إِسْرَائِيلَ كَانَتْ فِي النِّسَاءِ . رواه مسلم

د دنیا او د ښځو څخه ځان وساتئ ځکه چي بني اسرائیلو ته لومړنۍ فتنه د ښځو وه . (مسلم) .

**تخريج**: مسلم في الصحیح ۴\۲۰۹۸، رقم: ۹۹\۲۷۴۲.

**تشريح**: دنیا خوږه او شنه ده : ددې مطلب دادی لکه څرنګه چي خوږ شی د طبیعت لپاره خوښ شی وي او څرنګه چي شین شی طبیعت ته ښه معلومیږي همدارنګه دنیا هم زړه ته خوږه او سترګو ته ډېره ښه معلومیږي .

الله جل جلاله تاسو ددغه دنیا خلیفه ګان کړي یاست ..الخ: ددې مطلب دادی چي دغه دنیا په حقیقت کي د الله تعالی ملکیت دی هغه ددې حقیقي مالک او حاکم دی هغه تاسو پر دغه مځکه باندي خلیفه ګرځولو سره د دې د تصرفاتو تاسو خپل وکیلان ګرځولي یاست نو الله تعالی هر وخت تاسو ویني چي تاسو په دغه مځکه کي د هغه د خلافت بار څرنګه پورته کوئ او د خپل ژوند په ذریعه د دنیا په تصرفاتو کي د وکالت حق څرنګه ادا کوئ ، یا ددې جملې معنی داده چي کوم خلک ستاسو څخه مخکي ددغه دنیا څخه تللي دي الله تعالی تاسو د هغه خلیفه (وارث) ګرځولي یاست نو د هغوی سره چي څه وه هغه ټول یې تاسو ته درکړي دي او اوس هغه تاسو ته ګوري چي تاسو د خپل اسلافو د احوالو او کیفیت څخه څرنګه عبرت اخلي او د هغوی په مالو او مېراث کي څرنګه تصرف کوئ .

د دنیا څخه ځان وساتئ : ددې مطلب دادی چي دنیا د مکر او فریب یو جال دی، ددغه جال

څخه تر خپل وس پوري ځان وساتئ داسي نه چي په دغه جا لکي په راتللو سره د دنيا پر ظاهري مال باندي خپله دينداري د لاسه ورکړئ ځکه چي د نيا ته ثبات نه سته دا يو فنا کېدونکی شی دی بيا د دغه فنا څخه وروسته سبا چي تاسو د همېشه ژوند لپاره څه کولای سي نو د دغه حلالو شيانو به حساب ورکول کيږي او د هغه پر حرامو شيانو به په عذاب کي سئ همدارنګه د ښځو د مکر او فريب څخه هم ځان وساتئ ځکه چي د يو موټ خاورو دغه ښکلې مجسمه کله دنيکي ښځي په صورت کي د الله تعالی يو نعمت وي او کله د يو خرابي ښځي په شکل کي فتنه هم وي داسي نه چي د خرابو ښځو مکاري او بې ځايه ناز تاسو حرامو شيانو ته واړوي او د هغوی په وجه تاسو د تباهۍ او هلاکت په کنده کي ولويږي .

## په بني اسرائيلو کي د تباهۍ سبب د ښځي فتنه وه

د تباهۍ د دروازې خلاصولو اول سبب او ذريعه ښځه جوړه سوې ده ، ددې تفصيل داسي دی چي د حضرت موسی عليه السلام په زمانه کي يو سړی (بلعم بن باعور) ډېر مستجاب الدعوات (يعني د دعاء قبلېدونکی ) وو د هغه اسم اعظم په ياد وو چي د هغه په ذريعه به د هغه هره دعاء قبلېدل، کله چي حضرت موسی رحمة الله عليه د جبارينو سره د جنګ لپاره د شام په سيمه کي د بني کنعان په يو سيمه کي تم سو نو د بلعم د قوم خلک بلعم ته راغلل او هغه ته يې وويل چي موسی عليه السلام د خپل پيروانو يو لوی لښکر راوستلو سره زموږ د قتل او ددغه سيمي څخه زموږ د ايستلو لپاره راغلی دی تاسو د هغه لپاره يو داسي ښېرا وکړئ چي هغه ددغه ځای څخه بېرته وتښتېږي . بلعم جواب ورکړه چي زه په هغه څه پوهېږم کوم چي تاسو نه په پوهېږئ زه د الله جل جلاله د پيغمبر او د هغه د منونکو په حق کي ښېرا څرنګه کولای سم، که زه د هغوی لپاره ښېرا وکړم نو زما دنيا او آخرت به دواړه تباه سي ، کله چي د هغه د قوم خلکو هغه ته ډېري زارۍ وکړې او پر ښېرا کولو باندي يې ډېر ټېنګار وکړ نو بلعم وويل چي ښه دی زه استخاره کوم چي څه حکم کيږي، بيا د هغه څخه وروسته به فيصله کوو ، د بلعم دا معمول وو چي هغه به بېله استخارې هيڅ يو کار نه کوی هغه چي استخاره وکړه نو په خوب کي هغه ته هدايت وسو چي د پيغمبر او مؤمنانو په حق کي هيڅکله ښېرا مه کوه ، بلعم د خپل خوب څخه خپل قوم خبر کړی او د ښېرا کولو څخه يې منع وکړه ، د قوم خلکو د فکر کولو څخه وروسته يوه طريقه اختيار کړه چي هغه خلکو د ځان سره د قيمتي تحفو په راوړلو سره بلعم ته راغلل او بيا د هغه په وړاندي په ډېر زارۍ سول ژړا او فرياد يې وکړ او هغه يې دومره مجبور کړ چي په پای کي د هغوی په جال کي راغلی ، د هغه د ښېرا کولو په غرض پر خپل خره باندي سپور سو او کرجستان نامي غره ته ولاړی چي د هغه

نژدې د حضرت موسی علیه السلام لښکر وو، په لاره کي څو واره خر ولوېدی مګر په وهلو وهلو به يې پورته کړی تر دې چي دا لړی اوږده سوه او بلعم هم خپل خر په وهلو وهلو پريشانه کړی،
نو الله تعالی په خپل قدرت کامله سره خره ته وينا ورکړه، خره وويل اې ناپوهه بلعم! پر تا دي افسوس وي ايا ته دا نه وينې چي ته چيري ځې، ته زما د مخته تللو کوښښ کوې او ملائکي زما مخته په راتللو سره ما پر شا بيايي، بلعم د بصيرت په سترګو سره خر په خبرو کولو وليدی نو پر ځای ددې چي د خپل ارادې څخه منع سي مګر د خره په پرېښودو سره پر پښو غره ته وختی او هلته يې ښېرا شروع کړل، مګر دلته هم الله تعالی خپل شان وښودی چي کله به بلعم په خپله ښېرا کي د حضرت موسی علیه السلام او د هغه د لښکر نوم اخيستی نو د هغه د ژبي څخه به د بني اسرائيلو پر ځای د بلعم د قوم نوم راوتی، ددې په اورېدو سره د هغه د قوم خلکو وويل اې بلعم! دا څه کوې د بني اسرائيلو پر ځای زموږ په حق کي ښېرا کوې، بلعم وويل چي اوس زه څه وکړم دا الله تعالی زما د مقصد او ارادې څخه پرته زما د ژبي څخه ستاسو نوم پورته کوي تر دې چي د الله تعالی د عذاب په وجه د بلعم ژبه د هغه د خولې څخه په راوتلو سره پر سينه را ولوېدل، او بيا د بلعم عقل بالکل له منځه ولاړی او د ليوني په ډول يې ويل چي اوس زما دنيا او آخرت دواړه برباد سول، اوس موږ ته د بني اسرائيلو د تباهی لپاره يو بل جال تيارول پکار دي، بيا هغه مشوره ورکړه چي تاسو خپل ښځي ښه ښائسته او سنګار کړئ او د هغوی په لاسو کي د يو شي د ورکولو په بهانه ښځي د بني اسرائيلو لښکر ته واستوئ او هغوی ته ووايا ست که په بني اسرائيلو کي يو څوک تاسو خپل ځان ته راوبولي نو انکار مه کوئ، په ياد ولرئ که په بني اسرائيلو کي يو سړی هم د يوې ښځي سره په زنا کي اخته سو نو ستاسو ټول کوښښونه به کامياب سي، نو د بلعم قوم په دغه مشوره عمل وکړ او خپل ښځي يې ښکلي او سنګار کړې او د بني اسرائيلو لښکر ته يې واستولې، هغه ښځي چي لښکر ته ورسيدلې او په هغوی کي يوه ښځه چي د هغې نوم کسبي بنت صور وو د بني اسرائيلو د يو سردار زمزم بن شلوم مخته تېره سوه ، نو هغه د ښځي پر ښکلا او جمال باندي زړه بايلی او د هغه د لاس په نيولو سره يې حضرت موسی علیه السلام ته بوتلل او هغه ته يې وويل چي تاسو دغه ښځه زما لپاره حرامه ګرځوئ، حضرت موسی علیه السلام ورته وويل چي هو، دغه ښځي ته بالکل مه ورځه،
نو زمزم وويل چي زه په دې باره کي ستاسو حکم بالکل نه منم نو هغه ښځه يې خپل خيمې ته بوتلل او هلته يې د هغې سره مخ تور کړی، نو ددې په سبب د الله تعالی حکم د قهر شکل اختيار کړ او د هغه سردار په عمل سره پر ټول لښکر باندي يو داسي وبا نازله سوه چي

سمد ستي اوويا زره خلک هلاک سول ، بلي خوا ته فحاص د حضرت هارون علیه السلام ملسی چي يو قوي او د حضرت موسی علیه السلام ساتونکی وو هغه ته دا معلومه سوه چي زموږ د يوه سردار بد عمل د الله تعالی قهر ته دعوت ورکړی دی نو سمد ستي يې خپله وسله را واخيستل او د زمزم خيمې ته داخل سو او د سترګو په رپ کي يې د زمزم او د هغه ښځي کار خلاص کړی او بيا يې وويل چي الله تعالی ددغه سړي په وجه موږ ټول هلاک او تباه کړلو نو د هغه دواړو په قتلېدو سره هغه وباء چي د عذاب په صورت کي نازله سوې وه ختمه سوه .

## نحوست په درو شيانو کي وي

﴿۲۹۵۴﴾ : وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّمَا الشُّؤْمُ

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : نحوست (سپيره توب)

فِي الْمَرْأَةِ وَالدَّارِ والفرس . متفق عليه و في رواية الشؤم في ثلاثة في المراة والمسكن والدابة .

په ښځه، په کور او په آس کي وي او په يوه روايت کي دا الفاظ دي نحوست په درو شيانو کي وي . (۱) په ښځه کي (۲) په کور کي (۳) په حيوان کي . (بخاري او مسلم)

**تخريج** : البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\۱۳۷، رقم: ۵۰۹۳، ومسلم ۴\ ۱۷۴۵، رقم: ۱۱۵\ ۲۲۲۵.

**تشريح** لفظ د شوم د يمن ضد دی چي معنی يې د بې برکتۍ ده او دې ته نحوست هم وايي ، په حديث شريف چي دا فرمايل سوي دي چي په دغه درو شيانو کي بې برکتي وي نو د هغه شيانو په تفصيل پوه سئ چي د نحوست څخه مراد څه شي دی ؟

ځيني حضرات وايي د کور د نحوست څخه د کورتنګي او خراب همسايه مراد دی يعني کوم کور چي تنګ او تاريک وي او د هغه همسايه خراب وي نو هغه کور د تکليف او پريشانۍ سبب وي، د ښځي د نحوست څخه د مهر زياتوب د هغې بد اخلاقي او زبان درازي مراد دی يعني دکومي ښځي چي زيات مهر وټاکل سي هغه بد اخلاقه ، زبان درازه او وچه وي نو داسي ښځه د راحت او سکون پر ځای د اذيت او تکليف ذريعه جوړيږي، همدارنګه د آس نحوست څخه د هغه شوخ کېدل ، سست قدم اخيستل او پر هغه باندي د جهاد نه کول مراد دي، يعني کوم آس چي داسي وي چي د شوخۍ په وجه سړی پرېشانه کوي او سست تګ کوي او پر هغه باندي

په سپړېدو سره د جهاد نوبت هیڅکله نه وي راغلی نو هغه آس د خپل مالک لپاره هیڅ حقیقت نه لري.

ځیني علماء وايي چي په دغه درو شیانو کي د نحوست د اظهار کولو مقصد په اصل کي دا ښوول دي که چیري په یو شي کي نحوست کېدل څه حقیقت ولري نو په دغه درو شیانو کي به وي یعني د دغه تشریح څخه دا حقیقت واضح کېږي چي په یو شي کي نحوست کېدل څه معنی نه لري، دا ویل چي فلانی شی منحوس دی یا په فلاني شي کي نحوست دی دا یوازي د وهمي درجې شی دی چي د حقیقت سره یې هیڅ تعلق نه سته ځکه که چیري نحوست حقیقتا په یو شي کي وي نو هغه به په دغه درو شیانو کي خامخا وای ځکه چي دغه درې شیانو د نحوست وړ کېدای سي، دغه حدیث شریف داسي دی لکه څرنگه چي په یو بل روایت کي فرمایل سوي دي که یو شی د تقدیر د دائرې څخه د باندي وای نو هغه به بد نظر وای یعني د کائناتو هر حرکت او ذره ذره شی د تقدیر پابند دی ځکه په عالم کي یوازي هغه په ظهور کي راځي کوم چي د مخکي څخه مقدر سوي دي هیڅ شی د تقدیر څخه وتلی نه دي، که چیري یو شی د تقدیر د دائرې څخه وتلی وای نو هغه به بد نظر وای، نو څرنگه چي د دغه ارشاد مقصد دا ظاهرول نه دي چي بد نظر د تقدیر د دائرې څخه وتلی شی دی همدارنگه د ذکر سوو درو شیانو د نحوست ذکر کولو مقصد دا نه دی چي په دغه درو شیانو کي نحوست دی.

ځیني علماء وايي چي د دغه ارشاد په ذریعه په اصل کي د امت خلکو ته دا تعلیم ورکړل سوی دی که د چا سره داسي سرای وي چي په هغه کي او سیدل نه خوښوي یا د چا داسي ښځه وي چي د هغې سره محبت او کوروالي نه خوښوي یا د چا سره داسي آس وي چي هغه ته ښه نه معلومېږي نو په دغه درو صورتو کي د دغه شیانو پرېښودل پکار دي یعني سرای والا دي د هغه سرای څخه منتقل سي، ښځي والا دي هغه ښځي ته طلاق ورکړي او آس والا دي هغه آس خرڅ کړي.

د حدیث د دغه وضاحت په رڼا کي دا خبره هم څرگنده سوه چي دغه ارشاد (طیرة منهی عنها) یعني د بدفالي د اخیستلو د منع خلاف نه دی، مطلب دا چي په عامه توگه سره خلک وايي چي دغه مکان منحوس دی یا فلانۍ ښځه د فلاني آس منحوس دی نو دا خبره دلته مراد نه ده.

## د نکاح لپاره د پیغلي ښځي ترجیح

﴿۲۹۵۵﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزْوَةٍ فَلَمَّا

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دی چي موږ په یوه غزا کي د رسول الله ﷺ سره وو، کله چي

قَفَلْنَا كُنَّا قَرِيبًا مِنَ الْمَدِينَةِ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ إِنِّي حَدِيثُ عَهْدٍ بِعُرْسٍ

موږ بیرته راغلو او مدینې منورې ته نژدې را ورسېدو نو ما عرض وکړ یا رسول الله ﷺ! ما

قَالَ أَتَزَوَّجْتَ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ أَبِكْرًا أَمْ ثَيِّبًا قَالَ قُلْتُ بَلْ ثَيِّبًا قَالَ فَهَلَّا بِكْرًا

نوی واده کړی دی ایا زه وړاندي ولاړ سم؟ نبي کريم ﷺ راته وفرمایل: تا نکاح کړې ده؟ ما عرض وکړ هو! نبي کريم ﷺ را څخه پوښتنه وکړه د پېغلي سره که د کونډې سره؟ ما عرض وکړ چي د کونډې سره. نبي کريم ﷺ را ته وفرمایل: د پیغلي سره دي واده ولي نه کوی؟

تُلَاعِبُهَا وَتُلَاعِبُكَ قَالَ فَلَمَّا قَدِمْنَا ذَهَبْنَا لِنَدْخُلَ فَقَالَ أَمْهِلُوا حَتَّى نَدْخُلَ

چي ته د هغې سره او هغې ستا سره لوبي کړی وای (یعني په بې تکلفي سره به مو ژوند کولای) بیا چي موږ و مدینې منورې ته را ورسېدو نو موږ و خپلو کورو ته د تلو تلوار وکړ رسول الله ﷺ راته وفرمایل: و دریږئ موږ به

لَيْلًا أَيْ عِشَاءً لِكَيْ تَمْتَشِطَ الشَّعِثَةُ وَتَسْتَحِدَّ الْمُغِيبَةُ. متفق عليه.

د شپې په وخت کي و کورو ته نه ځو چي ښځي خپل ببر وربښتان ږمونځ کړي او د نامه لاندي وربښتان صفا کړي. (بخاري او مسلم).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\۳۴۲، رقم: ۵۲۴۷، ومسلم ۲\۱۰۸۸، رقم: ۵۷\۱۴۶۶.

**د لغاتو حل**: الشعثة: ای المتفرقة شعر الراس (ببر سر). المغيبة: وهي التي غاب عنا زوجها فتستعمل الحديدة ای الموسی لحلق العانة.

**تشريح** تا د هغې سره لوبي کولای...الخ: ددې څخه په خپلو کي بې تکلفي، الفت او رغبت مراد دی. مطلب دا چي د پيغلي ښځي سره په نکاح کولو کي ژوند زيات په مينه او رغبت سره تېرېږي او بې تکلفي محسوس کيږي، ددې پر خلاف کونډه ښځه چي د دوهم سړي په نکاح کي راسي نو د هغې زړه د اول خاوند په یاد کي وي، دوهم دا که چيري دغه خاوند په کوروالي او نورو کارو کي د دوهم خاوند په ډول نه وو نو د هغې طبيعت موړ سي چي ددې نتيجه به دا سي چي هغه به د ومره بې تکلفه او خوش مزاجه نه ثابتیږي لکه څرنګه چي یو پېغله ښځه وي.

د حديث شريف د آخري جملې مطلب دا دی چي خپلو کورو ته تلوار مه کوئ بلکه لږ ځنډ وکړئ چي ستاسو ښځي د شپې راتلو څخه مخکي په خپل سنګار سره ستا سو د مجامعت لپاره ځان

تيار كړي چي كله تاسو د شپې هغوى ته ورسيږي نو تاسو ته به هيڅ ډول بي لطفي نه وي ، دلته دا اشكال پيدا كيږي چي په نورو حديثو كي د شپې په وخت كي راتلونكي مسافر د شپې په وخت كي د كور ننوتلو څخه منع سوي دي او دلته د شپې په وخت كي كور ته داخلېدل فرمايل سوي دي ؟ ددې جواب دادى چي كور ته راتلونكى مسافر ته د شپې په وخت كي كور ته د داخلېدو چي كومه منع سوې ده د هغې تعلق ددغه صورت سره دى چي كله ناڅاپه او بې خبره كور ته ولاړ سي، او كه چيري كورنۍ ته د مخكي څخه خبر وي لكه څرنګه چي دلته وسول نو په دغه صورت كي د شپې په وخت كي خپل كور ته داخلېدل منع نه دي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### هغه درې كسان چي الله ﷻ يې خامخا مرسته كوي

﴿۲۹۵۶﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ثَلَاثَةٌ حَقٌّ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : درې كسان چي د هغوى

عَلَى اللّٰهِ عَوْنُهُمْ اَلْمُكَاتَبُ الَّذِي يُرِيدُ الْأَدَاءَ وَالنَّاكِحُ الَّذِي يُرِيدُ الْعَفَافَ

كومك پر الله ﷻ واجب دى (۱)يو خو مكاتب غلام چي د خپل كتابت د ادا كولو اراده لري. (۲) هغه نكاح كونكي سړى چي د هغه مقصد د نكاح څخه د زنا د ځان ژغورل وي.

وَالْمُجَاهِدُ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ . رواه الترمذي والنسائي وابن ماجة .

(۳) د خداى تعالى په لاره كي جنګېدونكي . (ترمذي نسائي ابن ماجه) .

**تخريج** : الترمذي في السنن ۴\ ۱۵۷، رقم: ۱۶۵۵، والنسائي ٦\ ٦١، رقم: ۳۲۱۸، وابن ماجه في السنن ۱۲ ۸۴۱- ۸۴۲، رقم: ۲۵۱۸.

**تشريح** مكاتب هغه غلام ته وايي چي د هغه بادار هغه ته دا ووايي كه ته ما ته دومره روپۍ راكړې نو ته به ازاد سې همدارنګه د روپو هغه اندازه چي د هغه غلام بادار د ازادۍ لپاره ضروري ګرځولي دي هغه ته بدل كتابت ويل كيږي .

### د ښځي دولي لپاره هدايت

﴿۲۹۵۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا خَطَبَ إِلَيْكُمْ

مَنْ تَرْضَوْنَ دِينَهُ وَخُلُقَهُ فَزَوِّجُوهُ إِنْ لاَّ تَفْعَلُوهُ تَكُنْ فِتْنَةٌ فِي الْأَرْضِ وَفَسَادٌ عَرِيضٌ. رواه الترمذي.

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: كه يو داسي سړی تاسو ته د نكاح پېغام را ورسوي چي د هغه د دين او اخلاقو څخه تاسو خوشحاله ياست نو د هغه پېغام و منئ نكاح ورسره وكړئ كه يې ونه كړئ نو په مځكه كي به سخته فتنه او لوی فساد پيدا سي. (ترمذي).

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\ ۳۹۴، رقم: ۱۰۸۴.

**تشريح**: دغه حديث شريف په اصل كي د ښځو سرپرستانو او وليانو ته يو خطاب او د هغوی لپاره يو ضروري لارښوونه ده كه چيري يو ديندار او نېک سړی ستاسو د لور يا خور سره د نكاح كولو پيغام را واستوی نو د هغه پيغام ومنئ او د هغه سره يې نكاح وكړئ او كه داسي ونه كړئ بلكه د داسي سړي پيغام رد كړئ او د يو شتمن سړي په انتظار كي ياست لكه څرنگه چي د اكثرو شتمنو خلكو عادت دی نو ددې نتيجه به داسي چي اكثره ښځي به بې خاوند او اكثره خلك به بېله ښځي پاته سي، له دې كبله به نه يوازي دا چي د زنا عام چلن به شروع سي بلكه د هغه ښځو سرپرست او ولي به په يو خراب پيغور او غيرت كي اخته سي بيا چي كله يو څوک هغه پېغور وركوي نو هغوی په جنگ كوي، او په پای كي به دغه خرابي د جگړې او فتنې او فساد شكل وگرځي.

علامه طيبي رحمه الله وايي چي دغه حديث د امام مالک رحمه الله دليل دی چي هغه وايي د كفايت لحاظ دې يوازي د دين په صفت كي وكړل سي يعني د ده په نزد د نارينه او ښځي كفو (سيال) يوازي دين كيدای سي حال دا چي د علماؤ د اكثريت دا مذهب دی چي په دغه څلورو صفتو كي د يو بل د سيال كېدو لحاظ بايد وكړل سي ۱: دين، ۲: حريت، ۳: نسب، ۴: كسب، د يو مسلماني ښځي نكاح دي د كافر سره نه كيږي او نه دي د يو نيكي ښځي نكاح د يو فاسق سره كيږي، د ازادي ښځي نكاح دي د غلام سره نه كيږي، د معلوم النسب نكاح دي د غير معلوم النسب ښځي سره نه كيږي او د يو تجار د لور نكاح دي د يو حرام او مكروه كسب والا سړي سره نه كيږي مگر په دې باره كي دا خبره بايد په ذهن كي وي كه د يو ښځي ولي او خپله هغه ښځه د يو غير كفو سره پر نكاح كولو باندي راضي وي نو نكاح صحيح كيږي.

## د مينه ناکه ښځې سره نکاح کوئ

﴿۲۹۵۸﴾: وَعَنْ مَّعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَزَوَّجُوا الْوَدُودَ الْوَلُودَ فَإِنِّي مُكَاثِرٌ بِكُمُ الْاُمَمَ. رواه ابوداؤد والنسائي.

د حضرت معقل بن يسار رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: تاسو د هغه ښځې سره نکاح کوئ چې د خاوند سره محبت کونکې او زيات کوچنيان راوړونکې وي ځکه چې زه به د نورو امتونو په مقابله کې ستاسو په کثرت فخر کوم. (ابو داؤد نسائي)

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲\۵۴۲، رقم: ۲۰۵۰، والنسائي ۶\۶۵، رقم: ۳۲۲۷.

**تشريح**: په منکوحه ښځه کې ذکر سوي دوه صفتونه ځکه ذکر سوي دي که چيري د يو ښځې ډېر کوچنيان پيدا کيږي مګر هغه د خپل خاوند سره مينه کمه کوي نو په دغه صورت کې د خاوند رغبت هغې ته کم وي او که يو ښځه د خپل خاوند سره مينه زياته کوي مګر د هغې کوچنيان نه پيدا کيږي نو په دغه صورت کې مقصد نه تر سره کيږي او مقصد د امت محمديه ﷺ ډېر والی دی، څرګنده ده چې د زياتو کوچنيانو پيدا کېدو په صورت کې کيدای سي که د مسلمانو ښځو کوچنيان زيات وي نو د امت به زياتوب وي کوم چې د نبي کريم ﷺ په نزد غوره او مطلوب دی.

اوس دا سوال پيدا کيږي چې د نکاح څخه مخکې دا څنګه معلوميدای سي چې کومه ښځه په راتلونکي ژوند کې د دغه صفتو والا کيدای سي، نو ددې جواب دادی چې د يو کورنۍ عامه مشاهده ده چې د هغې د يوې ښځې لپاره د دغه صفتونو معيار جوړيدای سي نو د هغه په اکثرو انجونو کې دغه صفتونه پيدا کيدای سي چې د هغوی کورنۍ او قريبانو کې د دغه صفتونو مشاهده کيږي، په عامه توګه سره د قريبانو طبعي او صاف په يو بل کې سرايت کړی وي او په عادت او مزاج کې د يو کورنۍ هر فرد د بل سره يو ډول وي ځکه د يو کورنۍ د انجلۍ په باره کې د هغه د کورنۍ د عامي مشاهدي سره سم د دغه اوصافو اندازه لګول مشکل نه دي.

په هر حال د حديث څخه معلومه سوه چې د خاوند ډېره مينه کونکې او کوچنيان پيدا کونکې ښځې سره نکاح کول مستحب دي او دا ډېر کوچنيان کېدل غوره دي ځکه چې په دې سره د رسول الله ﷺ مقصد (يعني د امت د زياتوب فخر) تر لاسه کيږي.

يو احتمال دا هم دی چې دلته د نکاح کولو څخه مراد دا ښوول دي چې ستاسو په کومو

بیبیانو کي دغه اوصاف موجود وي نو د هغوی سره د زوجیت تعلق همېشه وساتئ او د دې هڅه وکړئ چي په خپلو کي تفرق او بېلوالي را نه سي.

## د پیغلي سره نکاح کول غوره دي

﴿۲۹۵۹﴾: وَعَنْ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ سَالِمِ بْنِ عُتْبَةَ بْنِ عُوَيْمِ بْنِ سَاعِدَةَ

حضرت عبدالرحمن بن سالم بن عتبه بن عویم بن سعدیه انصاري ﷺ د خپل پلار څخه

الْأَنْصَارِيُّ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ:

او هغه د خپل پلار څخه روایت کوی چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

عَلَيْكُمْ بِالْأَبْكَارِ فَإِنَّهُنَّ أَعْذَبُ أَفْوَاهًا وَأَنْتَقُ أَرْحَامًا وَأَرْضَى بِالْيَسِيرِ. رواه ابن ماجة مرسلا.

تاسو د پیغلو ښځو سره نکاح کوئ ځکه چي هغوی خوش زبانه ډېر کوچنیان راوړونکې او په لږ شی راضي کېدونکي وي. (ابن ماجه).

**تخریج**: ابن ماجه في السنن ۱/ ۵۹۸، رقم: ۱۸۶۱.

**د لغاتو حل**: وانتق: ای اکثر اولادا. (ډېر اولاد زېږوونکې)

**تشریح** د دغه حدیث شریف په ذریعه د پېغلو ښځو خصوصیاتو اشاره سوې ده چي په کونډو ښځو کي نه تر لاسه کیږي د مثال په توګه پېغله ښځه د زیاتو کوچنیانو پیدا کولو وړ وي ځکه چي د هغې په رحم کي حرارت زیات وي نو د هغې رحم د نارینه د تولید ماده ډېر ژر قبلوي مګر دا محض د ظاهري اسبابو د درجې دی چي د الله تعالی د حکم څخه پرته څه ارزښت نه لري د پیغلو ښځو یو نفسیاتي خصوصیت دا بیان سوی دی چي هغوی په لږ مال او سامان باندي هم راضي او خوشحاله وي د هغوی خاوند چي څه ورکوي هغه په رضا او شوق سره قبلوي او په هغه قانع کیږي ځکه چي هغه خو د کونډي ښځي په ډول بل خاوند نه دی لیدلی چي هغې د کموالي او زیاتوب احساس وسي او هغه د خپل خاوند څخه د زیات مال او سامان غوښتنه وکړي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د نکاح یو خصوصیت

﴿۲۹۶۰﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ تَرَ لِلْمُتَحَابَّيْنِ مِثْلَ النِّكَاحِ.

د حضرت ابن عباس رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: تاسو به د نکاح څخه پرته بل داسي شی نه وو لېدلي چي د دوو کسانو په مینځ کي د دومري درجې محبت وکړي. (ابن ماجه)

**تخریج**: سنن ابن ماجه ۱\ ۵۹۳، رقم: ۱۸۴۷.

**تشریح**: مطلب دادی چي د نکاح په ذریعه د خاوند او ښځي په مینځ کي بېله یو قرابته بې پایه مینه او الفت پیدا کېږي دا ډول هیڅ تعلق نه سته چي د دوو کسانو په مینځ کي چي د یو بل څخه بالکل پردي د دغه درجې مینه او الفت پیدا کړي.

### د ازادو ښځو سره د نکاح فضیلت

﴿۲۹۶۱﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَرَادَ أَنْ يَلْقَى اللّٰهَ طَاهِرًا مُطَهَّرًا فَلْيَتَزَوَّجِ الْحَرَائِرَ.

د حضرت انس رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: کوم سړی چي د دې کار خواهش لري چي د خدای تعالی سره په پاکیزه حال کي ملاقات وکړي نو هغه له پکار ده چي ازادو ښځو سره نکاح وکړي.

**تخریج**: سنن ابن ماجه ۱\ ۵۹۸، رقم: ۱۸۶۲.

**تشریح** ددې وجه داده چي په عامه توګه سره ازادي ښځي د مینزو په نسبت زیاتي پاکي وي ځکه د هغوی پاکي د مباشرت په ذریعه د هغوی په خاوندانو کي سرایت کوي بیا دا چي ازاده ښځه خپل اولاد ته کوم ادب او تهذیب ښیي هغه د مینزي د وس خبره نه ده ځکه چي هغوی خپله د کم حیثیت والا دي نو د خپل اولاد ادب او تهذیب به څرنګه مزین کړي.

### د ښې ښځي خصوصیت

﴿۲۹۶۲﴾: وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ يَقُولُ مَا اسْتَفَادَ

د حضرت ابو امامه رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د خداي تعالي مؤمن بنده

**الْمُؤْمِنُ بَعْدَ تَقْوَى اللَّهِ خَيْرًا لَهُ مِنْ زَوْجَةٍ صَالِحَةٍ إِنْ أَمَرَهَا أَطَاعَتْهُ وَإِنْ**

چي د خداي تعالي د تقوی څخه وروسته کوم شی چي د ټولو څخه زيات د ځان لپاره غوره کوي هغه نېکه ښځه ده (داسي ښځه) چي هغې ته د څه امر وکړي نو سمدستي عمل په وکړي

**نَظَرَ إِلَيْهَا سَرَّتْهُ وَإِنْ أَقْسَمَ عَلَيْهَا أَبَرَّتْهُ وَإِنْ غَابَ عَنْهَا نَصَحَتْهُ فِي نَفْسِهَا وَمَالِهِ . روى ابن ماجة الاحاديث الثلثة.**

هغې ته چي ګوري نو هغه زړه خوشحاله کوي او که هغې ته قسم ورکړي نو هغه قسم پوره کوي او که د هغې څخه غائب سي نو د خپلي پاکدامني او د هغه د مال ساتنه کوي . دا درې حديثونه ابن ماجه بيان کړی دی .

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۱\۵۹۶، رقم: ۱۸۵۷.

**تشريح**: د الله تعالى د احکامو پر ځای راوړلو او د هغه د ممنوعاتو څخه ځان ساتني ته تقوا وايي ، د حديث شريف مطلب دادی چي د الله تعالى نيک او صالح بندګان د الله تعالى د احکام پر ځای راوړلو او د ممنوعاتو څخه د منع کېدو وروسته د خپل ديني او دنيوي خير لپاره چي تر ټولو غوره شی خوښوي هغه نيکي او ښائسته ښځي دي .

د هغه تعميل کوي : ددې تعلق د هغه شيانو سره دی چي د ګناه او معصيت باعث نه وي يعني هغه د خپل خاوند د هغه خبرو او احکامو تعميل کوي کوم چي د شريعت خلاف او د الله تعالى د ناراضی سبب نه وي دا قيد ځکه لګول سوی دی چي د شريعت دا حکم دی يعني د يو سړي د هيڅ داسي حکم تعميل کول نه دي پکار کوم چي د الله تعالى د نافرمانۍ سره اړوند وي .

د هغه قسم پوره کوي : مطلب دادی چي هغه پر خپل خواهش باندي د خپل خاوند خواهش مقدم کوي مثلا کله چي د هغې خاوند هغې ته د يو داسي کار کولو قسم ورکړي چي د هغې د خواهش خلاف وي نو هغه د خپل خواهش په پرېښودو سره د خپل خاوند د قسم سره سم هغه کار کوي يا کله چي خاوند ورته د يو داسي کار نه کولو قسم ورکړي کوم چي د هغې د خواهش سره سم وي نو هغه د خپل خواهش پروا کولو څخه پرته د خپل خاوند د قسم مطابق هغه کار پرېږدي .

## نكاح نيم دين دى

﴿۲۹۶۳﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَزَوَّجَ الْعَبْدُ فَقَدِ اسْتَكْمَلَ نِصْفَ الدِّيْنِ فَلْيَتَّقِ اللّٰهَ فِي النِّصْفِ الْبَاقِيْ.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: چا چي نكاح وكړه نو خپل نيم دين يې پوره كړ اوس هغه ته پكار ده چي په پاته نيم دين كي ويره او تقوى پرهيزګاري اختيار كړي. (بيهقي)

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۴\۳۸۲، رقم: ۵۴۸۶.

**تشريح**: د انسان په بدن كي دوه شيان داسي دي چي په عامه توګه په دين كي د فساد او تاوان سبب ګرځي يعني شرمګاه او نس چي د فتنې او فساد څخه خلاصون تر لاسه كوي نو اوس هغه ته پكار دي چي د نس د فتنې او فساد ليري كولو لپاره د الله تعالى څخه وبيرېږي يعني د حلال ګټي او حلال رزق په ذريعه خپل او د خپل كورنۍ نس ډك كړي چي د دين خير پوره تر لاسه كړي

## بابركته نكاح

﴿۲۹۶۴﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَعْظَمَ النِّكَاحِ بَرَكَةً أَيْسَرُهُ مُؤْنَةً. رواهما البيهقي في شعب الإيمان.

بي بي عائشې رضي الله عنها څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: بركتناكه نكاح هغه ده چي د محنت په لحاظ اسانه وي يعني د هغې ولور كم وي او ښځه په زياتو مصرفو خپل خاوند پرېشانه نه كړي بلكه څه چي په مينځ كي وي پر هغه قناعت او صبر وكړي. (بيهقي).

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۵\۲۵۴، رقم: ۶۵۶۶.

**تشريح**: د محنت د لحاظه اسانه نكاح: ددې څخه مراد هغه نكاح ده چي په هغه كي د ښځي مهر كم وي او ښځه زيات مال او اسباب او د حيثيت څخه زيات د ژوند ارتياوو طلب كولو سره سړى پرېشانه نه كړي بلكه د خاوند له طرفه چي څه او څرنګه تر لاسه كړل سي پر هغه په رضا او شوق قانع وي.

=========

# بَابُ النَّظَرِ اِلَى الْمَخْطُوْبَةِ وَبَيَانِ الْعَوْرَاتِ

## ( د نسبت کړل سوي ښځي ليدل او د عورت پټولو بيان )

د مخطوبه څخه مراد هغه ښځه ده چي هغې ته د نکاح پيغام استول سوی وي . او د عورت څخه مراد دِ بدن هغه اندامونه دي چي د هغو د پټولو حکم ورکړل سوی دی .

### د ښځي د ليدو مسئله

د امام ابو حنيفة، امام شافعي، امام احمد او اکثرو علماؤ رحمة الله عليهم په نزد د خپلي منسوبي ښځي سره تر نکاح کولو مخکي د هغې لېدل جائز دي که څه هم منسوبه ښځه ددې اجازه ورکړي او يا اجازه ور نه کړي . د امام مالک رحمة الله عليه په نزد د خپل منسوبي ښځي سره د نکاح کولو څخه مخکي لېدل په هغه صورت کي جائز دي کله چي د هغې اجازه وي د هغې د اجازې څخه پرته لېدل جائز نه دي مگر د يو روايت سره سم د امام مالک رحمة الله عليه په نزد د منسوبي ښځي ليدل بالکل منع دي .

په دې باره کي فقهي مسئله دا هم ده چي غوره او مناسب دادي چي سړی د خپل منسوبي ښځي د کتلو پر ځای يو بله تجربه کاره او باوري ښځه واستوي چي د هغه منسوبه ښځي په لېدو سره معلومات تر لاسه کړي .

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ (لومړی فصل)

### د نکاح څخه مخکي يو وار ليدل مستحب دي

﴿۲۹۶۵﴾ : عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی يو سړی نبي کريم صلى الله عليه وسلم ته راغلی او ويې ويل:

اِنِّي تَزَوَّجْتُ امْرَأَةً مِنَ الْأَنْصَارِ قَالَ فَانْظُرْ إِلَيْهَا فَإِنَّ فِي أَعْيُنِ الْأَنْصَارِ شَيْئًا .

رواه مسلم .

زه د يوې انصاري ښځي سره نکاح کول غواړم رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل : يو وار هغه ووينه ځکه چي د انصارو د ښځو په سترګو کي يو څه خرابي وي . (مسلم)

**تخريج** : مسلم في الصحيح : ۱۰۴۰/۲، رقم : ۷۴- ۱۴۲۴.

**تشريح** د رسول الله ﷺ د لارښووني مطلب دا وو چې د ځينو انصاريه ښځو په سترګو کې خرابي وي چې په هغه سره په طبيعت کې خړوالی پيدا کيږي ځکه نو مناسب دي چې ته د خپل منسوبه ښځې په لېدو سره دا اطمينان تر لاسه کړې چې د هغې په سترګو کې تاوان خو نه سته ، علامه نووي رحمه الله د (في اعين انصار شيئا) په معنی کې دا بيان کړی دی چې د ځينو انصاري ښځو سترګې شنې يا خړې وي ، په هر حال د دې څخه دا ثابته سوه چې د خيرخواهۍ سره سم د يو شي عيب او تاوان بيانول جائز دي .

د دغه حديث شريف څخه دا هم معلومه سوه چې د نکاح د پيغام استولو څخه مخکې د خپل منسوبه ښځو کتل مستحب دي که چيري کتل يې ممکن نه وي نو بيا مستحب دا دي چې يو باوري ښځه واستول سي چې د هغه ښځې په لېدو سره سړي ته د هغې حالات وښيي ، دلته دا خبره هم بايد په ذهن کې وي چې د خپل منسوبې ښځې يوازي مخ او د هغې لاسو ته کتل مباح دي که څه هم د جنسي هيجان څخه مامون نه وي ځکه چې د هغې لپاره دغه دواړه اندامونه د ستر په حکم کې نه دي .

## د ښځې حال مه بيانوئ

(۲۹۶۶): وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُبَاشِرُ الْمَرْأَةُ الْمَرْأَةَ فَتَنْعَتَهَا لِزَوْجِهَا كَأَنَّهُ يَنْظُرُ إِلَيْهَا . متفق عليه.

حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل : هيڅ ښځه دې خپل بدن ښځې ته نه ښکاره کوي او دا چې بيا د هغې ښځې بدني ښکلا و خپل خاوند ته بيان کړي چې د يوې ښځې بدني ښکلا د نارينه په وړاندې بيانول داسې دي لکه چې د هغې ښځې دې ور وښودی . بخاري او مسلم .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\۳۳۸، رقم: ۵۲۴۰.

**تشريح** د يو ښځې د خپل بدن په لوڅولو سره د بلې ښځې د لوڅ بدن سره مس کول او بيا د هغه ښځې د بدن خصوصيات يعني د نرم والي وغيره بيان کول د خپل خاوند په مخکې يو ډېره بده خبره ده ، رسول الله ﷺ د دې څخه ښځې منع کړې دي ځکه چې دا نه يوازي د بې شرعۍ او بد اخلاقۍ حرکت دی بلکه د دې څخه دا خطره هم ده چې د هغې خاوند د يو پردۍ ښځې د بدن د خصوصياتو په اورېدو سره په نفساني هيجان او بدو خيالو کې اخته سي چې د فتنې او فساد

سبب جوړيږي.

## د نارينوو او ښځو لپاره يو ځو لارښووني ۱

﴿۲۹۶۷﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَنْظُرُ

د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: يو سړی دي د يوه سړي

الرَّجُلُ إِلَى عَوْرَةِ الرَّجُلِ وَلَا الْمَرْأَةُ إِلَى عَوْرَةِ الْمَرْأَةِ وَلَا يُفْضِي الرَّجُلُ إِلَى

لڅ بدن ته نه ګوري او نه دي ښځه د بلي ښځي لڅ بدن ته ګوري او نه دي دوه نارينه په يوه جامه

الرَّجُلِ فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ وَلَا تُفْضِي الْمَرْأَةُ إِلَى الْمَرْأَةِ فِي الثَّوْبِ الْوَاحِدِ. رواه مسلم

کي يو ځاي کيږي او نه دي دوې لڅي ښځي په يوه جامه کي يو ځای کيږي (يعني په يو ځاي کي بيديږي). (مسلم)

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۱\ ۲۶۶، رقم: ۷۴– ۳۳۸.

**تشريح**. شريعت چي د سړي او ښځي د بدن دکومو برخو يو بل ته د کتلو او مس کولو څخه منع کړي ده هغه ته ستر ويل کيږي او د بدن هغه برخي د عام نظرونو څخه پټول ضروري دي، په دې باره کي چي کوم فقهي تفصيل دی هغه داسي دی:

د نارينه ستر د بدن هغه برخه ده چي د نامه څخه لاندي تر زنګنو پوري وي د هغه د بدن دغه برخي ته بېله ضرورته کتل نه خو د نارينه لپاره جائز دي او نه د ښځي لپاره مګر د هغه سړي ښځه يا مينزه يې کتلای سي، د نارينه ددغه برخي څخه پرته نور ټول بدن ته کتل د نارينه لپاره هم جائز دی او د ښځي لپاره هم په شرط ددې چي ښځه د جنسي هيجان څخه خوندي وي، که چيري ښځه د جنسي هيجان څخه خوندي نه وي نو بيا دي د هغه پردي نارينه د بدن هيڅ برخي ته نه ګوري. همدارنګه د ښځي ستر د هغې ستر د نامه څخه لاندي تر زنګنو پوري دی نو د ښځي د بدن دغه برخي ته بېله ضرورته کتل د ښځي لپاره هم جائز نه دي بلکه د ښځي ستر د پردي سړي په حق کي د هغې ټول بدن دی يعني د نارينه لپاره د هيڅ پردی ښځي دبدن هيڅ يو برخي ته کتل جائز نه دي مګر د يو روايت سره سم د ښځي مخ، د هغې دواړه لاسونه او دواړي پښې د هغې په ستر کي داخلي نه دي، مطلب دا چي د يو پر دې ښځي ددغه اندامو کتل د پردي سړي لپاره جائز دي په شرط ددې چي نارينه د جنسي هيجان څخه خوندي وي که چيري خوندي نه وي نو

بيا د هغه لپاره د دغه اندامو کتل هم جائز نه دي البته د يو خاص ضرورت په وخت کي ليدل جائز دي که څه هم د جنسي هيجان څخه خوندي وي مثلا شاهد په يو معامله کي د شاهدي پر وخت يا حکم په يو معامله کي د فيصلې کولو پر وخت د دغه اندامونه کتلای سي همدارنګه د ښځي هغه اندامونه يعني مخ، لاسونه او پښې مس کول د پردي سړي لپاره جائز نه دي که څه هم هغه د جنسي هيجان څخه مامون وي په شرط د دې چي ښځه ځوانه وي مګر که چيري ښځه دومره عمر ته رسيدلې وي چي نفساني خواهش هغې ته بالکل نه راځي يا سړی دومره سپين ږيری وي چي خپله هم پر نفس باندي واک ولري او د هغه ښځي د نفس څخه هم مطمئن وي نو په دغه صورت کي هغه اندامونه مس کول جائز دي .

نارينه د خپل ښځي د بدن هري برخي ته کتل جائز دي همدارنګه د هغه مينزي ټول بدن ته کتل هم جائز دي د کومي سره چي مجامعت حلال وي .

د ښځي ستر د هغې د محرم په حق کي د هغې شا، نس او تر نامه لاندي تر زنګنو پوري دی نو د هيڅ ښځي د بدن دغه برخي او اندامونه کتل او مس کول د هغې د محرم لپاره هم جائز نه دي که څه هم هغه د جنسي هيجان څخه خوندي وي ځکه چي د ښځي سر، مخ، پنډۍ، او سينه د هغې د محرم په حق کي ستر نه دی ځکه دغه اندامونه محرم ليدلای سي په شرط ددې چي د جنسي هيجان څخه خوندي وي .

د نارينه په حق کي د بل چا د مينزي ستر د هغه د محرم د ستر په ډول دی يعني ملا، نس او [illegible]ه څخه لاندي تر زنګنو پوري نو د بل چا د مينزي د بدن دغه برخي چي د هغه د ستر په حکم [illegible] د کتلو او مس کولو په باره کي هغه تفصيل دی کوم چي د محرم د بدن د مستور برخو د [illegible] کولو دی .

[illegible] سړي ته په نفساني خواهش سره کتل يا هغه ته لاس وروړل حرام دي، يو ښځي [illegible]سره د نکاح کولو د ارادې پر وخت يا يو مينزي ته د هغې د رانيولو پر وخت د نفساني [illegible]ش د بيري سربېره کتل يا لاس وروړل جائز دي .

غلام د خپل بادار د ښځي په حق کي د پردي سړي په ډول دی يعني څرنګه چي د هغې لپاره د پردي سړي څخه پرده کول ضروري دي همدارنګه د غلام څخه هم پرده کول ضروري دي، همدارنګه نرښځی او نرګډی هم د نارينه په ډول دی، د فقهي علماء وايي چي پر پردۍ ښځي باندي نظر اچول حرام دي که څه هم دغه کتل د نفساني خواهشاتو لپاره وي يا ددې څخه پرته وي، دوه لوڅ نارينه دي په يوه جامه کي نه جمع کيږي، په دې باره کي علماء وايي چي د دوو

نارینو و په یوه جامه کي یو ځای کېدل یا د دوو لوڅو ښځو په یوه جامه کي یو ځای کېدل هم د عادت له مخي د بدی محل نه لري مگر ددې سربېره دا حرام او مکروه دی ځکه چي کول په هر حال کي د شرم او حیاء خلاف کار دی.

## د پردۍ ښځي سره د خلوت منع

﴿۲۹۶۸﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَا لَا يَبِيتَنَّ رَجُلٌ عِنْدَ امْرَأَةٍ ثَيِّبٍ إِلَّا أَنْ يَكُونَ نَاكِحًا أَوْ ذَا مَحْرَمٍ . رواه مسلم .

حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: پوه سئ! هیڅ یو نارینه دي د ږي ځواني واده سوي ښځي سره یوازي په یوه خونه کي شپه نه تېروي البته هغه سړی ور سره ته کېدای سي چي هغه د ښځي خاوند یا محرم وي. (مسلم)

**تخریج**: مسلم في الصحیح ۱۴\۱۷۱۰، رقم: ۲۱۷۱.

**تشریح** دلته د شپې تېرولو څخه مراد په یوازیوالي کي یو ځای کېدل دي. مطلب دا چي هیڅ سړی دي د پردی ثیب ښځي سره په یوازیوالي کي نه یو ځای کیږي که شپه وي او که ورځ وي.

ثیب: هغه ښځي ته وایي چي د هغې سره جماع سوې وي یا خاوند یې کړی وي. مگر دلته د ثیب څخه مراد ځوانه ښځه ده که هغه پېغله وي یا واده سوې وي.

د محرم څخه مراد هغه سړی دی چي د هغه سره نکاح کول په ابدي توگه ناجائز وي لکه زوی، ورور، زوم او داسي نور، که څه هم دغه محرمیت د شېدو ورکولو په وجه وي.

﴿۲۹۶۹﴾: وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عقبه بن عامر رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

إِيَّاكُمْ وَالدُّخُولَ عَلَى النِّسَاءِ فَقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَرَأَيْتَ الْحَمْوَ قَالَ الْحَمْوُ الْمَوْتُ . متفق علیه.

کله چي په یو ځای کي ښځه وي هلته د ورتلو څخه ځان وساتئ یوه سړي پوښتنه وکړه ایا تاسو د لېور داخلېدل بد گڼئ نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل: ((لېور)) خو مرگ دی (یعني یوه تباه کوونکي فتنه ده) (بخاري او مسلم).

**تخریج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۴\۱۷۱۰، رقم: ۵۲۳۲، ومسلم ۱۴\۱۷۱۱، رقم: ۲۰\۲۱۷۲.

**د لغاتو حل**: الحَموَ: هم اقارب الزوج غير آبائه وابنائه. (د خاوند خپلوان پرته د پلرونو او اولادونو څخه)

**تشریح** حمو د خاوند قريبانو ته وايي لکه لېور او داسي نور، د خاوند پلار او د خاوند زوی په حمو کي داخل نه دی.

لېور خو مرګ دی: ددې مطلب دادی چي څرنګه مرګ د انسان ظاهري او دنيوي ژوند تباه کوي همدارنګه د حمو په يوازيوالي کي غير محرم ښځي ته ورتلل د هغه ديني او اخلاقي ژوند تباه کوي ځکه په عامه توګه سره خلک د غير محرم ښځو سره د حمو ګډون کولو ته څه ارزښت نه ورکوي ځکه هغه ښځو ته هر وخت ځي او راځي او هغوی د ډيري ناستي او ولاړي په وجه د هغوی په يو خرابي کي اخته کېدل زيات مشکل نه دي ددې په وجه د فتنې را پورته کيږي او نفس په خرابيو کي اخته کيږي.

په دغه جمله کي (الحمو الموت) کي د مرګ لفظ ذکر کول په اصل کي ددغه محاورې پر بنياد دی چي عربو په نزد په عامه توګه سره د يو خطرناک شي څخه د بيرولو پر موقع استعماليږي لکه څرنګه چي عرب وايي چي زمری مرګ دی يا پاچا اور دی، ددغه جملو مطلب دادی چي زمري ته نژدې کېدل د مرګ غېږي ته ورتلل دي يا د پاچا قرابت د اور د قرابت په ډول دی نو ددغه شيانو څخه بايد ځان وساتل سي.

### علاج کونکی د ښځي بدن کتلای سي

﴿۲۹۷۰﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ أُمَّ سَلَمَةَ اسْتَأْذَنَتْ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي ام سلمه رض د رسول الله ﷺ څخه دويني کښلو اجازه

فِي الْحِجَامَةِ فَأَمَرَ أَبَا طَيْبَةَ أَنْ يَحْجُمَهَا قَالَ حَسِبْتُ أَنَّهُ قَالَ كَانَ أَخَاهَا مِنَ الرَّضَاعَةِ أَوْ غُلَامًا لَمْ يَحْتَلِمْ. رواه مسلم.

وغوښته نبي کريم ﷺ و ابو طيبه ته د ويني کښلو حکم ورکړ د جابر رضي الله عنه بيان دی چي ابو طيبه د ام سلمه رض رضاعي ورور وو يا هلک چي تر دغه وخته پوري بالغ سوی نه وو. (مسلم).

**تخریج**: مسلم في الصحيح: ۱۴\۱۷۳۰، رقم: ۷۲ - ۲۲۰۶.

**تشریح** د حضرت جابر رضي الله عنه د خپل ګمان اظهار ول پر دې خبره دلالت کوي چي بي بي ام سلمه رضي الله عنها ته د ويني کښلو سخته اړتيا نه وه ځکه د ضرورت په وخت کي د پردي سړي لپاره

هم دا جائز دي چي هغه د يو ښځي وينه وکاږي ، د دې څخه معلومه سوه چي يو ډاکټر د علاج پر وخت د ښځي ټول بدن کتلای سي .

## ناڅاپه نظر لوېدل

﴿۲۹۷۱﴾: وَعَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ سَأَلْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ نَظَرِ الْفُجَاءَةِ فَأَمَرَنِي أَنْ أَصْرِفَ بَصَرِي . رواه مسلم .

د حضرت جرير بن عبد الله رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه يوې محرمي ښځي ته کتل په ناڅاپه ډول په باره کي پوښتنه وکړه نو نبي کريم ﷺ را ته وفرمايل : سترګي دي ژر واړوه . (مسلم)

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۱۳\۱۶۹۹، رقم: ۴۵- ۲۱۵۹.

**تشريح** د دغه حکم مطلب دا دی که چيري پر يو پردۍ ښځه باندي نظر ولوېږي نو سمدستي دي خپل نظر راوګرځوي او بيا دي دوهم وار هغې ته نه ګوري ځکه چي اول نظر بېله قصد او ارادې څخه وي او هغه معاف دی مګر سمدستي نظر اړول واجب دي ځکه د اول نظر څخه وروسته هغه ښځي ته بيا کتل د ګناه خبره ده ، په قرآن کريم کي په دغه آيت کي هم دغه حکم دی : قل للمؤمنين يغضوا من ابصارهم: مؤمنانو ته ووايه چي خپل نظرونه کښته کړي .

مګر د ضرورت په وخت کي د مثال په توګه د نکاح يا بل څه لپاره د اول نظر څخه وروسته هم کتل جائز دي که د يو ښځي د بدن پر يو اندام باندي زخم يا بل څه وي يا د بدن يو برخه د يو ناروغۍ په وجه ډاکټر ته وښوول سي نو هغه دي بدن يوازي هغه برخه وښيي چيري چي زخم وي يا کوم ځای چي وينه کښل کيږي يا کومه برخه چي ضروري وي نو د بدن پاته برخه دي په جامه کي پټه وساتي .

## د پردۍ ښځي په لېدو او بد خيال پيداکېدو سره خپل ښځي ته ځئ

﴿۲۹۷۲﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ الْمَرْأَةَ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ښځه

تُقْبِلُ فِيْ صُوْرَةِ شَيْطَانٍ وَتُدْبِرُ فِيْ صُوْرَةِ شَيْطَانٍ إِذَا أَحَدُكُمْ أَعْجَبَتْهُ الْمَرْأَةُ

د شيطان په شکل کي را ځي او د شيطان په شکل کي ځي کله چي په تاسو کي يو ته ښځه

فَوَقَعَتْ فِي قَلْبِهِ فَلْيَعْمِدْ إِلَى امْرَأَتِهِ فَلْيُوَاقِعْهَا فَإِنَّ ذَلِكَ يَرُدُّ مَا فِي نَفْسِهِ . رواه مسلم .

ښائسته ښكاره سي او په زړه كي مو مينه راسي نو سمدستي و خپل كور ته ولاړ سئ او د خپلو ښځو سره همبستري كوئ ځكه چي جماع د زړه وسوسه ليري كوي. (مسلم)

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\۱۰۲۱، رقم: ۹\۱۴۰۳.

**تشريح** ښځه د شيطان په شكل كي راځي ...الخ : دا په اصل كي د خرابو خيالو، خرابو وسوسو او په ګمراهۍ كي د اخته كېدو په اړه ښځي ته د شيطان سره د مشابهت وركولو يو طرز دی. مطلب دادی چي څرنګه شيطان د انسانانو په زړه او دماغ كي د خرابو خيالاتو په اچولو سره ګمراه كوي همدارنګه د ښځي ښكلا د سړي نظر په خپل بند اچولو كي د زړه د خرابو خواهشاتو او بدو خيالاتو په ګمراهۍ كي اخته كوي، نو پردۍ ښځي ته كتل د فتني او شر سبب ګرځي، ځكه نو علماؤ دا مسئله اخذ كړې ده چي ښځه بايد بېله ضرورته د كور څخه د باندي و نه وځي او كه چيري د يو ضرورت لپاره د باندي وځي نو سنګار دي نه كوي. او سړی بايد چي پردۍ ښځي ته و نه ګوري او نه د هغې جامو ته نظر وكړي.

د دغه حديث شريف څخه دا مسئله هم اخيستل كيږي چي په دې كي څه پروا نه سته چي سړی خپله ښځه د كوروالي لپاره ورځي ځان ته راوبولي كه څه هم ښځه په يو داسي كار كي بوخته وي چي د هغه پرېښودل ممكن نه وي ځكه ډېر واره پر سړي باندي د جنسي خواهش غلبه دومره وي چي په مباشرت كي زنډ كول د هغه د زړه، دماغ او بدن لپاره يو تكليف او ناروغۍ سبب كيږي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### دواده څخه وړاندي د ښځي ليدل مستحب دي

﴿۲۹۷۳﴾: عَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ إِذَا خَطَبَ أَحَدُكُمُ الْمَرْأَةَ فَإِنِ اسْتَطَاعَ أَنْ يَنْظُرَ إِلَى مَا يَدْعُوهُ إِلَى نِكَاحِهَا فَلْيَفْعَلْ . رواه ابوداؤد .

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په تاسو كي چي كوم سړی و

يوې ښځي ته د نكاح كولو پيغام وليږي نو هغه له پكار ده چي ممكنه وي يو وار دي يې و ګوري كه د نكاح اراده يې وي . (ابو داؤد) .

**تخريج** : ابوداود في السنن ۲\ ۵۶۵، رقم: ۲۰۸۲.

**تشريح** لكه څرنګه چي مخكي ويل سوي دي چي خپل منسوبي ښځي ته د پيغام استولو څخه مخكي يو وار كتل مستحب دي ددې لپاره كه چيري هغه ښځه يې خوښه وه نو د هغې سره د نكاح وروسته به د هغه ښځي په وجه د بدكارۍ څخه وساتل سي كوم چي د نكاح اصل مقصد دی، دا خبره هم بايد په ذهن كي وي چي په يو ځای كي دا فرمايل سوي دي چي د يوې ښځي سره د هغې د ښكلا او جمال په وجه نكاح نه سي كېدای نو ددغه حكم دا مقصد نه دی چي د ښكلا او جمال خيال دي نه ساتل كيږي بلكه ددې مقصد دادی كه د يو ښكلې ښځي په نكاح كولو كي يو ديني تاوان او فساد وي نو ددغه تاوان او كوتاهۍ څخه په صرف نظر كولو سره يوازي د هغې د ښكلا په وجه دي نكاح نه كيږي .

﴿۲۹۷۴﴾: وَعَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ قَالَ خَطَبْتُ امْرَأَةً فَقَالَ لِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى

د حضرت مغيره بن شعبه رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د يوې ښځي سره د نكاح كولو اراده وكړه

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَظَرْتَ إِلَيْهَا قُلْتُ لَا قَالَ فَانْظُرْ إِلَيْهَا فَإِنَّهُ أَحْرَى أَنْ يُؤْدَمَ بَيْنَكُمَا . رواه احمد والترمذي والنسائي وابن ماجة والدارمي.

رسول الله ﷺ و ماته و فرمايل : تا هغه ليدلې ده ؟ ما وويل:نه. نبي كريم ﷺ وفرمايل : ته ! هغه و ګوره ځكه چي دا كار به ستاسو د دواړو ترمينځ د دائمي محبت ذريعه وګرځي . (احمد ترمذي نسائي ابن ماجه دارمي) .

**تخريج** : احمد في المسند ۱۴\ ۲۴۶، رقم: ۱۰۸۷، وابن ماجه ۵۹۹، رقم: ۱۸۶۵، والنسائي ۶\ ۶۹، رقم: ۳۲۳۵، والدارمي ۲\ ۱۸۰، رقم: ۲۱۷۲.

**د لغاتو حل**: يُودَم: اى بان يؤلف.

**تشريح** مطلب دا دی كه چيري ته د خپل منسوبي ښځي ته په يو وار كتلو سره د هغې سره نكاح وكړې نو په خپلو كي به د يو بل سره مينه او الفت ډېر زيات سي ځكه چي د منسوبي ښځي د ليدلو څخه وروسته په نكاح سي نو په عامه توګه سره يو پښېماني نه پيدا كيږي او نه پر خپل انتخاب باندي شرمندګي او پښيماني وي .

## د پردۍ ښځې په ليدو سره سمدستي د خپل ښځې څخه تسكين تر لاسه كړئ

﴿۲۹۷۵﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ رَأَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ امْرَأَةً

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ يوه ښځه وليده

فَأَعْجَبَتْهُ فَأَتَى سَوْدَةَ وَهِيَ تَصْنَعُ طِيبًا وَعِنْدَهَا نِسَاءٌ فَأَخْلَيْنَهُ فَقَضَى

چي ښه ورته ښكاره سوه نو نبي كريم ﷺ (سمدستي) بي بي سودې رض ته ورغی هغې په هغه وخت كي خوشبوئي تياروله او څو ښځي ور سره ناستي وی ښځي ولاړي سوی او د نبي كريم ﷺ لپاره يې ځای خالي كړ نبي كريم ﷺ

حَاجَتَهُ ثُمَّ قَالَ أَيُّمَا رَجُلٍ رَأَى امْرَأَةً تُعْجِبُهُ فَلْيَقُمْ إِلَى أَهْلِهِ فَإِنَّ مَعَهَا مِثْلَ الَّذِي مَعَهَا. رواه الدارمي

ضرورت رفع كړ او بيا يې وفرمايل: كوم سړي ته چي يوه ښځه ښه ښكاره سي نو هغه دي سمدستي خپل كور ته ولاړسي او د خپلي بي بي سره دي نزدېكت وكړي ځكه چي د هغې سره هم هغه شی دی كوم چي د هغې ښځي سره وو. (دارمي).

**تخريج**: الدارمي ۲\۱۹٦-۱۹۷، رقم: ۲۲۱۵.

**د لغاتو حل**: فاخلينه: اى انفردن عنه.

**تشريح** پر هغه ښځي باندي د رسول الله ﷺ نظر لوېدل يو ناڅاپه عمل وو چي هغه په اختيار كي نه وو او بيا د هغه ښځي د رسول الله ﷺ په نظر كي ښه راتلل د انساني طبيعت او جبلت غوښتنه وه چي يو فطري شی دی.

## ښځه دي په پرده كي اوسي

﴿۲۹۷٦﴾: وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْمَرْأَةُ عَوْرَةٌ فَإِذَا خَرَجَتْ اسْتَشْرَفَهَا الشَّيْطَانُ. رواه الترمذي.

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ښځه په پرده كي د اوسېدلو شی دي كله چي هغه د باندي را وځي نو شيطان ور پسې سي (يعني د خلكو په نظر

كي يې راولي). (ترمذي).

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\۴۷٦، رقم: ۱۱۷۳.

**تشريح** المراة عورة (يعني ښځه ستر دی) يعني څرنګه چي ستر د عام نظرو څخه پټيږي همدارنګه ښځه هم يو داسي شی دی چي د پردي سړي د نظر څخه په پټېدو سره په پرده کي بايد و اوسيږي او څرنګه چي د ټولو په مخکي ستر خلاصول يو خراب کار ګڼل کيږئ همدارنګه د ښځي د خلکو مخته راتلل هم يو خراب کار دی.

## پر پردۍ ښځي باندي د ناڅاپه نظر لوېدو وروسته دوهم وار کتل ناجائز دي

﴿۲۹۷۷﴾: وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِعَلِيٍّ يَا عَلِيُّ

د حضرت بريده رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ حضرت علي رضی الله عنه ته وفرمايل: اې علي!

لَا تُتْبِعُ النَّظْرَةَ النَّظْرَةَ فَإِنَّ لَكَ الْأُولَى وَلَيْسَتْ لَكَ الْآخِرَةُ. رواه احمد والترمذي وابوداؤد والدارمي.

که په ښځه دي ناڅاپه نظر ولګېدی نو اولنی نظر تا ته جائز دي دوباره ورته کتل جائز نه دی. (احمد ترمذي ابوداؤد دارمي)

**تخريج**: احمد في المسند ۵\ ۳۵۳، والترمذي في السنن ۵\ ۹۴، رقم: ۲۷۷۷، وابوداود في السنن ۲\ ٦۱۰، رقم: ۲۱۴۹، والدارمي ۲\۳۸٦، رقم: ۲۷۰۹.

## د مينزي د نكاح وروسته

﴿۲۹۷۸﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

عمرو بن شعيب رضی الله عنه د خپل پلاره څخه او هغه د خپل پلاره څخه روايت کوي چي نبي کريم ﷺ

وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا زَوَّجَ أَحَدُكُمْ عَبْدَهُ أَمَتَهُ فَلَا يَنْظُرْ إِلَى عَوْرَتِهَا و في رواية فَلاَ

وفرمايل: کله چي په تاسو کي يو څوک د يوه سړي نکاح د خپلي مينزي سره وروتړئ نو بيا دي

يَنْظُرَنَّ إِلَى مَا دُونَ السُّرَّةِ وَفَوْقَ الرُّكْبَةِ. رواه ابوداؤد.

دی د خپلي مينزي و شرمګاه ته نه ګوري او په دويم روايت کي دا الفاظ دي چي بيا دي نو د

مینزي تر نامه لاندي او تر زنګون لور حصې ته نه ګوري. (ابو داؤد).

**تخريج**: ابوداود في السنن ۴\ ۳٦۲، رقم: ۴۱۱۴.

**تشريح** کله چي د خپل غلام سره د نکاح کولو په صورت کي دا حکم دی نو بیا د بل چا د غلام سره د خپل مینزي د نکاح کولو په صورت کي د غه حکم په طریقه اولی دی، چي هغه مینزه د څښتن لپاره بالکل حرامه وګڼل سي نو د حدیث څخه دا ثابته سوه چي کله مینزه واده کړل سي نو بیا د هغې د بدن هغه برخو ته کتل حرام دي کوم چي د نامه څخه لاندي تر زنګنو پوري وي.

په دې اړه د امام ابو حنیفة رحمه الله مذهب دادی چي د واده کېدو څخه وروسته مینزه د څښتن بادار په حق کي د پردي ښځي د مینزي په ډول کیږي او د بل چا د مینزي د بدن د ستر تفصیل او حکم تر دي مخکي د حضرت ابو سعید رضي الله عنه د روایت په تشریح کي تېر سوی دی مګر امام شافعي رحمه الله فرمايي چي د واده کېدو څخه وروسته د مینزي ستر د سړي د ستر په ډول دی او د دواړو حضراتو دلیلونه د فقهي په کتابو کي ذکر سوي دي.

## وروڼ شرمګاه ده

﴿۲۹۷۹﴾: وَعَنْ جَرْهَدٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَمَا عَلِمْتَ اَنَّ الْفَخِذَ عَوْرَةٌ. رواه الترمذي و ابوداؤد.

د حضرت جرهد رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: تاسو ته معلومه نه ده چي وروڼ شرمګاه ده (یعني د پټولو شی دی). (ترمذي ابو داؤد)

**تخريج**: ابوداود في السنن ۴\ ۳۰۳، رقم: ۴۰۱۴، والترمذي في السنن ۵\ ۱۰۲، رقم: ۲۷۹۵.

**تشريح** په اسد الغابة کي لیکل سوي دي چي یوه ورځ نبي کریم ﷺ په مسجد کي حضرت جرهد رضي الله عنه ته راغلی نو وه یې لیدل چي د هغه وروڼ ښکاره دی، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل خپل وروڼ پټ کړه ځکه چي وروڼ ستر دی. د غه حدیث شریف د هغه علماؤ د مذهب خلاف دلیل دی کوم چي وايي چي وروڼ ستر نه دی. د امام مالک او امام احمد رحمة الله علیهما یو روایت دادی چي په وروڼ په ستر کي داخل نه دئ.

﴿۲۹۸۰﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهُ يَا عَلِيُّ لَا تُبْرِزْ اِلٰى فَخِذِكَ ولا تنظر الى فخذ حَيٍّ وَلَا مَيِّتٍ. رواه ابوداؤد وابن ماجة.

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل : اې علي ! خپل ورون مه ښکاره کوه او مه د چا د ژوندو يا مړو ورون ته ګوره .(ابو داؤد ابن ماجه)

**تخريج**: ابوداود في السنن ۳\۵۰۱، رقم: ۳۱۴۰، وابن ماجه ۱\۴۶۹، رقم: ۱۴۶۰.

**تشريح** د دغه حديث شريف څخه دا معلوميږي چي د ستر په حکم کي ژوندي او مړي دواړه يو ډول دي يعني څرنګه چي د ژوندي انسان ستر ته کتل حرام دي او د هغه پټول په شرعي توګه ضروري دي همدارنګه د مړي ستر ته کتل هم ممنوع دي .

﴿۲۹۸۱﴾: وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ جَحْشٍ قَالَ مَرَّ رَسُوْلُ اللهِ صلى الله عليه وسلم عَلٰى مَعْمَرٍ وَفَخِذَاهُ مَكْشُوْفَتَانِ قَالَ يَا مَعْمَرُ غَطِّ فَخِذَيْكَ فَإِنَّ الْفَخِذَيْنِ عَوْرَةٌ . في شرح السنة

د حضرت محمد بن جحش رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم و معمر رضي الله عنه ته نژدې تېر سو دغه وخت د هغه دواړه ورنونه معلومېدل نبي کريم صلی الله علیه وسلم ورته وويل : اې معمره! خپل ورنونه پټ کړه ځکه چي ورنونه هم په شرمګاه کي شامل دي . (شرح السنة).

**تخريج**: شرح السنة ۹\۲۱، رقم: ۲۲۵۱.

## بېله ضرورته په يوازي ځای کي ستر لوڅول ښه کار نه دی

﴿۲۹۸۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِيَّاكُمْ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل : خپل ځانونه د لڅېدو څخه

وَالتَّعَرِّيَ فَإِنَّ مَعَكُمْ مَنْ لَا يُفَارِقُكُمْ إِلَّا عِنْدَ الْغَائِطِ وَحِينَ يُفْضِي الرَّجُلُ إِلَى أَهْلِهِ فَاسْتَحْيُوهُمْ وَأَكْرِمُوهُمْ . رواه الترمذي .

وساتئ که څه هم يوازي ياست ځکه چي ستاسو سره دوې ملائکي دئ چي هغوی يوازي په بيت الخلاء د قضائي حاجت او په کوروالي کي ستا سو څخه جلا کيږي د هغوی څخه حيا وکړئ او د هغوی عزت وکړئ . (ترمذي) .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\۱۰۴، رقم: ۲۸۰۰.

**تشريح** مطلب دا دی چي تاسو هر وخت خپل ستر پټوئ، نېک کارونه کوئ او د خرابو خبرو او فحش اعمالو څخه ځان وساتئ چي د دغه ملائکو په شان کي بې حيايي نه وي او د دوی په

تعظیم او تکریم کي کمي رانه سي ، ابن مالک رحمة الله عليه وايي چي د دغه حديث څخه معلومه سوه چي د یو ضرورت لپاره هم د مثال په توګه د کوروالي ، لویو او کوچني بولو پر وخت هم ستر خلاصول جائز نه دي ځکه چي دا ډېره د بې شرعي او بې غیرتي خبره ده .

## ښځه سړي ته کتلای سي که یا؟

﴿۲۹۸۳﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ أَنَّهَا كَانَتْ عِنْدَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَيْمُونَةَ

د بي بي ام سلمه رض څخه روایت دی چي زه او بي بي میمونه د نبي کریم صلى الله عليه وسلم په خدمت کي

إِذْ أَقْبَلَ ابْنُ أُمِّ مَكْتُومٍ فَدَخَلَ عَلَيْهِ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حاضري سوو په دې وخت کي ابن ام مکتوم رضي الله عنه چي په سترګو ړوند وو راغی رسول الله صلى الله عليه وسلم

احْتَجِبَا مِنْهُ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَلَيْسَ هُوَ أَعْمَى لَا يُبْصِرُنَا فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ

موږ ته وفرمايل : د ده څخه پرده وکړئ ما عرض وکړ یا رسول الله صلى الله عليه وسلم ! دی خو ړوند دی (یعني موږ خو نه ویني) نو نبي کریم صلى الله عليه وسلم وفرمايل :

صلى الله عليه وسلم أَفَعَمْيَاوَانِ أَنْتُمَا أَلَسْتُمَا تُبْصِرَانِهِ . رواه احمد والترمذي وابوداؤد.

ایا تاسو هم ړندې یاست ؟ او دی نه وینئ ؟ (یعني تاسو خو دی وینئ که یا) . احمد ترمذي ابو داؤد

**تخریج**: احمد في المسند ٦\٢٩٦، وابوداود في السنن ٤\٣٦١، رقم: ٤١١٢، والترمذي في السنن ٥\٩٤، رقم: ٢٧٧٨.

**تشریح**: د دغه حديث شريف څخه دا معلومېږي چي څرنګه نارينه ته د پردۍ ښځي لېدل حرام دي همدارنګه ښځي ته هم د پردي سړي لېدل حرام دي مګر علماء کرام وايي چي دغه ارشاد پر تقوا باندي محمول دی او یا دا چي د رسول الله صلى الله عليه وسلم مراد دا وو چي ښځه دي سړي ته د اختلاط په توګه نه ګوري یعني داسي باید ونه سي چي دوه پردي سړی او ښځه یو ځای سي او د یو بل سره خبري وکړي او ښځي سړي ته په شوق او غوره سره وګوري نو په دې باره کي مسئله داده چي ښځه سړي ته کتلای سي مګر د نامه څخه لاندي تر زنګنو پوري کتل جائز نه دي ، ددغه مسئلې دلیل د حضرت عائشې رضي الله عنها دا قول دئ چي حبشیانو د نېزو لوبي کولې او ما هغوی ته کتل، د بي بي عائشې رضي الله عنها حبشیانو ته کتل د نهم هجري کال خبره ده او د بي بي عائشې رضي الله عنها عمر شپاړلس کاله وو او د پردې حکم نازل سوی وو ، ددې څخه معلومه سوه چي د

ښځي پر دي سړي ته کتل جائز دي پرته د هغه د بدن هغه برخو ته چي هغه په ستر کي داخلي دي مګر دا خبره هم بايد په ذهن کي وي چي دغه اجازه په هغه صورت کي ده کله چي د جنسي خواهش څخه خوندي وي که د جنسي خواهش څخه خوندي نه وي نو بيا سړي ته کتل بالکل حرام دي.

## په يوازيوالي کي هم ستر پټ ساتئ

﴿۲۹۸۴﴾: وَعَنْ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى

حضرت بهز بن حکيم رضي الله عنه د خپل پلاره څخه او هغه بيا د خپل پلاره څخه روايت کوي چي رسول

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ احْفَظْ عَوْرَتَكَ إِلَّا مِنْ زَوْجَتِكَ أَوْ مَا مَلَكَتْ يَمِينُكَ قُلْتُ يَا

الله ﷺ وفرمايل: د خپلي ښځي او مينزي څخه پرته خپله شرمګاه پټه ساتی ما عرض وکړ يا

رَسُولَ اللّٰهِ اَفَرَاَيْتَ إِذَا كَانَ الرَّجُلُ خَالِيًا قَالَ فَاللّٰهُ أَحَقُّ أَنْ يُسْتَحْيَا مِنْهُ.

رواه الترمذي و ابوداؤد وابن ماجة.

رسول الله ﷺ! که څه هم موږ يوازي يو ؟ هغه وخت هم موږ خپل بدن پټ ساتو نبي کريم ﷺ وفرمايل: د خداي تعالى څخه شرم او حيا کول زيات مناسب دی. (ترمذي ابو داؤد ابن ماجه).

**تخريج**: ابوداود في السنن ۴\ ۳۰۴، رقم: ۴۰۱۷، والترمذي في السنن ۵\ ۱۰۲، رقم: ۲۷۹۴.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ د جواب مطلب دادئ چي په خلوت کي که چيري يو څوک موجود نه وي نو هغه وخت هم خپل ستر لوڅول مناسب نه دي ځکه چي الله تعالى په هر صورت کي موجود وي چي د انسانانو څخه زيات ددې وړ دئ چي د هغه څخه شرم او حياء وکړل سي، ددې څخه معلومه سوه چي په خلوت (يوازيوالي) کي هم د ستر پټول واجب دي مګر د يو ضرورت په وجه لوڅول جائز دي.

په حديث کي چي د ستر پټولو کوم حکم سوی دی په هغه کي د ښځي او مينزي استثناء سوې ده چي د خپل ښځي يا مينزي په مخکي د خپل ستر لوڅول ضروري نه دي نو ددې څخه دا خبره واضحه سوه چي په د سړي او ښځي (نکاح سوو) لپاره د يو بل ستر ته کتل مباح دي.

## د پردی ښځي سره يوازي مه اوسئ

﴿۲۹۸۵﴾: وَعَنْ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَخْلُوَنَّ رَجُلٌ بِامْرَأَةٍ إِلَّا كَانَ ثَالِثَهُمَا الشَّيْطَانُ . رواه الترمذي

حضرت عمر رضی اللہ عنہ د نبي كريم ﷺ څخه روايت كوي چي كله يو سړى د يوې ښځي سره يوازي يو ځاي سي نو هلته دريم نفر شيطان وي (يعني د دواړو په فكرو كي بد خيالات را ګرځوي) . (ترمذي)

**تخريج**: الترمذي في السنن معلقا ۳\ ۴۷۴، رقم: ۱۱۷۱.

**تشريح**: كله چي دوه پردي سړى او ښځه يوازي يو ځاى سي نو هلته شيطان سمدستي را رسيږي چي د دواړو جنسي جذبات را پورته كوي تر دې چي پر هغوى د جنسي خواهش غلبه راسي او هغوى په بدكارۍ كي اخته سي، د حديث خلاصه داده چي تاسو د پردۍ ښځي سره په يوازيوالي كي د يو ځاى كېدو څخه ځان وساتئ.

﴿۲۹۸۶﴾: وَعَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَلِجُوا عَلَى الْمُغِيبَاتِ

د حضرت جابر رضی اللہ عنہ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هغو ښځو ته مه ورځئ چي د هغوى خاوندان په سفر كي وي

فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَجْرِي مِنْ أَحَدِكُمْ مَجْرَى الدَّمِ قُلْنَا وَمِنْكَ يا رسول الله

ځكه چي په داسي وختو كي شيطان دويني په شان په ټولو رګو كي ګرځي موږ عرض وكړ يا رسول الله ﷺ! ايا شيطان ستاسو په رګو كي هم ګرځي نبي

قَالَ وَمِنِّي وَلَكِنَّ اللهَ أَعَانَنِي عَلَيْهِ فَأَسْلَمُ . رواه الترمذي .

كريم ﷺ راته وفرمايل: هو! په ما كي هم مګر خداي تعالي زما كومك كړى دى او ما هغه تابع كړى دى. (ترمذي).

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\ ۴۷۵، رقم: ۱۱۷۲.

**د لغاتو حل**: المُغيبات: اى الاجنبيات التي غاب عنهن ازواجهن. (هغه ښځي چي خاوندان يې په سفر وي)

**تشريح**: هسي خو هيڅ يو پردۍ او غير محرم ښځي ته په يوازيوالي كي ورتلل او د هغې سره اختلاط كول ممنوع دي مګر په دغه حديث كي د هغه ښځو چي د هغوى خاوندان په كور كي نه

وي په خاصه توګه ذکر سوی دی چي په عامه توګه سره د واده څخه وروسته د ښځو جنسي جذبات بېداره کيږي او پر هغوی د نفساني خواهش غلبه وي څکه نو د هغوی د خاوندانو په نه موجودتيا کي هغوی ته د غير محرم سړي ورتلل په خرابۍ کي د اخته کېدو ډېر زيات احتمال لري.

د (مجرى الدم) ژباړه شيخ عبدالحق دهلوي رحمة الله عليه د ويني د تللو ځای يعني رګ کړې ده لکه څرنګه چي دلته نقل سوي دي مګر ملا علي قاري رحمة الله عليه ددې مفهوم دا بيان کړی دی چي (په تاسو کي کي شيطان داسي ځغلي) لکه څرنګه چي ستاسو په رګونو کي وينه ځغلي چي تاسو ته نه معلوميږي همدا رنګه شيطان پر تاسو داسي مسلط سوی دی ، سره ددې چي هغه پر تاسو باندي دومره تصرف لري مګر تاسو هغه نه وينئ ، د نتيجې په اعتبار د دواړو يو مطلب دئ.

لفظ د اسلم د مضارع متکلم په صيغه سره نقل سوی دی او په ځينو روايتو کي د ماضي په صيغه سره هم نقل سوی دی او دواړه صحيح دي، د مضارع متکلم ژباړه هغه ده کوم چي دلته نقل سوې ده او که چيري د ماضي په صيغه سره وويل سي نو بيا ژباړه داسي ده چي (الله تعالی د شيطان په مقابله کي زما مرسته کړې ده) نو شيطان زما په حق کي مسلمان (يعني فرمانبردار او مغلوب) سوی دئ.

## غلام د پردي سړي په ډول دی

﴿۲۹۸۷﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَتَى فَاطِمَةَ بِعَبْدٍ قَدْ وَهَبَهُ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله صلى الله عليه وسلم د بي بي فاطمې رضي الله عنها کور ته د يوه غلام

لَهَا وَعَلَى فَاطِمَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا ثَوْبٌ إِذَا قَنَّعَتْ بِهِ رَأْسَهَا لَمْ يَبْلُغْ رِجْلَيْهَا

سره تشريف راوړ کوم چي نبي کريم صلى الله عليه وسلم و بي بي فاطمې ته ورکړی وو او بي بي فاطمې پر بدن باندي داسي جامه اچولې وه

وَإِذَا غَطَّتْ بِهِ رِجْلَيْهَا لَمْ يَبْلُغْ رَأْسَهَا فَلَمَّا رَأَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

که به يې سر پټ کړو نو پښې او که به يې پښې پټې کړې نو سر به يې معلومېدی کله يې چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وليدی نو بي بي فاطمې رض د پټولو ډېر زيات کوښښ کوی نو نبي کريم صلى الله عليه وسلم ورته

مَا تَلْقَى قَالَ إِنَّهُ لَيْسَ عَلَيْكِ بَأْسٌ إِنَّمَا هُوَ أَبُوكِ وَغُلَامُكِ . رواه ابوداؤد.

وفرمايل: هيڅ پروا نه لري (اې فاطمې!) يو دي پلار دی او بل دي غلام. (ابوداؤد).

**تخريج**: ابو داود في السنن ۴\۳۵۹، رقم: ۴۱۰۶.

**د لغاتو حل**: قنعت: اى سترت. (پټه سي)

**تشريح** د دغه حديث شريف څخه امام شافعي رحمة الله عليه دا استدلال کړی دئ چي د هغه ښځي غلام د هغه محرم دئ يعني په پرده کي چي د محرم کوم حکم دی هغه د دغه غلام هم دی، د امام ابو حنيفة رحمة الله عليه په نزد غلام د خپل باداري په حق کي د پردي سره په ډول دی نو د غلام د خپل باداري د بدن يوازي هغه برخي ته کتل جائز دي کوم ته چي د پردي سره کتل جائز دي يعني مخ، لاسونه او پښي، د حنفيه له خوا د دغه حديث په باره کي د امام شافعي رحمة الله عليه دا جواب ورکول کيږي چي امام شافعي رحمة الله عليه کوم خبره کړې ده هغه د دغه حديث څخه نه ثابتيږي ځکه کيدای سي چي هغه غلام د بي بي فاطمې رضي الله عنها سره په هغه وخت کي نابالغه وه.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### نر ښځی هم په کور کي مه پرېږدئ

﴿۲۹۸۸﴾: عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ عِنْدَهَا وَفِي الْبَيْتِ

د حضرت ام سلمه رضي الله عنها څخه روايت دی چي رسول الله صلى الله عليه وسلم د هغې سره تشريف درلود او په کور

مُخَنَّثٌ فَقَالَ لِعَبْدِ اللهِ أَخِي أُمِّ سَلَمَةَ يَا عَبْدَ اللهِ إِنْ فَتَحَ اللهُ لَكُمْ غَدًا

کي يو نرښځو کي هم وو هغې نرښځو کي عبد الله بن ابي اميه (د ام سلمه ورور) ته وويل اې عبد الله! که سبا تاسو ته خدای تعالي

الطَّائِفَ فَإِنِّي أَدُلُّكَ عَلَى بِنْتِ غَيْلَانَ فَإِنَّهَا تُقْبِلُ بِأَرْبَعٍ وَتُدْبِرُ بِثَمَانٍ فَقَالَ

په طائف کي فتحه در کړه نو زه به د غيلان لور درته وښيم هغه د څلورو سره راځي او د اتو سره ځي (يعني دومره غټه ده چي کوم وخت راځي نو د هغې په خېټه څلور ولهوي او کوم وخت چي ځي نو د هغې په شا اته ولهوي دا د غيلان دلور تعريف دی عربو به غټې ښځي خوښولې)

النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَدْخُلَنَّ هَؤُلَاءِ عَلَيْكُمْ. متفق عليه.

(د دې په اورېدو سره) نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل: دا نرښځو کي په کور کي مه پرېږدئ. (بخاري او مسلم).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۸\۴۳، رقم: ۴۳۲۴.

**تشریح** لفظ د مخنث د نون په زیر سره هم ویل کیږي او د نون په زور سره هم حال دا چي مشهور په زیر سره دی، مخنث هغه سړي ته ویل کیږي چي په عاداتو او حرکاتو کي د ښځي مشابه وي چي زموږ په اصطلاح کي نرښځی ورته ویل کیږي، دغه مشابهت کله په خلقي توګه سره وي او کله په مصنوعي توګه سره اختیاریږي، په خلقي توګه چي کوم مشابهت وي په هغه کي څه ګناه نه سته مګر کوم مشابهت چي په مصنوعي توګه وي چي ځیني خلک د ښځو مشابهت اختیاروي او خپل جامه، عادات او کړني د ښځو سره مشابه ظاهروي نو دا ډېره خرابه او د ګناه خبره ده، داسي خلک د لعنت مستحق دي ځکه چي په حدیث شریف کي راغلي دي چي پر هغه ښځو دي د الله تعالی لعنت وي کوم چي دنارینوو مشابهت اختیاروي او پر هغه نارینوو دي د الله تعالی لعنت وي کوم چي د ښځو مشابهت اختیاروي.

په دغه حدیث کي چي د کوم مخنث ذکر سوی دی د هغه نوم هیئت وو او ځینو د هغه نوم ماطع لیکلي دی، د هغه په باره کي علماؤ لیکلي دي چي دی به مخکي د رسول الله ﷺ د بیبیانو کورو ته تلی ځکه چي د بیبیانو دا ګمان وو چي دی په خلقي توګه سره د نارینه د جذباتو څخه خالي دی او د هغه ښځو ته شوق او حاجت نه سته او نه د جنسي خواهش سره د هغه شوق سته بلکه هغه د غیر اولی الاربه څخه دی کوم چي په قرآن کریم کي د هغه ذکر دی، او ویل سوي دي چي د ښځو لپاره پرده کول د هغوی څخه واجب نه دي مګر کله چي رسول الله ﷺ دا خبره واورېدل چي په جنسي معاملاتو کي د هغه د شوق مظهر وو نو رسول الله ﷺ ته معلومه سوه چي مخنث د غیر اولی الاربه څخه نه دی بلکه د اولی الاربه څخه دی او نفساني خواهش ته شوق لري، نو رسول الله ﷺ سمدستي منع کړ چي اوس به دغه مخنث په کورو کي نه داخلیږي او ښځو ته دي نه ځي، فقهاؤ لیکلي دي چي د دغه ارشاد په رڼا کي نه یوازي دا چي د مخنث لپاره په کور کي د داخلېدو او ښځو ته د تللو څخه منع سوې ده بلکه د خصي او داسي نورو هم دا حکم دی او د پردې په اړه دوی د هغه خلکو په ډول دي چي د هغوی څخه پرده کول پر ښځو واجب دي.

په څلور سره ځي او په اته سره راځي: د دغه خبري څخه د هغه مخنث (نرښځي) مقصد د غیلان د لور چي د هغې نوم بادیه وو چاغ والی بیانول مقصد وو ځکه چي په عامه توګه سره د کوم سړي بدن چاغ وي نو د هغه پر نس څلور ګونجي وي چي د مخ څخه څلور معلومیږي او د شا څخه اته معلومیږي په دې توګه چي د هغه څلورو ګنجو سرونه د دواړو خواوو څخه ښکاره وي، مخنث چي دا خبره وکړه نو د هغه مقصد دا وو چي د غیلان لور چي کله راځي نو د هغې پر

نس څلور ګونجي وي او كله چي هغه په شا ګرځولو سره ځي نو د شا څخه اته ګونجي معلوميږي چي په اصل كي د نس د هغه څلور ګنجو هغه دواړه سرونه وي چي دواړه خواوو ته ښكاره وي ، خلاصه دا چي د چاغو ښځو ته زيات مېلان لري ځكه هغه مخنث د غيلان د لور د چاغ والي څرګندولو دا سي تعبير اختيار كړ .

## د لوڅ كېدو څخه منع

﴿۲۹۸۹﴾ : وَعَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ قَالَ حَمَلْتُ حَجَرًا ثَقِيلاً فَبَيْنَا اَنَا اَمْشِيْ

د حضرت مسور بن مخرمه رضي الله عنه څخه روايت دى چي ما يو دروند كانړى پورته كړ او را روان سوم

سَقَطَ عَنِّيْ ثَوْبِيْ فَلَمْ اَسْتَطِعْ اَخْذَهُ فَرَاٰنِيْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

چي زما جامه وشكېدل او د بوج په وجه ما جامه پر بدن باندي نسواى ايښوولاى رسول الله ﷺ

فَقَالَ لِيْ خُذْ عَلَيْكَ ثَوْبَكَ وَلاَ تَمْشُوْا عُرَاةً . رواه مسلم .

چي زه كله لوڅ وليدم نو يې وفرمايل :اول جامه واغونده او لوڅ مه ځئ .(مسلم) .

**تخريج** : مسلم في الصحيح ۱\ ۲۶۸، رقم: ۷۸\ ۳۴۱.

## د شرم او حياء انتهائي درجه

﴿۲۹۹۰﴾ : وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ مَا نَظَرْتُ أَوْ مَا رَأَيْتُ فَرْجَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَطُّ . رواه ابن ماجة .

د عائشې رضي الله عنها څخه روايت دى چي ما هيڅكله د نبي كريم ﷺ شرمګاه نه ده ليدلې . (ابن ماجه)

**تخريج** : سنن ابن ماجه ۱\ ۶۱۹، رقم: ۱۹۲۳.

**تشريح** حرف د او په اصل كي د راوي شک ظاهروي چي په روايت كي د مانظرت الفاظ كي او كه د مارايت الفاظ نقل سوي دي ، په هر حال د دواړو معنى يوه ده په مفهوم او مطلب كي څه فرق نه سته .

په يوه روايت كي د بي بي عائشې رضي الله عنها دا الفاظ دي چي نه خو رسول الله ﷺ زما ستر ليدلى دى او نه ما د رسول الله ﷺ ستر ليدلى دى ، ددغه دواړو روايتو څخه معلومه سوه

چي خاوند او ښځي د يو بل ستر ليدلای سي مگر د ژوند اداب او د شرم او حياء انتهائي درجه داده چي ښځه او خاوند هم د يو بل ستر ته و نه گوري .

## ښځي ته په نظر لوېدو سره سمدستي نظر واړوئ

﴿۲۹۹۱﴾: وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَنْظُرُ إِلَى مَحَاسِنِ امْرَأَةٍ أَوَّلَ مَرَّةٍ ثُمَّ يَغُضُّ بَصَرَهُ إِلَّا أَحْدَثَ اللّٰهُ لَهُ عِبَادَةً يَجِدُ حَلَاوَتَهَا . رواه احمد.

د حضرت ابو امامه ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د کوم مسلمان بنده نظر چي د يوې ښځي په حسن و جمال ولگيږي نو هغه سمدستي مخ ځيني واړوي نو هغه ته به خداي تعالي يو داسي خوږوالي ورکړی چي د هغې لطف به ورته حاصل سي .(احمد) .

**تخريج**: الامام احمد في المسند ۵\ ۲٦۴.

**تشريح**. مطلب دادئ چي هغه سړي د خپل رب په فرمانبرداري کي يو حسن او ښکلا ته نظر سمدستي وگرځوی او په داسي کولو سره هغه خپل ذوق ته د تسکين ورکولو پر ځای د خپل پرودرگار د حکم په مخکي خپل نفس او خواهش تر پښو لاندي کړ ځکه الله تعالی به د هغه دغه فعل په يو داسي عبادت کي بدل کړي چي د هغه په وجه به هغه په خپل زړه او دماغ کي د الله تعالی دتعميل په نتيجه کي د تر لاسه کېدونکي خاص سکون او د زړه لذت محسوس کړي او دغه لذت په اصل کي د هغه تريخوالي بدله ده چي هغه د خپل نفس پر خواهش باندي په صبر کولو سره زغملی دی .

## منع شي ته پر کتلو باندي وعيد

﴿۲۹۹۲﴾: وَعَنِ الْحَسَنِ مُرْسَلاً قَالَ بَلَغَنِيْ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَعَنَ اللّٰهُ النَّاظِرَ وَالْمَنْظُوْرَ إِلَيْهِ . رواه البيهقي في شعب الإيمان .

د حضرت حسن ﷺ څخه مرسلا روايت دی وايي چي ما ته د اصحابو کرامو څخه دا معلومه سوې ده چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي : پر هغه سړی دي د خداي تعالي لعنت وي چي د بل شرمگاه ته گوري او پر هغه دي هم وي چي دده شرمگاه ته گوري . (بيهقي).

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ١٦٢/٦، رقم: ٧٧٨٨.

**تشريح** مطلب دا دی چې پر هغه چا دې د الله تعالى لعنت وي چې هغه شي ته په قصد او ارادې سره ګوري چې د هغه لیدل جائز نه دي ، هغه شی که يو انجلۍ وي يا د يو چا ستر وي يا بل منع شی وي، همدارنګه هغه څوک ددې مستحق ګرځول سوی دی څوک چې ولیدل سي مګر دا په هغه صورت کي کله چې هغه بېله غذره او بېله قصد خپل ځان ښوولی وي مثلا يو ښځه په قصد سره خپل ځان يو پردي سړي ته وښيي نو په دغه صورت کي هغه هم په دغه لعنت کي داخله ده ، مګر که چيري يو ښځه يو پردي سړي داسي وليدل چې ښځي ته د قصد او ارادې دخل نه وي نو هغه په دغه لعنت کي داخله نه ده .

===========

# بَابُ الْوَلِيِّ فِي النِّكَاحِ وَ اِسْتِيْذَانِ الْمَرْاَةِ

## ( د نكاح دولي او د ښځي ځخه د اجازې اخيستلو بيان )

ولي په لغت کي سرپرست او کارساز ته وايي يعني هغه سړی چې د يو چا کار منتظم کوي مګر دلته د ولي ځخه مراد هغه سړی دی چې د يو ښځي د نکاح متولي او سرپرست وي، په دې توګه چې د ښځي د نکاح اختيار هغه ته حاصل وي .

په دغه باب کي هغه حديثونه نقل سوي دي چې د هغو ځخه دا معلوميږي چې د نکاح په باره کي ولي ته اجازه تر لاسه کېدل او د هغه رضا معلومول ضروري دي .

دلته دا ښوول هم ضروري دي چې ولايت (يعني د ولي کېدو حق) چا ته حاصل دی ، نو پوه سئ چې د نکاح په اړه د ولايت اختيار هغه قريب ته حاصل وي کوم چې عصبه بنفسه وي که عصبات بنفسه نه وي نو په هغوی کي به مقدم هغه وي کوم چې په وراثت کي مقدم وي يعني په دې باره کي د عصباتو ترتيب هغه دی کوم چې په وراثت کي دی که په عصبات بنفسه کي څوک نه وي نو د مور ولايت به حاصل وي يا د انا او بيا مور ته بيا ملسی ته او بيا ملسي زوی ته او که چيري په دوی کي هم څوک نه وي نو بيا نېکه (د مور پلار) ته به د ولايت حق وي او بيا حقيقي خور ته او بيا ميريزي خور ته بيا د مور اولاد ته ، بيا د دغه ترتيب سره سم د هغوی اولاد ته او که په هغوی کي هم څوک نه وي نو بيا ذوي الاحارم ته د ولايت حق دی په ذوي الارحام کي تر ټولو مخکي امه ګانو ته د ولايت حق دی د هغوی ځخه وروسته ماما او د هغوی ځخه وروسته خاله ګانو ته او د هغوی ځخه وروسته د اکا لوڼو ته او د هغوی ځخه وروسته د ترتيب

سره سم د هغوی اولاد ته او که په دوی کي هم څوک نه وي نو د ولايت حق به مولي الموالات ته حاصل وي (د مولي الموالات معنی په باب الفرائض کي بيان سوې ده) ، که چيري په مولي الموالات کي هم څوک نه وي بيا د وخت د پاچا د ولايت حق دی . په شرط ددې چي هغه مسلمان وي او د هغه څخه وروسته د وخت د پاچا چي څوک نائب وي په شرط ددې چي د پاچا له خوا هغه ته دا اختيار ورکړل سوی وي د هغه څخه وروسته به د قاضي نائبانو ته د ولايت حق وي په شرط ددې چي د خپل نائب جوړولو اجازه او اختيار قاضي ته حاصل وي که قاضي ته دغه اجازه نه وي نو بيا يې هيڅوک هم ولي کېدای نه سي .

د ولايت د حق لپاره ازاد کېدل ، عاقل کېدل او مسلمان کېدل شرط دي نو هيڅ غلام د يو چا ولي کيدای نه سي او هيڅ نابالغ د چا ولي کيدای نه سي او همدارنګه ليونی او کافر هم د يو مسلمان ولي کيدای نه سي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د نکاح څخه مخکي د ښځي اجازه اخيستل

﴿۲۹۹۳﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُنْكَحُ

د حضرت ابو هريره رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : تر څو پوري چي د کونډې

الْأَيِّمُ حَتَّى تُسْتَأْمَرَ وَلَا تُنْكَحُ الْبِكْرُ حَتَّى تُسْتَأْذَنَ قَالُوا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَكَيْفَ إِذْنُهَا قَالَ أَنْ تَسْكُتَ . متفق عليه .

ښځي څخه اجازت نه وي اخيستل سوی نو د هغې نکاح کول نسي کولای او همداسي چي د پيغلو ښځو څخه اجازت نه وي اخيستل سوی نو نکاح يې نه صحيح کيږي اصحابو کرامو عرض وکړ يا رسول الله! د پيغلو څخه به (چي شرميږي) اجازت څنګه حاصل سي ؟نو نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل :د هغې اجازت دادي چي چپه خوله پاته سي .(يعني د اجازت دغوښتلو څخه وروسته چپه خوله پاته سي). (بخاري او مسلم).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۲\ ۳۳۹، رقم: ۶۹۶۸، ومسلم ۲\ ۱۰۳۶، رقم: ۶۴ – ۱۴۱۹.

**د لغاتو حل**: الايم: المراد به هنا الثيب البالغة. (بې خاونده).

**تشريح** ايّم هغه ښځي ته ويل کيږي چي د هغې خاوند نه وي که هغه باکره (پېغله) وي او که

كونډه وي (چي خاوند يې مړ سوی وي يا طلاقه سوې وي) مگر دلته د ايم څخه مراد هغه بالغه ښځه ده چي د هغې خاوند مړ سوی وي يا طلاق ورکړل سوی وي.

د ښځي څخه د هغې د نکاح تر لاسه کولو په باره کي د باکرې او ثيب فرق سوی دی چي د ثيب په باره کي دا فرمايل سوي دي چي تر څو د هغې حکم تر لاسه نه کړل سي او د باکرې په باره کي دغه الفاظ دي چي تر څو پوري د هغې اجازه نه وي سوې نو دغه حکم او اجازه دا فرق څرګندوي چي ثيب (کونډه) ښځه د خپل نکاح په اړه زيات شرم او حياء نه کوي بلکه هغه په خپل الفاظو کي د خپل نکاح حکم کوي يا په اشاره سره د خپل خواهش اظهار کوي او په دې باره کي هغې ته څه شرم نه وي، ددې پر خلاف باکره (پيغله) زيات شرم او حياء کوي ځکه هغه په څرګندو الفاظو کي د نکاح حکم نه کوي او نه په واضحه اشاره سره د خپل خواهش اظهار کوي مګر کله چي د هغې د نکاح اجازه د هغې څخه واخيستل سي نو هغه په رضا سره اجازه ورکوي بلکه زيات وخت داسي کيږي چي د اجازې د طلب پر وخت د هغې په ژبه سره اجازه ورکول د شرم او حياء خلاف ګڼل کيږي او د خپل سکوت په ذريعه د خپل رضامندۍ اظهار کوي.

ددغه حديث څخه معلومه سوه چي د ښځي د حکم يا اجازې څخه پرته نکاح جائز نه ده مګر د فقهاؤ په نزد په دې باره کي تفصيل دادی د ټولو ښځو څلور ډولونه دي: اول ثيب بالغه يعني هغه کونډه ښځه چي بالغه وي، د داسي ښځي په باره کي د ټولو علماؤ په اتفاق سره دا قول دی چي د هغې نکاح د هغې د اجازې څخه پرته جائز نه ده په شرط ددې چي هغه عاقله وي يعني ليونۍ نه وي که عاقله نه وي نو د ولي په اجازې سره د هغې نکاح کيږي.

دوهم: باکره صغيره يعني هغه انجلۍ چي نابالغه وي د هغې په باره کي د ټولو علماؤ په [illegible]ناق سره دا قول دی چي د هغې د نکاح لپاره د هغې د اجازې ضرورت نه سته بلکه د هغې ولي [illegible]غې د اجازې څخه پرته هم نکاح کولای سي.

[illegible]ريم: ثيب صغيره يعني هغه کونډه چي بالغه نه وي د هغې په باره کي د حنفي علماؤ قول دادی چي د هغې نکاح د هغې د اجازې څخه پرته کيدای سي مګر شافعي علماء وايي چي د هغې نکاح د هغې د اجازې څخه پرته جائز نه ده.

څلورم: باکره بالغه: يعني هغه پيغله چي بالغه وي، د هغې په باره کي د حنفي علماء قول دادی چي د هغې نکاح د هغې د اجازې څخه پرته جائز نه ده مګر د شافعي علماؤ په نزد جائز ده.

ددغه تفصيل څخه دا خبره معلومه سوه چي د حنفي علماؤ په نزد د ولايت مدار پر صغر دی يعني د هغه په نزد ولي ته د ښځي د اجازې څخه پرته د نکاح کولو حق په هغه صورت کي حاصل

دی کله چي هغه د کم عمر یعني نابالغه وي که هغه باکره وي یا ثیبه (کونډه) وي، او د شافعي علماؤ په نزد د ولایت مدار پر بکارت دی یعني د هغوی په نزد ولي ته د ښځي د اجازې څخه پرته د نکاح کولو حق په هغه صورت کي حاصل وي کله چي هغه باکره وي که بالغه وي او که نابالغه وي، نو دغه حدیث شریف د حنفیه په نزد پر بالغه باندي محمول دی که هغه کونډه وي یا پیلغه وي او د رسول الله ﷺ دغه ارشاد (ولاتنکح البکر حتی تستاذن) یعني د پیغلي نکاح دي نه کیږي تر څو چي د هغې اجازه تر لاسه نه سي، دا د شوافع د قول خلاف یو واضح دلیل دی.

﴿۲۹۹۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْأَيِّمُ أَحَقُّ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: کونډه ښځه (د خپلي

بِنَفْسِهَا مِنْ وَلِيِّهَا وَالْبِكْرُ تُسْتَأْذَنُ فِي نَفْسِهَا وَإِذْنُهَا صُمَاتُهَا . و في رواية

نکاح په معامله کي) د خپل ولي څخه زیاته حقداره ده (یعني د نکاح د اجازت د ور کولو په معامله کي) او پیغله ښځه هم د دې حقداره ده چي د هغې څخه د نکاح کولو اجازت واخیستل سي او د هغې اجازت اخیستل چپه خوله پاته کېدل دي. او په دویم روایت کي دا الفاظ دي چي

الثَّيِّبُ أَحَقُّ بِنَفْسِهَا مِنْ وَلِيِّهَا وَالْبِكْرُ تُسْتَأْمَرُ وَ إِذْنُهَا سُكُوتُهَا وَ فِي رِوايَةٍ

کونډه ښځه د خپل ولي څخه په خپلو معاملاتو کي (نکاح وغیره) زیات حق لري او د پیغلي څخه دي هم اجازت واخیستل سي او د هغې اجازت ورکول چپه خوله پاته کېدل دي. او په یو

الثَّيِّبُ أَحَقُّ بِنَفْسِهَا مِنْ وَلِيِّهَا وَالْبِكْرُ يَسْتَأْذِنُهَا أَبُوهَا فِي نَفْسِهَا وَإِذْنُهَا صُمَاتُهَا . رواه مسلم .

بل روایت کي دا الفاظ دي چي کونډه د ولي څخه زیاته حقداره ده او د پیغلي څخه دي هم اجازت واخیستل سی او د هغې څخه د اجازت حق و پلار ته حاصل دی او د هغې اجازت ورکول چپه خوله پاته کېدل دي. (مسلم).

**تخریج**: مسلم في الصحیح ۲\۱۰۳۷، رقم: ۶۶\۱۴۲۱،

**تشریح** د خپل ولي څخه زیات خپله اختیار لري: ددې مطلب دادی چي کونډه ښځه د خپل نکاح د اجازې ورکولو یا نه ورکولو په اړه خود مختاره ده او دا چي تر څو پوري په خپل ژبه سره

اجازه ونه کړي نو د هغې نکاح نه کيږي پر خلاف د پيغلې انجلۍ چې د هغې لپاره په ژبه سره اجازه ورکول ضروري نه دي بلکه د هغې سکوت (پټه خوله) په ذريعه هم د خپل اجازې اظهار کولای سي، په دې اړه نور تفصيل مخکې تېر سوی دی.

دلته يو څو روايتونه نقل سوي دي چې په هغو کې يو ازي لږ لفظي اختلاف دی د مفهوم او معنی په اعتبار ټول روايتونه يو ډول دي.

## کونډه خپل ناخوښه نکاح رد کولای سي

﴿۲۹۹۵﴾: وَعَنْ خَنْسَاءَ بِنْتِ خِذَامٍ أَنَّ أَبَاهَا زَوَّجَهَا وَهِيَ ثَيِّبٌ فَكَرِهَتْ ذٰلِكَ فَأَتَتْ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَدَّ نِكَاحَهَا. رواه البخاري و في رواية ابن ماجة نِكَاحَ أَبِيهَا.

د حضرت خنساء بنت خدام ﷵ څخه روايت دی چې هغه کونډه وه د هغې پلار د هغې نکاح د يو چا سره وکړه او دا د هغه د نکاح څخه خوشحاله نه وه نو دا د نبي کريم ﷺ په خدمت کې حاضره سوه او د دې په اړه يې عرض وکړ نو نبي کريم ﷺ د هغه نکاح ور رد کړه او په ابن ماجه کې يو روايت دی چې د هغې د پلار تړل سوې نکاح.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\ ۱۹۴، رقم: ۵۱۳۸، وابن ماجه ۱\ ۶۰۲، رقم: ۱۸۷۳.

## د رسول الله ﷺ سره د نکاح پر وخت د حضرت عائشې ﷵ عمر

﴿۲۹۹۶﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَزَوَّجَهَا وَهِيَ بِنْتُ سَبْعِ

د بي بي عائشې ﷵ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ د هغې سره نکاح وکړه کوم وخت چې د

سِنِينَ وَزُفَّتْ إِلَيْهِ وَهِيَ بِنْتُ تِسْعِ سِنِينَ وَلُعَبُهَا مَعَهَا وَمَاتَ عَنْهَا وَهِيَ بِنْتُ ثَمَانَ عَشْرَةَ. رواه مسلم.

هغې عمر اووه کاله وو کوم وخت چې هغه د نهو کالو سوه نو د رسول الله ﷺ وکور ته ولېږل سوه او د هغې سره د بازی شيان وه او کوم وخت چې رسول الله ﷺ ور څخه وفات سو هغه وخت د دې عمر د اتلسو کلو وو. (مسلم).

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\۱۰۳۹، رقم: ۷۱- ۱۴۲۲.

**تشريح** دغه حديث شريف د بي بي عائشي رضي الله عنها ژوندي درې مهم اړخه او د رسول الله ﷺ سره د هغې د ملګرتيا وخت څرګندوي، د اوو کالو په عمر کي بي بي عائشه رضي الله عنها د رسول الله ﷺ په زوجيت کي راغلل او د نهه کالو په عمر کي په رخصت کېدو سره د نبوت کورنۍ ته راغلل او د نهه کالو د ملګرتيا څخه وروسته يوازي د اتلس کالو په عمر وه چي رسول الله ﷺ د دنيا څخه تشريف يووړ.

د نهه کالو عمر د کوچنيوالي عمر وي دا وجه ده چي بي بي عائشي رضي الله عنهارسول الله ﷺ ته تشريف راوړنو د هغې سره د لوبو شيانو يعني ناوکۍ وې چي په عامه توګه سره د کوچنيانو تر ټولو شيان محبوب شيان دي، په يوه حديث کي راغلي دي چي رسول الله ﷺ هغه ناوکۍ ته وکتل نو پر هغه يې د ناخوښۍ اظهار ونه کړ، ددې څخه معلومه سوه چي د ناوکيو جوړول جائز دي او د کوچنيانو په ناوکيو لوبي کول مباح دي، ددې وجه علماؤ دا ليکلي ده چي په ناوکيو سره لوبي کول په اصل کي د کوچنيانو لپاره يو سبق هم دی چي په هغه سره د هغوی روزنه، ګنډل او د کور د اصطلاح او انتظام تربيت تر لاسه کيږي، او بيا په دې اړه يو احتمال دا هم دی چي دا واقعه د هجرت د ابتداء ده او تر هغه وخته پوري د عکس حرمت نازل سوی نه وو، ځيني علماء وايي چي بي بي عائشي رضي الله عنها د ځان سره ناوکۍ راوړي وې نو په هغو کي صورتونه جوړ سوي نه وه کوم چي په عکسونو کي وي او حرام دي بلکه په جامو کي په نغښتلو سره بېله د شکل او صورت څخه دا سي شيان جوړ سوي وه.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د کم عمره انجلۍ نکاح د ولي د اجازې پرته نه کيږي

﴿۲۹۹۷﴾: عَنْ أَبِي مُوسَى أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا نِكَاحَ إِلَّا بِوَلِيٍّ.

رواه احمد والترمذي و ابوداؤد وابن ماجة والدارمي.

د حضرت ابو موسی رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د ولي (سرپرست) د اجازت څخه ماسېوا نکاح نه صحيح کيږي. (احمد ترمذي ابوداؤد ابن ماجه دارمي)

**تخريج**: احمد في المسند ۴\ ۳۹۴، ابوداود في السنن ۲ \ ۵۶۸. رقم: ۲۰۸۵، والترمذي في السنن ۳\ ۴۰۷، رقم: ۱۱۰۱، وابن ماجه في السنن ۱\ ۶۰۵، رقم: ۱۸۸۱، والدارمي ۲\ ۱۸۵، رقم: ۲۱۸۳.

**تشريح**: د حنفيه په نزد د دغه حديث تعلق د نابالغي او غير عاقلي سره دی يعني د کم عمره انجونو او ليونی نکاح د هغه د ولي د اجازې څخه پرته نه کيږي ، امام شافعي او امام احمد رحمة الله عليهما د حديث پر ظاهري الفاظو باندي عمل کړی دی هغوی وايي چي نکاح هغه وخت صحيح کيږي کله چي ولي عقد وکړي او د ښځو په عبارت سره نکاح نه منعقد کيږي .
علامه سيوطي رحمة الله عليه وايي چي په دغه حديث کي پر نابالغه او غيرعاقله باندي د محمول نه منلو بلکه د مطلق په صورت کي جمهور علماء د صحت پر نفي باندي د امام ابو حنيفة رحمة الله عليه پر نفي کمال باندي محمول کړي ده .

﴿۲۹۹۸﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَيُّمَا امْرَأَةٍ

د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کومه ښځه چي خپله نکاح د

نَكَحَتْ نَفْسَهَا بِغَيْرِ إِذْنِ وَلِيِّهَا فَنِكَاحُهَا بَاطِلٌ فَنِكَاحُهَا بَاطِلٌ فَنِكَاحُهَا

خپل ولي (سرپرست)د اجازت څخه ماسېوا وکړي د هغې نکاح باطله ده د هغې نکاح

بَاطِلٌ فَإِنْ دخل بِهَا فَلَهَا الْمهر بِمَا استحل مِنْ فَرْجِهَا فَإِنْ اشْتَجَرُوا

باطله ده د هغې نکاح باطله ده بيا که د هغې خاوند د دې سره همبستري وکړي نو د هغې د شرمګاه څخه د فائدې د اخيستلو مهر پر خاوند واجب دی او که د يوې ښځي په ولايت

فَالسُّلْطَانُ وَلِيُّ مَنْ لَا وَلِيَّ لَهُ . رواه احمد والترمذي وابوداؤد وابن ماجة والدارمي .

(سرپرستي) کي اختلاف وي نو د هغې ښځي ولي باچا(د وخت )دی که څوک ولي ونه لري .
(احمد ترمذي ابو داؤد ابن ماجه دارمي).

**تخريج**: احمد في المسند ٦\ ٦٦، وابوداود في السنن ٢\ ٥٦٦، رقم: ٢٠٨٣، والترمذي في السنن ٣\ ٤٠٧، رقم: ١١٠٢، وابن ماجه في السنن ١\ ٦٠٥، رقم: ١٨٧٩، والدارمي ٢\ ١٨٥، رقم: ٢١٨٤.

**تشريح**: د هغه نکاح باطله ده ، دا الفاظ رسول الله ﷺ درې واره وفرمايل، يعني د دې مطلب دادی چي د ولي د اجازې څخه پرته کېدونکي نکاح باندي خبردار دی، او د دې تاکيد يې وکړ چي نکاح د ولي د اجازې او خوښي ته بنيادي درجه تر لاسه ده ، همدارنګه دغه حديث او داسي

نور حدیثونه ددغه ارشاد (الایم احق بنفسها من ولیها) یعني د ایم نکاح دي نه کیږي تر څو چي هغه حکم تر لاسه نه کړلای ، دا معارض او ټکر دي ځکه د حنیفه له خوا ددغه حدیث تاویل دا کیږي چي دلته مراد دادی چي کومه ښځه د ولي د اجازې څخه پرته د غیر سیال سره نکاح وکړي نو د هغې نکاح باطل ده یا دا چي د کم عمره انجلی یا د مینزي د مکاتبه د خپل ولي د اجازې څخه پرته نکاح وکړي نو د هغې نکاح به باطل وي .

ددې څخه پرته دا خبره هم باید په ذهن کي وي چي دغه حدیث او ددې څخه مخکي حدیث دواړه په فني توګه سره ددې درجي نه دي چي دا د یو مذهب خلاف د دلیل په توګه اختیار کړل سي ځکه ددغه دواړو حدیثو په صحیح کېدو کي محدثینو کلام کړی دی .

د حدیث د آخري جملې مطلب دادی چي کله د یو ښځي ولي په خپلو کي اختلاف او نزاع کوي او پر یو فیصله باندي نه متفق کیږي نو هغوی ټول کالعدم دي او په دغه صورت کي د ولایت حق د وخت پاچا ته دی کنه دا خو معلومه ده چي د ولي په موجودتیا کي پاچا ته د ولایت حق نه سته .

## بېله شاهدانو نکاح نه صحیح کیږئ

﴿۲۹۹۹﴾: وَعَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْبَغَايَا اللَّاتِي يُنْكِحْنَ أَنْفُسَهُنَّ بِغَيْرِ بَيِّنَةٍ . والاصح انه موقوف علی ابن عباس .رواه الترمذي

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: که ښځي بېله شاهدانو نکاح وکړه نو هغوی زنا کوی د ترمذي بیان دی دا حدیث په ابن عباس موقوف دی (یعني د هغه قول دی). (ترمذي)

**تخریج**: الترمذي في السنن ۳\۴۱۱، رقم: ۱۱۰۲.

**تشریح** د نکاح صحیح کېدو یو شرط دادی چي دوه شاهدان وټاکل سي ، ددغه حدیث څخه دا ثابتیږي چي بېله شاهدانو نکاح نه صحیح کیږي د ټولو امامانو دا مذهب دی او د صحابه کرامو او تابعینو څخه هم دا نقل سوي دي .

## د ښځي سکوت د هغې رضا ده

﴿۳۰۰۰﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْيَتِيمَةُ

د حضرت ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : دپیغلو انجونو سره د

تُسْتَأْمَرُ فِي نَفْسِهَا فَإِنْ صَمَتَتْ فَهُوَ إِذْنُهَا وَإِنْ أَبَتْ فَلَا جَوَازَ عَلَيْهَا . رواه الترمذي وابوداؤد والنسائي ورواه الدارمي عن ابي موسى .

نکاح په معامله کي اجازت واخلئ (که د پوښتني کولو څخه وروسته) که چپه خوله پاته سوه نو د دې د لوري څخه د اجازت ور کول ګڼل کیږي او که انکار یې وکړ نو په هغې باندي جبر کول پکار نه دی . (ترمذي ابو داؤد نسائي په دارمي کي د ابو موسی څخه).

**تخریج** : ابوداود في السنن ٢\ ٥٧٣، رقم: ٢٠٩٣، والترمذي في السنن ٣\ ٤١٧، رقم: ١١٠٩، والنسائي ٦\ ٨٧، رقم: ٣٢٧٠.

**تشریح** . د واده معامله د انساني ژوند یو لوی او ارزښتناک پړاو دی ، په دغه پړاو کي د زوجینو د خوښې د خواهش خلاف د مور او پلار او د ولي یو فیصله او په هغه کي د ادنا درجې کوتاهي او ناپوهي د زوجینو (ښځي او خاوند) ټول ژوند جهنم جوړوي ، ځکه شریعت هر بالغ ته که سړی وي او که ښځه دا حق ورکړی دی چي هغه په دغه پړاو کي خپل خوښه او د خپل خوښې او ناخوښي پوره پوره اظهار وکړي ، په خاصه توګه د ښځو په باره کي د هغوی مور او پلار او ولي باندي زیات زور اچول سوی دی چي هغوی په دغه معامله کي د خپل ذاتي خوښې او ناخوښې مدار ونه ګرځوي بلکه ښځي ته خپله د فکر کولو موقع ورکړل سي او د هغې اجازه او خوښه دي اصله فیصله وګڼل سي او بیا د هغې د اجازې په باره کي دا اساني هم ورکړل سوې ده که ښځه د شرم او حیاء په وجه د خپل اجازې او خوښې اظهار په ژبه نه سي کولای نو د هغې پټه خوله والی د هغې اجازه ګڼل کیږي .

مګر دا خبره باید په ذهن کي وي چي د ښځي سکوت د هغې د اجازې قائم مقام کېدل یوازي د هغه ولي په حق کي دی یعني ښځه که د خپل ولي د اجازې پر وخت پټه خوله سي نو د هغې دغه پټه خوله والی د هغې اجازه ګڼل کیږئ او که د ولي څخه پرته بل څوک اجازه وغواړي نو په دغه صورت کي به د ښځي لپاره دا ضروري وي چي هغه په ژبه سره اجازه ورکړي .

## د غلام نکاح د بادار د اجازې پرته نه صحیح کیږي

﴿۳۰۰۱﴾: وَعَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَيُّمَا عَبْدٍ تَزَوَّجَ بِغَيْرِ إِذْنِ سَيِّدِهِ فَهُوَ عَاهِرٌ . رواه الترمذي وابوداؤد والدارمي .

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: کوم غلام چي د خپل مالک د اجازې څخه پرته نکاح وکړي هغه زاني (زنا کاره) دی. (ترمذي ابو داؤد دارمي)

**تخریج**: ابوداود في السنن ۲\ ۵۶۳، رقم: ۲۰۷۸، والترمذي ۳\ ۴۱۹، رقم: ۱۱۱۱، والدارمي ۲\ ۲۰۳، رقم: ۲۲۳۳.

**تشریح** مطلب دادی چي د مملوک نکاح د مالک د اجازې څخه پرته نه صحیح کیږي که چیري یو مملوک د خپل مالک د اجازې څخه پرته نکاح وکړي او د هغه نکاح څخه وروسته د منکوحې سره کوروالي وکړي نو دا کار به حرام وي او هغه ته به زنا کار ویل کیږي، د امام شافعي او امام احمد رحمة الله علیهما دا مذهب دی چي د غلام نکاح د هغه د بادار د اجازې څخه پرته جائز نه ده او د نکاح څخه وروسته که بادار اجازه ورکړي نو بیا هم هغه عقد نه صحیح کیږي، د امام ابو حنیفة رحمه الله مذهب دادی چي د بادار د اجازې څخه پرته نکاح صحیح کیږي مګر د هغه نافذ کېدل یعني صحیح کېدل د بادار پر اجازه موقوف دی کله چي بادار اجازه ورکړي نو نکاح به صحیح سي لکه څرنګه چي د فضولي د نکاح حکم دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### بالغه د خپل نکاح په اړه خودمختار ده

﴿۳۰۰۲﴾: عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ جَارِيَةً بِكْرًا أَتَتْ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَتْ أَنَّ أَبَاهَا زَوَّجَهَا وَهِيَ كَارِهَةٌ فَخَيَّرَهَا النَّبِيُّ ﷺ. رواه ابوداؤد.

د حضرت ابن عباس رضی الله عنه څخه روایت دی چي یو پېغله انجلۍ د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضره سوه او عرض یې وکړ چي د هغې پلار دا په نکاح ورکړې ده او په دغه نکاح باندي دا راضي نه وه نو نبي کریم ﷺ هغې ته د نکاح د فسخ کولو اختیار ورکړ. (ابو داؤد).

**تخریج**: سنن ابي داود ۲\ ۵۷۶، رقم: ۲۰۹۶.

**تشریح** د دغه حدیث شریف څخه معلومه سوه چي ولي ته دا حق نه سته چي هغه د نکاح په اړه پر ښځه زور وکړي که څه هم هغه باکره وي او ولي پلار، نیکه یا بل څوک قریب وي، دا د حنفیه مذهب دی.

په دغه مسئله کي امام شافعي رحمه الله مخالف دی هغه فرمایي چي کومه ښځه پېغله نه وي که څه هم هغه نابالغه وي نو ولي ته د هغې د نکاح په باره کي پر هغې د زور کولو حق نه سته مګر

كو مه ښځه چي پېغله وي نو دنكاح كولو اختيار ولي ته حاصل دی .

## د بالغي نكاح ولي ته كول مستحب دي

﴿۳۰۰۲﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُزَوِّجُ الْمَرْأَةُ الْمَرْأَةَ وَلَا تُزَوِّجُ الْمَرْأَةُ نَفْسَهَا فَإِنَّ الزَّانِيَةَ هِيَ الَّتِي تُزَوِّجُ نَفْسَهَا . رواه ابن ماجة.

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هيڅ يوه ښځه دي د يوې ښځي نكاح نه كوي او نه دي يوه ښځه په خپل اختيار سره نكاح كوي ځكه چي هره ښځه خپله نكاح كوي هغه زنا كاره ده .(ابن ماجه)

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۱\۶۰۶، رقم: ۱۸۸۲.

**تشريح**: ښځه دي د ښځي نكاح نه كوي، د حنفيه په نزد ددغه منع تعلق يا خو د هغه ښځي سره دی چي هغې ته د ولايت حق حاصل نه وي يا دغه نهي پر تنزيهي باندي محمول ده ، كه څه هم بالغي ته دا اختيار حاصل دی چي هغه خپله نكاح د خپل ولي د اجازې څخه پرته خپله وكړي يا بل څوک خپل وكيل جوړ كړي مگر د هغې لپاره دا مستحب دي چي هغه دخپل نكاح په اړه خپل ولي ته ځان وسپاري كه د يوې ښځي ولي موجود وي نو د هغه ښځي نكاح هغه ته سپارل مستحب دي او دا خبره هم مخكي بيان سوې ده كه د يو چا ولي نه وي نو بيا د هغې ولي قاضي دی .

ددغه حديث شريف خلاصه داده چي غوره او مناسب خبره داده چي د كومي ښځي ولي موجود وي نو بله ښځه دي د هغې نكاح نه كوي بلكه هغه ولي دي د هغې نكاح وكړي او كه چيري ولي نه وي نو بيا قاضي ته دا حق دی چي دهغې نكاح وكړي .

نه دي ښځه په خپله خپل نكاح كوي : د حنفيه په نزد ددغه منع مراد دادی چي هيڅ ښځه دي بېله شاهدانو او غير سيال سره خپله نكاح نه كوي ، او دامام شافعي رحمه الله په نزد مراد دادی چي هيڅ ښځه دي د خپل ولي څخه پرته خپله نكاح نه كوي همدارنگه د حديث د آخري جملې مطلب د حنفيه په نزد دادی چي كو مه ښځه د هغه خاوند سره كوروالي وكړي چي هغې بېله شاهدانو او غير سيال سره نكاح كړې وي نو د هغې كوروالي به د زنا په حكم كي وي ، او د امام شافعي رحمه الله په نزد مطلب دادی چي كو مه ښځه د خپل ولي څخه پرته نكاح وكړي نو هغه چي

كله د خپل خاوند سره كوروالي كوي نو هغه زنا كوي ، د امام شافعي رحمه الله په نزد څرنګه چې يو ښځي ته د بلي ښځي د عقد كولو ولايت حاصل نه دی همدا رنګه هيڅ يو ښځي ته د خپل عقد نكاح كولو اختيار نه سته د شوافع په نزد د ښځو په عقد سره نكاح نه صحيح كيږي .

## پر پلار د اولاد حقوق

﴿۳۰۰۴﴾: وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ وَّابْنِ عَبَّاسٍ قَالَا قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه او ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل :

وَسَلَّمَ مَنْ وُلِدَ لَهُ وَلَدٌ فَلْيُحْسِنِ اسْمَهُ وَأَدَبَهُ فَإِذَا بَلَغَ فَلْيُزَوِّجْهُ فَإِنْ بَلَغَ وَلَمْ يُزَوِّجْهُ فَأَصَابَ إِثْمًا فَإِنَّمَا إِثْمُهُ عَلَى أَبِيْهِ .

د كوم سړي چې بچی پيدا سي نو ښه نوم دي پر كښېږدي او ادب دي ور زده كړي كله چې هغه بالغ سي نو نكاح دي ور وكړي كه د بالغ كېدو سره يې د هغه نكاح و نه كړه او هلك په ګناه كي مبتلا سو نو د هغه ګناه پر پلار ده . (بيهقي) .

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان باب في حقوق الاولاد والاهلين، رقم: ۸۶۶۶.

**تشريح**: د نيكي ټولني حقيقي بنياد هغه نوی ذهن دی چې د خپل مور او پلار او سرپرست د روزني په غېږ كي د اعمالو او كردار بنيادي روزنه ترلاسه كړي ، كه چيري دغه روزنه نه وي نو د كائنات انساني هره طبقه به خطرناكو خرابيو څخه متاثره وي ځكه چې مخته په تللو سره دغه نوی ذهن د ټولني يو فعال جز ګرځي او د هغه يو يو فعل او عمل خپل اثرات پيدا كوي .

په نن زمانه كي د فحاشۍ او بې حيايۍ او د جنسي خواهشاتو تر ټولو لوی سبب دا دی چې كوم نسلونه مخته راځي هغوی د اعمالو او كردار او عقيدې ددغه بنيادي روزني څخه محروم وي كوم چې د مور او پلار په غېږ كي تر لاسه كېدل پكار دي ځكه دا حديث دغه ارزښتناكه نقطې ته خبردار كوي او مور او پلار د خپل فريضې څخه خبروي چې كله د هغوی كوچنی پيدا سي نو مخكي دي د هغه ښه نوم كښيږدي ځكه چې ښه نوم پر ټول ژوند باندي ښه اثرات مرتب كوي بيا چې كله هغه په هوش كي سي نو د هغه تعليم او روزني ته دي توجه وركړي په دې توګه چې هغه ته دي ددين تعليم وركړي ، د اسلامي احكامو او ادبونو څخه دي يې خبر كړي او هغه دي د ژوند د لوړو اصولو او ښو طريقو په غالب كي واچوي چې تر ټولو مخكي د

هغه زړه او د ماغ د نیکۍ او بدۍ امتیاز و پیژني او بیا د هغه کردار د هغه پختګۍ حامل سي چي د ژوند پر هره لاره باندي هغه نیکۍ او خیر ته بوځي.

کله چي د تعلیم او روزني دغه مرحله تېره سي او هغه هلک بالغ سي نو ددې څخه وروسته د مور او پلار لویه فریضه داده چي د هغه هلک واده ته سمدستي متوجه سي چي د مجرد ژوند په وجه د جنسي جذباتو د مغلوبیت ښکار نه سي، ددغه فریضې د ارزښت ښوولو او ددې خبري د تاکید لپاره د زجر او تهدید په توګه دا فرمایل سوي دي ګه یو سړی د خپل بالغ هلک واده ونه کړي او هغه هلک د انجونو د بې لارۍ ښکار سي او په بدیو کي اخته سي نو د هغه ګناه به پر پلار وي په دې باره کي د غلام او مینزي هم دغه حکم دی کوم چي د زوی حکم دی.

## د انجلۍ پر بالغ کېدو باندي د هغې نکاح وکړئ

﴿۳۰۰۵﴾: وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ وَأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ

د حضرت عمر بن خطاب رضی اللہ عنہ او د انس بن مالک رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِي التَّوْرَاةِ مَكْتُوْبٌ مَنْ بَلَغَتِ ابْنَتُهُ اثْنَتَيْ عَشْرَةَ سَنَةً وَلَمْ

وفرمایل: په تورات کي لیکلي دي چي د کوم سړي لور چي د دولسو کلو سوه او هغې ته نکاح

يُزَوِّجْهَا فَأَصَابَتْ إِثْمًا فَإِثْمُ ذٰلِكَ عَلَيْهِ. رواهما البيهقي في "شعب الإيمان"

ور و نه کړي او د هغې څخه ګناه وسوه نو پلار به یې هم پکښې شریک وي. دواړه حدیثونه بیهقي په شعب الایمان کي روایت کړي دي.

**تخریج**: البیهقي في شعب الایمان، رقم: ۸۶۷۰.

=========

# بَابُ اَعْلَانِ النِّكَاحِ وَالْخُطْبَةِ وَالشَّرْطِ

## (د نكاح د اعلان، خطبې او شرط بيان)

د نكاح اعلان كول مسحب دى، فرمايل سوي دي چي د نكاح اعلان كوئ كه څه هم د دريا په وهلو سره وي، د دريا وهلو په اړه د علماؤ اختلافي اقوال دي ځيني حضرات وايي چي دريا وهل حرام دي يا مكروه دي او ځيني ورته مطلق مباح ويلي دي، صحيح خبره داده چي پر ځينو موقعو باندي لكه د اختر په ورځ، د يو معزز مسافر او ميلمه د راتلو پر وخت او دنكاح په وخت كي د دريا وهل مباح دي. او ددې څخه پرته په بل هيڅ وخت او موقع باندي دريا وهل روا نه دي

خطبة: علماء كرام وايي چي دغه لفظ د خ په پېښ سره صحيح دى او د خاء په زېر سره يې هم صحيح ورته ويلي دي، په دواړو كي فرق دادى چي د خُطبه معنى د نكاح د پيغام ليږلو هم كيداى سي مگر صحيح خبره داده چي دلته د خطبې څخه مراد هغه خطبه ده كوم چي دنكاح پر وخت ويل كيږي.

د حنفيه په نزد د نكاح پر وخت خطبه ويل سنت ده او د شوافع په نزد هم سنت ده مگر د هغوى په نزد يوازي د عقد نكاح په وخت كي نه بلكه دهر عقد په وخت كي مثلا شراء، بيع او داسي نورو كي هم خطبه ويل سنت ده.

## د واده مراسم او بدعتونه

د شرط څخه مراد هغه شرطونه دي كوم چي په نكاح كي ذكر كيږي كه هغه فاسده وي يا صحيحه وي.

دا د مسلمانانو بدبختي ده چي د نكاح په ډول پاكه معامله هم د كافرانو د ناپاكه مراسمو او رواجونو څخه خوندي نه ده بلكه حقيقت دادى چي ددغه هيواد غير شرعي مراسم چي په كوم كثرت سره د مسلمانانو د واده په اړه رواج سوي دي نو هغه د نكاح اسلامي او سنت طريقه بالكل له منځه وړې ده او اوس چي څومره مراسم رواج دي يا مخكي رواج وه د هغه ټولو احاطه كول هم ناممكن سوي دي بيا هم دلته ضروري ده چي د يو مراسمو او بدعتونو ذكر وكړل سي چي د هغو څخه د ساتني هڅه وكړل سي.

حرام سازونه او د مزامير استعمال، غزلي ويل، او داسي نور ناروا كارونه كوي او د كور په اړه غير معمولي او د اسراف تر حد پوري ښائسته كول لكه دېوالونه په ټوكرانو پوښل، پر

آس سپرلي کول، د ورا په وړلو سره بېله ضرورته په ښار کي ګرځېدل ، زوم د ښار او کلي ځخه زيارتو ته بېول او هلته نذرانه ورکول او بيا په ورا کي ګډون کول د ډول او سورنا سره او د ښځو په محفل کي ګډون کول ، د اور د لوبي په ذريعه خپل مال ضائع کول دغه ټول شيان خراب او حرام دي .

همدارنګه هغه شيان هم حرام دي کوم چي د نکاح په مجلس کي مستور شيان ښکاره کول د زوم پر ريښمين ځاي باندي کښېنول، د سرو او سپينو زرو په لوښو کي خوراک کول د زوم او د خسرګنۍ د حد ځخه زيات تعريف او توصيف کول او د هغوی په بې ځايه خدمت کي داسي خبري بيانول چي هغه بالکل درواغ وي .

همدارنګه دغه شيان هم حرام دي چي زوم ريښميني جامې واغوندي (د ريښمينو جامو اغوستل د واده ځخه پرته هم د نارينوو لپاره حرام دي)، د زوم د سر ځخه د لنګۍ ايستل کول او د ناوي پر سر اېښودل ، د ناوي او زوم شاوخوا اووه واره ګرځېدل ، د پرديو ښځو لپاره زوم ته راتلل او هغه ته لاس ورکول يا د هغه پزه او غوږ نېول او د هغه سره دبې حيايۍ خبري کول ، د زوم ګوتمی د شېدو په ذريعه په ښځه پرېولل ، په زوم باندي بوره او شېدې څېښل او د مصريو کند د ناوي پر سر اېښودل او زوم ته ويل چي دا په خوله پورته کړه ، او کله چي ناوې او زوم يو ځاي سي نو د ښځو د هغوی ځخه چاپېره کېدل دا ټول شيان بدعت او حرام دي چي د شريعت او سنت سره هيځ تعلق نه لري او د دغه کارو ځخه ځان ساتل ډېر ضروري دي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د نکاح پر وخت درياوهل جائز ده

﴿۳۰۰۶﴾ : عَنِ الرُّبَيِّعِ بِنْتِ مُعَوِّذِ بْنِ عَفْرَاءَ قَالَتْ جَاءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د بي بي ربيع رضي الله عنها بنت معوذ بن عفراء ځخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ په هغه زمانه کي چي

وَسَلَّمَ فَدَخَلَ حِينَ بُنِيَ عَلَيَّ فَجَلَسَ عَلَى فِرَاشِي كَمَجْلِسِكَ مِنِّي فَجَعَلَتْ

زه د خپل خاوند کور ته د نکاح وروسته راغلم زموږ کور ته تشريف راوړ او زما پر بستره داسي کښيناستی لکه ځرنګه چي ته زما پر بستره ناست يې (دا خبره ربيع و حضرت خالد بن

جُوَيْرِيَاتٌ لَنَا يَضْرِبْنَ بِالدُّفِّ وَيَنْدُبْنَ مَنْ قُتِلَ مِنْ آبَائِي يَوْمَ بَدْرٍ إِذْ قَالَتْ

ذکوان ته وکړه) په کور کي چي کومي انجوني موجودي وی هغوی دریې وهلې او زموږ په مشرانو کي چي کوم خلک د بدر په غزا کي شهیدان سوی وو د هغوی ښه والي یې بیانول پیل

إِحْدَاهُنَّ وَفِينَا نَبِيٌّ يَعْلَمُ مَا فِي غَدٍ فَقَالَ دَعِي هَذِهِ وَقُولِي بِالَّذِي كُنْتِ تَقُولِينَ . رواه البخاري

کړل په هغوی کي یوې انجلۍ دا هم وویل: چي په موږ کي داسي نبي دی چي د سبا خبره ورته معلومه ده . د دې په اورېدو سره نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل: دا خبره پرېږده هغه څه وایه چي وړاندي دي ویل .(بخاري).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\۲۰۲، رقم: ۵۱۴۷.

**تشريح**: عفراء د حضرت معوذ رضي الله عنه د مور نوم دی ، حضرت معوذ رضي الله عنه د لوړي مرتبې صحابي دی چي د بدر په غزا کي د حق د جنډې د جنګ په ډګر کي پورته کولو سره یې د شهادت جام تر لاسه کړئ او د اسلام په تاریخ کي د هغه عظیم شخصیت دی چي د خپل ورور معاذ رضي الله عنه په ملګرتیا کي یې د بدر په غزا کي ابوجهل لعین قتل کړی وو .

د کوچنیو انجو څخه د انصارو هغه کوچنۍ انجوني مراد دي چي کم عمره وي او د بلوغ حد ته رسیدلي نه وي .

اکمل الدین رحمة الله علیه وایي چي دا حدیث ددې دلیل دی چي د نکاح پر وخت او د واده د شپې تېرولو د اعلان لپاره دریا وهل جائز دي، او بیا ځیني علماء په دغه جواز کي ختنه (سنت کېدل)، اخترونه او د مسافر د راتګ او د خوشحالي په مراسمو کي د دوستانو اجتماع او ملګرتیا هم شامله کړې ده یعني د نکاح په ډول په دغه صورتو کي هم د دریا وهل جائز دي مګر دا خبره دي په ذهن کي وي چي د دریا څخه مراد هغه دریا ده چي د هغې سره شرنګ کونکي شیان نه وي ځکه چي د شرنګ لرونکي دریا وهل په اتفاق سره مکروه دي .

د حدیث د آخري جملې مطلب دادی چي هغه وخت کوچنیو انجونو د خپلو پلرونو او نیکونو د میړانې کارنامي او د حق په لاره کي د هغوی د قربان کېدو د شجاعت سندري ویلې نو په دغه وخت کي یوې کوچنۍ انجلۍ چي د عقائدو د نازکو اړخونو څخه ناخبره وه د رسول الله ﷺ په صفت کي دا وویل چي زموږ په مینځ کي هغه نبي موجود دی چي هغه په دې پوهیږي چي په سبا ورځ کي به څه کیږي، ددې په اورېدو سره رسول الله ﷺ هغه ددې څخه منع کړه ځکه په

دې کي رسول الله ﷺ ته د علم غيب نسبت وو او څرګنده ده چي رسول الله ﷺ دا څرنګه زغملای سي ځکه چي د عقائدو واضحه مسئله ده چي د غيب په خبرو د الله تعالی څخه پرته بل هيڅوک نه پوهيږي، مګر دا بېله خبره ده چي د غيب کومي خبري الله تعالی خپلو رسولانو ته منکشف کوي دغه حديث شريف ددې دليل هم دی چي په کومو اشعارو کي د شريعت او عقائدو خلاف خبره نه وي او فحش او درواغ پکښي شامل نه وي نو دهغو ويل او اورېدل جائز دي.

﴿۳۰۰۷﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ زَفَّتْ امْرَأَةً إِلَى رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ فَقَالَ نَبِيُّ اللَّهِ ﷺ مَا كَانَ مَعَكُمْ لَهْوٌ فَإِنَّ الْأَنْصَارَ يُعْجِبُهُمُ اللَّهْوُ. رواه البخاري

د بي بي عائشي ﷝ څخه روايت دی چي په انصارو کي د يوه سړي نکاح د يوې ښځي سره وسوه نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل: چي ستاسو سره لوبه ( دريې او غزلي ويل) نسته د انصارو خو غزلي ويل خوښ دي. (بخاري)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\۲۲۵، رقم: ۵۱۶۲.

## د شوال په مياشت کي نکاح کول مستحب دي

﴿۳۰۰۸﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ تَزَوَّجَنِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي شَوَّالٍ وَبَنَى بِي فِي شَوَّالٍ فَأَيُّ نِسَاءِ رَسُولِ اللَّهِ ﷺ كَانَ أَحْظَى عِنْدَهُ مِنِّي. رواه مسلم

د بي بي عائشي ﷝ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ زما سره په شوال کي نکاح وکړه او درې کاله وروسته په شوال کي يې زه کور ته را وستم بيا د رسول الله ﷺ په بي بي ګانو کي زما څخه زياته خوش نصيبه څوک ده (يعني د دوو اخترو په مينځ کي واده کول بايد بد ونه ګڼل سي). مسلم

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\۱۰۳۹، رقم: ۷۳- ۱۴۲۳.

**تشريح** ددغه حديث شريف څخه معلومه سوه چي ځيني جاهل خلک د **شوال په مياشت کي** واده کول منحوس ګڼي دا بالکل غلطه خبره ده بلکه په دغه مياشت کي واده کول يا دناوي خپل کور ته راوستل مستحب دي ، په عربو کي هم د جاهليت د زمانې د خلکو دا **عقيده وه چي** د شوال په مياشت کي نکاح کول او دناوي کور ته راوستل به يې بد ګڼل. ددغه **غلطي عقيدې** په رد کي بي بي عائشي ﷝ دا خبره وکړه که چيري د شوال په مياشت کي په واده کولو کي منحوس

والی وای نو زما واده زما په اړه منحوس ولي نه سو حال دا چي د شوال په میاشت کي زما نکاح وسوه او د شوال په میاشت کي زه په رخصتركيدو سره د رسول الله ﷺ کور ته راغلم او په دې خبره هر څوک خبر دي چي د رسول الله ﷺ په بیبیانو مبارکانو کي کومه خوشبختي او مینه چي دبي بي عائشې ﷺ په برخه سول هغه بل هیڅ بي بي ته حاصله نه وه .

## د مهر ادا کولو تاکید

﴿۳۰۰۹﴾: وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحَقُّ الشُّرُوطِ أَنْ تُوفُوا بِهِ مَا اسْتَحْلَلْتُمْ بِهِ الْفُرُوجَ . متفق علیه

د حضرت عقبه بن عامر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : په هغه شرطونو کي چي د هغې پوره کول ډېر ضروري دی یو شرط دادي چي د هغې په ذریعه تاسو د ځان لپاره د ښځو شرمګاوي حلال کړي دي (یعني مهر ولور) . (بخاري)

**تخریج**: البخاري في الصحیح (فتح الباري): ۹\ ۲۱۷، رقم: ۵۱۵۱، ومسلم ۲\ ۱۰۳۵، رقم: ۶۳ – ۱۴۱۸.

**تشریح** تر ټولو مهم شرط څخه مراد د هغې مهر دی او یا د ښځي ټول هغه حقوق مراد دي کوم چي د خاوند پر ذمه وي، دحدیث خلاصه داده چي تاسو د خپلو ښځو مهر ادا کوئ د هغو د خوراک او څښاک مصرف ورکوئ هغو ته د اوسیدو لپاره سرای او دژوند نور ضروریات د خپل توان سره سم پوره کوئ ، او د هغوی سره خپل ژوند داسي د ښه چلن او میني محبت په اندازه سره تېروی کوم چي د یو باوقار او شریف انسان د شان سره سم وي .

اوس پاته سوه دا خبره چي دغه شیانو ته شرط ولي ویل سوي دي نو ددې واقعه داسي ده چي کله یو سړی د یو ښځي سره نکاح کوي نو د هغه د ذهن او تصور په هر اړخ کي دا قصد وي چي هغه کومه ښځه د خپل بي بي په جوړولو سره خپل کور ته راولي نو د هغې د ټولو حقوقو ادا کول به په پوره توګه سره کوي او بیا هغه د هغې حقوق د ادا کولو التزام هم کوي نو د هغه دغه قصد او بیا د هغه التزام پر دې خبره دلالت کوي چي هغه ددغه حقوقو د ادا کولو شرط کړی دی .

## د بل منسوبې ښځي ته پیغام مه استوئ

﴿۳۰۱۰﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَخْطُبُ الرَّجُلُ عَلَى خِطْبَةِ أَخِيهِ حَتَّى يَنْكِحَ أَوْ يَتْرُكَ . متفق علیه.

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: هیڅوک دي د بل سړی د نکاح پر پیغام خپل پیغام نه ورکوي تر څو پوري چي هغه نکاح و نه کړي یا یې د نکاح خیال پر مخ نه وي پرېښې. (بخاري او مسلم)

**تخریج**: البخاري في الصحیح (فتح الباري): ۹\۱۹۹، رقم: ۵۱۴۴، ومسلم ۲\۱۰۳۳، رقم: ۵۲- ۱۴۱۳.

**تشریح** د یو چا منسوبې ته د نکاح د پیغام استولو منع په هغه صورت کي ده کله چي د هغه دواړو د واده معامله تقریبا فیصله سوې وي یعني انجلۍ او هلک دواړه راضي سوي وي او مهر تاکل سوی وي نو په دغه صورت کي بل چا ته جائز نه دي چي هغه د خپل ځان لپاره دنکاح پیغام ور واستوي او که بل څوک ددغه ممانعت سربېره د یو چا منسوبې ته د نکاح پیغام واستوي او د هغه اول سړي د اجازې څخه پرته نکاح وکړي نو دغه نکاح خو صحیح کیږي مگر دغه دوهم سړی (د اول سړي د منسوبې سره یې نکاح کړې ده) گناه کار به وي.

## ښځه دي د خپل خواهش پوره کولو لپاره د بلي ښځي د طلاق سبب نه جوړیږي

﴿۳۰۱۱﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَسْأَلُ الْمَرْأَةُ طَلَاقَ أُخْتِهَا لِتَسْتَفْرِغَ صَحْفَتَهَا وَلْتَنْكِحْ فَإِنَّ لَهَا مَا قُدِّرَ لَهَا. متفق عليه.

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: هیڅ یوه ښځه دي د خپل (دیني) خور د طلاق خواهش نه کوي چي د هغې پیاله خالي کړي (یعني هغه بې. خاونده کړي) او په خپله د هغې د خاوند سره نکاح وکړي ځکه څه چي د هغې لپاره تاکل سوي دي د هغې لپاره دي. بخاري او مسلم.

**تخریج**: البخاري في الصحیح (فتح الباري): ۱۱\۴۹۴، رقم: ٦٦٠١، ومسلم ۲\۱۰۳۳، رقم: ۵۲- ۱۴۱۲.

**د لغاتو حل**: صحفتها: اناء کالقصعة المبسوطة. (لکه کاسه یو لوښی).

**تشریح** د مثال په توگه زید واده کړی دی او خالده د هغه د ښځي نوم دی اوس زید د یو بلي ښځي مثلا زهره سره هم واده کول غواړي مگر زهره وایي چي زه ستا سره واده کوم مگر ته به خپلي ښځي خالدې ته طلاق ورکړې یا دا صورت وي چي زید دوه ودونه کړي دي چي د یوې نوم خالده او د بلي نوم زهره دی اوس زهره خپل خاوند زید ته وایي چي خپل دوهمي ښځي خالدې ته طلاق ورکړه، ددې څخه رسول الله ﷺ منع فرمایلې ده چي هیڅ ښځه دي د دوهمي ښځي د طلاق لپاره خپل سړي ته نه وایي ځکه چي خپل خپل تقدیر د هري یوې سره دی نو د

دوهمي د بد غوښتني به څه ګټه وي.

د حديث په وضاحت کي که د اول صورت اعتبار وکړل سي نو د (لتنکح) معنی به هغه وي کوم چي په ژباړه کي تېره سوې ده او که چيري دوهم صورت مراد واخيستل سي نو بيا ددغه جملې معنی به دا وي چي (د هغه ښځي د طلاق ورکولو مقصد به دا وي) د هغه ښځه د بل چا سره نکاح وکړي.

## د شغار (موخی) منع

﴿۳۰۱۲﴾: وَعَنْ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ

نَهَى عَنِ الشِّغَارِ وَالشِّغَارُ أَنْ يُزَوِّجَ الرَّجُلُ ابْنَتَهُ عَلَى أَنْ يُزَوِّجَهُ الْآخَرُ

د شغار څخه منعه فرمايلې ده او شغار دادي چي يو سړی د خپلي لور نکاح د يو چا سره په دې

ابْنَتَهُ لَيْسَ بَيْنَهُمَا صَدَاقٌ . متفق عليه و في رواية لمسلم قَالَ لَا شِغَارَ فِي الْإِسْلَامِ

شرط وکړي چي هغه به د خپلي لور نکاح د ده سره کوي او په دواړو کي به هيڅ مهر نه وي. (بخاري او مسلم) او د مسلم په يو بل روايت کي دي چي په اسلام کي شغار جائز نه دی.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\۱۶۲، رقم: ۵۱۱۲، ومسلم ۲\۱۰۳۵، رقم: ۶۰ - ۱۴۱۵.

**تشريح**: شغار (مُوخی) د دوو کسانو په مينځ کي د يو بل د لور سره د نکاح کولو د يو خاص صورت نوم دی لکه زيد د خپل لور نکاح د بکر سره په دې شرط وکړي چي هغه به د خپل لور نکاح د زيد سره کوي او د دوی دواړو په نکاح کي مهر نه وي بلکه د هغه دواړو په مينځ کي د يو بل د لور تبادله مهر وي، دا ډول نکاح د جاهليت په زمانه کي خلکو کول مګر اسلام ددې څخه منع فرمايلې ده.

په دې باره کي فقهي اختلاف دادی چي د امام شافعي رحمه الله په نزد داسي نکاح بالکل نه صحيح کيږي او د امام ابو حنيفة رحمه الله مذهب دادی که يو سړی داسي نکاح وکړي نو هغه نکاح صحيح کيږي مګر مهر مثل ورکول به لازم وي مګر حکم دادی چي ددا سي نکاح کولو څخه ځان ساتل پکار دي.

## د متعه منع

﴿۳۰۱۳﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنْ مُتْعَةِ النِّسَاءِ يَوْمَ خَيْبَرَ وَعَنْ أَكْلِ لُحُومِ الْحُمُرِ الْإِنْسِيَّةِ. متفق عليه.

: حضرت علي ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ د خيبر په ورځ د ښځو سره د متعه (عارضي نکاح) کولو څخه او د کورو د خرو د غوښو خوړلو څخه منعه کړې ده. (بخاري او مسلم)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۷\۴۸۱، رقم: ۴۲۱۶، ومسلم ۱۲\۱۰۲۷، رقم: ۲۹-۱۴۰۷.

**تشريح** تر يو ټاکلي وخت پورې د ټاکلو روپو په عوض کې نکاح کولو ته متعه وايي، د مثال په توګه يو سړی د يو ښځې سره داسې نکاح وکړي چې زه به تر فلاني وخت پورې د دومره روپو په عوض کې ستا څخه ګټه اخلم، د نکاح دغه خاص طريقه يعني متعه د اسلام په شروع کې جائز وه مګر وروسته حرامه وګرځول سوه.

علماء کرام وايي چې د متعه په باره کې تحقيقي خبره داده چې متعه دوه واره حلاله ګرځول سوې ده او دوه واره حرامه ګرځول سوې ده، په اول وار د خيبر د جنګ څخه مخکې په يو جهاد کې چې صحابه کرام د مجردوالي (نه واده کېدو) په وجه سخت پرېشانه سول تر دې چې ځينو کسانو د رسول الله ﷺ څخه د خصي کېدو اجازه وغوښتل نو رسول الله ﷺ د دوی لپاره متعه حلاله وګرځول د دې څخه وروسته د خيبر د جنګ په ورځ په اووم هجري کال کې رسول الله ﷺ متعه حرامه وګرځول او د دې څخه وروسته د مکې د فتح په ورځ په اتم هجري کال کې متعه جائز وګرځول سوه او بيا د هغه څخه وروسته د همېشه لپاره حرامه سوه، د متعې د جواز فسخ کېدل د صحيح حديثو څخه ثابت دي.

حضرت ابن عمر ﷺ په خپل روايت کې دا ذکر کړي دي لکه څرنګه چې د اضطرار په حالت کې د مردار حيوان غوښه خوړلو اجازه وي همدارنګه د اسلام د شروع په زمانه کې د هغه چا لپاره چې د مجردوالي په وجه د جنسي خواهش په وجه د اضطرار حالت ته رسېدلی وي دا اجازه وه چې هغه متعه وکړي مګر وروسته د همېشه لپاره حرامه سوه، د صحابه کرامو په اجتماعي توګه دا فيصله وکړه چې د متعه کومه نکاح سوې ده هغه دې باطل وګرځول سي.

ځکه نو په هره زمانه کې د ټولو اهل اسلام پر دې خبره اجماع او اتفاق دی چې متعه حرامه ده، د ټولو صحابه کرامو، فقهاؤ او محدثينو په نزد د متعې حرام کېدل يو اتفاقي مسئله ده، په

صحابه كرامو كي يو اي ابن عباس ﷺ مخكي د اضطرار په حالت كي متعه مباح ګڼل مګر كله
چي حضرت علي ﷺ هغه ته سخت تهديد وركړ او د متعې په ابدي حرمت يې هغه خبر كړ نو ابن
عباس ﷺ د خپل قول څخه رجوع وكړه او هغه هم د حرمت قائل سو، د ابن عباس ﷺ د خپل
مباحت د قول څخه رجوع كول د حديث او فقه په كتابو كي ذكر سوي دي.

هدايه چي د حنفي فقهي يو مشهور او د لوړي درجې كتاب دي د دې مصنف د خپل علم،
فضل او فقهي د بصيرت په اعتبار د فقهاؤ په ډله كي تر ټولو د لوړي درجې خاوند دی مګر د
متعه په اړه د هغه امام مالک رحمة الله عليه ته د متعې د جواز چي كوم نسبت كړی دی دا د هغه سخته
علمي خطا ده، معلومه نه ده چي هغه دا خبره د كوم ځای څخه ليكلې ده چي امام مالک رحمة الله عليه د
متعې د جائز كېدو قائل وو، حالانكه امام مالک رحمة الله عليه هم متعه داسي حرامه ګڼي لكه څرنګه
چي د ټولو اهل اسلام پر دې اتفاق دی، نه يوازي ابن همام رحمة الله عليه په هدايه كي امام مالک
رحمة الله عليه ته د جواز د نسبت قول ته غلط ويلي دي بلكه د هدايه څخه وروسته د فقهي چي څومره
لوی لوی كتابونه تاليف سويي دي تقريبا ټولو د هدايه د غه غلطي بيانول لازم ګڼلي دي.

## د متعې په باره كي د شيعه ګانو مذهب

لكه څرنګه چي مخكي تېر سول چي د ټولو مسلمانانو پر دې اجماع او اتفاق دی چي متعه
حرامه ده مګر معلومه نه ده چي شيعه ګان ولي اوس هم دا جائز ګڼي، ډېره عجيبه خبره خو داده
چي د شيعه ګانو په كتابو كي د دوی په صحيح حديثو كي د امامانو څخه د متعې حرمت نقل
سوی دی مګر د شيعه ګانو عمل دادی چي هغوی نه يوازي د متعې پر حلال كېدو باندي ټينګار
كوي بلكه د هغه فضائل هم بيانوي او بيا دا هم وايي چي متعه په اصل كي حضرت عمر ﷺ
حرامه كړې ده حالانكه دا بالكل غلطه خبره ده، حضرت عمر ﷺ ته د حرامولو څه اختيار وو
مګر دا خبره ضروري ده لكه څرنګه چي هغه د نورو اسلامي احكامو په تبليغ كي په ډېره سختي
سره برخه اخستې ده همدارنګه هغه د متعې د حرمت په اعلان كي هم په ډېره سختي سره هڅه
كړې ده د هغه آخري اعلان دا وو كه چيري ما واورېدل چي يو چا متعه كړې ده نو زه به هغه ته د
زنا سزا وركړم د هغه د دغه اعلان نتيجه دا سوه چي كوم خلک تر اوسه د متعې د حرمت څخه
ناخبر وه هغوی هم خبر سول، حضرت عمر ﷺ يوازي دومره وكړل چي د رسول الله ﷺ د يو حكم
تبليغ يې وكړ اوس كه شيعه ګان دا وايي چي متعه حضرت عمر ﷺ حرامه كړې ده نو د دې به د
يو خندا كونكي الزام څخه زيات نور هيڅ اهميت ونه لري.

﴿۳۰۱۴﴾: وَعَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْاَكْوَعِ قَالَ رَخَّصَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ أَوْطَاسٍ فِي الْمُتْعَةِ ثَلَاثًا ثُمَّ نَهَى عَنْهَا .رواه مسلم .

د سلمه بن اکوع رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د جنګ اوطاس په کال یوازي د درو ورځو لپاره د متعي (عارضي نکاح) اجازت ورکړی وو بیا يې منعه ځیني وفرمایل. (مسلم).

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\۱۰۲۳، رقم: ۱۸- ۱۴۰۵.

**تشريح** اوطاس د یوې شېلې نوم دی چي مکې مکرمې ته نژدې طائف ته په لاره کي واقع ده او د هغه شاوخوا د هوازن قبیلې ښاخونه اباد وه او دې ته وادي حنین هم وایي .

د هجرت په اتم کال د رمضان المبارک په میاشت کي کله چي مکه مکرمه فتحه سوه او ټولو عربو باطل عناصرو د حق په مخکي کي خپل سر کښته کړی نو په اوطاس کي اوسیدونکي د هوازن او ثقیف قبیلو ته ډېر غیرت راغلی او هغوی په پوره تیاري سره د اسلام مقابله کول وغوښتل، د هجرت په اتم کال د شوال په میاشت کي ددغه قبیلو د خلکو سره په اوطاس کي د رسول الله ﷺ په قیادت کي کي هغه جګړه وسوه چي غزوه حنین ورته ویل کیږئ او د غزوه اوطاس او غزون هوازن په نامه هم یادیږي، الله تعالی حق لوړ کړ او اسلامي لښکر ته یې فتح ورکړه په دغه غزا کي د غنیمت په توګه د مسلمانانو په لاس ډېر مال او سامان ورغلی ، شلو ښت زره اوښان، شلو ښت زره پسونه او تقریبا د شلو ښت زرو روپو سامان د مسلمانانو په لاس ورغلی او رسول الله ﷺ دغه ټول مال د اوطاس په مسلمانانو کي وویشی .

په هر حال د متعې حلال کېدل او حرام کېدل دوهم وار د اوطاس د جنګ په وخت کي سوی دی او دغه جنګ د مکې د فتح څخه سمدستي وروسته سوی دی ځکه په دغه وخت کي د متعې د تحلیل او تحریم نسبت د مکې د فتح ورځي ته منسوب سوی دی یعني ددې څخه مخکي د حدیث په تشریح کي دا بیان سوی دی چي د متعې تحلیل او تحریم دوهم وار د مکې د فتح په ورځ سوی دی او هلته د مکې د فتح د ورځي څخه مراد د مکې د فتح کال دی نو اوس به دا خبره داسي وي چي په دوهم وار د متعې د تحلیل او تحریم حکم د مکې د فتح په کال یعني په اتم هجري کال کي د اوطاس د جنګ په وخت کي سوی دی .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د نکاح خطبه

﴿۳۰۱۵﴾: عَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ عَلَّمَنَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ موږ ته را وښودی

اَلتَّشَهُّدُ فِي الصَّلٰوةِ وَالتَّشَهُّدُ فِي الْحَاجَةِ قَالَ اَلتَّشَهُّدُ فِي الصَّلٰوةِ التَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ

د لمونځ کولو تشهد او د حاجت او ضرورت په وخت کي تشهد په لمانځه کي خو د تشهد لوستل دادي : التحيات لله

وَالصَّلَوَاتُ وَالطَّيِّبَاتُ السَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ السَّلَامُ

والصلوة والطيبات السلام عليک ايهاالنبي ورحمة الله وبرکاته السلام

عَلَيْنَا وَعَلَى عِبَادِ اللهِ الصَّالِحِينَ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا

علينا وعلى عباد الله الصالحين اشهد ان لا اله الا الله و اشهد ان محمدا

عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ وَالتَّشَهُّدُ فِي الْحَاجَةِ اَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ نَسْتَعِينُهُ وَنَسْتَغْفِرُهُ

عبده ورسوله او د حاجت په وخت کي تشهد دادي : الحمدلله نستعينه و نستغفره

وَنَعُوذُ بِاللّٰهِ مِنْ شُرُورِ أَنْفُسِنَا مَنْ يَهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهُ وَمَنْ يُضْلِلْ فَلَا

و نعوذ بالله من شرور انفسنا من يهده الله فلا مضل له و من يضلله فلا

هَادِيَ لَهُ وَأَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ ثُمَّ يَقْرَأُ

هادي له و اشهد ان لا اله الا الله واشهد ان محمدا عبده ورسوله او د دې څخه وروسته به نبي

ثَلَاثَ آيَاتٍ { يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللهَ حَقَّ تُقَاتِهِ وَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنْتُمْ

کريم ﷺ دا درې آياتونه لوستل : ( ياايهاالذين امنوا اتقوالله حق تقاته و لا تموتن الا و انتم

مُسْلِمُونَ} {يَا أَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ
مسلمون ، يا ايها الناس اتقوا ربكم الذي خلقكم من نفس واحدة
وَخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيرًا وَنِسَاءً وَاتَّقُوا اللَّهَ الَّذِي
و خلق منها زوجها و بث منهما رجالا كثيرا ونساءا واتقوا الله الذي
تَسَاءَلُونَ بِهِ وَالْأَرْحَامَ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيبًا} {يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا
تساء لون به و الارحام ان الله كان عليكم رقيبا ، يا ايهاالذين امنوا
اتَّقُوا اللَّهَ وَقُولُوا قَوْلًا سَدِيدًا يُصْلِحْ لَكُمْ أَعْمَالَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَمَنْ
اتقواالله وقولو قولا سديدا يصلح لكم اعمالكم ويغفرلكم ذنوبكم و من
يُطِعْ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ فَازَ فَوْزًا عَظِيمًا} . رواه احمد والترمذي وابوداؤد
أيطع الله ورسوله فقد فاز فوزا عظيما).(احمد ترمذي ابو داؤد
والنسائي وابن ماجة والدارمي و في جامع الترمذي فسر الايات الثلث
نسائي، ابن ماجه او دارمي ) او په جامع ترمذي کي د درو اياتو تفسير
سفيان الثوري و زاد ابن ماجة بعد قوله ان الحمد لله نحمده و بعد قوله
سفيان ثوري وکړ ابن ماجه په خپل روايت کي : ان الحمد لله څخه وروسته د نحمده : لفظ
من شرور انفسنا ومن سيئات اعمالنا والدارمي بعد قوله عظيما ثم
زيات کړی دي او من شرور انفسنا څخه وروسته يې و من سيئات اعمالنا الفاظ زيات کړی
دی او دارمي عظيما څخه وروسته ليکلي دي چي
يتكلم بحاجته و روى في شرح السنة عن ابن مسعود في خطبة الحاجة
من النكاح وغيره .

د دې څخه وروسته دي د خپل حاجت بيان وکړي او په شرح السنة کي د ابن مسعود څخه دا تشهد د نکاح په خطبه کي نقل سوی دی .

**تخريج**: احمد في المسند ١\ ٣٩٢، و ابوداود في السنن ٢\ ٥٩١، رقم: ٢١١٨، والترمذي في السنن ٣\ ٤١٣، رقم: ١١٠٥، والنسائي ٦\ ٨٩، رقم: ٣٢٧٧، وابن ماجه في السنن ١\ ٦٠٩، رقم: ١٨٩٢، والدارمي ٢\ ١٩١، رقم: ٢٢٠٢، وشرح السنة ٩\ ٤٩– ٥٠، رقم: ٢٢٦٨.

**تشريح**: د تشهد معنی ده د ايمان د شاهدۍ اظهار کول او زين العرب ويلي دي چي دلته د تشهد څخه مراد دادی چي په هغه کي دالله تعالی تعريف او د دواړو کلمو شهادت ذکر وي.
د حاجت او ضرورت څخه مراد نکاح ده ا و دحاجت او ضرورت پر وخت د ويونکي تشهد څخه مراد هغه خطبه ده چي د نکاح په وخت کي ويل کيږي ، دا خبره مخکي بيان سوې ده چي د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد يوازي په نکاح نه بلکه په ټولو عقدو کي خطبه ويل سنت ده .
په روايت کي چي دوهم آيت نقل سوی دی په هغه کي د (يا ايها الذين آمنوا) الفاظ هم دي او دغه آيت د مشکوة شريف په ټولو نسخو کي همداسي نقل سوی دی حالنکه په قرآن کريم کي دغه آيت داسي نه دی بلکه دا په اصل کي د سورة نساء د اول آيت يوه ټوټه ده چي :

وَاتَّقُواْ اللّهَ الَّذِي تَسَاءلُونَ بِهِ وَالأَرْحَامَ إِنَّ اللّهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيبًا،

کېدای سي چي د قرآن کريم کوم مصحف چي د ابن مسعود رضي الله عنه سره وو په هغه کي دغه آيت همداسي وي .د حصن حصين څخه دا مفهوم اخيستل کيږي چي ابو داؤد په ذکر سوي خطبه کي د (و رسوله) د لفظ څخه وروسته دا لفاظ هم نقل کړي: (ارسله بالحق بشيرا ونذيرا بين يدي الساعة من يطع الله ورسوله فقد رشد و من يعصهما فلا يضر الا نفسه ولا يضر الله شيئا) .
کوم څوک چي د عقد کولو لپاره کښيني نو هغه دي مخکي دغه خطبه ووايي او ددې څخه وروسته دي ايجاب او قبول وکړي ، په ايجاب او قبول کي د هغه ټولو خبرو لحاظ دي وساتي کوم چي ضروري دي او د هغه ذکر په کتاب النکاح کي سوی دی .

## د خطبې پرته نکاح بې برکته وي

﴿۳۰۱۶﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّ

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل :

خُطْبَةٍ لَيْسَ فِيهَا تَشَهُّدٌ فَهِيَ كَالْيَدِ الْجَذْمَاءِ . رواه الترمذي وقال هذا

حديث حسن غريب .

په کومه نکاح کي چي خطبه (يعني د خداي تعالي حمد وثنا) و نه ويل سي هغه داسي نکاح ده لکه پرېکړې لاس. (يعني بيکاره). (ترمذي کي دا حديث حسن غريب گڼل سوی دی) .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\ ۴۱۴، رقم: ۱۱۰۶.

**د لغاتو حل**: الجَذماء: اى المقطوعة.

**تشريح**: مطلب دادی چي څرنگه پرې کړی لاس بې گټي وي چي د هغه څخه گټه نه سي اخيستل کيدای همدارنگه د خطبې څخه پرته نکاح هم بې گټي ده چي د خير او برکت څخه خالي وي.
ملا علي قاري رحمة الله عليه په خپل تشريح کي لفظ د خطبه د خ په زېر سره ليکلی دی او د دې معنی يې د تزويج يعني د نکاح کولو بيان کړې ده حال دا چي مولانا شاه اسحاق دهلوي رحمة الله عليه ويلي دي چي موږ د خپلو استاذانو څخه دغه لفظ د خ په پېښ سره يعني خُطبه اوريدلی دی او د شيخ عبدالحق دهلوي رحمة الله عليه د کلام څخه هم دا فهمول کيږي .

﴿۳۰۱۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّ أَمْرٍ ذِي بَالٍ لَا يُبْدَأُ فِيهِ بِالْحَمْدِ فَهُوَ أَقْطَعُ . رواه ابن ماجة.

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کوم مهم او شانداره کار چي د الله جل جلاله د حمد او ثنا څخه پرته پيل سي هغه کار بې برکته دی .(ابن ماجه)

**تخريج**: ابن ماجه في السنن ۱\ ۶۱۰، رقم: ۱۸۹۴.

## د نکاح اعلان کول مستحب دی

﴿۳۰۱۸﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْلِنُوا هَذَا النِّكَاحَ وَاجْعَلُوهُ فِي الْمَسَاجِدِ وَاضْرِبُوا عَلَيْهِ بِالدُّفُوفِ. رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب .

د بي بي عائشي رضي الله عنها څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د نکاح اعلان کوئ او نکاح په مسجدو کي تړئ او دف (دريه) ورباندي وهئ . (په ترمذي کي دا حديث غريب دی)

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\۳۹۸، رقم: ۱۰۸۹.

**تشريح**: د اعلان څخه مراد د شاهدانو موجودتيا ده چي نكاح د شاهدانو په مخكي وتړل سي نو دغه حكم د وجوب په توګه دی او كه چيري د اعلان څخه مراد تشهير وي چي نكاح په ښكاره توګه سره وكړل سي نو بيا دغه حكم د استحباب په توګه دی ، په مسجد كي نكاح كول مستحب دي همدارنګه د جمعې په ورځ نكاح كول هم مستحب دي ځكه چي په مسجد كي د جمعې په ورځ په نكاح كولو سره بركت تر لاسه كيږي .

﴿۳۰۱۹﴾: وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ حَاطِبِ الْجُمَحِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت محمد بن حاطب الجمحي ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

قَالَ فَصْلُ مَا بَيْنَ الْحَرَامِ وَالْحَلَالِ الصَّوْتُ وَالدُّفُّ فِي النِّكَاحِ. رواه احمد والترمذي والنسائي وابن ماجة .

د حلال او حرام مال په مينځ كي د اعلان كولو او دريې وهلو فرق دی (يعني د نكاح اعلان كول د حلال او حرام په مينځ كي فرق ظاهروي). (احمد ترمذي نسائي ابن ماجه) .

**تخريج**: احمد في المسند ۳\ ۴۱۸، رقم: ۱۰۸۸، والنسائي ٦\ ۱۲۷، رقم: ۳۳٦۹، وابن ماجه في السنن ۱\ ٦۱۱، رقم: ۱۸۹٦.

**تشريح**: د آواز څخه مراد يا خو غزلي دي او يا د خلكو په مينځ كي د نكاح يادونه او اعلان كول دی، د حديث دا مطلب نه دی چي بېله آواز او دريا څخه نكاح نه كيږي ځكه چي نكاح د دو شاهدانو په مخكي هم كيږي بلكه د دغه حديث مقصد خلكو ته د دې ترغيب وركول دي چي د نكاح مجلس دي په ښكاره منعقد كړل سي او په خلكو كي دي د هغه تشهير وكړل سي او پاته سوه دا خبره چي د تشهير حد څه شي دی نو هغه دا دی چي په يو سرای كي نكاح وي نو په دوهم سرای كي يا په همسايګانو كي د هغه خبر ورسيږي ، د تشهير دا مطلب نه د يچي په كليو او ښارو كي د شور او غوغا په ذريعه نكاح وكړل سي .

## په واده كي د سندرو اجازه

﴿۳۰۲۰﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَتْ عِنْدِيْ جَارِيَةٌ مِنَ الْأَنْصَارِ زَوَّجْتُهَا

د بي بي عائشي ﷺ څخه روايت دی چي زما سره يوه انصاري انجلۍ وه ما د هغې نكاح وكړه

فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا عَائِشَةُ أَلاَ تُغَنِّيْنَ ؟ فَإِنَّ هٰذَا الْحَيَّ

نو رسول الله ﷺ وفرمايل : اې عائشې! ايا ته غزلي نه پر وايې ؟ د انصارو قوم خو

مِنَ الْأَنْصَارِ يُحِبُّوْنَ الْغِنَاءَ . رواه ابن حبان في صحيحه

غزلي ويل ډيري خوښوي .(صحيح ابن حبان)

**تخريج**: الاحسان في تقريب صحيح ابن حبان ۱۳\ ۱۸۵، رقم: ۵۸۷۵.

**تشريح**: دغه انجلۍ کومه چې د بي بي عائشې ﷺ سره وه او د هغې نکاح يې کړې وه يا خو د هغې په قريباتو کې وه لکه څرنګه چې په مخکې راتلونکې حديث کې معلوميږي، او يا يو يتيمه وه چې د هغې روزنه يې کړې وه .

د مشکوة په اصل کې نسخه کې د رواه څخه وروسته عبارت نه دی نقل سوی ، مطلب دا چې د مشکوة مؤلف ته ددغه روايت د اصل ماخذ علم نه وو او بيا وروسته نورو علماؤ پر حاشيه باندې دغه عبارت (ابن حبان في صحيحه) ليکلی دی .

﴿۳۰۲۱﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ أَنْكَحَتْ عَائِشَةُ ذَاتَ قَرَابَةٍ لَهَا مِنَ الْأَنْصَارِ

حضرت ابن عباس ﷺ څخه روايت دی چې بي بي عائشې رض د يوې شريکې انصاري ښځې

فَجَاءَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَهْدَيْتُمُ الْفَتَاةَ قَالُوا نَعَمْ قَالَ

نکاح وتړله نو رسول الله ﷺ تشريف راوړ او وه يې وفرمايل :آيا انجوني مو ورليږلي دي ؟ عرض يې وکړ هو! نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل : .

أَرْسَلْتُمْ مَعَهَا مَنْ يُغَنِّي قَالَتْ لَا فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ

ورسره څوک غزلي والا هم ليږلي دي ؟ عرض يې وکړ يا ! نو نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل : د

الْأَنْصَارَ قَوْمٌ فِيهِمْ غَزَلٌ فَلَوْ بَعَثْتُمْ مَعَهَا مَنْ يَقُولُ أَتَيْنَاكُمْ أَتَيْنَاكُمْ فَحَيَّانَا وَحَيَّاكُمْ . رواه ابن ماجة.

انصارو داسې قوم دئ چې دغزلو شوقيان دئ کاشکې چې تاسو د هغوی سره يو څوک ليږلي وای چې غزلي يې ويلي وای ! موږ تاسو ته راغلي يو موږ تاسو ته راغلي يو خدای تعالي دې

**تشریح**: که د یوې ښځې دوه ولیان (سرپرستان) وي او دواړه د هغه ښځې نکاح په جلا جلا وختو کي د دوو خلکو سره وکړي په دې توګه چې اول یې د یوه سړي سره نکاح وکړي او بیا دوهم ولي یې دبل چا سره نکاح وکړ، نو د دوهم ولي نکاح به باطل وي او هغه ښځه به د هغه سړي وي د چا سره چې یې مخکې نکاح سوې وي مګر دا حکم په هغه صورت کې دی کله چې دواړه ولیان د یوې درجې وي یعني دواړه په یو ډول قریبان وي او که دواړه د یوې درجې نه وي نو بیا هغه ولي مقدم دی کوم چې زیات نژدې وي یعني نژدې قرابت ولري نو په دغه صورت کې هغه ښځه به د هغه سړي وي د چا سره چې نژدې قریب نکاح کړې وي که څه هم هغه اول نکاح کړې وي یا وروسته یې کړې وي او که چیري د ښځي د یو ډول دوو ولیانو د هغې نکاح په یوه وخت کې د دوو جلا جلا خلکو سره وکړه مثلاً یو ولي زید دی د هغې نکاح یې وکړ او هم هغه وخت د هغې دوهم ولي بکر د هغې نکاح وکړه نو په دغه صورت کې په اتفاق سره د ټولو علماؤ مذهب دادی چې د دواړو نکاح باطله سوه.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### متعه د اسلام په پیل کي جائزوه

﴿۳۰۲۳﴾: عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ کُنَّا نَغْزُو مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَيْسَ

د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه څخه روایت دی چې موږ په جهاد کې د رسول الله ﷺ سره تللو او

مَعَنَا نِسَاءٌ فَقُلْنَا اَلَا نَخْتَصِي فَنَهَانَا عَنْ ذٰلِكَ ثم رخص لنا ان نستمتع

زموږ سره به ښځۍ نه وې موږ عرض وکړ ایا موږ ځانونه خصیان کړو؟ نبي کریم ﷺ موږ د دې څخه منعه کړو او بیائې د متعې اجازت را کړ

فقال احدنا ینکح المراة بالثوب الى اجل قرء عبدالله { يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُحَرِّمُوا طَيِّبَاتِ مَا أَحَلَّ اللّٰهُ لَكُمْ } . متفق علیه.

په موږ کې به ځینو خلکو د جامو په بدل کې متعه (عارضي نکاح) کوله د دې څخه وروسته حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ دا ایت ولوستي : یا ایها الذین......... لکم (اې مؤمنانو ! کوم پاک شیان چې الله تعالی در ته حلال کړي وی هغه مه حراموئ). (بخاري او مسلم).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۸\ ۲۷۶، رقم: ۴۶۱۵، ومسلم ۲\ ۱۰۲۲، رقم: ۱۱- ۱۴۰۴.

**تشريح** دغه حديث شريف د متعې پر اجازې باندې دلالت كوي ، د اسلام په شروع كې د متعې اجازه وه مګر وروسته دغه اجازه منسوخ سول او اوس متعه كول حرام دي لكه څرنګه چې د راتلونكې حديث څخه معلوميږي او مخكې هم يو حديث تېر سوى دى چې دهغه څخه د متعې د اجازې منسوخ كېدل ثابت سوي دي .

د ابن مسعود ﷺ ذكر سوى آيت ويل دې ته اشاره كوي چې ابن مسعود ﷺ هم د ابن عباس ﷺ په ډول د متعې د مباح كېدو قائل وو مګر د ابن عباس ﷺ په باره كې دا ثابته سوې ده چې هغه ددې څخه رجوع كړې ده او هغه هم د متعې د حرام كېدو قائل سوى دى لكه څرنګه چې د راتلونكې حديث څخه معلوميږي اوس پاته سوه د ابن مسعود ﷺ خبره، نو كېداى سي چې هغه هم ددې څخه رجوع كړې وي او د متعې د حرام كېدو قائل سوى وي او دا هم كېداى سي چې هغه ته د متعې د جواز د منسوخ كېدو حكم معلوم سوى نه وي او په دې وجه هغه د متعې د جواز قائل سوى وي .

﴿۳۰۲۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ إِنَّمَا كَانَتِ الْمُتْعَةُ فِي أَوَّلِ الْإِسْلَامِ كَانَ

د حضرت ابن عباس ﷺ څخه روايت دى د متعې جواز (جائز كېدل) د اسلام په پېل كې وو كله

الرَّجُلُ يَقْدَمُ الْبَلْدَةَ لَيْسَ لَهُ بِهَا مَعْرِفَةٌ فَيَتَزَوَّجُ الْمَرْأَةَ بِقَدْرِ مَا يَرَى أَنَّهُ

چې به يو څوک يو ښار ته ولاړ او هلته به يې د پېژندو څوک نه وه نو هلته به يې تر هغه مودې پورې واده وكړ تر څو پورې چې به هلته وو

يُقِيمُ فَتَحْفَظُ لَهُ مَتَاعَهُ وَتُصْلِحُ لَهُ شية حَتَّى إِذَا نَزَلَتِ الْآيَةُ إِلَّا عَلَى

هغې ښځې به د هغه د سامان حفاظت كوى او هغه ته به يې غذا برابروله تر دې پورې چې دا ايت كريمه نازل سو : الا على

أَزْوَاجِهِمْ أَوْ مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُهُمْ قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ فَكُلُّ فَرْجٍ سواهما فَهُوَ حَرَامٌ. رواه الترمذي .

ازواجهم او ماملكت ايمانهم حضرت ابن عباس ﷺ وايي چې د دې ايت د نازلېدو څخه

وروسته د نكاح سوى ښځو او مينځو څخه پرته نوري ټولي ښځي حرامي سوې .(ترمذي) .

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۴۳۰، رقم: ۱۱۲۲

**د لغاتو حل**: شيه: اي طبيخه. (خواړه).

**تشريح**: د آيت كريمه خلاصه داده چي كوم خلك خپل شرمگاه د خپلو ښځو او مينځو څخه پرته د نورو ښځو څخه خوندي ساتي نو پر هغوى څه ملامتيا نه سته مگر كوم خلك چي پر خپلو ښځو او مينځو باندي قناعت نه كوي يا كوم خلك چي د نكاح په ذريعه په شرعي توگه سره د خپل جنسي خواهش د تسكين سامان نه برابروي بلكه پردى ښځو ته مائل كيږي نو هغوى په اصل كي د حلال څخه په تجاوز كولو سره حرام ته تجاوز كونكي دي چي د هغوى لپاره سخته ملامتيا ده .

علامه طيبي رحمه الله وايي چي ددغه ارشاد څخه د ابن عباس رضي الله عنه مقصد دا وو چي الله تعالى ددغه آيت په ذريعه د پرهيزگاره بندگانو تعريف دا بيان كړى دى چي هغوى د ټولو ښځو څخه خپل شرمگاه ساتنه كوي البته د خپلو ښځو او مينځو څخه پرهېز نه كوي بلكه د هغوى په ذريعه خپل خواهش پوره كوي او دا بالكل ښرگنده خبره ده چي د متعې په صورت كي پر كومه ښځه باندي تسلط تر لاسه كيږي هغه نه خپل ښځه وي او نه مينزه وي ځكه چيري ښځه واى نو د هغې او د سړي په مينځ كي به د مېراث لړۍ خامخا واى او اتفاقي مسئله ده چي د متعه ښځي سره د مېراث هيڅ لړۍ نه قائميږي او هغه ښځه محض د څو ورځي په مزدوري باندي د خپل ځان هغه سړي ته حواله كوي ځكه نو هغه مينزه كيداى هم نه سي ددې څخه معلومه سوه چي كوم څوك د متعې په توگه د يو ښځي سره جنسي تسكين تر لاسه كوي نو هغه د هغه خلكو په ډله كي نه دى كوم چي د هغوى وصف په ذكر سوي آيت كي بيان سوى دى .

امام فخر الدين رازي رحمه الله هم په خپل تفسير كي دا ليكلي دي چي كوم څوك د يو ښځي سره متعه كوي نو هغه ښځه د هغه مايېنه نه گرځي او بيا دا واجبيږي چي هغه دده لپاره حلالة نه وي .

د شيعه گانو په باره كي مخكي هم ښوول سوي دي چي د هغوى په نزد متعه جائز ده ، دا ډېره د خندا خبره ده چي هغوى د ابن عباس رضي الله عنه پر قول په عمل كولو سره متعې ته جائز وايي ، سره ددې چي د متعې د جواز په باره كي د ابن عباس رضي الله عنه د خپل قول څخه رجوع كول ثابت سوي دي او د حضرت علي رضي الله عنه مذهب او عقيده پريږدي او د هغه خلاف عمل كوي، په صحيح مسلم كي دا روايت موجود دى چي كله حضرت علي رضي الله عنه دا واورېدل چي ابن عباس رضي الله عنه متعې ته جائز وايي نو هغه وفرمايل اې ابن عباس ! داسي مه وايه ځكه چي ما خپله اوريدلي دي چي رسول

الله ﷺ د خيبر په ورځ متعه او په كورونو كي د خرو د غوښو خوړلو څخه منع فرمايلې ده.

**په واده كي د سندرو اجازه**

﴿۳۰۲۵﴾: وَعَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ دَخَلْتُ عَلَى قُرَظَةَ بْنِ كَعْبٍ وَأَبِي مَسْعُودٍ

د عامر بن سعد رضي الله عنه څخه روايت دى چي زه يوه واده ته ورغلم او قرظه بن كعب او ابو مسعود

الأَنْصَارِيِّ فِي عُرْسٍ وَإِذَا جَوَارٍ يُغَنِّينَ فَقُلْتُ اى صاحبى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ

انصاري رضي الله عنه سره مي ملاقات وكړ څو انجونو غزلي ويلې ما وويل: اې د رسول الله ﷺ دوه

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ أَهْلِ بَدْرٍ يُفْعَلُ هَذَا عِنْدَكُمْ فَقَالَا اجْلِسْ إِنْ شِئْتَ فَاسْمَعْ

اصحابو ايا ستاسو په وړاندي بدر والا داسي كوي هغوى راته وويل: كښېنه كه دي زړه

مَعَنَا وَإِنْ شِئْتَ فَاذْهَبْ فانه قَدْ رُخِّصَ لَنَا فِي اللَّهْوِ عِنْدَ الْعُرْسِ. رواه النسائي

غواړي ته يې هم زموږ سره واوره او كه دي خوښه وي بيرته ولاړ سه ځكه چي رسول الله ﷺ د واده په ورځ موږ ته د دې اجازه راكړې ده. (نسائي)

**تخريج**: سنن النسائي ١٣٥\٦، رقم: ٣٣٨٣.

**تشريح**: د دې څخه معلوميږي چي په هغه زمانه كي هم د غزلو حرمت او كراهت مشهور وو، د اخترو، نكاح او داسي نورو شيانو تخصيص ځينو خلكو ته معلوم وو او ځينو ته معلوم نه وو، عامر ابن سعد رضي الله عنه هم د هغه خلكو څخه وو چي هغوى ته دا معلومه نه وه چي په اخترو، واده او داسي نورو كي غزلي جائز دي.

=========

# بَابُ الْمُحَرَّمَاتِ

## ( د هغو ښځو بيان چي نکاح ورسره حرامه وي )

د نکاح د صحيح کېدو يو شرط دا هم دی چي ښځه د محرماتو څخه نه وي، په دغه باب کي دا ښودل کيږي چي محرمات څوک دي چي د هغوی سره نکاح کول حرام دي، د محرماتو تفصيل د فقهي حنفي په مشهور او معتمد کتاب فتاوی عالمگيري کي په ډېره ښه توګه بيان سوی دی، ځکه نو مناسب ده چي د فتاوی عالمگيري هغه تفصيل دلته ذکر کړل سي

## د محرمات تفصيل او ضروري مسئلې

د محرمو ښځو نهه ډولونه دي، يا دا چي د نکاح د حرام کېدو نهه سببه دي چي تفصيل يې په لاندي توګه دی :

**اول سبب نسبي قرابت** : کومي ښځي چي د نسبي قرابت په وجه حرامي دي هغه دادي: مور، لور، خور، امه، خاله، وريره، خورزه، ددغه ښځو سره نکاح کول، جماع کول او داسي کار کول چي د جماع محرک او سبب جوړيږي لکه مچه اخيستل او داسي نور دا ټول کارونه د همېشه لپاره حرام دي .

د مور څخه خپل مور هم مراد ده او انا (د پلار مور او دمور مور) که څه هم د لوړي درجې وي لکه د انا مور، د انا انا او داسي نور هم مراد دي .

د لور حکم خپل حقيقي لور، د خپل زوی لور او د لور لور او همدارنګه تر لاندي پوري ټولو ته شامل دی . همدارنګه خور که حقيقي وي يا ميرېزی وي او که اخيافي وي ټولي حرامي دي .

د وريرې او خورزې څخه هم درې ډوله وريرې او خورزې مراد دي يعني د حقيقي ورور او خور اولاد ، د ميريزي ورور او خور اولاد او د اخيافي ورور او خور اولاد ، که څه هم د لاندي درجې وي دا ټول په محرم کي داخل دي .

د عمه څخه هم درې ډوله عمه ګاني مراد دي يعني حقيقي عمه ، ميريزی عمه او اخيافي عمه همدارنګه د عمه په حکم کي د پلار عمه او د نيکه عمه ، د مور عمه او د انا عمه هم مراد دي چي دا ټول په محرمات کي داخل دي مګر د عمه عمه حرامه ده که يا ؟ په دې کي تفصيل دی د مثال په توګه د زيد عمه د هغه د پلار حقيقي خور وي يا ميرېزی خور وي نو دداسي عمه عمه به د زيد لپاره حرامه نه وي .

د خاله څخه مراد حقیقي خاله، میریزی خاله او اخیافي خاله، د خپل پلار خاله او د خپل مور خاله او ټولي خاله ګاني حرامي دي مګر د خاله د خاله په باره کي تفصیل دی مثلا د زید خاله د هغه د مور حقیقي خور وي یا اخیافي خور وي نو د هغې خاله خاله به د زید لپاره حرامه وي یعني د هغې سره د زید نکاح نه سي کیدای او که چیري د زید خاله د هغه د مور میریزی خور وي نو د داسي خاله خاله به حرامه نه وي بلکه د هغې سره د زید نکاح جائز ده .

**دوهم سبب د خسرګنۍ قرابت** : هغه ښځي چي د خسرګنۍ د قرابت په وجه حرامي دي د هغو څلورو ډولونه دي ۱: خواښې (یعني د ښځي مور)، د ښځي انا او د هغه لوړي چي هر څومره درجې وي مثلا د پلار او مور انا او داسي نور ، ۲: د ښځي لور او د ښځي د زامنو اولاد او د هغه څخه دلاندي درجې ، د مثال په توګه د ښځي د ملسي اولاد او داسي نور ټول حرام دي په شرط د دې چي د ښځي سره یې جماع کړې وي که څه هم هغه د ښځي لور د هغه سړي په روزنه کي وي یا نه وي ، حنفي علماء د ښځي د لوڼو د حرمت په باره کي خلوت صحیحه د جماع قائم مقام نه ګرځوي یعني د ښځي د لوڼو د حرمت ثابتولو لپاره دا ضروري دي چي سړی د نکاح څخه وروسته د ښځي سره جماع هم وکړي او که یوازي خلوت صحیحه سوی وي (یعني د جماع کولو لپاره موقع په لاس ورغلې وي) مګر جماع یې نه وي کړې نو په دغه صورت کي د ښځي د لور (چي د بل خاوند د نطفې څخه وي) حرمت نه ثابتیږي ، ۳: مڅور یعني د زوی ښځه، د ملسي ښځه او د کړوسي ښځه او د دې څخه لاندي چي هر څومره درجې وي، او د دغه ښځو سره د هغوی د خاوندانو یعني زامنو او ملسیانو غیره جماع کړې وي یا نه وي کړې په دواړو صورتو کي حرامي دي مګر یوازي په خولې ویونکی زوی حرام نه دی مثلا زید د بکر د خولې ویلو زوی دی نو د زید ښځه د بکر لپاره د محرماتو څخه نه ده که زید خپل ښځي ته طلاق ورکړي یا هغه مړ سي نو بکر د هغه ښځيَ سره خپل نکاح کولایسي، ۴: میره یعني د پلار ښځه او د نیکه ښځه او د دې څخه د لوړي درجې دا ټولي هم د همېشه لپاره حرامي دي نه د دوی سره نکاح کېدای سي او نه په یو بله طریقه جماع کېدای سي .

د خسرګنۍ د قرابت سره حرمت په هغه صورت کي ثابتیږي کله چي نکاح صحیح وي ، په فاسده نکاح سره حرمت نه ثابتیږي که یو سړی د یوې ښځي سره زنا وکړي نو د زنا کونکي لپاره د هغه ښځي مور ، انا او د هغه ښځي لور، ملسۍ او کړوسۍ ټول به حرام سي او همدارنګه د هغې ښځي لپاره د زنا کونکي پلار، نېکه ، ورنېکه او د هغه ښځي زوی، ملسی او کړوسی ټول حرام دي .

که یو سړی د یو ښځي سره جماع وکړي چي د هغه په وجه د هغه ښځي د تشو بولو او لویو بولو ځایونه یو سي نو د هغه ښځي مور به د جماع کونکي لپاره حرامه نه وي ځکه چي په دغه صورت کي نه سي ویل کیدای چي هغه ښځي د تشو بولو په ځای کي جماع کړې ده مګر که چیري د جماع څخه وروسته هغه ښځه حامله سي او دا هم معلومه سي چي دغه حمل د هغه سړي د نطفې څخه دی نو په دغه صورت کي د هغه مور به د هغه لپاره حرامه سي او څرنګه چي دغه حرمت په جماع کولو سره ثابتیږي همدارنګه (په شهوت سره) ښځي ته لاس ور وړل، مچه اخیستل او په شهوت سره د ښځي شرمګاه ته په کتلو سره هم ثابتیږي او دغه ذکر سوي صورتونه یعني لاس ور وړل، مچه اخیستل او داسي نور که د نکاح په صورت کي وي او که د ملکیت په صورت کي وي ، د حنفیه په نزد دا دواړه صورتونه یو دي او حنفي علماء دا هم وایي چي په دې باره کي شبه او غیر شبه مساوي دي او په دې اړه په شهورت سره مباشرت (د سړي او ښځي په شهوت سره یو تر بل غاړه کېدل) هم د مچي اخیستلو په حکم کي دي همدارنګه د معانقه هم دغه حکم دی یعني په دغه ټولو صورتو کي حرمت ثابتیږي .

که یوې ښځي په شهوت سره د سړي خاص اندام (ذکر) ته وکتل یا په شهوت سره یې لاس ر وړی یا مچه یې ځیني واخیستل نو په دغه صورت کي د هغه سره د مصاهرت حرمت ثابتیږي و نورو ټولو اندامو ته په کتلو سره او په لاس ور وړلو سره حرمت مصاهرت نه ثابتیږي مګر که چیري دغه کتل او لاس ور وړل په شهوت سره وي نو بیا بېله اختلافه حرمت ثابتیږي ، د حرمت په اړه د ښځي د شرمګاه د دباندي برخي لیدلو اعتبار نه سته بلکه د ننه برخې په لېدلو سره حرمت ثابتیږي، علماء کرام وایي که یو سړی د ښځي په ولاړه شرمګاه وویني نو په دغه صورت کي حرمت نه ثابتیږي ځکه کله چي ښځه ولاړه وي نو د هغې د شرمګاه د ننه برخه نه معلومیږي بلکه د شرمګاه د ننه برخه هغه وخت معلومیږي کله چي ښځه په تکیه لګولو سره ناسته وي ، که و سړی د یو ښځي د شرمګاه د ننه برخه داسي وویني چي په مینځ کي نازکه پرده یا ښیښه وي کر د شرمګاه د ننه برخه معلومه سول نو حرمت ثابتیږي مګر که یو سړی په هنداره کي ګوري ه هغه کي د یو ښځي شرمګاه په شهوت سره وویني نو پر هغه سړي باندي نه د هغه ښځي ور حرامه کیږي او نه د هغې لور حرامه کیږي ځکه چي هغه شرمګاه نه ده لېدلې بلکه د هغه عکس یې لیدلی دی او که چیري یو ښځه د اوبو د حوض پر غاړه یا پر پله باندي ناسته وي او یو سړی د هغې عکس په اوبو کي وویني او بیا د هغه څخه وروسته په شهوت سره په اوبو کي د هغې د شرمګاه عکس وویني نو په دغه صورت کي هم حرمت نه ثابتیږي مګر که چیري ښځه په

اوبو کي وي او سړی د هغې شرمگاه ووينې او بيا په شهوت سره هغه ووينې نو حرمت ثابتيږي .

يوې ښځې ته په شهوت سره په لاس ور وړلو کي دا ضروري نه ده چي په قصد يې لاس ور وړی وي نو بيا حرمت ثابتيږي بلکه که چيري په قصد سره يې لاس ور وړی وي يا په هېره سره او يا په زور سره يا په غلطۍ سره يې لاس ور وړی وي او که د خوب په حالت کي يې لاس ور وړی وي په هر صورت کي حرمت ثابتيږي ، که يو څوک د جماع کولو لپاره خپل ښځه د خوب څخه پورته کول وغواړي مگر په غلطۍ سره د هغه لاس پر لور ولگيدی او بيا په دا گڼلو سره چي دا زما ښځه ده او بيا يې په شهوت سره هغه مس کړل او هغه لور پېغله او د شهوت وړ وه نو په دغه صورت کي د هغه سړي لپاره د هغه انجلۍ مور يعني د هغه ښځه د همېشه لپاره حرامه کيږي .

که يو څوک په شهوت سره د ښځي هغه وېښتانو ته لاس ور وړي کوم چي د سر سره يو ځای وي نو حرمت ثابتيږي مگر ناطفي رحمه الله د دغه تفصيل څخه پرته د مطلق وېښتانو په مس کولو سره حرمت بيانوي، همدا رنگه که يو سړی د ښځي نوک ته په شهوت سره لاس ور وړي نو حرمت ثابتيږي .

دا چي ښوول سوي دي چي د ښځي په شهوت سره مس کول او لاس ور وړل حرمت ثابتوي نو په دې باره کي دا خبره بايد په ذهن کي وي چي ښځي ته په لاس ور وړلو سره په هغه صورت کي حرمت ثابتيږي کله چي د دواړو په مينځ کي يو شی حائل نه وي او که چيري يو ټوکر حائل وي او هغه دومره نازک وي چي د مس کونکي لاس د ښځي دبدن حرارت محسوس کړي مگر که چيري ټوکر داسي وي چي د مس کونکي لاس د ښځي دبدن حرارت محسوس نه کړي نو حرمت نه ثابتيږي که څه هم د هغه په وجه د سړي په خاص اندام (ذکر) کي حرکت وسي ، همدا رنگه که يو سړی د ښځي د موزې لاندي برخه مس کړي نو حرمت ثابتيږي مگر که چيري پر موزو باندي پوست وي چي د هغه په وجه د ښځي د پښو حرارت مس کونکي ته محسوس نه سي نو حرمت نه ثابتيږي، که چيري يو سړی د ښځي څخه مچه واخلي په داسي حالت کي چي د دواړو په مينځ کي يو ټوکر حائل وي نو حرمت ثابتيږي په شرط د دې چي مچه اخيستونکي ته د ښځي د غاښو يا د شونډانو يخوالي محسوس سي .

د حرمت ثابتولو لپاره دا ضروري نه وي چي د مس کولو څخه وروسته تر د ېره وخته پوري مس کوي، علماء کرام وايي که يو چا په شهوت سره خپل ښځي ته لاس ور وړاندي کړی مگر هغه لاس د ښځي پر ځای د هغه د لور پر پزه ولگيدی او په هغه سره شهوت زيات سو نو د هغه انجلۍ مور يعني خپل ښځه به پر هغه سړي حرامه سي که څه هم هغه سمدستي خپل لاس ليري کړي.

د حرمت ثابتولو لپاره دا شرط دي چي كومي ښځي ته لاس ور وړل سي يا مچه ځيني واخيستل سي نو هغه به د شهوت وړ وي ، كه يو سړى د يو داسي نابالغي انجلۍ سره جماع وكړي چي هغه د شهوت وړ نه ده نو حرمت نه ثابتيږي دد ې پر خلاف كه چيري ښځه دومره سپين سرې سي چي د شهوت وړ نه وي نو د هغه د حرمت په حكم كي داخله سوه او د سپين سرتوب په وجه دد غه حكم څخه وتلاى نه سي حال دا چي نابالغه د حرمت په حكم كي داخله نه ده .

لكه څرنگه چي د حرمت ثابتېدو لپاره د ښځي د شهوت وړ كېدل دي همدارنگه د نارينه د شهوت وړ كېدل هم شرط دي كه چيري د څلورو كالو كوچنى د خپل پلار د ښځي (يعني خپل ميرې) سره جماع وكړي نو په دې وجه حرمت نه ثابتيږي مگر كه چيري جماع كونكى داسي كوچنى وي چي په هغه عمر كي كوچنى جماع كولاى سي نو د هغه هم هغه حكم دى چي كوم د بالغو دي او په دې باره كي علماؤ ليكلي دي چي د داسي كوچني پېژندل دادي چي هغه پر جماع كولو باندي قادر وي او ښځي ته يې شوق كيږي او ښځي د هغه څخه شرم كوي .

په ذكر سوو شيانو يعني مس كولو او كتلو كي د شهوت پورته كېدل شرط دي يعني ښځي ته لاس ور وړل، مچه اخيستل او د شرمگاه دننه برخي ته د كتلو پر وخت كه چيري شهوت پيدا سي نو حرمت ثابتيږي او كه چيري شهوت پيدا نه سي مگر وروسته بيا شهوت پيدا سي نو حرمت نه ثابتيږي، د شهوت معيار د نارينه لپاره دادى چي هغه په خاص اندام (ذكر) كي حركت راسي (يعني لك سي) او كه چيري حركت د مخكي څخه وي او په هغه كي زياتوب راسي نو په دغه مسئله كي ټول صحيح دي او پر دې فتوا ده ، كه چيري د يو چا په خاص اندام كي حركت وو په داسي حالت كي چي هغه خپله ښځه ځان ته راوغوښتل او بيا په هغه دوران كي په يو ډول د هغه خاص اندام د هغه انجلۍ په ورنو كي داخل سو نو په دغه صورت كي كه چيري د هغه خاص اندام په حركت كي زياتوب نه وي پيدا سوى نو د هغه انجلۍ مور يعني د هغه ښځه به د هغه لپاره حرامه نه وي ، د شهوت دغه معيار د هغه چا لپاره دى چي ځوان او پر جماع كولو باندي قادر وي او كه چيري يو څوك سپين ږيرى او يا پر جماع كولو قادر نه وي نو د هغه په باره كي د شهوت معيار دادى چي د خواهش پر وخت د هغه په زړه كي حركت پيدا سي كه چيري د مخكي څخه حركت نه وو ، او كه چيري په زړه كي د مخكي څخه حركت موجود وي او د هغه په خواهش كي زياتوب راسي . د ښځي لپاره او د هغه سړي لپاره چي د هغه خاص اندام پرې كړل سوى وي د شهوت معيار دادى چي په زړه كي خواهش پيدا سي او په لاس ور وړلو يا بل څه سره جنسي خوند تر لاسه سي كه چيري خواهش د مخكي څخه موجود نه وو ، او كه چيري خواهش د

مخکي څخه موجود وو نو بیا کله چي په هغه کي زیاتوب راسي .

دا خبره دي په ذهن کي وي چي په سړي او ښځه کي په یوه کي د شهوت پیدا کېدل د حرمت ثابتولو لپاره کافي دي .

په لاس ور وړلو یا مچه اخیستلو سره چي کوم حرمت ثابتیږي په هغه کي دا شرط ضروري دي چي انزال نه وي ، که چیري په لاس ور وړلو یا شرمګاه ته په کتلو سره انزال وسي نو حرمت نه ثابتیږي ځکه چي په انزال کېدو سره به دا خبره ثابته سي چي لاس ور وړل او داسي نور کارونه د جماع سبب نه دي جوړ سوي ، که یو څوک د ښځي مقعد (د شا شرمګاه) ته وګوري نو په دې سره حرمت نه ثابتیږي همدارنګه که یو سړی د ښځي سره د شا له خوا بدکاري وکړي نو حرمت نه ثابتیږي همدارنګه که چیري د مړې سره جماع وکړي نو حرمت نه ثابتیږي .

که یو څوک د خپل ښځي سره د حرمت مصاهرت اقرار وکړي او د هغه اعتبار وکړل سي او د دواړو یعني ښځي او خاوند په مینځ کي بېلوالی وکړل سي او همدارنګه که چیري سړی د نکاح څخه مخکي د حرمت نسبت وکړي یعني خپل ښځي ته ووایي چي ما ستا سره د نکاح کولو څخه مخکي ستا د مور سره جماع کړې ده نو د هغه د خبري اعتبار به کیږي او په دواړو کي به جلاوالی راوستل کیږي ، مګر د هغه ښځي پوره مهر به واجب وي او عقر به واجب نه وي، او ددغه اقرار لپاره مداونت شرط نه دی یعني یوازي په یو وار اقرار کول کافي دي په وار وار د اقرار کولو ضرورت نه سته ځکه که چیري یو سړی د خپل اقرار څخه رجوع وکړي یعني په یو وار اقرار کولو څخه وروسته بیا انکار وکړي نو قاضي به د هغه انکار نه مني مګر که چیري هغه په حقیقت کي غلط اقرار کړی وي نو عند الله د هغه ښځه د هغه سوه که څه هم په ظاهره قاضي د دوی په مینځ کي جلاوالی راولي .

که یو څوک دیوې ښځي په باره کي ووایي چي دا زما رضاعي مور ده (یعني دې وما ته تی راکړی وي) او بیا څه وخت وروسته کله چي د هغه ښځي سره نکاح کول غواړي نو دا ووایي چي ما درواغ ویلي دي دا زما رضاعي مور نه ده نو په دغه صورت کي د هغه لپاره د هغه ښځي سره نکاح کول به استحسانا جائز وي .

که یو څوک د یوې ښځي څخه مچه واخلي او بیا ووایي چي دا په شهوت سره نه وه ، یا ښځي ته لاس ور وړي یا د هغې شرمګاه ته وګوري او دا ووایي چي دا په شهوت سره نه وو نو د مچي اخیستلو په صورت کي به سمدستي د حرمت حکم ولګول سي تر څو چي دا یقین پیدا نه سي چي هغه په حقیقت سره په شهوت سره مچه نه وه اخیستې او په دوهم او دریم صورت کي د

حرمت حکم نه لګول کيږي بلکه کله چي دا يقين وسي چي دا په شهوت سره سوی دی نو د حرمت حکم به لګول کيږي ، په دې وجه کي فرق دادی چي مچه اخيستل په عامه توګه سره د شهوت پر وخت اخيستل کيږي او د مچي اخيستلو بنياد پر شهوت وي پر خلاف د لاس وروړلو او ليدلو چي دغه دواړه کارونه بېله شهوت هم واقع کيږي مګر دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي د شرمګاه څخه پرته يو بل اندام ته لاس ور وړي او که چيري د يو ښځي شرمګاه ته لاس ور وړي او بيا ووايي چي دا په شهوت سره نه وو نو په داسي صورت کي به دده د خبري اعتبار نه کيږي او که چيري يو سړی يو ښځي تر تيانو ونيسي او ووايي چي دا په شهوت سره نه وو نو د هغه ددغه خبري اعتبار به نه کيږي همدارنګه که د ښځي سره پر حيوان باندي سپور سي نو د هغه هم دا حکم دی مګر که چيري د ښځي پر شا په سپرېدو سره تر سند يا ويالې واوړي او دا ووايي چي هغه وخت زما شهوت نه وو نو د هغه د خبري اعتبار به کيږي .

يو سړی د خلکو په مخکي اقرار وکړي چي ما فلانۍ ښځه په شهوت سره مس کړې ده يا د هغې څخه مي مچه اخيستې ده او هغه خلکو ددغه خبري شاهدي ورکړي نو د هغوی شاهدي قبليږي او حرمت ثابتيږي همدارنګه که چيري شاهد ووايي چي فلاني سړي فلانۍ ښځي ته په شهوت سره لاس ور وړلی دی يا مچه يې ځيني اخيستې ده نو د هغوی شاهدي به منل کيږي ځکه چي شهوت يو داسي شی دی چي هغه معلوميږي ، د کومو خلکو په خاص اندام کي چي حرکت وي د هغوی په لېدو سره او د چا په خاص اندام کي چي حرکت نه وي د هغوی په باره کي په نورو نښو سره د شهوت معلومېدل ممکن دي .

قاضي علي سعدي رحمة الله عليه وايي که چيري په نشه کي بې هوشه سړی د خپل لور په نېولو سره هغه د خپل بدن سره ومو ښلوي او مچه ځيني واخلي او بيا يې د هغې سره د جماع کولو اراده وکړه مګر انجلۍ ورته وويل چي زه ستا لور يم نو ددې په اورېدو سره هغه سړی انجلۍ پرېښودل نو په دغه صورت کي هم د انجلۍ مور يعني د هغه سړي ښځه د هغه لپاره حرامه ده .

که د يو سړي څخه پوښتنه وسي چي تا د خپل خواښي سره څه کړي دي او هغه په جواب کي ووايي چي ما د هغې سره جماع کړې ده نو په دغه صورت کي حرمت ثابتيږي که څه هم پوښتنه کونکی په مسخرو کي پوښته وکړي او هغه سړی هم په مسخرو کي جواب ورکړي او بيا د هغه څخه وروسته که په لکاوو واره ووايي چي ما دا خبره دروانغ کړې ده نو د هغه اعتبار نه کيږي .

که يو سړی د يوې داسي مينزي په باره کي چي د هغه په ملکيت کي وي دا ووايي چي ما ددغه مينزي سره جماع کړې ده نو هغه مينزه به د هغه د زوی لپاره حلاله نه وي او که چيري هغه

د یو داسي مینزي په باره کي چي د هغه په ملکیت کي نه وي بلکه د بل چا مینزه وي دا ووایي چي ما ددې سره جماع کړې ده نو په دغه صورت کي به د هغه د زوی لپاره دغه مینزه جائز وي چي د خپل پلار ددغه خبري اعتبار ونه کړي او هغه مینزه په خپل ملکیت کي په اخیستو سره د هغې سره جماع وکړي او که چیري یو سړي ته د خپل پلار په میراث کي یوه مینزه ترلاسه سي نو د هغې سره جماع کولای سي تر څو چي په یقین سره دا معلومه نه سي چي د هغه پلار د هغې سره جماع کړې ده.

که یو سړی د یوې ښځي سره په دې شرط واده وکړي چي هغه به باکره (پېغله) وي مګر د واده څخه وروسته کله چي د هغې سره د جماع کولو اراده وکړي نو معلومه سي چي هغه باکره نه ده او بیا دهغه ښځي څخه پوښتنه وکړي چي ستا د بکارت (پېغلتوب) پرده څرنګه زائله سوې ده (یعني ستا سره چا کوروالي کړې ده) ښځه په جواب کي ووایي چي ستا پلار، نو په دغه صورت کي که چیري هغه سړی د هغه د خبري اعتبار ونه کړي بلکه دا ووایي چي ته دروا غ وایې نو نکاح به باقي وي.

که یوه ښځه د خپل خاوند د زوی په باره کي ووایي چي ده زه په شهوت سره مس کړې یم نو زه د خپل خاوند ښځه نه سوم نو د ښځي ددغه خبري اعتبار نه کیږي بلکه د خاوند د زوی قول به معتبر وي.

یو څوک د خپل پلار د ښځي (میرې) څخه په شهوت سره په زور مچه واخیستل او خاوند وویل چي دا محض په شهوت سره نه وو نو د خاوند د خبري اعتبار به کیږي او دا به د هغه ښځه وي مګر که چیري خاوند دا خبره تسلیم کړي چي مچه اخیستل په شهوت سره وه نو بیا به په دواړو کي جلاوالی راوستل کیږي او پر خاوند به مهر واجب وي، مګر خاوند به هغه روپۍ چي هغه په مهر کي ادا کړي دي د هغه سړي څخه ترلاسه کوي د چا په وجه چي دغه صورت پیدا سوی دی په شرط ددې چي هغه د فتنې لپاره دا حرکت کړی وي او که چیري هغه دغه کار د فتنې په قصد سره نه وي کړی نو بیا د هیڅ ترلاسه کولو حق نه ستله، او که چیري په دغه مسئله کي د مچه اخیستلو پر ځای (پلار د زوی د ښځي سره یا زوی د پلار د ښځي سره) جماع وکړي نو په دغه صورت کي خاوند په مهر کي ورکړل سوی مال په هیڅ ډول نه سي ترلاسه کولای ځکه چي پر جماع کونکي باندي حد واجب دی او قاعده داده چي په شرعي حد سره هیڅ مال نه واجبیږي.

یو سړي د بل چا د مینزي سره نکاح وکړه او بیا ددې څخه مخکي چي د هغه خاوند جماع ورسره وکړي مینزي د خاوند د زوی څخه په شهوت سره مچه واخیستل، خاوند دعوه وکړه چي

زما ښځي زما د زوی څخه مچه په شهوت سره اخیستې ده مګر د مینزي بادار ووايي چي دا غلطه خبره ده نو په دغه صورت کي به نکاح ختم سي ځکه چي خاوند ددې خبري اقرار کړی دی چي زما ښځي په شهوت سره مچه اخیستې ده مګر پر خاوند باندي پوره مهر نه واجبیږي بلکه نیم مهر واجبیږي ځکه چي د هغه مینزي مالک د هغه خبره درواغ کړې ده په دې باره کي د مینزي قول معتبر نه دی چي ما په شهوت سره مچه اخیستې وه.

که یوې ښځي په جنګ او جګړې کي د خپل نېکه خاص اندام ونیوی او بیا یې وویل چي ما په شهوت سره نه وو نیولی نو دهغې د خبري اعتبار کیږي.

د حرمت مصاهرت یا د حرمت رضاعت په وجه نکاح بالکل نه باطل کیږي او نه بالکل فاسد کیږي (چي د هغه په وجه جماع کول حرام کیږي) نو خاوند باید چي طلاق ورکړي او که طلاق ور نه کړي نو قاضي دي دد واړو په مینځ کي د جلاوالي څخه مخکي که چیري د خاوند سره جماع وکړه نو پر هغه به حد نه واجبیږي که څه هم هغه جماع په شبه کي په اخته کېدو سره کړې وي یا ښېله شبه یې کړې وي، که یو سړی د یوې ښځي سره بدکاري وکړي یا یو داسي کار یې وکړ چي په هغه سره حرمت ثابتیږي لکه لاس ور وړل او داسي نور او بیا یې توبه وکښل نو دا سړی به د هغه ښځې د لور محرم وي ځکه چي د هغه انجلۍ سره نکاح کول د هغه په حق کي د همېشه لپاره حرام دي او دا ددې خبري دلیل دی چي محرمیت د زنا څخه ثابتیږي لکه لاس ور وړل او داسي نور.

د مثال په توګه زید د خالدې سره نکاح وکړه او د زید زوی (چي د خالدې د نس څخه نه دی) د خالدې د لور سره (چي د خالدې د مخکي خاوند څخه ده) نکاح وکړه یا د خالدې د مور سره یې نکاح وکړه نو په دې کي څه پروا نه سته.

که یو سړی پر خپل خاص اندام باندي د یو ټوکر په پیچلو سره جماع وکړي نو دا کتل کیږي که چیري هغه ټوکر نازک وي او د سړي خاص اندام یې د حرارت محسوس کولو څخه نه منع کوی نو د هغه ښځه به د جماع څخه وروسته د مخکي خاوند لپاره (چي هغه ورته طلاق مغلظه ورکړی وو) حلاله کیږي او که داسي وه چي د هغه ټوکر په وجه د هغه سړي خاص اندام ته حرارت نه محسوس کېدی نو هغه ښځه به د خپل خاوند لپاره حلاله نه وي.

**دریم سبب د شېدو قرابت**: یعني هغه ښځي چي د رضاعت (تي رودلو) په وجه حرامي وي، ټول هغه قرابتونه چي د نسبي او خسرګنۍ کېدو په وجه حرام دي د رضاعت په وجه هم حرام دي، که چیري یو ښځي یو کوچني ته د هغه د تي رودلو په عمر کي شېدې ورکړې نو په هغه دواړو

کي به د مور او زوی تعلق پیدا سي نو د تي رودونکي ښځي خاوند به د تي رودونکي کوچني رضاعي پلار وي چي د هغه په وجه د رضاعي مور او پلار ټول قریبان به د هغه کوچني لپاره حرام وي کوم چي د حقیقي مور او پلار د قرابت په وجه حرام وي.

د تي رودلو په عمر کي مطلقا د تي رودلو سره حرمت ثابتیږي که زیات تی یې رودلی وي او که لږ، او د کم تي رودلو آخري حد دادی چي د شېدو نس ته مطلق رسیدل په یقین سره معلوم سي.

د تي رودلو عمر د امام ابوحنیفة رحمه الله د قول سره سم تر دېرشو میاشتو پوري دی او د صاحبینو د قول سره سم تر دوو کالو پوري دی.

که یو کوچنی د تي رودلو په عمر کي د تي رودلو څخه بند سي او بیا څه وخت وروسته د هغه د تي رودلو په عمر کي تی وخوري نو دا به د رضاعت په حکم کي داخل وي ځکه چي تی رودل د کوچني د تي رودلو په وخت کي واقع کیږي او د تي رودلو د وخت تېرېدو څخه وروسته په تي رودلو سره رضاعت نه ثابتیږي.

د علماؤ پر دې خبره اتفاق دی چي د تي رودلو د مزدوري په اړه د تي رودني وخت دوه کاله منل سوی دی که یو سړی خپل ښځي ته طلاق ورکړي او هغه طلاقه سوې ښځه د هغه کوچني څخه دوه کاله عمر څخه وروسته د تي رودلو د مزدورۍ غوښتنه د کوچني د پلار (یعني خپل پخواني خاوند) څخه نه سي کولای مګر هغه طلاقي سوي ښځي چي په دوه کاله کي کوچني ته تی ورکړی دی د هغه د مزدورۍ پر ورکولو باندي مجبور کیدای سي.

د رضاعت حرمت څرنګه چي د رضاعي مور په قریبانو کي ثابتیږي همدارنګه د رضاعي پلار په قریبانو کي هم ثابتیږي او د رضاعي پلار څخه مراد د تي ورکونکي ښځي هغه خاوند دی چي د هغه سره د جماع په وجه یې شیدې پیدا سوي وي.

پر رضیع (یعني تي رودونکي) باندي د هغه د رضاعي مور او پلار او د هغه د رضاعي مور او پلار د اصول (یعني د هغوی پلار، نیکه او داسي نور) او د هغوی فروع (یعني د هغوی اولاد) که هغه نسبي وي یا رضاعي وي ټول حرام دي تر دې چي د هغه تي رودلو څخه مخکي د هغه د رضاعي مور چي کوم اولاد سوی وي یا د هغه د تي رودلو څخه وروسته چي کوم اولاد وي او هغه اولاد که څه هم د هغه رضاعي پلار څخه وي یا د رضاعي مور څخه او یا د بل خاوند څخه وي یا د هغه رضاعي مور د یو بل سړي کوچني ته تی ورکړي او یا د هغه رضاعي پلار د یو بلي ښځي څخه کوچنی پیدا سو نو دا ټول د رضیع وروڼه او خوندي او د هغه د وروڼو او خویندو اولاد هغه وریرونه، وریرې به وي، همدارنګه د رضاعي پلار ورور به د هغه اکا وي او

درضاعي پلار خور به د هغه عمه وي د رضاعي مور ورور به د هغه ماما وي او د رضاعي مور خور به د هغه خاله وي او همدارنگه د رضاعي مور انا به د هغه انا وي.

لکه څرنگه چي په رضاعت کي د نسبي قرابت حرمت ثابتيږي کوم چي لوړ بيان سول همدارنگه په رضاعت کي حرمت مصاهرت يعني د خسرگنۍ د قرابت حرمت هم ثابتيږي، د رضاعي پلار ښځه د رضيع (يعني تي رودونکي) باندي حرامه ده او د رضيع ښځه د هغه پر رضاعي پلار حرامه ده او همدارنگه نور هم قياس کړئ.

مگر دوه صورتونه مستثنی دي اول خو دا که چيري يو سړی دا وغواړي چي د خپل نسبي زوی د خور سره نکاح وکړي نو دا د هغه لپاره جائز نه دي مگر په رضاعت کي جائز دي ځکه چي د يو سړی د نسبي زوی خور که د هغه د نطفې څخه نه وي نو هغه به د هغه حقيقي لور وي او که د هغه د نطفي څخه نه وي نو بيا ربيبه (يعني د هغه ميريزۍ لور) به وي حال دا چي د رضاعت په قرابت کي دغه دواړي خبري مفقود دي که چيري په نسبي قرابت کي هم په دغه دواړو خبرو کي يوه خبره موجود سي نو نکاح صحيح کيږي مثلاً د يو داسي مينزي کوچنی پيدا سو چي د دوو خلکو مشترکه مملوکه ده او هغه دواړه شريکان پر هغه کوچني باندي خپل خپل دعوا کوي تر دې چي د هغه کوچني نسب د هغه دواړو څخه ثابت سو او بلي خوا ته د دغه دواړو سره د خپل خپل ښځي څخه يوه يوه لور ده نو اوس په دغه دواړو کي هر يو ته دا جائز دي چي هغه د دوهم شريک د لور سره خپل نکاح وکړي ځکه چي په دغه صورت کي د دغه دواړو په خبرو کي يوه خبره هم نه موجود کيږي سره د دې چي په هغوی کي کوم د دوهم د لور سره نکاح کړې ده يعني هغه د خپل نسبي زوی د لور سره نکاح کړې ده.

دوهمه مسئله داده چي د هيچا لپاره دا جائز نه دي چي هغه د خپل نسبي ورور د مور سره نکاح وکړي او د رضاعت په قرابت کي دا جائز وي ځکه چي په نسبي قرابت کي يا خو به دا صورت وي چي هغه دواړه به اخيافي وړونه وي همدارنگه د دواړو مور به يوه وي يا به دا صورت وي چي هغه دواړه به ميريزي وړونه وي نو د داسي ورور مور به د خپل پلار ښځه وي حال دا چي د رضاعت په قرابت کي دغه دواړي خبري مفقود وي (يعني نه سته).

د تي شريک ورور د خور سره (يعني چا چي د هغه د مور تی رودلی وي د هغه د خور سره) نکاح کول جائز دي لکه څرنگه چي په نسبي قرابت کي جائز دي مثلاً د زيد يو ميريزی ورور دی چي د هغه نوم بکر دی او د بکر يوه اخيافي خور ده (يعني د دواړو مور يوه ده مگر پلار يې جلا دی) نو بکر د دغه خيافي خور سره نکاح کول د زيد لپاره جائز دي چي د بکر ميريزی ورور دی.

د تي رودلو شريک ورور مور (يعني چا چي د هغه د مور تی رودلی وي د هغه مور) د محرماتو ځخه نه ده ، همدا رنګه د خپل رضاعي ورور انا سره هم نکاح کول جائز دي د رضاعي زوی د عمه د هغه د خور مور ، د هغه خورزه او د هغه د عمه د لور سره هم نکاح کول جائز دي همدا رنګه ښځي ته د خپل رضاعي خور د پلار ، دخپل رضاعي زوی د ورور او د خپل رضاعي ملسي د پلار او د رضاعي زوی د نيکه او ماما سره نکاح کول جائز دي حال دا چي په نسبي قرابت کي دا ټول محرمات دي چي د هغوی سره نکاح جائز نه دي .

که يو سړی خپل ښځي ته چي د هغې شيدې يې اېله کړي وي طلاق ورکړي بيا هغه طلاقه سوې ښځه د عدې تېرولو ځخه وروسته د يو بل سړي سره نکاح وکړي او د هغه دوهم خاوند سره جماع وکړي نو په دې باره کي د علماؤ پر دې اتفاق دی چي د هغې د دوهم خاوند د نطفې ځخه چي د هغې کوچنی وسي نو د هغه د شېدو سبب به هم دوهم خاوند ګرځول کيږي د هغه شېدو سره د اول خاوند هيڅ تعلق نه پاته کيږي مګر که چيري د دوهم خاوند ځخه حامله سوې نه وي نو د هغې د شېدو سبب به اول خاوند ګڼل کيږي مګر که چيري دا صورت وي چي د هغه دوهم خاوند ځخه حامله سوه مګر تر اوسه يې کوچنی نه دی پيدا سوی نو امام ابو حنيفة رحمة الله عليه وايي چي تر څو پوري د دوهم خاوند کوچنی پيدا نه سي هغه شېدې د اول خاوند ګڼل کيږي .

يو سړی د يوې ښځي سره نکاح وکړي مګر د هغې ځخه يې هيڅ اولاد پيدا نه سو بيا (بېله ولادته) د هغې شېدې را اېله سوې او هغې شيدې يو بل کوچني ته ورکړې نو هغه به د هغه ښځي ګڼل کيږي د هغې د خاوند به د هغه شېدو سره هيڅ تعلق نه وي په دغه صورت کي هغه تی رودونکی کوچنی او د هغه سړي د اولاد په مينځ کي چي د دوهمي ښځي ځخه وي د رضاعت حرمت نه ثابتيږي .

يو ځوک د يوې ښځي سره زنا وکړي او د هغه په نتيجه کي د هغې کوچنی پيدا سو او بيا هغه ښځي يو بلي انجلۍ ته تی ورکړی نو د هغه زنا کونکي د هغه د پلار نيکه او د هغه اولاد ته د هغه تي رودونکي انجلۍ سره نکاح کول جائز نه دي مګر د زنا کونکي اکا او د هغه ما ما نکاح ورکولای سي لکه ځرنګه چي د زنا کولو په نتيجه کي د پيدا کېدونکي انجلۍ سره د زنا کونکي اکا او ماما نکاح کولای سي ، يو سړی په غلطۍ سره د يو ښځي سره جماع وکړي چي په هغه سره حامله سوه او بيا هغې يو کوچني ته تی ورکړی نو دغه کوچنی به د هغه جماع کونکي رضاعي ورور وي، پر دغه مسئله باندي دا قياس کول پکار دي چي په کومو صورتو کي د کوچني نسب د جماع کونکي ځخه ثابتيږي نو په هغه صورتو کي د رضاعت قرابت هم د هغه

څخه ثابتیږي او په کومو صورتو کي چي د کوچني نسب د جماع کونکي څخه نه ثابتیږي نو په هغه صورتو کي به د رضاعت قرابت د تي ورکونکي ښځي څخه ثابتیږي .

یو سړی د یوې ښځي سره نکاح وکړي او د هغه ښځي کوچنی پیدا سو ښځي خپل کوچني ته تی ورکړی او وروسته یې شېدې وچي سوې ، څه وخت وروسته یې بیا شېدې پیدا سوې او هغې یو بل هلک ته هغه تی ورکړی نو اوس د هغه هلک لپاره د هغه سړي د اولاد سره نکاح کول جائز دي چي د هغه تي ورکونکي ښځي څخه پرته د یو بلي ښځي د د نس څخه وي .

د یوې پیغلي انجلۍ شېدې راغلې او هغې خپل تی یو کوچنی ته ورکړی نو دا به د هغه کوچني رضاعي مور وي او د رضاعت ټول احکام به د دواړو په حق کي ثابت وي ، که یو سړی د یو پیغلي انجلۍ سره نکاح وکړي او د جماع څخه مخکي هغې ته طلاق ورکړي نو د هغه سړي لپاره به د هغه تي خوړونکي انجلۍ سره نکاح کول جائز وي او که چیري د جماع څخه وروسته طلاق ورکړي نو د هغه انجلۍ سره نکاح کول جائز نه دي .

که چیري د یو داسي انجلۍ شېدې راغلې چي د هغې عمر د نهه کلو څخه کم وو او بیا هغې یو هلک ته تی ورکړی نو د دواړو په مینځ کي د رضاعت حرمت نه ثابتیږي ځکه چي د رضاعت حرمت په هغه صورت کي ثابتیږي کله چي تی د نهه کالو یا دنهه کالو څخه په زیات عمر کي ورکړل سي همدارنګه که چیري د پیغلۍ انجلۍ په تیانو کي ژړي اوبه را غلې نو د هغه په څېښلو سره هم د رضاعت حرمت نه ثابتیږي .

که یوې ښځي د یو کوچني په خوله کي خپل تی دننه کړ مګر هغه کوچني ته د هغې د تیانو رودل معلوم نه سول نو په دغه صورت کي د شک په وجه د رضاعت د حرمت حکم نه نافذ کیږي البته د احتیاط تقاضا داده چي حرمت ثابت کړل سي .

د یوې ښځي د تي څخه ژړي نرۍ اوبه د کوچني خولې ته ورسیدلې نو د رضاعت حرمت به ثابت سي او دا به ویل کیږي چي دا شیدې دي رنګ یې بدل سوی دی .

که یو څوک د تیانو څخه شیدې راوباسي او هغه په یو کوچني باندي وڅېښي نو په دې سره د رضاعت حرمت نه ثابتیږي او د حرمت ثابت کېدو لپاره د ژوندۍ او مړې ښځي د شېدو یو ډول حکم دی ، که چیري دوو کوچنیانو د یو څاروي شیدې وڅېښلې نو په هغه سره د رضاعت حرمت نه ثابتیږي .

د رضاعت حکم په دارالاسلام او او دار الحرب دواړو کي یو ډول دی که یو کافري ښځي په دارالحرب کي یو کافر کوچني ته تی ورکړی او بیا هغه مسلمان سو یا هغوی د دار الحرب

ځخه دار الاسلام ته راغلل نو پر هغوی د رضاعت ټول احکام جاري کیږي .

لکه څرنګه چي د ښځي د تي ځخه د شېدو په ځېښلو سره رضاعت ثابتیږي همدارنګه د کوچني په خوله کي د شېدو په اچولو سره یا په پزه کي په لوېشلو سره هم د رضاعت حرمت ثابتیږي البته په غوږو کي په څڅولو سره او د خاص اندام په سوري کي په اچولو سره او په مقعد کي او د نس په زخم کي په اچولو سره د رضاعت حرمت نه ثابتیږي که څه هم شېدې د هغه زخمونو په ذریعه دماغ او نس ته ورسیږي مګر د امام محمد رحمه الله په نزد په حقنه (پېچکاری) په استعمالولو سره حرمت ثابتیږي .

که د خوراک په یو شي کي شیدې ګډي سي او هغه پر اور باندي په ګرمولو سره خوراک ځیني جوړ سي چي د هغه په وجه د شیدو حقیقت بدل سي نو د هغه په خوړلو سره حرمت نه ثابتیږي که څه هم شیدې غالبي وي یا مغلوبي وي او که چیري د خوراک سره یو ځای سوې شېدې پر اور پخې نه سي نو په دغه صورت کي هم د هغه په خوړلو سره حرمت نه ثابتیږي ځکه چي په هغه شي کي شیدې غالب نه وي او که چیري شیدې غالب وي نو د امام ابوحنیفة رحمه الله په نزد حرمت نه ثابتیږي ځکه چي بهیدونکی شی د وچ شي سره مخلوط سو نو بهیدونکي شی د هغه وچ شي تابع سو او د مشروباتو د ډول ځخه ووتی یعني د ځېښلو وړ نه سو ځکه علماء کرام وایي چي په کوم شي کي شیدې ګډي سوي وي او هغه غالبي نه وي او هغه شی د بهېدو وړ وي نو د هغه په ځېښلو سره حرمت ثابتیږي .

که د ښځي شیدې د پسو د شېدو سره ګډي سي او د ښځي شیدې غالبي وي نو د هغه په ځېښلو حرمت ثابتیږي همدارنګه که چیري ښځي په خپلو شیدو کي ډوډۍ خشته کړه او ډوډۍ شیدې جاذب کړې او هغه ډوډۍ یې په یو کوچني وخوړل که چیري په هغه کي د شېدو ذریعه موجود وي نو حرمت به ثابت سي مګر د خوند د موجودتیا شرط په هغه صورت کي دی کله چي د هغه په ګوله ګوله سره وخوړل سي او که په یو وار په وځېښل سي نو بیا به هم حرمت ثابت سي.

که د ښځي شېدې او د یو حیوان شیدې ګډي سي نو په هغه کي د غالب اعتبار دی یعني که چیري د ښځي شیدې غالبي سي نو د هغه په ځېښلو سره حرمت ثابتیږي او که اوبه یا بل شی غالب سي نو حرمت نه ثابتیږي همدارنګه که چیري د ښځي شېدې په یو بهېدونکي شي کي ګډي سي نو غالب ته اعتبار وي او د غالب ځخه مراد دادی چي د هغه رنګ، بوی، او خوند درې سره شیان په هغو کي یو شی محسوس سي او که چیري دوه شیان برابر وي نو د حرمت ثابت کېدل به ضروري سي ځکه چي شیدې مغلوب نه وي .

كه د دوو ښځو شېدې يو ځاى سوي وي نو د امام ابوحنيفة او امام ابويوسف رحمة الله عليهما په نزد د هغه ښځي څخه د رضاعت حرمت ثابتيږي د كومي چي شېدې زياتي او غالبي وي مګر امام محمد رحمه الله وايي چي په هغه صورت كي د ښځو څخه حرمت ثابتيږي ، د امام ابوحنيفة رحمه الله يو قول دا هم دى او دا قول زيات صحيح او احتياط ته نژدې دى كه چيري د دواړو ښځو شيدې مساوي وي نو بيا په اتفاق سره (يعني د درو سره امامانو ) مسئله داده چي د دواړو ښځو سره د رضاعت حرمت ثابتيږي .

كه يو ښځي د خپل شېدو څخه مستې، شلومبې يا بل شى جوړ كړى او په يو كوچني يې وخوړى نو په دې سره حرمت نه ثابتيږي ځكه چي پر دې د رضاعت اطلاق نه كيږي .

د كلي يوې ښځي يو كوچني ته تى وركړى مګر وروسته د هيچا په ياد نه سول چي هغه تى وركونكې ښځه څوک وه بيا د هغه كلي يو سړي د هغه انجلۍ سره نكاح وكړه نو دا نكاح به جائز وي ،

د ښځو لپاره ضروري ده چي بېله ضرورته يو كوچني ته خپل تى ور نه كړي او كه چيري يو كوچني ته تى وركړى نو بايد په ياد يې ولري ياد ځان سره يې وليكي (د ښځو عادت وي چي هغوى بېله ضرورته د نورو كوچنيانو په خوله كي خپل تى وركوي او هغوى ته شېدې وركوي او بيا وروسته يې په ياد هم نه وي چي كوم كوچني ته ما تى وركړى دى) په دې وجه د حرمت رضاعت د احكامو څرګنده خلاف ورزي كيږي نو په دې باره كي بايد احتياط وسي .

كه تى مخكي وركړل سوى وي او كه وروسته وركړل سي د رضاعت حرمت په هر صورت كي ثابتيږي په مخكي او وروسته كي څه فرق نه سته ، كه يو سړى د يو تي رودونكي انجلۍ سره نكاح وكړه او بيا د هغه سړي (يعني خاوند) نسبي يا رضاعي مور يا خور هغه انجلۍ ته خپل تى وركړى نو دا انجلۍ به د هغه سړي لپاره حرامه سي او پر هغه به نيم مهر واجب وي مګر د هغه نيم مهر په توګه چي كومي روپۍ ادا كوي هغه به د مرضعه (تي وركونكي) څخه اخلي په شرط د دې چي هغې تى محض د شرارت (يعني نكاح ختمولو لپاره) وركړى وي او كه چيري د هغې د شرارت نيت نه وي (بلكه هغه انجلۍ د لوږي څخه ژړېدل او هغه ښځي د همدردۍ څخه تى وركړى) نو بيا به د خاوند څخه د هغه روپو مطالبه نه سي كيداى .

يو سړي د دوو تي رودونكو انجونو سره نكاح وكړه ، وروسته يو پردۍ ښځه راغلل او هغه دواړو انجونو ته يې يو ځاى پر له پسې تى وركړى نو هغه دواړي انجوني به د سړي لپاره حرامي سي او بيا ددې څخه وروسته هغه چي په دواړو كي كومه يوه خوښه كړي د هغې سره

نکاح کولای سي او که درې انجوني وي او هغه ښځي درو سره ته پر یو ځای تی ورکړی وي نو هغه درې سره به حرامي سي او ددې څخه وروسته په هغه درو کي چي کومه یوه دده خوښه وي د هغې سره دي نکاح وکړي او که چیري درو سره ته یې یو په بل پسې تی ورکړی وي نو اولي دوې خو به حرامي سي او دریمه به د هغه ښځه وي ، او که چیري اول یې دوو انجونو ته تی ورکړی وي او د هغه څخه وروسته یې دریمي ته ورکړی وي نو بیا هم دا حکم دی او که چیري مخکي یې یوې انجلۍ ته تی ورکړی وي او ورسته یې دوو انجونو ته یو ځای تی ورکړی وي نو درې سره به حرامي سي او په هغوی کي به د هري انجلۍ نیم مهر پر واجب سي چي هغه به یې د تي ورکونکي څخه اخلي په شرط ددې چي د هغې د شرارت نیت وي او که چیري څلور انجوني وي او هغه ښځي څلور سره انجونو ته پر یو ځای یا یو په بل پسې تی ورکړی وي نو څلور سره به حرامه سي او که مخکي یې یوې ته او بیا درو ته تی ورکړی وي نو بیاهم دا حکم دی ،

که یو سړی د یوې لوی ښځي سره او د یوې تي رودونکي انجلۍ سره نکاح وکي او بیا لویه ښځه کوچنۍ انجلۍ ته خپل تی ورکړي نو دواړي به حرامه سي او س که چیري هغه د لوی ښځي سره جماع نه وي کړې نو هغې ته به مهر نه ورکول کیږي او کوچنۍ انجلۍ ته به نیم مهر ورکول واجب وي چي هغه به یې د لوی ښځي څخه اخلي په شرط ددې چي د هغې د شرارت نیت وي او که چیري د هغې د شرارت نه وي نو بیا د هغې څخه هیڅ نه اخستل کیږي که څه هم دغه لوی ښځي ته معلومه وي دغه انجلۍ زما د خاوند ښځه ده .

د رضاعت ثبوت د دوو خبرو څخه په یوې خبري کیږي یو اقرار (یعني یو ښځه خپله اقرار وکړي چي ما فلاني ته تی ورکړی دی ) او دوهم شاهدي (یعني شاهد دا شاهدي ورکړي چي فلانۍ ښځي فلاني ته خپل تی ورکړی دی) او د رضاعت په اړه شاهدي یا خو د دوو کسانو معتبره وي یا د یوه سړي او دوو ښځو په شرط ددې چي هغوی عادل وي .

(د رضاعت په وجه چي د ښځي او سړي په مینځ کي) کوم جلاوالی کیږي هغه د قاضي د حکم په ذریعه کیدای سي او کله چي دوه عادل خلک یا یو سړی او دوې ښځي د رضاعت شاهدي ورکړي او د هغه پر بنیاد قاضي د هغو دواړو په مینځ کي جلاوالی راولي نو ښځي ته به هیڅ نه ورکول کیږي په شرط ددې چي د هغې سره یې جماع نه وي کړې او که چیري جماع یې ورسره کړې وي نو مهر مثل او مهر متعین څخه چي کوم مقدار کم وي هغه مهر به پر خاوند واجب وي او نفقه او سکنه (یعني د خوراک او اوسیدو لپاره د سرای انتظام) به واجب نه وي .

که چیري دوو عادل خلکو یا یو سړی او دوو ښځو د نکاح کېدو څخه وروسته د واده سوي

ښځي په مخکي دا شاهدي ورکړه (او هغوى وويل چي د خاوند سره ستا رضاعت ثابت دى) نو هغه ښځي ته د خاوند سره اوسيدل جائز نه دي ځکه چي دا شاهدي صحيح ده په دې توګه چي څرنګه چي شهادت د قاضي په مخکي ورکړى وي نو رضاعت به ثابت سوى واى او هغه به د دواړو په مينځ کي جلا والى کړى واى همدارنګه کله چي دغه شاهدي د ښځو په مخکي وسي نو ددې حکم به هم هغه وي او که د رضاعت دغه خبر يوازي يوه سړى ورکړى او د هغه ښځي په زړه کي دا خبره پيدا سي چي دغه سړى رښتيا وايي نو د خاوند څخه پرهيز کول غوره دى مګر واجب نه دى.

يو سړى د يوې ښځي سره نکاح وکړي او د هغه څخه وروسته يو بله ښځه راغلل او دواړو ته يې وويل چي ما تاسو دواړو ته تى درکړى دى نو ددغه مسئلې څلورو صورتونه دي:

۱. که دواړو (ښځي او خاوند) په هغه ښځي باور وکړ نو نکاح به فاسد سي او ښځي ته به هيڅ مهر نه ورکول کيږي په شرط ددې چي د هغې سره جماع نه وي سوې.
۲. که ښځه او خاوند د هغه ښځي باور ونه کړي نو نکاح به بحال وي مګر که هغه ښځه عادله وي نو بيا د احتياط له مخي خاوند بايد خپل ښځه پريږدي، اوس که چيري هغه خپل ښځه پرېښودل نو غوره داده چي خاوند نيم مهر ورکړي او د ښځي لپاره غوره داده چي هغه هيڅ شى وانه خلي په شرط ددې چي پرېښودل د جماع څخه مخکي وي او که چيري د پرېښودو څخه مخکي جماع سوې وي نو د سړي لپاره غوره دادي چي د هغې پوره مهر هم ورکړي او د عدې تر وخت پوري د هغې نفقه او سکنه هم ورکړي او د ښځي لپاره غوره داده چي په مهر مثل او تاکل سوي مهر کي چي کوم مقدار کم وي هغه دي واخلي او نفقه او سکنه دي نه اخلي او که چيري خاوند ښځه نه پرېښودل نو ښځي ته د خاوند سره اوسېدل جائز دي همدارنګه که دوو ښځو يا يو سړي او يوې ښځي يا دوو غير عادل خلکو يا يوه غير عادل سړي او دوو ښځو د رضاعت شاهدي وکړه نو د هغه به هم هغه حکم وي يعني خاوند ته غوره داده چي هغه خپل ښځه پريږدي.
۳. که خاوند د هغه ښځي باور وکړي او ښځي يې باور ونه کړي نو نکاح به فاسد سي او مهر ورکول به واجب سي.
۴. که ښځه د هغه ښځي اعتبار وکړي مګر خاوند د هغې باور ونه کړي نو نکاح به پر خپل حال وي مګر د ښځي لپاره دا ضروري دي چي هغه خاوند ته قسم ورکړي (چي په حقيقت کي د هغه ښځي خبري صحيح نه ده) که سړي د قسم اخيستلو څخه انکار وکړي نو د دواړو په

مینځ کي به جلا والی راوستل کیږي.

یو سړي د یوې ښځي سره نکاح وکړي او بیا وو ایي چي دا زما رضاعي خور ده یا هغې ته یو بل ډول د رضاعت نسبت وکړي او ددې څخه وروسته هغه وو ایي چي ما ته وهم سوی وو ما چي څه ویلي دي هغه غلط دي نو استحسانا د دواړو په مینځ کي به جلاوالی نه راوستل کیږي په شرط ددې چي هغه پر خپل دوهمي خبري باندي قائم وي او که چیري هغه پر خپل اولي خبري قائم وي او دا وو ایي چي ما څه ویلي دي هغه صحیح دي نو په دغه صورت کي به د دواړو په مینځ کي جلاوالی کیږي، ددې څخه وروسته که هغه د خپل خبري څخه انکار وکړي نو د هغه به څه ګټه نه وي او که چیري ښځه د خپل خاوند د خبري تصدیق وکړي نو هغې ته به هیڅ نه ورکول کیږي (په شرط ددې چي د هغې سره جماع نه وي سوې) او که ښځه د خپل خاوند تکذیب وکړي نو پر سړي باندي د هغې نیم مهر واجبیږي (په شرط ددې چي د هغې سره جماع نه وي سوي) او که چیري د هغې سره جماع سوې وي او هغه د خپل خاوند د خبري تصدیق ونه کړي نو پر سړي باندي د هغې ټول واجب دي مګر په نفقه او سکنه کي هیڅ نه واجبیږي.

که یو څوک د یوې ښځي په باره کي د هغې سره د نکاح کولو مخکي دا وو ایي چي دا زما رضاعي خور ده یا رضاعي مور ده او بیا وروسته وو ایي چي ما ته وهم سوی وو یا زما څخه خطا سوې وه (یعني ما چي مخکي څه ویلي دي هغه غلط دي) نو هغه سړي ته به د هغه ښځي سره نکاح کول جائز وي او که چیري پر خپل پخوانی خبره قائم نوي یعني وروسته هم وایي چي ما مخکي څه ویلي دي هغه صحیح دي نو په دغه صورت کي به د هغه ښځي سره د هغه نکاح کول جائز نه وي او که ددې سربېره نکاح وکړي نو د دواړو په مینځ کي به جلاوالی کیږي او که چیري هغه د خپل پخواني اقرار څخه انکار وکړي یعني دا وو ایي چي ما دا اقرار نه وو کړی چي دا زما رضاعي مور ده یا خور ده مګر دوو کسانو ددې خبري شاهدي ورکړه چي ده اقرار کړی دی نو بیا په دغه صورت کي هم د هغوی په مینځ کي جلاوالی راوستل کیږي.

که یوه ښځه د یو سړي په باره کي اقرار وکړي چي دی زما رضاعي پلار یا رضاعي ورور دی مګر سړي د هغه څخه انکار وکړ او ددې څخه وروسته بیا ښځي هم د خپل قول تردید وکړ او هغې وویل چي زه غلطه سوې وم نو بیا د سړي د هغه ښځي سره نکاح جائز کیږي او همدارنګه که سړي د هغه ښځي سره نکاح وکړي مخکي تر دې چي هغه ښځي د خپل قول تردید وکړي نو نکاح به صحیح وي.

که یو سړی د یوې ښځي سره (چي د هغه په نکاح کي وي) د خپل نسبي قرابت اقرار وکړي

يعني داسي ووايي چي دا زما ښځه زما حقيقي مور ده يا حقيقي خور ده يا حقيقي لور ده او د هغې ښځي نسب چا ته معلوم نه وي او هغه سړی دا صلاحيت ولري (يعني د هغه په اړه دا كيدای سي چي هغه ښځه د هغه لوريا مور وي) نو د هغه سړي څخه به دوهم وار پوښتنه كيږي اوس كه چيري هغه دا ووايي چي زه خطاوتلی وم يا ما غلطي وكړه يا زما څخه هېره سوې وه نو استحسانا د هغوی نكاح به باقي وي او كه چيري پر دوهم وار پوښتنه كولو باندي هغه ووايي چي ما څه ويلي دي هغه صحيح دي نو بيا په دواړو كي جلاوالی راوستل كيږي او كه چيري سړی دا صلاحيت نه لري (يعني د هغه دواړو په عمر كي دومره فرق وي چي هغه ددې خبري امكان نه لري) چي هغه ښځه د كم عمر وي او هغه ښځه د هغه حقيقي مور يا د هغه حقيقي خور سي نو نسبت به ثابت نه وي او د هغه دواړو په مينځ كي به جلاوالی نه سي راوستل كېدای او كه چيري سړی د خپل ښځي په باره كي ووايي چي دا زما حقيقي لور ده او بيا وروسته د خپلي خبري ترديد ونه كړي بلكه پر هغه ټينګار كوي حالنكه خلكو ته د هغه د لور نسب معلوم دی (يعني خلكو ته دا معلومه ده چي دا د هغه لور نه ده بلكه د بل چا لور ده) نو د دوی دواړو په مينځ كي به جلاوالی نه سي راوستل كيدای او همدارنګه كه چيري هغه ووايي چي دا زما حقيقي مور ده حالنكه خلكو ته د هغې نسب معلوم وي (يعني خلكو ته معلومه وي چي دا د هغه مور نه ده) نو په دغه صورت كي هم د دواړو په مينځ كي جلاوالی نه سي راوستل كيدای.

**څلورم سبب جمع كول**: يعني هغه ښځي چي د نورو ښځو سره په جمع كېدو سره د محرماتو څخه كيږي او د هغوی دوه ډولونه دي ۱: پردی ښځي جمع كول، ۲: ذوات الارحام جمع كول.

د اول قسم يعني د پرديو ښځو جمع كولو مطلب دادی چي (شريعت د څومره نكاحو اجازه وركړې ده) د هغو څخه زياتي نكاوي كول، شريعت ازاد سړي ته په يوه وخت كي د څلورو نكاحو اجازه او غلام ته د په يوه وخت كي د دوو نكاح اجازه وركړې ده، نو د ازاد سړي لپاره دا جائز نه دي چي هغه په يوه وخت كي د څلورو څخه زياتي ښځي وكړي او د غلام لپاره دا جائز نه دي چي هغه په يوه وخت كي د وو څخه زياتي ښځي وكړي، د ازاد سړي لپاره دا جائز دي چي هغه په يوه وخت كي څومره چي غواړي (بېله نكاح) مينزي وساتي د شمېر يو قيد نه سته مګر غلام ته (بېله نكاح) د مينځو ساتل جائز نه دي كه څه هم د هغه بادار اجازه وركړي، د ازاد سړي لپاره دا جائز دي چي په يوه وخت كي د څلورو ښځو سره نكاح وكړي او هغه څلور ښځي كه ازادي وي او كه مينزي وي او كه ازادي او مينزي ګډي وي.

كه يو سړی د پنځه ښځو سره په يوه عقد كي نكاح وكړي نو د ټولو ښځو نكاح باطل ده،

همدارنګه که يو غلام د درو ښځو سره نکاح وکړي نو د درو سره يو په بل پسې د نکاح کولو په صورت کي به اولي دوې نکاوي صحيح سي او دريمه به باطله سي او که په درې سره په يوه عقد کي په نکاح کړي نو ټولي نکاوي به باطل سي ·

که يو حربي کافر د پنځه کافرو ښځو سره نکاح وکړي او بيا هغه ټول (يعني خاوند او پنځه ښځي) مسلمانان سي نو دا پنځه نکاوي چي يو په بل پسې سوي دي اول څلور ښځي به جائز وي او پنځمي ښځي ته به طلاق ورکوي او که پنځه سره نکاوي په يوه عقد سوي وي نو ټولي به باطله سي او هغه ټولو ته به طلاق ورکوي ·

که يو سړی اول د يوې ښځي سره نکاح وکړي او بيا د څلورو نورو ښځو سره نکاح وکړي نو يوازي د اولي ښځي نکاح به صحيح وي او د نورو څلورو نکاح به صحيح نه وي ·

که يوې ښځي په يوه عقد کي د دوو خلکو سره نکاح وکړه او په هغوی کي د يوه سړي په نکاح کي له مخکي څخه څلور ښځي وي نو د هغې نکاح به ددغه دوهم سړي سره صحيح وي (چي د هغه په نکاح کي څلور ښځي نه وي) او که چيري د دواړو خلکو په نکاح کي له مخکي څخه څلور څلور ښځي وي يا په هغوی کي د يوه په نکاح کي هم څلور ښځي نه وي نو دا نکاح په د هيڅ يوه سره هم صحيح نه وي ·

د جمع کولو دوهم ډول يعني د ذات الارحام د جمع کولو مطلب دادی چي داسي دوې ښځي په يوه وخت کي په خپل نکاح کي وساتل سي چي په خپلو کي ذي رحم او نسبي قرابت ولري نو دوې خويندي په يوه وخت کي په خپل نکاح کي حرامي دي همدارنګه دوې خويندي د مينځو په جوړولو سره او د هغوی سره جماع کول هم حرام دي (يعني که دوې خويندي د يو چا په ملکيت کي وي نو د دواړو سره جماع نه سي کولای ) ددې تفصيل مخته رائحي ، که هغه دواړي نسبي خويندي وي يا رضاعي خويندي وي ·

په دې باره کي اصل دادی چي داسي دوې ښځي چي د يوې بلي قريبه وي او داسي قرابت وي که په هغوی کي يوه د سړي په نکاح کي راسي نو په خپلو کي به د هغوی نکاح صحيح نه وي که څه هم هغه قرابت حقيقي وي يا رضاعي وي نو داسي دوې ښځي په يوه وخت کي په خپل نکاح کي ساتل جائز نه دي همدارنګه يوه انجلۍ او د هغې حقيقي يا رضاعي خاله يا دا ډول نور ښځي په يوه وخت کي په خپل نکاح کي راوستل جائز نه دي مګر که چيري يوه ښځه او د مخکي خاوند لور (چي د هغې د نس څخه نه وي) په يوه وخت کي په نکاح کول جائز دي ځکه که چيري هغه ښځه د سړي سي نو د هغې خاوند به د هغه پردی سره د هغه نکاح کول جائز وي

د دې برعکس که چیري هغه انجلۍ پر سړي فرض سي نو د هغه لپاره به هغه ښځه یعني د پلار د ښځي سره نکاح کول جائز نه وي ، همدارنګه یوه ښځه او د هغې مینزه په یوه وخت کي په خپل نکاح کي راوستل جائز دي په شرط د دې چي مخکي یې د هغه مینزي سره نکاح کړې وي .

که یو سړی دوې خویندي په یوه عقد کي په نکاح کړي نو نکاح به باطل وي او دواړي به د خاوند څخه جلا کیږي او بیا که چیري جلاوالی د دخول (یعني کوروالي) څخه مخکي وي نو هغه دواړو ته به د مهر په توګه هیڅ نه ورکول کیږي او که چیري جلاوالی د جماع څخه وروسته وي نو مهر مثل او مهر متعین کي چي کوم مقدار کم وي هغه به په دواړو کي هري یوې ته ورکول کیږي، که یو سړی د دوو خویندو سره په دوو عقدو کي یعني یو په بل پسې نکاح وکړي نو کومه چي یې وروسته کړې وي نو هغه به فاسد وي او د خاوند لپاره به ضروري وي چي د هغې څخه جلاوالی اختیار کړي که خپله جلاوالی اختیار نه کړي او قاضي په دې خبري سي نو قاضي دي د دوی په مینځ کي جلاوالی راولي او بیا که چیري دغه جلاوالی د جماع څخه مخکي وي نو د جلاوالي په احکامو (یعني مهر، عدت او داسي نورو) کي به هیڅ حکم نافذ نه وي او که چیري د جماع څخه وروسته جلاوالی راسي نو په مهر مثل او تاکل سوي مهر کي چي کوم مقدار کم وي هغه به ورکول کیږي او پر هغې به عدت تېرول واجب وي او که چیري کوچنی پیدا سي نو د هغه نسب به ثابت وي او هغه سړي ته به د خپل ښځي څخه تر هغه وخته پوري جلا پیدل وي تر څو چي د هغې د خور عدت پوره نه سي او که چیري یو سړی د دوو خویندو سره دوو عقدو کي نکاح وکړي مګر دا معلومه نه وي چي د کومي خور سره یې مخکي او د کومي سره یې وروسته نکاح کړې ده نو په داسي صورت کي به خاوند ته حکم ورکول کیږي چي بیان وکړي که چیري هغه بیان وکړي نو د هغه د بیان سره سم به عمل وکړل سي او بیا قاضي به د دواړو په مینځ کي جلاوالی وکړي او د جلاوالي څخه وروسته هغه دواړو ته به نیم مهر ورکول کیږي په شرط د دې چي د دواړو مهر مساوي وي او که مهر مساوي نه وي نو په هغوی کي هري یوې ته به د مهر څلورمه برخه ورکول کیږي او که چیري د عقد پر وخت مهر ټاکل سوی نه وي نو د نیم مهر پر ځای به یوه جوړه جامې دواړو ته ورکول کیږي او که چیري جلاوالی د جماع څخه وروسته سوی وي نو هري یوې ته به د هغې مهر پوره ورکول کیږي .

ابو جعفر هندواني رحمة الله علیه وایي چي د ذکر سوي مسئلې دا حکم هغه وخت دی کله چي د دواړو څخه هره یوه دا دعوه وکړي چي مخکي یې زما سره نکاح سوې ده او شاهد د یوې هم نه وي نو دواړو ته به نیم مهر ورکول کیږي مګر که چیري دواړي دا ووایي چي موږ ته هیڅ معلوم

نه دي چي په موږ کي يې د کومي يوې سره مخکي نکاح کړې ده نو د هغوی په باره کي به هيڅ
فيصله نه کيږي تر څو چي دواړي پر يوه خبره په متفق کېدو سره صلح ونه کړي او د دواړو د
صلح صورت به دا وي چي هغه دواړي قاضي ته ورسي او ورته ووايي چي زموږ دواړو مهر
زموږ پر خاوند واجب دی او زموږ په دغه غوښتنه کي يو دريم دعوه کونکی ګډ نه دی (يعني
زموږ پر خاوند چي کوم مهر واجب دی په هغه کي زموږ د دواړو څخه پرته د بلي دريمي ښځي
حق نه سته) نو موږ دواړي پر دې خبره صلح او اتفاق کوو چي نيم مهر واخلو ددې څخه وروسته
به قاضي فيصله کوي که په هغه دواړو کي هري يوې د خپل نکاح مخکي کېدو باندي شاهد
وړاندي کړی نو پر سړي باندي به نيم مهر واجب وي چي ددواړو په مينځ کي به وويشل سي پر
دغه حکم د ټولو علماؤ اتفاق دی او د دواړو خويندو په باره کي چي کوم احکام بيان سوي دي
هغه به داسي په ټولو ښځو کي جاري کيږي چي د هغوی جمع (يعني هغوی په يوه وخت کي په
نکاح کول) حرام وي، او که چيري دغه سړی (يعني چاچي د دوو خوېندو سره په يوه عقد کي
نکاح کړې وه او دا نکاح د باطل کېدو په وجه د دواړو خويندو او د هغه په مينځ کي جلاوالی
کړی دی)د هغه دواړو خويندو څخه د جلاوالي وروسته بيا په هغه دواړو کي د يوې سره نکاح
کول غواړي نو نکاح کولای سي په شرط ددې چي جلاوالی د جماع څخه مخکي سوی وي او که
چيري جلاوالی د جماع څخه وروسته سوی وي نو په دغه صورت کي د دواړو خويندو د عدت
تېرېدو څخه مخکي نکاح کول به جائز نه وي او که چيري يوه په عده کي وي او د دوهمي عده
پوره سوې وي نو د هغه خور سره نکاح کول جائز دي کومه چي په عده کي وي او د دوهمي سره
تر هغه وخته پوري نکاح کول جائز نه دي تر څو چي د هغې عده پوره نه سي ، او که چيري د
جلاوالي څخه مخکي په هغه دواړو کي د يوې سره جماع سوې وي نو بيا د هغه خور سره نکاح
کول جائز دي چي د هغې سره جماع سوې وي او (که چيري د هغه خور سره نکاح کول غواړي
چي د هغې سره جماع نه وي سوې) نو د هغې سره به تر هغه وخته پوري نکاح کول جائز نه وي تر
څو چي د هغې خور عدت پوره نه سي مګر که چيري د هغې عدت پوره سي د کومي سره چي يې
جماع کړې ده نو بيا په هغه دواړو کي چي د کومي سره غواړي نکاح کولای سي .

لکه څرنګه چي په يوه وخت کي د دوو خويندو سره نکاح کول جائز نه دي همدارنګه په يوه
وخت کي د دوو مينځو خويندو څخه جنسي خوند اخيستل هم جائز نه دي (يعني که چيري د يو
سړي په ملکيت کي په يوه وخت کي دوې خويندي د مينزي په توګه وي نو د هغوی دواړو څخه
د يوې څخه جنسي خوند نه سي اخيستلای بلکه په هغوی کي د يوې سره جماع او داسي نور

کارونه کولای سي ځکه چي په هغه دواړو کي د یوې څخه د جنسي خوندي اخیستلو څخه وروسته دوهمه خور حرامه کیږي او د دوهمي خور څخه تر هغه وخته جنسي خوند اخیستلای سي کله چي اوله خور پر ځان حرامه کړي همدارنګه که چیري یو سړی یوه مینزه رانیسي او د هغې سره جماع وکړي بیا د هغه څخه وروسته د هغې خور رانیسي نو اوس یوازي د اولي سره جماع کولای سي د دوهمي سره جماع تر هغه وخته پوري حرامه ده تر څو چي اوله پر ځان حرامه نه کړي او د حرامولو صورت دادی چي یا خو د هغې د یو چا سره نکاح وکړي یا د خپل ملکیت څخه یې خلاصه کړي او یا خرڅه یې کړي، یا صدقه یې کړي یا یې مکاتبه کړي.

په دې اړه باید دا خبره په ذهن کي وي چي د ځینو برخو ازادول د ټولو برخو د ازادولو مترادف دی، د مثال په توګه یو څوک خپل مینزي ته ووایي چي ما ستا نیمه برخه یا څلورمه برخه ازاده کړه نو دا به د ټولي د ازادلو مترادف وي او د هغې سره جماع کول به ناجائز وي همدارنګه د هغې د ځینو برخو د خپل ملکیت څخه ایستل به د ټولي د ملکیت څخه د ایستلو مترادف (هم معنی) وي، که یوازي دا وویل سي چي اوله پر ما حرامه ده نو ددغه ویلو په وجه د دوهمي سره جماع کول جائز نه دي لکه څرنګه چي د حیض، نفاس، احرام او روژې په وجه دوهمه نه حلاله کیږي (یعني څرنګه چي یوه خور د حیض، نفاس او داسي نورو حالتو کي حرامه وي نو محض په دې وجه د هغه دوهمه خور نه حلاله کیږي، همدارنګه یوازي دومره ویل چي اوله زما لپاره حرامه ده د دوهمي د حلالولو لپاره کافي نه دي).

که یو سړی د هغه دواړو خویندو سره جماع وکړي کوم د مینزي په توګه د هغه په ملکیت کي دي نو ددې څخه وروسته په هغه دواړو کي د یوې سره هم جماع نه سي کولای تر څو چي د پورتنۍ طریقې سره سم دوهمه پر ځان حرامه نه کړي.

که یو سړی په هغه دواړو خویندو کي چي په یوه وخت کي یې په ملکیت کي وي یوه خرڅه کړي مګر هغه د یو عیب په وجه بېرته ورکړي یا په تحفه کي یې ورکړي مګر د خپل تحفې ختمولو سره هغه یې بېرته واخیستل یا د هغې نکاح یې وکړه مګر د هغې خاوند هغې ته طلاق ورکړی او د هغې عدت هم پوره سوه نو په دغه صورتو کي هغه سړی په دوی کي د یوې سره هم جماع نه کوي تر څو چي دوهمه خور پر ځان حرامه نه کړي.

یو سړي د یوې مینزي سره نکاح وکړه او د هغې سره یې د جماع کولو څخه مخکي د هغې خور رانیول نو د هغه لپاره د رانیول سوي مینزي څخه جنسي خوند اخیستل جائز نه دي ځکه چي فراش (یعني د زوجیت حق) د نفس نکاح څخه نه ثابتیږي ځکه که هغه رانیول سوې مینزي

سره نکاح وکړي نو دا به ویل کیږي چي هغه په فراش (یعني د زوجیت په حق) کي دوې خویندي جمع کړې او دا حرام دي.

که یو سړی د خپل مینزي سره نکاح وکړي او د هغه څخه وروسته د هغې د خور سره نکاح وکړي نو دا نکاح به صحیح وي او کله چي نکاح صحیح ده نو اوس به د هغه مینزي سره جماع نه کوي که څه هم تر اوسه یې د منکوحې سره جماع نه وي کړې او د هغه منکوحې سره دي تر هغه وخته پوري جماع نه کوي تر څو چي خپله مینزه پر ځان حرامه نه کړي کوم چي د هغې سره جماع نه ده سوې نو بیا منکوحه سره جماع کولای سي.

که یو سړی د خپلي مینزي سره د جماع کولو وروسته د هغې د خور سره نکاح وکړي مګر هغه نکاح په یو وجه فاسده سوه نو محض په نکاح سره هغه مینزه نه حرامه کیږي مګر که چیري د نکاح څخه وروسته د منکوحې سره جماع وکړي نو د مینزي سره جماع کول حرام دي.

که دوو خویندو یو سړي ته وویل چي موږ د دومره مهر په عوض کي ستا سره نکاح وکړه او دغه الفاظ د دواړو دژبي څخه یو ځای ادا سي او هغه سړي په دوی کي د یوې سره نکاح قبوله کړه نو دا نکاح به جائز سي او که چیري مخکي خپله هغه سړی هغه دواړو خویندو ته دا ووایي چي ما په تاسو کي د هري یوې سره د زرو روپو په عوض کي نکاح وکړه او په هغوی کي یې یوه قبوله کړي او دوهمه انکار وکړي نو د دواړو نکاح به باطله سي.

امام محمد رحمة الله عليه فرمایي که یو سړی د نکاح کولو لپاره یو څوک خپل وکیل جوړ کړي او بیا یو بل سړی یې هم د نکاح لپاره وکیل جوړ کړی ددې څخه وروسته هغه دواړو د یوې ښځي سره د هغه سړي نکاح د هغه ښځو د اجازې څخه پرته وکړه او بیا وروسته معلومه سوه چي هغه دواړي ښځي رضاعي خویندي دي او د هغه دواړو وکیلانو دژبي څخه د نکاح الفاظ یو ځای ادا سوي وه نو په دغه صورت کي د دواړو ښځو نکاح باطل ده همدارنګه که چیري دغه دواړي نکاوي د هغه ښځو په اجازه سره وي یا د یوې په اجازه سره او د یوې د اجازې څخه پرته وي نو بیا هم دغه حکم دی.

د مثال په توګه زید د دوو خویندو سره نکاح وکړه حالنکه په هغوی کي یوه خور د بل سړي په نکاح کي وه یا د یو دوهم خاوند د طلاق ورکولو په وجه د عدت په ورځي کي وه نو په دغه صورت کي د زید نکاح یوازي د دوهمي خور سره صحیح ده.

که یو سړی خپلي ښځي ته طلاق رجعي یا یو طلاق بائن یا درې طلاقه ورکړي یا د نکاح د فاسد کېدو په وجه نکاح منسوخ سي یا په شبه کي د اخته کېدو په وجه د یوې ښځي سره یې

جماع وکړه مقصد دا چي په دغه کي د کوم صورت پیدا کېدو په وجه چي هغه ښځه د عدې په ورځو کي وي نو دُ هغې د عدې په وخت کي د هغې د خور سره هغه سړی نکاح نه سي کولای او څرنګه چي د هغې د عدې په وخت کي د هغې د خور سره نکاح کول جائز نه دي همدارنګه د هغې د هیڅ یو قریبي ښځي سره نکاح کول جائز نه دي کوم چي د ذوي الارحام څخه وي، او د دواړو پر یو وخت د یوه سړي سره نکاح کول حرام وي. او همدارنګه د عدې په وخت کي د هغې څخه پرته د نورو څلورو ښځو سره نکاح هم حلال نه دي.

که یو سړي خپله مینزه چي ام ولد (یعني د هغه د کوچني مور وه) ازاده کړه نو تر څو چي د هغې عده پوره نه سي د هغې د خور سره واده کول جائز نه دي البته د امام ابو حنیفة رحمه الله په نزد د هغې د عدې په زمانه کي د هغې څخه پرته د نورو څلورو ښځو سره نکاح کول جائز دي، د امام ابو یوسف او امام محمد رحمة الله علیهما په نزد د هغې د عدې په وخت کي د هغې د خور سره هم نکاح کېدای سي.

که یو خاوند ووايي چي زما طلاقي سوي ښځي ویلي دي چي د هغې د عدې ورځي پوره سوي دي نو زه د هغې د خور سره نکاح کولای سم نو په دغه صورت کي به کتل کیږي چي د طلاق ورکولو څومره وخت سوی دی که چیري د طلاق ورکولو لږ وخت سوی وي چي په هغه کي د عدې پوره کېدو امکان نه وي نو د خاوند قول به معتبر نه وي همدارنګه د هغه د طلاقي سوي ښځي دا ویل چي زما عده پوره سوې ده د اعتبار وړ به نه وي مګر که چیري هغه یو داسي صورت بیان کړي چي په هغه کي د عدې پوره کېدو احتمال وي لکه هغه داسي ووايي چي د طلاق په دوهمه ورځ زما حمل چي د هغه اندامونه پوره وه ساقط سوی دی نو په دغه صورت کي د هغې قول معتبر دی او که چیري د طلاق دومره وخت تېر سوی وي چي په هغه کي د عدې پوره کېدو امکان وي نو که چیري ښځه د خپل خاوند د قول تصدیق وکړي یا ښځه په دغه مجلس کي موجود نه وي نو د خاوند قول به معتبر وي او د هغه لپاره به په یوه وخت کي د څلورو ښځو سره نکاح کول یا د پخوانۍ ښځي د خور سره نکاح کول جائز وي، حنفي علماء وايي چي په دغه صورت کي که چیري ښځه خاوند درواغجن کړي نو د خاوند قول به معتبر وي.

د یو سړي ښځه په مرتد کېدو سره د ارالحرب ته ولاړه سي نو د خاوند لپاره د هغې د عدې پوره کېدو څخه مخکي د هغې د خور سره نکاح کول جائز دي لکه څرنګه چي د هغې د مړې کېدو په صورت کي د هغې د خور سره نکاح کول جائز دي، بیا که چیري هغه مرتده ښځه په مسلمانه کېدو سره د دارالحرب څخه بېرته راسي او د هغې خاوند د هغې د خور سره نکاح کړې وي نو د

هغې د خور نكاح به فاسده نه وي او كه چيري د هغې د خور سره د نكاح كېدو ځخه مخكي راسي نو د امام ابو حنيفة رحمه الله په نزد په دغه صورت كي هم هغه سړى د هغې د خور سره نكاح كولاى سي مگر صاحبين وايي چي هغه سړى په دغه صورت كي د هغې د خور سره نكاح نه سي كولاى.

د داسي دوو ښځو په يوه وخت كي په نكاح كول جائز نه دي چي هغوى د يوې بلي عمه يا د يوې بلي خاله وي، ددې صورت دادى چي د مثال په توګه زيد د عمر د مور سره او عمر چي د زيد د مور سره نكاح وكړه او د هغه دوې لوڼي پيدا سوې نو په هغوى كي هره يوه انجلۍ به د دوهمي انجلۍ عمه وي يا دا چي د مثال په توګه زيد د عمر د لور سره او عمر د زيد د لور سره نكاح وكړه او د هغوى لوڼي پيدا سوې نو په هغوى كي به هره يوه انجلۍ د بلي خاله وي او هغه دواړي په يوه وخت كي په خپل نكاح كول جائز نه دي.

كه يو سړى د داسي دوو ښځو سره نكاح وكړي چي په هغوى كي يوه ددغه سړي لپاره حرامه وي كه هغه د محرم كېدو په وجه يا د وادة كېدو په وجه ياد بت پرست كېدو په وجه او دوهمه ښځه داسي وي چي د هغې سره د هغه سړي نكاح كول جائز وي نو په داسي صورت كي د هغه ښځي سره نكاح كول به صحيح وي كوم چي د هغه لپاره حلاله وي او ټاكل سوى ټول مهر به ښځي ته وركول كيږي چي د هغې سره نكاح صحيح سوې ده، دغه صلح د امام ابو حنيفة رحمه الله د قول سره سم ده او كه چيري هغه سړى د نكاح ځخه وروسته د هغه ښځي سره جماع وكړي چي د هغه سره نكاح كول د هغه لپاره حلال نه وي نو هغه ښځي ته به مهر مثل وركول كيږي او ټاكل سوى ټول مهر به هغه ښځي ته وركول كيږي د كوم سره چي نكاح كول صحيح وه.

**پنځم سبب مملوكه كېدل**: يعني هغه مينزي چي د هغوى سره نكاح كول حرام دي، كله چي د مخكي ځخه ازاده ښځه په نكاح كي وي همدارنګه ازادي ښځي او مينزي يو ځاى په نكاح كول هم حرام دي، مدبره (يعني هغه مينزه چي هغې ته بادار ووايي چي زما د مرګ ځخه وروسته ته ازاده يې) او ام ولد (يعني هغه مينزه چي د هغې د نس ځخه د بادار كوچنى پيدا سوى وي) هم دا حكم دى.

كه يو سړى په خپل عقد كي يوه ازاده ښځه او يوه مينزه په نكاح كړي نو د ازادي ښځي نكاح به صحيح وي او د مينزي نكاح په باطل سي په شرط ددې چي هغه ازاده ښځه داسي وي چي د هغې سره نكاح كول د هغه لپاره جائز وي كه چيري هغه ازاده ښځه داسي وي چي د هغې سره نكاح كول د هغه لپاره جائز نه وي لكه د هغه عمه يا خاله نو بيا د مينزي نكاح به باطل نه وي

او که چیري یو سړی اول د مینزي سره نکاح وکړي او بیا د ازادي ښځي سره نکاح وکړي نو د دواړو نکاح به صحیح وي .

که یو سړی خپلي ښځي ته چي ازاده ښځه وي طلاق بائن یا دري طلاقه ورکړي او هغه تر اوسه د عدې په ورځو کي وي او دغه سړي د یو مینزي سره نکاح وکړي نو په دغه صورت کي د امام ابوحنیفة رحمة الله علیه قول دادی چي د مینزي نکاح به جائز نه وي او امام ابویوسف او امام محمد رحمة الله علیهما وایي چي جائز ده ، او که چیري یو سړی د خپل ښځي د طلاق رجعي د عدې په وخت کي د یو مینزي سره نکاح وکړي نو په دې باره کي اتفاقي مسئله داده چي د هغه نکاح به جائز نه وي .

که یو سړی د مینزي او هغه ازادي ښځي سره نکاح وکړي چي د نکاح فاسد یا جماع بشبه د عدې ورځي تېروي نو د مینزي نکاح به صحیح سي .

که یو سړی د خپل منکوحه مینزي د طلاق رجعي د عدې په وخت کي د یو بلي ازادي ښځي سره نکاح وکړي او بیا هغه منکوحه مینزه ته رجوع وکړي (یعني خپل ورکړی طلاق بېرته واخلي ) نو دا به جائز وي .

یو غلام د خپل بادار د اجازې څخه پرته د یو ازادي ښځي سره نکاح وکړي او د هغې سره یې جماع هم وکړه او بیا د بادار د اجازې څخه پرته یې د یو مینزي سره هم نکاح وکړه او ددې څخه وروسته د هغه بادار هغه ته د دواړو سره د نکاح کولو اجازه ورکړه نو په دغه صورت کي د ازادي ښځي نکاح به صحیح او د مینزي نکاح به باطل سي .

که یو سړی د یو بل سړي د مینزي سره د هغه د اجازې څخه پرته نکاح وکړي مګر د هغې سره یې جماع نه وي کړې او بیا د یو ازادي ښځي سره هم نکاح وکړي او ددې څخه وروسته د مینزي بادار د نکاح اجازه ورکړي نو په دغه صورت کي هم د مینزي نکاح نه صحیح کیږي او که چیري یو سړی د یوې مینزي سره د هغې د بادار د اجازې څخه پرته نکاح وکړي او بیا یې د یو ازادي انجلۍ سره هم نکاح وکړه او ددې څخه وروسته د مینزي بادار د مینزي د نکاح اجازه ورکړه نو د انجلۍ نکاح به صحیح وي .

د مثال په توګه د زید یوه بالغه لور او یوه بالغه مینزه ده ، زید یو سړي ته وویل چي ما دغه دواړي د دومره مهر په عوض کي تا ته په نکاح درکړې ، هغه سړي د مینزي نکاح قبوله کړه نو دا نکاح به باطل وي او که چیري ددې څخه وروسته هغه سړي د ازادي نکاح قبوله کړه نو دا نکاح به جائز وي .

که یو سړی د ازادي ښځي سره د نکاح توان ولري مگر ددې سربېره يې د مینزي سره نکاح وکړه او هغه مینزه که مسلمانه وي یا اهل کتاب وي (یعني یهودي یا عیسائي وي) نو نکاح به صحیح وي مگر دا خبره دي په ذهن کي وي چي د ازادي ښځي سره د نکاح کولو د قدرت سربېره د مینزي سره نکاح کول مکروه دي.

که یو سړی د څلورو مینځو او پنځو ازادو ښځو سره نکاح وکړي نو یوازي د مینځو نکاح به صحیح وي.

**شپږم سبب د بل چا د حق تعلق**: یعني د هغه ښځو سره نکاح کول حرام دي چي د هغوی د یو بل سړي سره حق متعلق وي او کومي ښځي چي د چا په نکاح کي وي یا د چا په عده کي وي، عده که د طلاق په وجه وي یا د مرگ او یا د نکاح فاسده په وجه کي چي په هغه کي جماع سوې وي یا شبه د نکاح نو د داسي ښځو سره نکاح کول جائز نه دي.

که یو سړی په ناخبرتیا کي د بل چا د منکوحې سره نکاح وکړي او د هغې سره جماع وکړي نو اوس کله چي په هغوی کي جلاوالی راسي نو پر ښځي باندي عده واجب ده او که چیري هغه خبر وو چي دا د بل سړي ښځه ده نو د جلاوالي څخه وروسته پر هغه ښځه باندي عده تېرول واجب نه دي او د هغې د خاوند لپاره د عدې په زمانه کي د هغې سره جماع کول ناجائز نه وي او که چیري د هغې خاوند هغې ته طلاق ورکړي نو د عدې په زمانه کي د هغې سره نکاح کول جائز دي په شرط ددې چي د عدې څخه پرته بل یو مانع موجود نه وي.

د کومي ښځي چي د زنا حمل وي د هغې سره نکاح کول جائز دي مگر تر څو چي ولادت ونه سي خاوند ته د هغې سره جماع کول جائز نه دي او اسباب جماع (یعني مچه اخیستل، لاس ور وړل) هم جائز نه دي، او که چیري هغه د هغه ښځي سره چي د زنا حمل يې وي هغه سړی نکاح وکړي چي د هغې سره يې زنا کړې ده نو د هغه نکاح به صحیح وي او هغه د ولادت څخه مخکي هم د ښځي سره جماع کولای سي او هغه ښځه به د نفقي مستحقه وي.

یو سړی د یوې ښځي سره نکاح وکړي او څه وخت وروسته د ښځي حمل ساقط سي چي د هغه اندامونه ظاهر سوي وه اوس د حمل د اسقاط که چیري د نکاح څخه څلور میاشتي یا ددې څخه زیات وخت وروسته سوی وی نو نکاح به جائز وي او که چیري د څلورو میاشتو څخه په کم وخت کي اسقاط سوی وي نو نکاح به جائز نه وي ځکه د حمل اندامونه د څلورو میاشتو څخه په کم کي نه ظاهرېږي.

او داسي حامله ښځه چي د هغې په باره کي دا معلومه سي چي د هغې حمل د فلاني سړي د

جائز نطفې څخه دی نو په اتفاق سره دا مسئله ده چې د هغې سره نكاح كول جائز نه دي، امام ابويوسف رحمه الله د امام ابوحنيفة رحمه الله څخه دا قول نقل كړی دی كه چيري يو داسي ښځه وي چې د حربي كافر څخه حامله سوې وي او په هجرت كولو سره يا په مينزه جوړولو سره دارالاسلام ته راوستل سوي وي نو د هغې سره نكاح كول جائز دي مګر تر څو چې د هغې ولادت ونه سي نو د هغې سره جماع كول جائز نه دي.

امام طحاوي رحمه الله پر دغه قول باندي باور كړی دی مګر امام محمد رحمه الله د امام ابوحنيفة رحمه الله يو قول نقل كړی دی چې په دغه صورت كي به نكاح جائز نه وي او پر دې باندي امام كرخي رحمه الله باور كړی دی او دا قول زيات صحيح او د باور وړ دی.

كه يو څوک د خپل ام ولد د مينزي نكاح د يو چا سره وكړي په داسي حال كي چې هغه د خپل بادار څخه حامله سوي وي نو دا نكاح به باطل وي مګر كه چيري هغه حامله نه وي نو بيا نكاح به صحيح وي.

يو څوک د خپلي مينزي سره جماع وكړي او د هغه څخه وروسته يې يو چا ته په نكاح وكړي نو نكاح به جائز وي مګر د بادار لپاره دا مستحب دي چې هغه د خپل نطفې د ساتني لپاره استبراء وكړي (يعني د حيض راتلو څخه وروسته د خاوند سره جماع وكړي) او كله چې دا نكاح جائز سوه نو د خاوند لپاره (د استبراء د انتظا ركولو څخه پرته) د هغې سره جماع كول جائز دي دا د امام ابوحنيفة او امام ابويوسف رحمة الله عليهما قول دی، او امام محمد رحمه الله فرمايي چې زه دا نه خوښوم چې د هغې خاوند د استبراء څخه پرته د هغې سره جماع وكړي، فقيه ابوالليث رحمه الله وايي چې په دې اړه د امام محمد رحمه الله قول پر احتياط مبني دی او موږ پر دغه قول عمل كوو مګر په دغه مسئله كي د امامانو د اختلاف قول په هغه صورت كي دی كله چې بادار د مينزي نكاح د استبراء كولو څخه پرته كړې وي او كه چيري د نكاح څخه مخكي استبراء سوي وي نو په دغه صورت كي د ټولو په اتفاق سره خاوند بېله استبراء كولو د هغې سره جماع كول جائز دي.

يو سړي يوه ښځه پر زنا كولو ولېدل او بيا وروسته يې د هغې سره نكاح وكړه نو د امام ابوحنيفة او امام ابويوسف رحمة الله عليهما په نزد د استبراء كولو څخه مخكي هم د هغې سره جماع كول جائز دي مګر د امام محمد رحمه الله قول په دغه صورت كي دا دی چې زه دا نه خوښوم چې د هغې سره د استبراء كولو څخه پرته جماع وكړل سي او كه چيري يو سړی د خپل مينزي سره نكاح وكړي نو د حنفيه په نزد دا جائز كيږي.

که یوه ښځه په بند سره د دارالحرب څخه دارالاسلام ته راوستل سوه او د هغې خاوند ورسره نه وي نو پر هغې به عده واجب نه وي او د هغې سره د هر سړي نکاح کیدای سي، همدارنګه که یوه ښځه په مسلمانه کېدو سره د دارالحرب څخه په هجرت کولو دارالاسلام ته راسي نو د امام ابو حنیفة رحمه الله د قول سره سم پر هغې عده واجب نه ده مګر د صاحبینو په نزد پر هغې عده واجب ده (تر څو چي د هغې عده پوره نه سي) د هغې سره نکاح کول جائز نه دي مګر په دې باره کي هیڅ اختلاف نه سته چي د هغې سره جماع کول به تر هغه وخته پوري جائز نه وي تر څو چي د یو حیض راتلو په وجه استبراء ونه سي.

**اووم سبب د مذهب اختلاف** : یعني هغه ښځي چي د مشرک کېدو په وجه د هغوی سره نکاح کول حرام دي لکه د اور عبادت کونکي او د بُتانو عبادت کونکو ښځو سره نکاح کول جائز نه دي که څه هم هغه ازادي وي یا مینزي وي، او د بُت عبادت کونکو په حکم کي هغه ښځي هم داخلي دي چي هغوی د لمر او ستورو عبادت کوي یا دخپلو خوښ کړو عکسونو عبادت کوي یا د یوناني حکیمانو د نظر سره‌سم د خدای د بې کار (معطل کېدو) عقیده ولري، یا په دهریت کي اخته وي او یا د باطنیه او اباحیه ډلو سره تعلق لري (باطنیه ډله هغه ډلي ته وایي چي د قرآن کریم د باطني معنی عقیده لري او اباحیه ډله هغه ډلي ته وایي چي د هغوی په نزد د دنیا هر کار که ښه وي که بد کول جائز دي) همدارنګه د هر هغه مذهب منونکي ښځي هم په دغه حکم کي داخلي دي چي د هغه اختیارول د کفر سبب وي همدارنګه د خپل هغه مینزي سره چي هغه د اور عبادت کونکې وي جماع کول هم ناجائز دي.

مسلمان د کتابیه (یعني یهودي او عیسائي) ښځو سره چي په دارالحرب کي اوسیږي او د ذمي کافري (یعني د مسلمانانو په هیواد کي په محصول ورکولو سره اوسیدونکو) ښځو سره واده کول جائز دي که څه هم هغه ازادي وي یا مینزي وي، مګر غوره خبره داده چي د هغو سره هم واده ونه کړل سي او نه د هغوی ذبح سوی حیوان بېله ضرورته وخوړل سي که یو مسلمان د یو یهودی یا عیسائۍ ښځي سره واده وکړي نو هغه ته به دا اختیار وي چي هغه خپله ښځه د هغې د عبادت خانې څخه راوګرځوي او نه هغه په خپل کور کي شراب جوړولو ته نه پریږدي مګر مسلمان خاوند ته به دا اختیار نه وي چي هغه عیسائي یا یهودي ښځه د حیض او نفاس او د جنابت په وجه پر غسل کولو باندي مجبوره کړي.

که یو مسلمان په دارالحرب کي د یو کتابیه ښځي سره نکاح وکړي نو د هغه نکاح به جائز وي مګر مکروه به وي او بیا د دغه نکاح څخه وروسته دواړه ښځه او خاوند دارالاسلام ته راسي

نو په دارالحرب كي كړې نكاح به باقي وي مګر كه چيري دا صورت وي چي خاوند دارالاسلام ته راسي او ښځه هلته پريږدي نو د هيواد د بدلېدو په وجه به په دواړو كي جلاوالي راسي.

كوم خلک چي د يو آسماني مذهب پيروان وي او د هغوی لپاره آسماني كتاب هم وي لكه د حضرت ابراهيم او حضرت شعيب عليهما السلام صحيفې او د حضرت داؤد عليه السلام زبور او داسي نور نو هغه خلک په اهل كتاب كي شمېرل كيږي او د هغوی د ښځو سره د مسلمانانو نكاح كول جائز دي او د هغوی ذبح سوی حيوان خوړل هم د هغوی لپاره حلال دی او كه چيري په مور او پلار كي يو كتابي يعني يهودي يا عيسائي وي او دوهم د اور عبادت كونكی وي نو هغه سړی به په اهل كتاب كي شمېرل كيږي.

يو مسلمان د يوې كتابيه ښځي سره واده وكړي او بيا هغه ښځه د اور عبادت كونكې سوه نو هغه به د خپل مسلمان خاوند لپاره حرامه وي او د دواړو واده به كالعدم وګڼل سي، او كه چيري د يهودي ښځي سره واده وكړي او هغه عيسائي سوه يا دعيسائي ښځي سره يې واده وكړی مګر وروسته هغه يهوديه سوه نو په دغه صورت كي به نكاح باقي وي، په دې باره كي دا اصل په ذهن كي ساتل پكار دي چي د مذهب بدلولو په وخت كي دا كتل كيږي چي په خاوند او ښځه كي د خپل مذهب په پرېښودو سره بل مذهب قبول كړی دی كه چيري هغه يو داسي مذهب وي چي د هغه په وجه دوی نوی واده وكړي نود هغه مذهب په وجه د هغوی دواړو واده جائز نه سي (مثلاد اور عبادت كونكي او داسي نور) او كه چيري هغه مذهب داسي وي چي د هغه د پيروانو او مسلمانانو په مينځ كي واده كول جائز نه وي نوپه خاوند او ښځه كي چي كوم يو په خپل مذهب پرېښودو سره هغه مذهب قبول كړي نو واده به كالعدم سي.

اوس پاته سوه دا خبره كه چيري مسلمان خاوند او يهودي يا عيسائي ښځي كي يو څوک مجوسيت (د اور عبادت) اختيار كړي او د هغه په وجه د دواړو نكاح فاسد سي نو ددې څخه وروسته به څه حكم وي نو په دې باره كي مسئله داده كه چيري د واده د فاسد كېدو سبب ښځه جوړه سوې وي يعني ښځي مجوسيت اختيار كړی وي نو د دواړو په مينځ كي به جلاوالی راوستل كيږي او هغې ته به مهر نه وركول كيږي په شرط ددې چي هغې د جماع څخه مخكي خپل مذهب بدل كړی وي او كه چيري هغې د جماع كولو څخه وروسته مجوسيت اختيار كړی وی نو بيا هغې ته به پوره مهر وركول كيږي او كه چيري د واده د فاسد كېدو سبب سړی وي يعني خاوند خپل مذهب پرېږدي او مجوسيت اختيار كړي او په خاوند او ښځه كي جلاوالی وسي نو هغه ښځي ته به د ټاكل سوي مهر نيم وركول كيږي په شرط ددې چي دغه صورت د

جماع څخه مخکي واقع سوی وي او که چيري مهر تاکل سوی نه وي نو يوه جوړه جامې به ورکول کيږي او که چيري د جماع څخه وروسته داسي وسول نو بيا به هغه ښځي ته پوره مهر ورکول واجب وي.

کوم مسلمان چي مرتد سي نو د هغه نکاح د يو مرتدي ښځي سره جائز ده او د يو کافري يا مسلماني سره د هغه نکاح جائز نه ده، همدارنګه که چيري يوه مسلمانه ښځه مرتده سي نو د هغې نکاح به د هيچا سره جائز نه وي.

د يوې مسلماني ښځي واده نه د مشرک سره جائز دی او نه د کتابي يعني يهودي او عيسائي سره، د بت عبادت کونکي او اُور عبادت کونکي ښځي واده د مشرک او کافر سره صحيح کيږي مګر د مرتد سره نه صحيح کيږي، د ذمي کافرانو واده په خپلو کي د يو بل سره جائز دی که څه هم د هغوی مذهبونه مختلف وي.

د مسلمان لپاره د مسلماني ښځي په موجودتيا کي د کتابيه (يهودي او عيسائي ښځي) سره او د خپل کتابيه ښځي په موجودتيا کي د مسلماني ښځي سره عقد ثاني جائز دی او د نوبت (يعني د شپې په وار ورکولو کي) د دواړو حقوق برابر دي.

**اتم سبب مالک کېدل** : يعني هغه ښځي چي د مالک کېدو په وجه د خپل مملوک (غلام) لپاره حرامي دي، د هيڅ يو ښځي لپاره دا جائز نه دي چي هغه دخپل غلام سره نکاح وکړي همدارنګه هغې ته د هغه غلام سره هم نکاح کول جائز نه دي چي د هغې او بل سړي په مينځ کي مشترک وي، که د نکاح څخه وروسته په خاوند او ښځه کي يو هم د يو بل د ټول يا لږ مالک سي نو نکاح به باطل سي.

که يو سړی د خپلي مينزي سره نکاح وکړي يا د هغه مينزي سره نکاح وکړي چي د هغې د يو برخي مالک وي نو نکاح به صحيح نه وي مګر په دې باره کي ددغه خبري لحاظ ساتل ضروري دي چي زموږ په زمانه کي د مينځو او غلامانو د رانيولو او پلورلو رواج بالکل نه سته او په نن زمانه کي هغه شرطونه او قيدونه تر لاسه کيږي چي د هغه په موجودتيا کي د مينزي سره جماع کول جائز وي ځکه ځيني علماء وايي که چيري د مينزي ساتلو رواج وي نو د هغې سره جماع کول نه دي پکار بلکه د هغه مينزي سره نکاح کول پکار دي که چيري په حقيقت کي مينزه نه وي بلکه ازاده ښځه وي نو د نکاح په وجه د هغې سره جماع کول به جائز وي.

که يو ازاد سړی خپله ښځه (چي د يو چا مينزي وي) په شرط خيار سره رانيسي نو په دغه صورت کي د هغه نکاح باطل نه ده دا د امام ابو حنيفة رحمه الله قول دی.

**نهم سبب طلاق** : یعني هغه ښځي چي د طلاق په وجه حرامي کیږي ، که یو سړی خپل ښځي ته چي ازاده وي درې طلاقه ورکړي نو ددې څخه وروسته د هغې سره نکاح نه جائز کیږي مګر که چیري هغه ښځه (د خپل عدې پوره کولو څخه وروسته د یو بل سړي سره نکاح وکړي او په دواړو کي کوروالي وسي نواو بیا هغه سړي ته طلاق ورکړي نو د عدې تېرولو څخه وروسته د مخکني خاوند لپاره د هغه ښځي په نکاح کول جائز کیږي، او که چیري یو سړی د یو مینزي سره نکاح وکړي او بیا هغې ته دوه طلاقه ورکړي نو ددې څخه وروسته د هغې سره نکاح کول جائز نه دي او څرنګه چي د هغې سره نکاح کول جائز نه دي همدارنګه د هغې سره جماع کول هم صحیح نه دي .

یو څوک د یو چا د مینزي سره نکاح وکړي او بیا دوه طلاقه ورکړي ددې څخه وروسته هغه مینزه رانیول او ازاده یې کړه اوس که چیري د هغې سره نکاح کول غواړي نو په هغه صورت کي به جائز وي چي هغه د یو بل سړي په نکاح کي راسي او هغه سړی جماع ورسره وکړي او بیا هغه سړی طلاق ورکړي او کله چي د عدې ورځي تېري سي نو هغه سړی (یعني اول خاوند) د هغې سره نکاح کولای سي .

## یو څو اړوند ضروري مسئلې

تر دغه ځایه د محرمات (یعني هغه ښځو چي د هغوی سره نکاح کول حرام دي) بحث پوره سو ، اوس ضروري ده چي د دغه باب سره اړوند یو څو ضروري مسئلې ذکر سي.

نکاح متعه باطل ده او کله چي د یو ښځي سره داسي نکاح (متعه) جائز نه ده نو د هغې سره جماع کول هم جائز نه دي او نه پر هغې طلاق واقع کیږي او نه پر هغې د ایلاء او ظهار احکام نافذ کیږي همدارنګه د هغوی په مینځ کي د وراثت هیڅ لړی نه سته .

د نکاح متعه صورت دادی چي یو سړی د یو داسي ښځي سره چي مواضع (یعني د بل چا د زوجیت یا عدې وغیره) څخه خالي وي ، دا ووایي چي ته د دومره روپو په عوض کي تر لسو ورځو پوري خپل نفس ما متمتع یعني برخمن کړه او څرنګه چي نکاح متعه ناجائز ده همدارنګه موقت نکاح هم ناجائز ده که څه هم په موقت نکاح کي د لږیا ډېر وخت ټاکل وي یا ټاکل نه وي په هر صورت کي ناجائز ده مګر که چیري ددواړه د یو داسي وخت ټاکل وکړي چي دومره اوږد وي چي تر هغه وخته پوري د دواړو ژوندي پاته کېدل ناممکن وي مثلاً دا ووایي چي موږ د زرو کالو لپاره نکاح کوو نو په دغه صورت کي د نکاح موقت حکم نه جاري کیږي بلکه نکاح به

صحیح وي او د وخت شرط به باطل وي لکه څرنګه چي د نکاح پر وخت کي د قیامت راتلل، د دجال خروج او یا د عیسی علیه السلام د نزول تر وخته پوري د وخت بیانولو پوري نکاح صحیح کیږي او د وخت شرط باطلیږي همدارنګه که چیري د نکاح په وخت کي د وخت ټاکنه ونه کړي مګر په زړه کي وخت ټاکل سوی وي یعني د نکاح کونکي دا فکر وي چي هغه به تر یوه کاله پوري د ځان سره ساتم او بیا به یې پرېږدم نو په دغه صورت کي هم نکاح صحیح کیږي او که چیري یو سړی د یو ښځي سره په دې شرط نکاح وکړي چي د یوې میاشتي وروسته به طلاق ورکوم نو نکاح صحیح کیږي همدارنګه که چیري یو سړی د نکاح پر وخت د ښځي سره دا شرط کښیږدي چي زه به د ورځي ستا سره یم او د شپې به نه یم نو دا نکاح هم صحیح کیږي.

که سړي او ښځي دواړو احرام تړلی وي نو دهغوی لپاره د احرام په حالت کي نکاح کول جائز دي همدارنګه که چیري یو ولي (سرپرست) احرام تړلی نو د احرام په حالت کي د ښځي نکاح تړلای سي.

یوې ښځي (د قاضي په عدالت کي) د یو سړي د مثال په توګه د زید په باره کي دعوه وکړه چي هغه زما سره نکاح کړې ده او د ثبوت په توګه یې دوه شاهدان هم وړاندي کړل او قاضي فیصله وکړه چي زید د هغه ښځي خاوند دی حالنکه په حقیقت کي زید د هغه ښځي سره نکاح نه وي کړې نو د هغه ښځي لپاره دا جائز دي چي هغه د زید سره و اوسیږي او د زید لپاره دا جائز دي که چیري هغه ښځه د جماع خواهش وکړي نو جماع دي ورسره وکړي دا د امام ابوحنیفة رحمة الله علیه قول دی او د امام ابویوسف رحمة الله علیه اول قول هم دی مګر د هغه دوهم قول د دې خلاف دی او د امام محمد رحمة الله علیه د قول سره سم دی ، د امام محمد رحمة الله علیه قول دا دی چي په دغه صورت کي د سړي لپاره د هغه ښځي سره جماع کول جائز نه دي ، په ذکر سوي مسئله کي د قاضي فیصله به د عقد نکاح په حکم کي وي (یعني دا به ګڼل کیږي چي قاضي د دوی نکاح کړې ده) ځکه ښځي ته د خپل سړي د اوسیدو او د هغې په خواهش سره زید ته د هغې سره جماع کول هم جائز دي مګر شرط دا دی چي هغه وخت په ښځه کي د نکاح صلاحیت وي (یعني داسي یو مانع موجود نه وي چي هغه د زید ښځه جوړېدو مانع وي) که چیري دا صورت وي چي د قاضي د فیصلې پر وخت هغه د بل چا په نکاح کي وي یا د اول خاوند د طلاق ورکولو په وجه د عدې په ورځو کي وي یا هغه سړی یعني زید هغې ته درې طلاقه ورکړي وي نو بیا د قاضي فیصله به نه جاري کیږي او هغه ښځه به د زید ښځه نه جوړیږي همدارنګه د اکثرو علماؤ په نزد د قاضي د فیصلې د جاري کېدو یو شرط دا هم دی چي د هغه فیصلې پر وخت شاهد هم موجود وي او که چیري

خپله زيد د يو ښځي په باره كي دعوه وكړي چي ما د دغه ښځي سره نكاح كړې ده او د خپل دعوې په ثبوت كي شاهد هم وړاندي كړي نو ددې به هم هغه حكم وي كوم ذكر سو .

همدارنګه كه چيري يو ښځه د قاضي په عدالت كي دعوه وكړي چي زما خاوند ما ته طلاق راكړى دى او هغه د درواغو شاهد هم وړاندي كړي نو قاضي به د طلاق فيصله جاري كوي سره ددې چي هغه ښځه پوهيږي چي ما درواغ ويلي دي نو د قاضي دغه فيصله به د طلاق په حكم كي وي او پر هغه ښځي به طلاق واقع سي ، ددې څخه وروسته هغه ښځي د عدې تېرولو څخه وروسته د بل سړي سره نكاح كولاى سي او د شاهد لپاره هم د هغه ښځي سره نكاح كول جائز دي او هغه ښځه به د خپل اول خاوند يعني زيد لپاره حرامه سي مګر امام ابويوسف رحمه الله وايي چي په دغه صورت كي هغه ښځه به د اول خاوند يعني زيد لپاره حلاله نه وي يعني د هغه سره نكاح نه سي كولاى او نه د هغه دوهم خاوند سره نكاح كول به جائز وي ، د امام محمد رحمه الله دا قول دى چي تر څو پوري دوهم سړى (چي د هغه سره يې نكاح كړې وي) د هغه سره جماع و نه كړي د اول خاوند لپاره به حلاله وي او كه چيري دوهم سړى د هغې سره جماع وكړي نو بيا تر څو چي د هغې عدې پوره نه سي د عدت واجب كېدو په وجه به د اول خاوند لپاره حرامه وي يعني د امام محمد رحمه الله په نزد د وهم سړي سره د هغې نكاح بالكل جائز نه ده .

د مثال په توګه زيد د يو خالدې په باره كي دعوه وكړه چي هغې زما سره نكاح كړې ده مګر خالدې انكار وكړ ، ددې څخه وروسته زيد د خالدې سره صلح كول وغوښتل او هغې ته يې وويل كه ته اقرار وكړې نو زه به تا ته سل روپۍ دركړم ، خالدې اقرار وكړ نو اوس پر زيد باندي دغه مال يعني خالدې ته سل روپۍ وركول واجب دي او د خالدې دغه اقرار به د نكاح عقد ګڼل كيږي، كه چيري خالدې دغه اقرار د شاهدانو په مخكي كړى وي نو نكاح به صحيح سي او د خالدې لپاره به د زيد سره اوسيدل عند الله صحيح ګڼل كيږي (يعني په دغه صورت كي هغوى دواړه به نه يوازي په دنياوي او قانوني توګه سره ښځه او خاوند ګڼل كيږي بلكه په دې وجه به پر هغوى ګناه هم نه وي ) مګر كه چيري خالدې د اقرار پر وخت شاهد وړاندي نه كړ نو نكاح نه منعقد كيږي او نه به د خالدي لپاره د زيد سره اوسيدل جائز وي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د ښځي د عمه او خاله سره نکاح

﴿۳۰۲۶﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُجْمَعُ بَيْنَ الْمَرْأَةِ وَعَمَّتِهَا وَلَا بَيْنَ الْمَرْأَةِ وَخَالَتِهَا. متفق عليه.

د حضرت ابو هريره ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د خپلي ښځي د عمه او خاله سره (د خپلي ښځي په موجودګي کي) نکاح نسي کېداى. (بخاري او مسلم)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\۱۶۰، رقم: ۵۱۰۹، ومسلم ۲\۱۰۲۸، رقم: ۳۳- ۱۴۰۸.

**تشريح**: د عمه او خاله څخه عموميت مراد دى يعني که حقيقي (سکه) عمه او خاله وي لکه ښځي د پلار او مور خور، او که مجازي وي لکه د هغه ښځي د نيکه يا ور نيکه او انا خور، په حديث کي د عمه د ورېرې او د خاله د خورزې تخصيص اتفاقي دى چي کيداى سي يو چا په دې اړه پوښتنه کړې وي ځکه رسول الله ﷺ يوازي د هغه دوو يادونه وکړه کنه نو د دغه دواړو څخه پرته نوري هم داسي ښځي سته چي د هغوى په يو وخت کي په نکاح کول حرام دي، په تېرو مخونو کي د دې تفصيل تېر سوى دى.

### د رضاعت ذکر

﴿۳۰۲۷﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحْرُمُ مِنَ الرَّضَاعَةِ مَا يَحْرُمُ مِنَ الْوِلَادَةِ. رواه البخاري.

د بي بي عائشي ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي د نسب په خاطر حرام وي هغه په رضاعت (تى رودل) کي هم حرام وى (يعني د چا سره چي نکاح د نسب په خاطر حرامه وى همداسي په تى رودلو سره هم حراميږي).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\۲۳۸، رقم: ۵۲۳۹.

**تشريح** يعني کوم قرابت چي د نسب په وجه د يو بل لپاره حرام دى هغه قرابت د تي ورکولو لپاره هم د يو بل لپاره حرام دى د مثال په توګه څرنګه چي نسبي يعني حقيقي خور د خپل ورور لپاره حرامه ده همدا رنګه رضاعي خور هم حرامه ده مګر ځيني داسي مسائل دي چي د دغه

كليې څخه مستثنى دى لكه په ځينو صورتو كي نسبي قرابت او د رضاعي قرابت په مينځ كي فرق وي چي د هغه تفصيل په تېرو مخونو كي تېر سوى دى .
علامه نووي رحمة الله عليه فرمايي چي ددې خبري دليل دى چي كه څه هم په رضاعت سره نكاح حرامېږي او نظر ، خلوت او مسافرت حلالېږي (يعني د مثال په توګه د رضاعي مور او زوى په مينځ كي نكاح حرامېږي او يو بل ته نظر كول، د يو بل سره په يوازيوالي كي ناسته او ولاړه او د يو بل سره يوازي سفر كول جائز دي) مګر په رضاعي قرابت سره د قرابت ټول احكام نه جاري كيږي ، په رضاعي قرابت كي نه خو د يو بل وارث كيږي نه پر يو بل باندي نفقه واجبيږي نه د يو بل په ملكيت كي په راتلو سره ازادي تر لاسه كولاى سي ، او كه چيري تى وركونكى خپل تي رودونكى قتل كړي نو د هغه پر ذمه د هغه قصاص هم نه ساقط كيږئ په دغه ټولو صورتو كي هغه دواړه رضاعي قريبان بالكل د پردي خلكو په ډول دي .

﴿۳۰۲۸﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ جَاءَ عَمِّيْ مِنَ الرَّضَاعَةِ فَاسْتَأْذَنَ عَلَيَّ فَأَبَيْتُ أَنْ
د بي بي عائشي رضي الله عنها څخه روايت دى زما د شودو د رودلو اكا راغى ما ورته وويل تر څو پوري
آذَنَ لَهُ حَتّٰى أَسْأَلَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَاءَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى
چي ما د نبي كريم ﷺ څخه پو ښتنه نه يې كړې تا ته د ننه راتلو اجازت نه دركوم رسول الله ﷺ
اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلْتُهُ فَقَالَ إِنَّهُ عَمُّكِ فَأْذَنِي لَهُ قَالَتْ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ
تشريف راوړ نو ما ځيني پو ښتنه وكړه نبي كريم ﷺ راته وفرمايل : دا خو ستا اكا دى د راتلو اجازت به دي وركړى واى ما عرض وكړ يا رسول الله!
إِنَّمَا أَرْضَعَتْنِي الْمَرْأَةُ وَلَمْ يُرْضِعْنِي الرَّجُلُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ
ما ته خو يوې ښځي شيدې راكړي دي سړي خو را باندي نه دي چښلي نبي كريم ﷺ ورته
وَسَلَّمَ إِنَّهُ عَمُّكِ فَلْيَلِجْ عَلَيْكِ وَذٰلِكَ بَعْدَ أَنْ ضُرِبَ عَلَيْنَا الْحِجَابُ . متفق عليه
وفرمايل هغه ستا اكا دي هغه ته د ننه راتلو اجازت وركوه دا واقعه د هغه وخت ده چي د پردې احكام نافذ سوي وه . (بخاري او مسلم).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري) : ۹\۳۳۸، رقم: ۵۲۳۹، ومسلم ۱۲\۱۰۷۰، رقم: ۷\۱۴۴۵.

**تشریح** بي بي عائشې ﷞ چې د کوم رضاعي اکا ذکر کړی دی د هغه نوم افلح وو او بي بي عائشې د کومې ښځې تی رودلی وو د هغې خاوند ابوالقيس وو هغه او ابوالقيس وروڼه وه ددغه قرابت سره هغه دبي بي عائشې ﷞ اکا سو .

ما ته خو ښځې تی راکړی دی ...الخ: ددې څخه د بي بي عائشې ﷞ مطلب دا وو چې ما ته خو ښځې تی راکړی دی ځکه نو زما د رضاعت تعلق يوازې د ښځې سره قائم سوی دی نه د سړي سره ، يعني بي بي عائشې رضي الله عنها دا ګمان چې د يو ښځې تی خوړل د هغه د خاوند د قرابت سره تعلق نه لري نو رسول الله ﷺ د بي بي عائشې ﷞ ددغه ګمان تصحيح وکړل چې د يو ښځې په تي رودلو سره لکه څرنګه چې د هغه ښځې سره او د هغه د خاوند د قريبانو سره هم رضاعي تعلق قائميږئ او څرنګه چې د رضاعي مور، خور او رضاعي خاله او د هغې لور رضاعي خور وي همدارنګه د هغه د خاوند ورو ر هم رضاعي اکا وي او رضاعي اکا د حقيقي اکا په ډول دی ځکه افلح ستا کور ته راتلای سي د هغه څخه شرم او پرده نه سته .

ددې څخه معلومه سوه چې څرنګه د تي رودونکي د قريبانو سره د رضاعت حرمت ثابتيږئ همدارنګه د هغه د خاوند د قريبانو سره هم د رضاعت حرمت ثابتيږي .

**د رضعي ورېږې سره نکاح حرامه ده**

﴿۳۰۲۹﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ اَنَّهُ قَالَ يَارَسُوْلَ اللهِ هَلْ لَكَ فِيْ بِنْتِ عَمِّكَ حَمْزَةَ فَاِنَّهَا

د حضرت علي ﷛ څخه روايت دی چې ما عرض وکړ يا رسول الله ! ايا تاسو د خپل اکا حمزه ﷛ د لور سره نکاح نه کوې ؟

اَجْمَلُ فَتَاةٍ فِيْ قُرَيْشٍ فَقَالَ لَهُ اَمَا عَلِمْتَ اَنَّ حَمْزَةَ اَخِيْ مِنَ الرَّضَاعَةِ وَاِنَّ اللهَ حَرَّمَ مِنَ الرَّضَاعَةِ مَا حَرَّمَ مِنَ النَّسَبِ . رواه مسلم .

هغه د قريشو يو ښائسته انجلۍ ده نبي کريم ﷺ وفرمايل : اې علي ! تا ته معلومه نه ده چې حمزه ﷛ زما رضعي ورور دی او خداي تعالي چې کوم شيان د نسب په وجه حرام کړی دي هغه يې د رضاعت د لحاظه هم حرام کړی دي . (مسلم) .

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\۱۰۷۱، رقم: ۱۱\۱۴۴۶.

**تشریح** حمزه د ابولهب په ډول د رسول الله ﷺ سکه اکا وو ، مګر د رسول الله ﷺ د تي رودلو شريک ورور هم وو ، ددې صورت دا وو چې د ابولهب سره يوه مينزه وه چې د هغې نوم ثوبيه وو

، ثوبيه مخکي حضرت حمزه رضي الله عنه ته تی ورکړی دي بيا څلور کاله وروسته يې رسول الله ﷺ ته هم تی ورکړی دی دا هغه ثوبيه ده چي ابولهب د رسول الله ﷺ د پيدا کېدو په خوشحالی کي هغه ازاده کړه ، ويل کيږي چي د رسول الله ﷺ پر زيږېدو باندي ابولهب د خپل خوشحالی اظهار کړی وو د هغه په وجه د دوشنبې په ورځ د الله تعالی له طرفه د ابولهب په عذاب کي کمي کيږي ځکه چي رسول الله ﷺ د دوشنبې په ورځ پيدا سوی وو .

رسول الله ﷺ ته څلورو ښځو تی ورکړی دی ۱: د رسول الله ﷺ مور مبارکه، ۲: بي بي حليمه رضي الله عنها ، ۳: ثوبيه، ۴: او ام يمن چي د رسول الله ﷺ د پلار محترم مينزه وه .

## د رضاعت مقدار

﴿۲۰۳۰﴾: وَعَنْ اُمِّ الْفَضْلِ قَالَتْ اِنَّ نَبِيَّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تُحَرِّمُ

د حضرت ام فضل رضي الله عنها څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : نکاح نه حراموي

الرَّضْعَةُ اَوِ الرَّضْعَتَانِ وَفِيْ رِوَايَةِ عَائِشَةَ قَالَ لَا تُحَرِّمُ الْمَصَّةُ وَالْمَصَّتَانِ وَ

يو يا دوه واره تی رودل د بي بي عائشې رض په روايت کي دا الفاظ دي چي يو يا دوه واره د تی

فِيْ اُخْرٰى لِاُمِّ الْفَضْلِ قَالَ لَا تُحَرِّمُ الْإِمْلَاجَةُ وَالْإِمْلَاجَتَانِ. هذه روايات لمسلم

رودل نکاح نه حراموي د ام فضل رضي الله عنها په روايت کي دی د ښځي په تی باندي يو يا دوه واره وهلو سره نکاح نه حراموي دا دري واړه روايونه د مسلم دی .

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\۱۰۴۷، رقم: ۲۱\۱۴۵۱.

**تشريح**: په ځرګنده خو د دغه روايتو څخه دا معلوميږي چي په يو وار يا دوه واره تي ورکولو سره نکاح نه حراميږي مګر په دري واره يا تر دې زيات تی ورکولو سره حرمت ثابتيږي ، ځيني علماء پر دې باندي په عمل کولو سره فتوا ورکړې ده مګر حنفيه او اکثر علماء په نزد مسئله داده چي په مطلق تي ورکولو سره د رضاعت حرمت ثابتيږي که څه هم هغه مقدار د اعتبار څخه کم وي يا زيات وي په شرط ددې چي د کوچني د حلق څخه شيدې نس ته ورسيږي او هغه شی هم د رضاعت په وخت کي وي او د رضاعت وخت د اکثرو علماؤ په ګډون صاحبين يعني امام ابويوسف او امام محمد رحمة الله عليهما په نزد دوه کاله دی مګر د امام ابوحنيفة په نزد د رضاعت وخت دوه نيم کاله دی مګر په حنفي مذهب کي د صاحبينو پر قول فتوا ده .

كوم علماء چي دا وايي چي د مطلق تي په وركولو سره حرمت ثابتيږي د هغوی دليل د قرآن كريم دغه آيت كريمه دی : وامهاتكم اللاتي ارضعنكم: او پر تاسو باندي ستاسو رضاعي مندي حرامي دي .

چي هغه د قرآن كريم يو مطلق حكم مقيد كړي ځكه د ذكر سوي روايت دد دليل نه سي كيدای چي حرمت رضاعت په هغه صورت كي ثابت سي كله چي كوچني ته درې واره يا تر دې زيات تی وركړل سي ، ددغه حضراتو يو دليل د بي بي عائشې ﷺ هغه روايت دی چي په هغه كي د مطلق تي وركولو سره حرمت ثابتېدل ددغه الفاظو په ذريعه بيان سوي دي : يحرم من الرضاعة ما يحرم من الولادة.: يعني په تي وركولو سره هغه قرابت حراميږي كوم چي د زېږېدني په وجه حراميږي .

د رضاعت د حرمت په اړه امام شافعي رحمه الله فرمايي كه چيري كوچني تر پنځه واره كم تی وخوري نو د رضاعت حرمت نه ثابتيږي د هغه دليل په راتلونكو كي حديثو كي دی .

﴿۳۰۳۱﴾: وَ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ فِيمَا أُنْزِلَ مِنْ الْقُرْآنِ عَشْرُ رَضَعَاتٍ

د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه روايت دی چي په قرانكريم كي دا حكم نازل سوی دی چي په لس واره

مَعْلُومَاتٍ يُحَرِّمْنَ ثُمَّ نُسِخْنَ بِخَمْسٍ مَعْلُومَاتٍ فَتُوُفِّيَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ

شيدو رودلو سره چي كله د هغې د چنبلو پوره يقين وي نو نكاح حراميږي بيا دا حكم منسوخ سو او پنځه واره د شيدو رودلو حكم نازل سو د دې څخه وروسته رسول الله ﷺ وفات سو

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهِيَ فِيمَا يُقْرَأُ مِنْ الْقُرْآنِ . رواه مسلم .

او د دې ايت شريف په قرانكريم كي تلاوت كېدی . (مسلم) .

**تخريج**: مسلم في الصحيح: ۱۲\۱۰۷۵، رقم: ۲۴- ۱۴۵۲.

**تشريح**. مخكي دا حكم وو چي يو كوچني به د يو ښځي لس واره تی ورودی نو د هغه دواړو په مينځ كي به د رضاعت حرمت ثابتېدی مگر وروسته نه يوازي دا چي دغه حكم منسوخ سو بلكه ددغه آيت تلاوت هم منسوخ سو چي په هغه كي دغه حكم وو او دغه آيت نازل سو چي پنځه واره تی رودل نكاح حراموي او بيا ددغه آيت تلاوت هم د ټولو صحابه كرامو په نزد منسوخ مگر د بي بي عائشې رضي الله عنها په قرائت كي ددې تلاوت منسوخ نه سو تر دې چي اوس

امام شافعي رحمة الله عليه وايي چي ددغه آیت حکم خو پاته دی چي رضاعت حرمت په پنځه واره تی رودلو سره ثابتیږي او ددې تلاوت منسوخ سوی دی مګر د امام ابوحنیفة رحمة الله عليه او نور علماء کرامو په نزد ددغه آیت هم منسوخ سوی دی او ددې حکم هم د ددغه مطلق آیت کریمه : (وامهاتکم اللاتي ارضعنکم) په ذریعه منسوخ سو .

## د رضاعت د مدت وروسته په شېدو رودلو سره حرمت نه ثابتیږي

﴿۳۰۳۲﴾: وَعَنْهَا اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلَيْهَا وَعِنْدَهَا رَجُلٌ فَكَأَنَّهُ كَرِهَ ذَالِكَ فَقَالَتْ اِنَّهُ أَخِي فَقَالَ انْظُرْنَ مَنْ إِخْوَانُكُنَّ فَإِنَّمَا الرَّضَاعَةُ مِنَ الْمَجَاعَةِ . متفق عليه.

د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه روایت دی یوه ورځ رسول الله ﷺ په خپله تشریف راوړ هغه وخت د هغې سره یو سړی ناست وو نبي کریم ﷺ خو دا خبره ښه ونه ګڼله ما عرض وکړ دا زما رضعي ورور دی نبي کریم ﷺ وفرمایل : فکر وکړه ستا ورور څوک کېدای سي ؟ د شیدو د چښلو اعتبار د لوږي په وخت دی (یعني د شیدو د چښلو احکام هغه وخت جاري کېدای سي چي کله لوږي د غذا په وخت کي یې شیدې چښلي وي او شیدې یې غذا وي). (بخاري او مسلم) .

تخریج : البخاري في الصحیح (فتح الباري) : ۹\۱۴۶، رقم: ۵۱۰۲، ومسلم ۲\۱۰۷۸، رقم: ۳۲\۱۴۵۵.

تشریح : د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب دا وو چي د تي ورکولو احکام په هغه صورت کي کیږئ کله چي تی په د خوراک په توګه ورکول سوی وي او په هغه سره لوږه ختمه سوې وي دا خبره د تي رودلو په ورځو کي وي او د تي رودلو وخت د اکثرو علماؤ په نزد دوه کاله د امام ابوحنیفة رحمة الله عليه په نزد دوه نیم کاله عمر دی په دغه وخت کي د کوچني د غذائي ضرورت او خواهش دار د ښځي پر تي وي تر څو چي هغه تی نه خوري د هغه لوږه نه ختمیږي نو حدیث خلاصه دا سوه چي په لوی عمر کي د رضاعت د وخت ختمېدو څخه وروسته د یو ښځي په تي رودلو سره د رضاعت حرمت نه ثابتیږي او هغه وخت چي د بي بي عائشې رضي الله عنها سره سړی ناست وو او بي بي عائشې رضي الله عنها ورته د تي رودلو ورور ویلي وه هغه په اصل کي په لوی عمر کي تی رودلی وو او په لوی عمر کي په تي رودلو سره د رضاعت حرمت نه ثابتیږئ ځکه رسول الله ﷺ ته د هغه د بي بي عائشې رضي الله عنها سره ناسته ناخوښه سوه .

## د رضاعت د ثبوت لپاره شاهدي

﴿۳۰۲۳﴾: وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ الْحَارِثِ أَنَّهُ تَزَوَّجَ ابْنَةً لِأَبِي إِهَابِ بْنِ عَزِيزٍ فَأَتَتْهُ

د حضرت عقبه بن حارث رضي الله عنه څخه روايت دی چي هغه د ابو اهاب بن عزيز د لور سره نکاح وکړه

امْرَأَةٌ فَقَالَتْ إِنِّي قَدْ أَرْضَعْتُ عُقْبَةَ وَالَّتِي تَزَوَّجَ بِهَا فَقَالَ لَهَا عُقْبَةُ مَا أَعْلَمُ

بيا يوه ښځه راغله او ويې ويل: چي عقبه او د ابو اهاب ولور ته ما تی ورکړی دي عقبه هغې ته وويل: زما په ياد نه دی چي

أَنَّكِ قَدْ أَرْضَعْتِنِي وَلَا أَخْبَرْتِنِي فَأَرْسَلَ إِلَى آلِ أَبِي إِهَابٍ فَسَأَلَهُمْ فَقَالُوا مَا

تا ماته شيدې راکړی دي او نه دې پخوا ما ته د دې خبر راکړی دی بيا عقبه يو سړی د ابو اهاب کورنۍ ته د حال د معلومولو لپاره و لېږی

عَلِمْنَا أَرْضَعَتْ صَاحِبَتَنَا فَرَكِبَ إِلَى النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْمَدِينَةِ

هغوی موږ ته وويل: دا معلومه نه ده چي دې انجلۍ ته دې ښځي تی ورکړی دی عقبه رضي الله عنه رسول الله ﷺ ته مديني منورې ته ورغی او واقعه يې ورته بيان کړه

فَسَأَلَهُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَيْفَ وَقَدْ قِيلَ فَفَارَقَهَا عُقْبَةُ وَنَكَحَتْ زَوْجًا غَيْرَهُ. رواه البخاري.

نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل: ته دا څنګه (په خپله نکاح کي ساتلای سی ؟) کله چي دا خبره وسوه نو عقبه هغه ښځه د ځانه څخه جلا کړه او هغې د بل سړی سره نکاح وکړه. (بخاري).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري):۵\۲۵۱، رقم: ۲۶۴۰.

**تشريح** امام احمد رحمه الله د دغه حديث څخه استدلال کړی دی چي د رضاعت په ثبوت کي د يوې ښځي شاهدي قبليږي مګر د امام ابو حنيفة رحمه الله او اکثرو علماؤ په نزد د تي رودلو د ثبوت لپاره د دوو نارينو يا يوه نارينه او دوو ښځو چي عادل وي شاهدي قبليږي ځکه دا حضرت د دغه حديث په باره کي دا وايي چي د رسول الله ﷺ دغه ارشاد د تقوا او احتياط پر بنياد دی چي رسول الله ﷺ د احتياط له کبله دا مناسب و نه ګڼل چي عقبه رضي الله عنه هغه انجلۍ په نکاح کړي.

## د دار الحرب د بندي ښځي سره نکاح

﴿۳۰۳۴﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ

د حضرت ابو سعيد خدري ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د حنين په جګړه کي (يو

حُنَيْنٍ بَعَثَ جَيْشًا إِلَى أَوْطَاسَ فَلَقُوا عَدُوًّا فَقَاتَلُوهُمْ فَظَهَرُوا عَلَيْهِمْ

اسلامي) لښکر اوطاس لورته ولېږی هغه د ښمن سره و جنګېدی او ور باندي غالب سوه او

وَأَصَابُوا لَهُمْ سَبَايَا فَكَأَنَّ نَاسًا مِنْ أَصْحَابِ النبي ﷺ تَحَرَّجُوا مِنْ

غلامان او مينزي يې و نيولې د رسول الله ﷺ اصحابو کرامو په دې خيال چي د دې مينځو

غِشْيَانِهِنَّ مِنْ أَجْلِ أَزْوَاجِهِنَّ مِنَ الْمُشْرِكِينَ فَأَنْزَلَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ فِي ذَلِكَ

مشرک خاوندان سته نو هغوی د مينځو سره کوروالي و نه کړه په دې اړه دا ايت نازل سو :

{ وَالْمُحْصَنَاتُ مِنَ النِّسَاءِ إِلَّا مَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ } أَيْ فَهُنَّ لَكُمْ حَلَالٌ إِذَا

انْقَضَتْ عِدَّتُهُنَّ. رواه مسلم .

والمحصنت....ايمانكم . (په تاسو هغه ښځۍ حرامي نه دي چي د هغو تاسو مالکان ياست او تاسو په جګړه کي نيولي دی)يعني کله چي د مينځو د عدت ورځي پوره سي نو هغوی ستاسو لپاره حلالي دي . (مسلم) .

**تخريج**: مسلم في الصحيح: ۱۰۷۹\۲، رقم: ۱۴۵۶\۳۳.

**تشريح**: مسئله داده چي کومه ښځه د يو سړي په نکاح کي وي نو بل چا ته نه د هغې سره جماع کول صحيح دي او نه هغه په خپل تصرف کي راوستل جائز دي مګر د کافرانو هغه ښځي چي د جنګ څخه وروسته د درالحرب څخه راوستل سي او د هغوی خاوندان په دارالحرب کي پاته سوي وي نو د هغه ښځو د عدې تېرېدو څخه وروسته په خپل تصرف کي راوستل جائز دي او دلته د عدت څخه مراد استبراء دی يعني که چيري هغه ښځي حامله وي نو کله چي د هغې اولاد پيدا سي او که هغې ته حيض راځي نو کله چي هغې ته حيض راسي نو بيا کله چي يوه مياشت تېره سي بيا د هغې سره جماع کول جائز دي .

په دې اړه علامه طيبي رحمه الله وايي چي ابن عباس رضي الله عنه د دغه آيت كريمه سره سم دا مسئله اخذ كړې ده چي كله يو خاوند والا مينزه پلورل كيږئ نو د هغې نكاح ماتيږي او كوم څوک چي هغه رانيسي نو د هغه لپاره استبراء څخه وروسته د هغې سره جماع كول جائز كيږي يعني ابن عباس رضي الله عنه دغه آيت كريمه پر عموميت باندي محمول كړى دى حال دا چي د نورو ټولو علماؤ په اتفاق سره مذهب دادى چي د هغې نكاح نه ماتيږي د دوى په نزد دغه آيت كريمه د هر خاوند والا مينزي په باره كي نه دى نازل سوى بلكه دا يوازي د هغه مينځو په اړه نازل سوى دى چي د دارالحرب څخه په نيولو سره راوستل سوي وي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### هغه ښځي چي په يو وخت كي په نكاح كول منع دي

﴿۳۰۳۵﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى أَنْ تُنْكَحَ

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ د دې څخه منعه فرمايلې ده چي

الْمَرْأَةُ عَلَى عَمَّتِهَا أَوِ الْعَمَّةُ عَلَى ابْنَةِ أَخِيهَا أَوِ الْمَرْأَةُ عَلَى خَالَتِهَا أَوِ الْخَالَةُ عَلَى

عمه د وريرې سره يا د وريرې سره خاله نكاح جمع كړل سي او د خاله سره يې د خورزې جمع كولو څخه (يعني خاله او خورزه يو ځاى په نكاح ساتلو څخه) او دا چي

بِنْتِ أُخْتِهَا وَلَا تُنْكَحُ الصُّغْرَى عَلَى الْكُبْرَى وَلَا الْكُبْرَى عَلَى الصُّغْرَى. رواه الترمذي وابوداؤد والدارمي والنسائي و روايته الى قوله بنت اختها.

د كشري د دوستي په موجودوالي كي د مشري سره د دوستى او د مشري په موجودوالي كي د كشري سره نكاح نسي كولاى. (ترمذي ابو داؤد دارمي نسائي).

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲\۵۵۳، رقم: ۲۰۶۵، والتمرذي في السنن ۳\۴۳۳، رقم: ۱۱۲۶، والنسائي ۶\۹۸، رقم: ۳۲۹۶، والدارمي ۲\۱۸۳، رقم: ۲۱۷۸.

**تشريح**: د حديث د دوهمي برخي يعني (لا تنكح الصغرى على الكبرى...الخ) دا په اصل كي د حديث د اولي برخي يعني (ان تنكح المراة على عمتها...الخ) باندي د حكم د تائيد په توګه دى نو د لوى قريب څخه عمه او خاله مراد دي او د كوچني عمر د قرابت څخه وريره او خورزه

مراد دي.

د حديث خلاصه داده که چيري خاله په نکاح کي وي نو د هغې په موجودتيا کي د هغې د خورزې سره يا مخکي خورزه په نکاح کي وي نو د هغې په موجودتيا کي د هغې د خاله سره يا همدارنګه د مخکي څخه عمه په نکاح کي وي نو د هغې په موجودتيا کي د هغې د وريرې سره يا وريره په نکاح کي وي نو د هغې په موجودتيا کي د هغې د عمه سره نکاح کول ناجائز دي مګر که چيري په هغوی کي يوې ته طلاق ورکړي او د هغې د عدې ورځي تيري سي نو بيا د بلي سره نکاح کولای سي يا په هغوی کي د يوې د مړ کېدو ورسته د بلي سره نکاح کول صحيح دي.

## د پلار د ماينې سره نکاح کول حرام دي

﴿۲۰۳۶﴾: وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ مَرَّ بِي خَالِي أَبُو بُرْدَةَ بْنُ نِيَارٍ وَمَعَهُ لِوَاءٌ

د حضرت براء بن عازب رضی الله عنه څخه روايت دی چي زما ماما ابو برده بن نيار زما سره تېر سو د هغه په لاس کي بيرغ يا نشان وو

فَقُلْتُ أَيْنَ تذهب قَالَ بَعَثَنِي النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلَى رَجُلٍ تَزَوَّجَ

ما ځيني پوښتنه وکړه چي ته چيري ځې؟ هغه را ته وويل يو سړي د خپل پلار د ښځي سره

امْرَأَةَ أَبِيهِ آتِيَهُ بِرَأْسِهِ .رواه الترمذي وابوداؤد و في رواية له وللنسائي وابن ماجة والدارمي فامرني ان اضرب عنقه واخذ ماله وفي هذه الرواية قال عمي بدل خالي.

نکاح کړېده رسول الله ﷺ ما ته د هغه د سر پرېکېدو امر راکړی دی. (ترمذي ابو داؤد) او د ابو داؤد نسائي ابن ماجه او دارمي په روايتو کي دا الفاظ دی رسول الله ﷺ ما ته حکم راکړی دي چي زه د هغه غاړه ووهم او د هغه مال راوړم او په دې روايت کي د ((خالي)) پر ځای ((عمي)) دی.

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۶۴۳، رقم: ۱۳۶۲، وابوداود ۴\۶۰۲، رقم: ۴۴۵۶.

**تشريح** رسول الله ﷺ حضرت ابوبرده رضی الله عنه د خپل پلار د ښځي سره د نکاح کونکي د غاړي وهلو لپاره واستوی نو د هغه په لاس يې د نبني په توګه بېرغ ورکړی و چي خلک د هغه نښي په

لېدو سره پوه سي چي د غه سړی ذکر سوی خدمت لپاره د رسول الله ﷺ له خوا را استول سوی دی.
علامه طیبي رحمه الله وايي چي رسول الله ﷺ ابوبرده رضي الله عنه ته د کوم سړي د غاړي وهلو حکم ورکړی وو هغه دِ خپل پلار د ښځي سره د نکاح په کولو سره د شریعت اسلام د یو ظاهري حکم محض خلاف ورزي نه وه کړې بلکه د هغه عقیده دا هم وه چي د پلار د ښځي سره نکاح کول حلال دي لکه څرنګه چي د جاهلیت د زمانې یعني کفارو داسي عقیده وه نو د اسلامي شریعت دا فیصله ده چي کوم څوک د یو حرام شي د حلال کېدو عقیده ولري نو هغه کافر کیږي او د داسي سړي قتل کول او د هغه مال او سامان ضبط کول جائز دي.

﴿۳۰۳۷﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللهِ ﷺ لَا يُحَرِّمُ مِنَ الرِّضَاعِ إِلَّا مَا فَتَقَ الْأَمْعَاءَ فِي الثَّدْيِ وَكَانَ قَبْلَ الْفِطَامِ. رواه الترمذي.

د بي بي ام سلمه رضي الله عنها څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: په رضاعت کي یوازي هغه رضاعت نکاح حراموي چي کوچنی د شېدو د پرېښېدو څخه وړاندي (د شیدو رودلو په وخت کي) شیدې وڅیښي (هغه وخت چي شیدې د هغه غذا وي). (ترمذي)

**تخریج**: الترمذي في السنن ۳\۴۵۸، رقم: ۱۱۵۲.

**د لغاتو حل**: ما فتق الامعاء: ای الذي شق امعاء الصبي کالطعام.

**تشریح**: کولمې خلاصي کړي: ددې مطلب دادی چي هغه شیدې د کوچني نس داسي موړ کړي لکه څرنګه چي د یو وړي سړي نس په خوراک سره مړېږي، او دغه خبره د تي رودلو په وخت کي وي او د تي رودلو وخت دوه کاله یا دوه نیم کاله پوري دی، ددغه ارشاد مطلب دادی چي په لوی عمر کي یعني د دوو یا دوه نیمو کالو څخه وروسته د تي په رودلو سره د رضاعت حرمت نه ثابتیږي بلکه د کوچنیوالي په عمر کي یعني د وو کالو یا دوه نیمو کالو په عمر کي د تي په رودلو سره د رضاعت حرمت ثابتیږي.
د سینې څخه د څېښلو په وجه: ددغه الفاظ مقصد محض د تي خوړلو صورت او واقعه بیانوي دي چي ښځي د خپل سینې څخه په کوچني باندي شیدې څېښي کنه نو د رضاعت د حرمت ثابتولو لپاره د سینې څخه څېښل شرط نه دي یعني دا ضروري نه دي چي د رضاعت حرمت دي په هغه صورت کي ثابت سي کله چي کوچنی د ښځي د سینې د تي څخه شیدې وڅېښي بلکه که چیري ښځي د خپل سیني شیدې په څېښلي وي او که په بل شي لکه قاشوقه او

داسي بل شي کي يې شېدې په څېښلي وي او که په بله ذريعه سره يې شيدې د کوچني نس ته رسولي وي په هر صورت د رضاعت حرمت ثابتيږي.

هغه شيدې د تي پرېکولو څخه مخکي څېښلي وي: دا جمله په اصل کي د مخکني عبارت د تاکيد په توګه ده مطلب دا دی چي په شريعت کي د کوچني د تي پرېکولو کوم وخت ټاکلی دی يعني دوه کاله يا دوه نيم کاله عمر ددې څخه مخکي چي کوم کوچني شيدې وڅېښي نو د رضاعت د حرمت په اړه به د هغه اعتبار وي.

فقهاؤ ليکلي دي چي د رضاعت د وخت په باره کي د ټاکلي سوي وخت څخه مخکي د تي پرېکولو اعتبار نه کيږي که يو کوچنی د وخت څخه مخکي يعني د دوو کالو يا دوه نيم کالو د عمر څخه مخکي د تي څخه پرې سوی وي او ددې څخه وروسته په هغه ټاکلي وخت يعني دوه کاله يا دوه نيم کاله په عمر کي د ننه يو ښځي هغه ته تی ورکړی نو د رضاعت حرمت ثابتيږي، په دې باره کي په ضمني توګه په دغه مسئله پوهېدل هم ضروري دي چي يو کوچني ته د ټاکلي وخت يعني دوه کاله يا دوه نيم کاله د عمر څخه وروسته تی ورکول جائز نه دی ځکه چي تی د انسان يو جز دی او د انسان د جز څخه بې ضرورته ګټه اخيستل حرام دي او دا ظاهره ده چي د رضاعت د وخت څخه وروسته ضرورت ختم سي په دې توګه د انسان تی د دواء په توګه استعمالول هم جائز نه دي.

دا خبره هم بايد په ذهن کي وي چي طبيبانو ثابته کړې ده چي د لور شيدې سترګو ته ګټه رسوي، علماؤ په دې باره کي اختلاف کړی دی ځيني حضرات وايي که څه هم په طبي توګه سره دا خبره صحيح وي مګر په شرعي توګه جائز نه ده، حال دا چي ځيني علماء وايي چي دا جائز دي په شرط ددې چي دغه ګمان غالب وي چي د خپل لور د شېدو په سترګو کي اچولو سره د سترګو ناروغي ختميږي.

## د رضاعت حق ادا کول

﴿۳۰۳۸﴾: وَعَنْ حَجَّاجِ بْنِ حَجَّاجٍ الْأَسْلَمِيِّ عَنْ أَبِيهِ أَنَّهُ قَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ مَا يُذْهِبُ عَنِّي مَذَمَّةَ الرَّضَاعِ فَقَالَ غُرَّةٌ عَبْدٌ أَوْ أَمَةٌ. رواه الترمذي وابوداؤد والنسائي والدارمي.

حضرت حجاج بن حجاج اسلمي رضی الله عنه د خپل پلار څخه روايت کوي چي هغه د رسول الله ﷺ

څخه پوښتنه وکړه يا رسول الله! هغه کوم شی دی چي د شيدو د چښلو حق ادا کوي ؟ نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل : شيدو رودونکي ته غلام يا مينزه ورکول په دې سره د هغې د رضاعت د خدمت حق ادا کيږي .(ترمذي ابوداؤد نسائي دارمي) .

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲\ ۵۵۳، رقم: ۲۰۶۴، والترمذي في السنن ۳\ ۴۵۹، رقم: ۱۱۵۳، والنسائي ۶\ ۱۰۸، رقم: ۳۳۲۹، والدارمي ۲\ ۲۰۹، رقم: ۲۲۵۴.

**د لغاتو حل**: مِذمة: ای حق الارضاع (د تی رودلو حق).

**تشريح**: د پوښتنه کونکي مطلب دا وو چي هغه کوم شی دی چي زه يې تي ورکونکي ته ورکړم چي د هغه په وجه زه د تي ورکونکي د هغه حق څخه خلاص سم کوم چي د تي ورکولو په وجه د هغې پر ما دی؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل که ته هغه ښځي ته کومي چي تا ته تی درکړی دی يو غلام يا مينزه ورکړې نو د هغې د تي درکولو حق به ادا سي يعني خلاصه دا سوه چي تی ورکونکي ښځه يو لوی خدمت تر سره کوي ځکه نو د هغې هم خدمت کول پکار دي چي هغه خادم د هغې خدمت وکړي او د خدمت بدل خدمت سي .

## د رسول الله ﷺ د رضعي مور تعظيم او تکريم

﴿۳۰۳۹﴾: وَعَنْ أَبِي الطُّفَيْلِ الْغَنَوِيِّ قَالَ كُنْتُ جَالِسًا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابو طفيل غنوي رضي الله عنه څخه روايت دی چي زه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر وم

وَسَلَّمَ إِذْ أَقْبَلَتْ امْرَأَةٌ فَبَسَطَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رِدَاءَهُ حَتَّى قَعَدَتْ

يوه ښځه (يعني بي بي حليمه رض د نبي کريم ﷺ دايي) راغله نبي کريم ﷺ ورته خپل پټو هوار کړ او هغه په پټو باندي کښېنستل

عَلَيْهِ فَلَمَّا ذَهَبَتْ قِيلَ هٰذِهِ ارْضَعَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ .رواه ابوداؤد

نو هغو خلکو ته (چي د نبي کريم ﷺ په دې احترام حيران وه) وښودل سوه کله چي هغه ولاړه چي دې ښځي و نبي کريم ﷺ ته شيدې ورکړي وی (د سينې شيدې ورکړی وی). (ابو داؤد) .

**تخريج**: ابوداود في السنن ۵\ ۳۵۳، رقم: ۵۱۴۴.

## تر څلورو زیاتي ښځي ناجائز دي

﴿۳۰۴۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ غَيْلاَنَ بْنَ سَلْمَةَ الثَّقَفِيَّ أَسْلَمَ وَلَهُ عَشْرُ نِسْوَةٍ فِي الْجَاهِلِيَّةِ فَأَسْلَمْنَ مَعَهُ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمْسِكْ أَرْبَعًا وَفَارِقْ سَائِرَهُنَّ. رواه أحمد والترمذي وابن ماجه

د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما څخه روایت دی چي غیلان د سلمه ثقفي زوی مسلمان سو د جاهلیت په زمانه کي د هغه په نکاح کي لس ښځي وی هغه هم مسلماني سوې نبي کریم ﷺ هغه ته وفرمایل: په دې کي څلور ښځي وساته او نوري د ځانه څخه جلا کړه. (احمد ترمذي ابن ماجه)

**تخریج**: احمد في المسند ۲\ ۴۴، والترمذي في السنن ۳\ ۴۳۵، رقم: ۱۲۸، وابن ماجه في السنن ۱\ ۶۲۸، رقم: ۱۹۵۳.

**تشریح**: ددغه حدیث شریف څخه معلومه سوه چي د کفر په حالت کي کوم واده کیږي هغه معتبر وي. که چیري کافر ښځه او خاوند اسلام راوړي نو هغوی ته د نکاح د تجدید حکم نه سي ورکول کېدای په شرط ددې چي د هغوی په نکاح کي داسي قرابت نه وي کوم چي اسلامي شریعت منع حرام کړي دي او ددغه حدیث څخه دا هم معلومه سوه چي د څلورو څخه زیاتي ښځي په یو وخت کي په نکاح کول هم جائز نه دي.

﴿۳۰۴۱﴾: وَعَنْ نَوْفَلِ بْنِ مُعَاوِيَةَ قَالَ أَسْلَمْتُ وَتَحْتِيْ خَمْسُ نِسْوَةٍ فَسَأَلْتُ

د حضرت نوفل بن معاویه رضی الله عنه څخه روایت دی کوم وخت چي زه مسلمان سوم زما پنځه ښځي

النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ فَارِقْ وَاحِدَةً وَأَمْسِكْ أَرْبَعًا فَعَمَدْتُ إِلَى

وی ما د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه نو نبي کریم ﷺ را ته وفرمایل: یوه ښځه د ځانه څخه

أَقْدَمِهِنَّ صُحْبَةً عِنْدِيْ عَاقِرٍ مُنْذُ سِتِّيْنَ سَنَةً فَفَارَقْتُهَا. رواه في شرح السنة

جلا کړه او نوري څلور وساته نو ما د ټولو څخه اولني ښځه چي تر شپېتو کالو پوري وچه وه ما د ځانه جلا کړه (شرح السنة).

**تخریج**: البغوي في شرح السنة ۹\ ۹۰، ۹۱، رقم: ۲۲۸۹.

## د دوو خوېندو سره په يو وار نکاح کول منع دي

﴿۳۰۴۲﴾: وَعَنِ الضَّحَّاكِ ابْنِ فَيْرُوزَ الدَّيْلَمِيِّ عَنْ أَبِيهِ قَالَ قُلْتُ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ إِنِّي أَسْلَمْتُ وَتَحْتِي أُخْتَانِ قَالَ اخْتَرْ أَيَّتَهُمَا شِئْتَ . رواه الترمذي وابوداؤد وابن ماجة .

حضرت ضحاک بن فیروز دیلمي رضي الله عنه د خپل پلار څخه روایت کوي چي هغه پوښتنه وکړه چي یا رسول الله ﷺ ! ما اسلام قبول کړی دی او زما په نکاح کي دوې خوندي دی نبي کریم ﷺ ور ته وفرمایل : په دواړو کي یوه خوښه کړه (او بله د ځان څخه جلا کړه) . (ترمذي ابو داؤد ابن ماجه) .

**تخریج**: ابوداود في السنن ۲\ ۶۷۸، رقم: ۲۲۴۳، والترمذي في السنن ۳\ ۴۳۶، رقم: ۱۱۳۰، وابن ماجه في السنن ۱\ ۶۲۷، رقم: ۱۹۵۱.

**تشریح**: مظهر رحمة الله علیه وایي چي د امام شافعي، امام مالک او امام احمد رحمة الله علیهم مذهب دادی که چیري یو سړی په داسي حال کي اسلام قبول کړي چي د هغه په نکاح کي دوې خویندي وي او هغه دواړي خویندي هم د هغه سره اسلام قبول کړي نو د هغه لپاره به دا جائز وي چي هغه په دواړو کي یوه په خپل نکاح کي وساتي که اول منکوحه وي او که دوهمه منکوحه وي مګر د امام ابوحنیفة رحمة الله علیه مذهب دادی که چیري هغه سړي دواړي خویندو سره یو ځای عقد کړی وي نو په دغه صورت کي د هغه لپاره د دواړو څخه یوه په خپل نکاح کي ساتل جائز دي مګر که چیري هغه د واړو سره یو په بل پسې عقد کړی وي نو په هغوی کي د هغه ښځي په نکاح کي ساتل جائز دي کوم چي یې مخکي په نکاح کړي وي او د کومي ښځي سره چي یې وروسته نکاح کړې وي هغه په هیڅ صورت کي هم په خپل نکاح کي ساتل جائز نه دي .

## په کافر ښځي او خاوند کي که یو اسلام قبول کړي نو نکاح قائمه ده که یا؟

﴿۳۰۴۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ أَسْلَمَتِ امْرَأَةٌ فَتَزَوَّجَتْ فَجَاءَ زَوْجُهَا إِلَى

د ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دی یوه ښځه مسلمانه سوه او هغې نکاح وکړه او د هغې اولنی خاوند

النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ إِنِّي قَدْ أَسْلَمْتُ وَعَلِمَتْ بِإِسْلَامِي

د نبي کريم ﷺ په خدمت کي حاضر سو او عرض يې وکړ: يا رسول الله! زه مسلمان سوی يم او زما ښځي ته زما د مسلمان کېدو خبر نه وو معلوم (او بيا هغې د دويم سړي سره نکاح وکړه)

فَانْتَزَعَهَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ زَوْجِهَا الآخَرِ وَرَدَّهَا إِلَى زَوْجِهَا

نبي کريم ﷺ هغه ښځه د دويم خاوند څخه جلا کړه او اولني خاوند ته يې حواله کړه.

الأَوَّلِ وَفِيْ رِوَايَةٍ أَنَّهُ قَالَ إِنَّهَا أَسْلَمَتْ مَعِيَ فَرَدَّهَا عَلَيْهِ. رواه أبو داود،

په يو بل روايت کي دي چي هغې زما سره اسلام قبول وکړ، نو هغه يې بېرته ده ته ورکړه (ابوداؤد)

وَرُوِيَ فِيْ شَرْحِ السُّنَّةِ أَنَّ جَمَاعَةً مِّنَ النِّسَاءِ رَدَّهُنَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

او په شرح السنة کي ليکلي دی چي نبي کريم ﷺ ډيري ښځي د هغوی خاوندانو ته وسپارلې

وَسَلَّمَ بِالنِّكَاحِ الأَوَّلِ عَلَى أَزْوَاجِهِنَّ عِنْدَ اجْتِمَاعِ الإِسْلاَمَيْنِ بَعْدَ اخْتِلاَفِ الدِّيْنِ وَالدَّارِ مِنْهُنَّ بِنْتُ الْوَلِيْدِ بْنِ مُغِيْرَةَ كَانَتْ تَحْتَ صَفْوَانَ بْنِ أُمَيَّةَ

کله چي دواړه مسلمان سوی وه په دې ښځو کي يوه د وليد بن مغيره لور وه چي د صفوان بن اميه ښځه وه دا ښځه

فَأَسْلَمَتْ يَوْمَ الْفَتْحِ وَهَرَبَ زَوْجُهَا مِنَ الإِسْلاَمِ فَبَعَثَ إِلَيْهِ ابْنَ عَمِّهِ وَهْبَ

د مکې د فتحي په ورځ مسلمانه سوه او د هغې خاوند د اسلام څخه تېښته وکړه نبي کريم ﷺ د هغې خاوند ته د هغه د اکا زوی وهب بن عمير وليږی

بْنَ عُمَيْرٍ بِرِدَاءِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَانًا لِصَفْوَانَ فَلَمَّا قَدِمَ

او د نبي په ډول يې خپل پټو ورکړ او هغه ته يې د امن اطلاع ورکړه کوم وخت چي

جَعَلَ لَهُ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَسْيِيْرَ أَرْبَعَةِ أَشْهُرٍ حَتَّى أَسْلَمَ

صفوان په خدمت نبوي کي شامل سو نو هغه ته يې څلور مياشتي امان ورکړ چي هغه په ابادیو

فَاسْتَقَرَّتْ عِنْدَهُ وَأَسْلَمَتْ أُمُّ حَكِيْمِ بِنْتُ الْحَارِثِ بْنِ هِشَامٍ امْرَأَةُ عِكْرَمَةَ

كي وګرځي او د مسلمانانو حالت وګوري تر دې چي صفوان مسلمان سو نو ښځه ورسره پاته

بْنِ أَبِي جَهْلٍ يَوْمَ الْفَتْحِ بِمَكَّةَ وَهَرَبَ زَوْجُهَا مِنَ الْإِسْلَامِ حَتَّى قَدِمَ الْيَمَنَ

سوه دويمه ښځه د حارث بن هشام لور ام حكيم وه چي د عكرمه (د ابو جهل د زوی) ښځه وه دا هم د مكې دفتحي په ورځ مسلمانه سوی ده او د دې خاوند د اسلام څخه وتښتېد اخير عكرمه چي يمن ته ورسيدي

فَارْتَحَلَتْ أُمُّ حَكِيمٍ حَتَّى قَدِمَتْ عَلَيْهِ الْيَمَنَ فَدَعَتْهُ إِلَى الْإِسْلَامِ فَأَسْلَمَ فَثَبَتَا عَلَى نِكَاحِهِمَا . رواه مالك عن ابن شهاب مرسلا

نو ام حكيم و هغه ته ورغله او هغه ته يې د اسلام هدايت وكړ هغه مسلمان سو او د دواړو نكاح برقراره پاته سوه . (دا حديث مالک د ابن شهاب څخه مرسلا ذكر كړی دی) .

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲\ ۶۷۴، رقم: ۲۲۳۹، ومالک في الموطا ۲\ ۵۴۳، رقم: ۴۴، والبغوي في شرح السنة ۹\ ۹۳، رقم: ۲۲۹۰.

**تشريح**: كه په غير مسلم خاوند او ښځه كي يو مسلمان سي او دوهم مسلمان نه وي نو د واړو نكاح به باقي وي كه يا ؟ په دې باره كي مظهر رحمة الله عليه وايي چي امام شافعي او امام احمد رحمة الله عليهما فرمايي چي په دغه صورت كي كه چيري هغه دوهم (چا چي اسلام نه وي قبول كړی كه ښځه وي او كه خاوند) د عدې تېرولو څخه مخكي اسلام قبول كړي نو د هغوی نكاح به باقي وي كه څه هم د دواړو پخواني مذهب يو وي د مثال په توګه دواړه عيسايان يا يهوديان يا د بتانو عبادت كونكي وي او كه د دواړو مذهب يو ډول نه وي د مثال په توګه د يوه مذهب بت پرستي وي او دوهم عيسائي يا يهودي وي همدارنګه كه دواړه په دارالاسلام كي اوسيدونكي وي يا په دارالحرب كي او كه په دوی كي يو په دارالاسلام كي وي او بل په دارالحرب كي اوسيږي.

امام ابو حنيفة رحمة الله عليه فرمايي چي په دغه صورت كي په دواړو كي جلاوالی د درو وجو څخه په يو وجه كيدای سي اول دا چي د عدې ورځي پوره سي ، دوهم دا چي په دواړو كي چا چي اسلام قبول كړی وي هغه اسلام نه قبلونكي ته د اسلام دعوت وركړی وي او هغه د اسلام قبلولو څخه انكار وكړي، دريم دا چي په دواړو كي يو دار الاسلام ته په منتقل كېدو سره دار الحرب ته ولاړ سي يا د درالحرب په پرېښودو سره دارالاسلام ته راسي او د امام ابو حنيفة رحمة الله عليه په نزد په دواړو كي د يوه اسلام قبلول كه د مجامعت څخه مخكي سوي يا وروسته په دواړو صورتو كي يو ډول حكم دی .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### محرمات څوک دي؟

﴿۳۰۴۴﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ حُرِّمَ مِنَ النَّسَبِ سَبْعٌ وَمِنَ الصِّهْرِ سَبْعٌ ثُمَّ قَرَأَ حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ أُمَّهَاتُكُمْ الآية. رواه البخاري

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دى چي د نسب د نكاح په وجه د اوو قسمو ښځو سره نكاح كول حرامه ده او د نكاح په ذريعه چي كومه رشته او قرابت قائم وي د هغه سره هم د اوو ښځو نكاح كول حرامه ده بيا هغه دا ايت ولوست حرمت عليكم امهاتكم الاية (بخاري).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\۱۵۳، رقم: ۵۱۰۵.

**تشريح**: د نسب له مخي چي كوم اووه قرابت والا ښځي حرامي سوي دي هغه دادي ۱: مور، ۲: لور، ۳: خور، ۴: د پلار خور، ۵: د مور خور، ۶: خورزه.

مصاهرت هغه قرابت ته وايي چي د نكاح په ذريعه قائم وي چي خسرګنۍ هم ورته ويل كيږي. د مصاهرت په وجه چي كومي اووه ښځي حرامي ګرځول سوي دي په هغوى كي څلور د همېشه لپاره حرامي دي چي د هغوى سره په هيڅ حال او هيڅ وخت كي نكاح كول جائز نه دي او هغه دادي ۱: د ښځي مور يعني خواښې، ۲: د زوى او ملسي ښځي يعني مژور، كه څه هم د لاندي درجې وي لكه كړوسي او كوسي او داسي نورو ښځي، ۳: د پلار او نيكه ښځي كه څه هم پورتني درجې وي لكه د ور نيكه او تر نيكه ښځي، ۴: د خپل هغه ښځي لور چي د هغې سره يې جماع كړې وي. د خسرګنۍ هغه قرابت چي د همېشه لپاره حرام نه وي درې دي: ۱: د ښځي خور، ۲: د ښځي عمه، ۳: د ښځي خاله.

حضرت ابن عباس رضي الله عنه د دغه خبري د دليل په توګه د قرآن كريم آيت تلاوت كړ په دغه آيت كي نسبي قرابت د هغه اوو ښځو ذكر دى كومي چي حرامي ګرځول سوي دي او د خسرګنۍ په وجه چي كومي ښځي حرامي دي په هغوى كي د اكثرو ذكر په دغه آيت كريمه كي دى:

حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ أُمَّهَاتُكُمْ وَبَنَاتُكُمْ وَأَخَوَاتُكُمْ وَعَمَّاتُكُمْ وَخَالاَتُكُمْ وَبَنَاتُ الأَخِ وَبَنَاتُ الأُخْتِ وَأُمَّهَاتُكُمُ اللاَّتِي أَرْضَعْنَكُمْ وَأَخَوَاتُكُم مِّنَ الرَّضَاعَةِ وَأُمَّهَاتُ نِسَآئِكُمْ وَرَبَائِبُكُمُ اللاَّتِي فِي حُجُورِكُم مِّن نِّسَآئِكُمُ اللاَّتِي دَخَلْتُم بِهِنَّ فَإِن لَّمْ تَكُونُواْ دَخَلْتُم بِهِنَّ فَلاَ جُنَاحَ عَلَيْكُمْ

وَحَلَائِلُ أَبْنَائِكُمُ الَّذِينَ مِنْ أَصْلاَبِكُمْ وَأَن تَجْمَعُواْ بَيْنَ الأُخْتَيْنِ إَلاَّ مَا قَدْ سَلَفَ إِنَّ اللّهَ كَانَ غَفُورًا رَّحِيمًا ۲۳: سورة النساء.

ژباړه: حرامي کړل سوي دي پر تاسو باندي ميندي ستاسو او لوڼي ستاسو او ستاسو خويندي او ستاسو عمه ګاني او ستاسو خاله ګاني او ستاسو وريرې او ستاسو خورزې او ستاسو هغه ميندي چي تاسو ته يې تی درکړی وي او ستاسو د تي شريکي خويندي او ستاسو د ښځو ميندي او ستاسو د ښځو هغه لوڼي چي د هغوی د مخکني خاوند څخه دي او ستاسو په روزنه کي دي او ستاسو د هغه ښځو څخه چي د هغوی سره تاسو نکاح کړې ده او که تاسو د هغوی سره جماع نه وي کړې نو ستاسو لپاره په دې کي ګناه نه سته چي تاسو د هغوی دلوڼو سره نکاح وکړئ او ستاسو د هغه زامنو ښځي (هم حرامي دي) چي ستاسو د نسل څخه وي او دا هم حرامي دي چي تاسو دوې خويندي يو ځای په خپل نکاح کي وساتئ مګر څه چي سوي دي (هغه معاف دي) بېشکه الله تعالی ډېر بخښونکی او رحمت والا دی.

## د خپلي ښځي د لور سره نکاح منع ده

﴿۳۰۴۵﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

حضرت عمرو بن شعيب رضی الله عنه د خپل پلاره څخه او هغه د خپل پلاره څخه روايت کوي چي رسول

وَسَلَّمَ قَالَ أَيُّمَا رَجُلٍ نَكَحَ امْرَأَةً فَدَخَلَ بِهَا فَلَا يَحِلُّ لَهُ نِكَاحُ ابْنَتِهَا وَإِنْ

الله ﷺ وفرمايل: څوک چي د يوې ښځي سره نکاح وکړي بيا د هغې سره کوروالي وکړي نو هغه لپاره د هغې دلور سره نکاح کول حرامه ده (يعني د هغې د لور سره چي د هغې د نکاح کولو څخه مخکي د بل خاوند څخه وي) او که يې

لَمْ يدخل بِهَا فَلْيَنْكِحْ ابْنَتَهَا وَأَيُّمَا رَجُلٍ نَكَحَ امْرَأَةً فَلَا يَحِلُّ لَهُ ان ينكح

د هغې سره کوروالي نه وي کړې نو د هغې د وفات يا طلاق وروسته د هغې د لور سره نکاح کول جائز ده او څوک چي د يوې ښځي سره نکاح وکړي نو د هغې د مور سره نکاح کول حرامه

أُمَّهَا دَخَلَ بِهَا أَوْ لَمْ يَدْخُلْ. رواه الترمذي وقال هذا حديث لا يصح من

ده که څه هم د هغې سره يې صحبت کړی وي يا يې نه وي کړی. (ترمذي) او په ترمذي کي دا

قبل اسناده انما رواه ابن لهيعة والمثنى ابن الصباح عن عمرو بن شعيب وهما يضعفان في الحديث

حديث د اسناد د اعتباره مستند نه دی د ابن لهيعه او مثنى بن صباح عمرو بن شعيب څخه روايت کړی دی په حديث شريف کې دواړه راويان ضعيفه دي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\ ۴۳۵، رقم: ۱۱۱۷.

**تشريح**: په حديث شريف کي د خپلي ښځي د لور سره د نکاح د عدم جواز حکم بيان سوی دی هغه د قرآن کريم د دغه آيت کريمه څخه ثابت دی:

وَرَبَائِبُكُمُ اللاَّتِي فِي حُجُورِكُم مِّن نِّسَآئِكُمُ اللاَّتِي دَخَلْتُم بِهِنَّ فَإِن لَّمْ تَكُونُواْ دَخَلْتُم بِهِنَّ فَلاَ جُنَاحَ عَلَيْكُمْ.

ژباړه: او حرامي دي پر تاسو باندي ستاسو د ښځو هغه لوڼي کومي چي د هغوی څخه د مخکي خاوند څخه دي او ستاسو په روزنه کي دي او ستاسو د هغه ښځو څخه دي چي هغوی سره تاسو جماع کړې وي او که تاسو د هغوی سره جماع نه وي کړې نو په دې کي څه ګناه نه سته چي تاسو اد هغوی لوڼو سره نکاح وکړئ.

او د ښځي مور يعني خواښي سره د نکاح د عدم جواز چي کوم مطلق حکم بيان سوی دی هغه د قرآن کريم د دغه آيت څخه ثابت دی: (وامهات نسائكم) يعني پر تاسو حرامي دي ستاسو د ښځو ميندي.

=========

## بَابُ الْمُبَاشِرَةِ (د کوروالی بيان)

### اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د مباشرت په اړه د يهودو يو غلط خيال

﴿۳۰۴۶﴾: عَنْ جَابِرٍ قَالَ كَانَتْ الْيَهُودُ تَقُولُ إِذَا أَتَى الرَّجُلُ اِمْرَأَتَهُ مِنْ دُبُرِهَا فِيْ قُبُلِهَا كَانَ الْوَلَدُ أَحْوَلَ فَنَزَلَتْ { نِسَاؤُكُمْ حَرْثٌ لَكُمْ فَأْتُوا حَرْثَكُمْ أَنَّى

شِئْتُمْ ﴾ . متفق عليه

د حضرت جابر ﷜ څخه روايت دی چي يهوديانو به ويله څوک چي د ښځي د شا په طرف کي د شرمګاه مخکني برخه يعني فرج کي جماع وکړی نو د هغې کوچنی چيک پيدا کيږی په دې خبره دا ايت نازل سو نساؤکم ......... انی شئتم . (ستاسو ښځي ستاسو پټي دی تا سو ته اختيار دی (چي هغوی د شرمګاه په مخکنۍ برخه کي) څنګه چي غواړئ ورسره کوروالي وکړئ) . (بخاري او مسلم).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۸\۱۸۹، رقم: ۴۵۲۸، ومسلم ۲\۱۰۵۸، رقم: ۱۱۷\۱۴۳۵.

**تشريح**: يهودو به ويل که چيري يو سړی د ښځي سره داسي جماع وکړي چي د هغې د شا له خوا څخه په درېدو سره يا په پروته د هغې په مخکني ځای يعني شرمګاه کي خپل خاص اندام داخل کړي نو په دې وجه به کوچنی چيک پيدا کيږي د هغوی ددغه غلط خيال د ترديد لپاره دغه آيت کريمه نازل سو چي ستاسو ښځي ستاسو کښت دی لکه څرنګه چي ستاسو په کښت کي ستاسو لپاره فصل پيدا کيږي همدارنګه ستاسو د ښځو په ذريعه ستاسو اولاد پيدا کيږي ځکه نو تاسو خپل کښت په راتلو کي خودمختاره ياست څرنګه چي غواړئ ورځئ که په پروته وي ، که په ناسته او که په ولاړه که دمخ د خوا څخه وي او د شا له خوا څخه څرنګه چي ستاسو زړه غواړي د هغوی سره جماع کوئ په هيڅ صورت کي تاوان نه سته مګر شرط دادی چي جماع په هر صورت کي د ښځي په مخکنۍ برخي (يعني د تشو بولو په ځای کي) کول پکار دي ځکه چي په کوم اعتبار سره ښځي ته کښت ويل سوي دي د هغه اطلاق د ښځي پر مخکنۍ شرمګاه کيدای سي نه د شا پر شرمګاه (يعني د لويو بولو ځای) باندي ددې اطلاق نه سي کيدای په دې توګه چي د شا شرمګاه د اولاد پيداکېدو ځای نه دی بلکه د ډکو بولو ځای دی ځکه نو دا خبره بايد په ذهن کي وي چي د شا له خوا بدفعلي کول يوازي په اسلام کي نه بلکه په هر دين کي حرام دي .

## د عزل مسئله

﴿۳۰۴۷﴾ : وَعَنْهُ قَالَ كُنَّا نَعْزِلُ وَالْقُرْآنُ يَنْزِلُ متفق عليه و زاد مسلم فَبَلَغَ ذَالِكَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يَنْهَنَا .

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي موږ به عزل (د عزل صورت دا دی چي کوروالي د ښځي سره وسي کله چي مني خالي وځي نو ذکر را ايستل او مني د باندي خارجول) کوئ او قرانکريم به نازلېدی. (بخاري او مسلم) او د مسلم په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي نبي کريم ﷺ ته دا (زموږ عزل کول) معلوم وه او نبي کريم ﷺ موږ د دې څخه نه يو منعه کړی.

**تخریج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\۳۰۵، رقم: ۵۲۰۸، ومسلم ۲\۱۰۶۵، رقم: ۱۳۶– ۱۴۴۰.

**تشریح**: د عزل مطلب دا دی چي د ښځي سره دا سي جماع (کوروالي) وکړل سي چي کله نارينه انزال کيږي نو. هغه خپل خپل خاص اندام (ذکر) د ښځي د شرمګاه څخه راوباسي او مني دباندي اخراج کړي په داسي کولو سره مني د ننه نه رسيږي ځکه د حامله کېدو څخه وژغورل سي.

علامه ابن همام رحمة الله عليه فرمايي چي اکثر علماء کرام د دې قائل دي چي عزل جائز دی او ځيني حضرات چي په هغو کي صحابه کرام هغه شامل دي د دې ته ناجائز وايي مګر صحيح خبره داده چي عزل کول جائز دي او په درمختار کي هم دا ليکلي دي که يو سړی د يو خاص حکمت يا عذر په وجه عزل کول غواړي نو هغه ته اجازه دې مګر دا بايد په خيال کي وي چي د خپل مينزي سره عزل کول د هغې د اجازې څخه پرته هم جائز دي مګر د خپل ازادي منکوحې سره د هغې د اجازې څخه وروسته عزل جائز دي، د امام شافعي رحمة الله عليه په باره کي سيد دا ليکلي دي چي د هغه په نزد هم د خپل ازادي منکوحې (نکاح سوي ښځي) سره د هغې د اجازې څخه وروسته عزل کول جائز دي مګر مينزه که مملوکه وي يا منکوحه وي د هغې د اجازې څخه پرته عزل کول جائز دي او امام نووي رحمة الله عليه دا ليکلي دي چي زموږ شوافع په نزد عزل کول مکروه دی ځکه چي د نسل د قطع کولو سبب دی.

(۳۰۴۸): وَعَنْهُ قَالَ أَنَّ رَجُلًا أَتَى رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنَّ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي يو سړی د نبي کريم ﷺ په خدمت کي حاضر سو او

لِي جَارِيَةً هِيَ خَادِمَتُنَا وَأَنَا أَطُوفُ عَلَيْهَا وَأَكْرَهُ أَنْ تَحْمِلَ فَقَالَ اعْزِلْ عَنْهَا

عرض يې وکړ زما سره يوه مينزه ده چي زموږ خدمت کوي زه د هغې سره کوروالي کوم مګر زه دا نه خوښوم چي هغه حامله سي نبي کريم ﷺ وفرمايل: که ته غواړې نو عزل کوه

إِنْ شِئْتَ فَإِنَّهُ سَيَأْتِيهَا مَا قُدِّرَ لَهَا فَلَبِثَ الرَّجُلُ ثُمَّ أَتَاهُ فَقَالَ إِنَّ الْجَارِيَةَ

او كوم شی چي په تقدير كي وي هغه به ضرور پيدا كيږي هغه سړی ولاړی او تر ډيرو ورځو پوري را نغلی بيا هغه حاضر سو عرض يې وكړ چي

قَدْ حَبِلَتْ فَقَالَ قَدْ أَخْبَرْتُكَ أَنَّهُ سَيَأْتِيهَا مَا قُدِّرَ لَهَا . رواه مسلم .

هغه ښځه حامله سوې ده نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل : ما پخوا لا خبر كړی يې چي كوم شی مقرر وي هغه به ضرور پيدا كيږي . (مسلم) .

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\ ۱۰۶۴، رقم: ۱۳۴ - ۱۴۳۹.

**تشريح**: علامه نووي رحمه الله وايي چي دا حديث ددې خبري دليل دی چي د عزل كولو سربېره كه چيري حمل وسي نو نسب يې ثابت وي او علامه ابن همام رحمه الله هم په دې باره كي ويلي دي كه يو سړی د خپل ښځي په اجازه سره يا هغې د اجازې څخه پرته عزل وكړي او ددې سربېره د هغه ښځي حمل وسي نو ايا د هغه سړي لپاره د هغه حمل څخه انكار كول جائز دي كه يا ؟ په دې مسئله كي تفصيل دی چي د علماؤ قول دادی كه چيري يو سړی د عزل كولو څخه وروسته دخول نه وي كړی يا دخول يې كړی وي مگر د هغه څخه مخكي يې بولي كړي وي نو په دغه صورت كي د هغه لپاره د حمل څخه انكار كول جائز دي او كه چيري هغه دوهم وار د دخول څخه مخكي بولي نه وي كړی نو بيا د هغه لپاره د حمل څخه انكار كول جائز نه دي ځكه چي په دغه صورت كي ددې خبري قوي احتمال كيدای سي چي د هغه په ذكر (د نارينه خاص اندام) كي د مني يو څاڅكی پاته سوی وي او هغه اوس د دخول په صورت كي د ښځي رحم ته تللی وي نو په دغه صورت كي د امام ابو حنيفة رحمه الله مذهب دادی كه چيري يو سړی (د جماع څخه د فارغه كېدو وروسته) د بولو كولو څخه مخكي د جنابت غسل وكړي او د هغه څخه وروسته چي بولي وكړي او د مني يو څاڅكی راووځي نو په دغه صورت كي پر هغه واجب دي چي دوهم وار غسل وكړي .

﴿۳۰۴۹﴾ : وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

د ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دی چي د بنی مصطلق په جگړه كي موږ د نبي كريم ﷺ

وَسَلَّمَ فِي غَزْوَةِ بَنِي الْمُصْطَلِقِ فَأَصَبْنَا سَبْيًا مِنْ سَبْيِ الْعَرَبِ فَاشْتَهَيْنَا

سره ولاړو او د عربو يو څو مينزي زموږ په لاس كي راغلې زموږ ښځو ته خواهش وسو او جره

النِّسَاءَ وَاشْتَدَّتْ عَلَيْنَا الْعُزْبَةُ وَأَحْبَبْنَا الْعَزْلَ فَأَرَدْنَا أَنْ نَعْزِلَ وَقُلْنَا نَعْزِلُ

والي زموږ لپاره يو مشكل سو خو د ښځو سره مو په دې خيال جماع و نكړه چي حامله ره سي اخير مو د عزل اراده وكړه وروسته مو سوچ وكړ

وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ أَظْهُرِنَا قَبْلَ أَنْ نَسْأَلَهُ فَسَأَلْنَاهُ عَنْ

چي كله رسول الله ﷺ دلته تشريف راوړى نو د هغه ﷺ څخه د پوښتني كولو پرته عزل كول مناسب نه دى موږ چي كله د نبي كريم ﷺ څخه پوښتنه وكړه

ذَلِكَ فَقَالَ مَا عَلَيْكُمْ أَنْ لَا تَفْعَلُوا مَا مِنْ نَسَمَةٍ كَائِنَةٍ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ إِلَّا وَهِيَ كَائِنَةٌ . متفق عليه.

نو يې راته وفرمايل :د عزل په پرېښولو كي ستاسو څه نقصان نسته ځكه چي كوم نفس (بشر) د قيامته پوري پيدا كيدونكي دى هغه به ضرور پيدا كيږي . (بخاري او مسلم) .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۷\۴۲۸، رقم: ۴۱۳۸، ومسلم ۲\۱۰۶۱، رقم: ۱۲۵\۱۴۳۸.

**د لغاتو حل**: العُزبة: اى قلة الجماع. (لږ كوروالي).

**تشريح**: امام نووي رحمة الله عليه فرمايي چي د سبيا من سبي العرب څخه دا خبره ثابتيږئ چي پر عربو باندي رق (غلامي) جاري كيږي كله چي هغوى مشركان وي يعني ځرنگه چي غير عرب مشركان او كافران په جنگ كي نيولو څخه وروسته غلامان او مينزي جوړېداى سي همدارنگه هغه مشركان او كافران چي د هغوى تعلق د عربو د نسل سره وي په يو جنگ كي د بنديانو په توگه په لاس راسي نو هغوى هم د مسلمانو په حق كي مينزي او غلامان كيږي ځكه چي دلته د كومو مينځو او غلامانو په لاس راتلل ذكر سوي دي د هغوي تعلق د بني المصطلق سره وو چي د خزاعه قبيلې يو ښاخ دى او د خزاعه قبيلې والا د عربو څخه دي ، د امام شافعي او امام مالك رحمة الله عليهما مذهب دادى مگر امام ابوحنيفة رحمة الله عليه فرمايي چي عربو ته الله تعالى يو خاص شرف وركړى دى د هغه سره سم د هغوى په افرادو كي غلامي نه جاري كيږي يعني هغوى مينزي او غلامان نه سي جوړېداى ، د امام شافعي رحمة الله عليه پخوانى قول هم دادى .

ما عليكم ان لا تفعلوا : دلته حرف د ان د الف په زور سره يعني اَن هم صحيح دي او د الف په زېر سره يعني اِن هم صحيح دى، د دغه جملې امام نووي رحمة الله عليه دا بيان كړې ده كه چيري تاسو عزل نه

کوئ نو په دې کې څه تاوان نه سته ځکه کله چې دا خبره فیصله ده چې الله تعالی کوم نفس پیدا کول مقدر کړي دي نو هغه به خامخا پیدا کیږي ځکه که تاسو عزل کوئ یا یې نه کوئ پر پیدا کېدونکي نفس باندي د هغه هیڅ اثر نه لویږي که چیري هغه دغه دنیا ته راځي نو تاسو په لک واره عزل وکړئ د کوچني بندېدو په لکاوو طریقې وکړئ مګر هغه به دنیا ته راځي او که چیري د هغه پیدا کېدل مقدر نه وي نو بیا که تاسو عزل وکړئ نو ستاسو هیڅ تاوان نه سته، خلاصه دا چې ستاسو عزل کول هیڅ کټهور شی نه دی په دې اعتبار دا حدیث د عزل د عدم جواز ته اشاره کوي.

ځیني حضرات وایي چې په (ان لا تفعلوا) کي حرف د لا زائد دی په دغه صورت کي به د دغه جملې معنی دا وي چې په عزل کولو کي څه بدوالی نه سته په دې اعتبار به دغه حدیث د عزل د جائز کېدو دلیل وي.

﴿۳۰۵۰﴾: وَعَنْهُ قَالَ سُئِلَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ عَنِ الْعَزْلِ فَقَالَ مَا مِنْ كُلِّ الْمَاءِ يَكُونُ الْوَلَدُ وَإِذَا أَرَادَ اللّٰهُ خَلْقَ شَيْءٍ لَمْ يَمْنَعْهُ شَيْءٌ. رواه مسلم.

د حضرت ابو سعید خدري رضی الله عنه څخه روایت دی چې د رسول الله ﷺ څخه د عزل په باره کي پوښتنه وسوه نو نبي کریم ﷺ وفرمایل: د منیو د ټولو اوبو څخه کوچنی نه پیدا کیږي (بلکه د دې لپاره یوه قطره هم کافي ده) او کله چې الله تعالي د یو شی د پیدا کولو اراده وکړي نو هیڅ شی هغه نسي منعه کولای. (مسلم).

**تخریج**: مسلم في الصحيح: ۲\ ۱۰۶۴، رقم: ۱۳۳- ۱۴۳۸.

**تشریح** دلته دا اشکال پیدا کیږي چې په سوال او جواب کي څه مطابقت نه سته حالنکه د حدیث پر حقیقي مفهوم باندي که نظر وکړل سي نو ددغه اشکال پیدا کېدو هیڅ محال نه پاته کیږي ځکه د سوال مقصد دا وو چې د عزل کولو اجازه تر لاسه سي چې د ښځي سره د ولادت کېدو بېره پاته نه سي، د سوال ددغه حقیقي مفهوم سره سم رسول الله ﷺ جواب ورکړ چې تاسو خلک خو دا ګڼئ چې د سړي مني د ښځي په رحم کي لوېدل د ښځي په نزد د ولادت کېدو سبب دی او عزل کول د ولادت نه کېدو سبب دی بلکه حقیقت دادی چې د مني د هر څاڅکي څخه کوچنی جوړیږي اکثر داسي کیږي چې د سړي مني د ښځي رحم ته ورسیږي مګر د هغه څخه کوچنی نه جوړیږي او ځیني وختونه داسي کیږي چې خلک عزل کوي مګر ددې سربېره ښځه حامله سي ددې څخه معلومه سوه چې د ښځي حامله کېدل د سړي د مني پر لوېدو باندي

موقوف نه دي بلکه د الله تعالی پر اراده باندي موقوف دي همدارنګه د ښځي څخه حامله کېدل هم د الله تعالی پر اراده باندي موقوف دي پر عزل باندي موقوف نه دي مګر دا خبره ضروري ده چي الله تعالی د توالد او تناسل يو نظام ټاکلی دی چي د سړي د نطفې څخه د کوچني توليد کيږي ځکه کيدای سي چي د عزل کولو په صورت کي هم دنطفې يو برخه بېله اختياره د ښځي رحم ته ولاړه سي او د هغه څخه کوچنی جوړ سي بلکه په دې کي هم څه شک نه سته که چيري د يو کوچني پيدا کېدل په تقدير کي وي نو الله تعالی پر دې قدرت حاصل دی چي هغه کوچنی بېله نطفې څخه پيدا کړي.

په ظاهره خو دغه حديث شريف د عزل پر جائز کېدو باندي دلالت کوي مګر ددې حقيقي مفهوم دې ته اشاره کوي چي عزل کول غوره کار نه دی بلکه مکروه دی، په دغه مسئله کي د حنفيه او نورو علماؤ چي کوم فقهي مذهب دی د هغه بيان د حضرت جابر رضی الله عنه د روايت په تشريح کي تېر سوی دی.

﴿۳۰۵۱﴾: وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ أَنَّ رَجُلًا جَاءَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

د حضرت سعد بن ابي وقاص رضی الله عنه څخه روايت دی چي يو سړی د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنِّي أَعْزِلُ عَنْ امْرَأَتِي فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

حاضر سو او عرض يې وکړ چي زه د خپلي بي بي سره عزل کوم نبي کريم صلی الله علیه وسلم ور څخه پوښتنه

وَسَلَّمَ لِمَ تَفْعَلُ ذَلِكَ فَقَالَ الرَّجُلُ أُشْفِقُ عَلَى وَلَدِهَا فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى

اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ كَانَ ذَلِكَ ضَارًّا ضَرَّ فَارِسَ وَالرُّومَ. رواه مسلم.

وکړه چي عزل ولي کوی؟ هغه وويل د خپل شېر خوار کوچني په وجه عزل کوم دا چي حمل و نسي او کوچني ته په شېدو رودلو کي تاوان پېښ نسي. نبي کريم صلی الله علیه وسلم ورته وفرمايل: که په دې (يعني د حمل په ورځو کي) شيدو ور کولو کي تاوان وای نو د روم او فارس خلکو ته به يې خامخا تاوان رسولای (ځکه چي هغوی په دې عادت دي). (مسلم).

**تخريج**: مسلم في الصحيح: ۱۲\۱۰۶۷، رقم: ۱۴۳- ۱۴۴۳.

**تشريح**: د خلکو دا خيال وو چي د رضاعت په وخت کي جماع کول او بيا په حمل کېدو سره د ښځي په شېدو کي خرابي پيدا کيږي ځکه د هغه شېدو په څښلو سره تي رودونکي کوچني ته

تاوان رسیږي ددې ځخه پرته په داسي حالت کي د ښځي شیدې هم کمیږي ددغه بیري له کبله هغه سړي د رسول الله ﷺ ځخه د عزل اجازه وغوښتل او د هغه په جواب کي رسول الله ﷺ ورته وفرمایل چي د رضاعت په وخت کي جماع کول او حمل کېدل که چیري د تي رودونکي کوچني لپاره تاواني وای نو د روم او فارس خلکو ته به یې خامخا تاوان رسولی وای ځکه چي هغوی ددې عادي دي او کله چي د هغوی دغه عادت د هغوی لپاره تاوان کونکی نه دی نو معلومه سوه چي د رضاعت په وخت کي حمل کېدل تاوان رسونکی نه دی نود عزل کولو ځه ګټه نه سته او د حمل کېدو د بیري په وجه عزل مه کوه یعني د رسول الله ﷺ دغه ارشاد د عزل پر کراهت او ناخوښی باندي دلالت کوي.

﴿۳۰۵۲﴾: وَعَنْ جُذَامَةَ بِنْتِ وَهَبٍ قَالَتْ حَضَرْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د بي بي جذامه بنت وهب رض ځخه روایت دی چي زه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضره سوم

وَسَلَّمَ فِي أُنَاسٍ وَهُوَ يَقُولُ لَقَدْ هَمَمْتُ أَنْ أَنْهَى عَنِ الْغِيلَةِ فَنَظَرْتُ فِي الرُّومِ

نو نبي کریم ﷺ د خلکو یوې ډلی ته مخاطب سو چي ما اراده کړې وه چي خلک به د (غیله)، (غیله په دوو معنی ده ۱- یو خو داد چي د کوچني د شیدو رودلو په وخت کي د هغه د مور سره جماع کول او ۲- دا چي د حمل په وخت کي و کوچني ته تی ورکول چي دا به عربو بد ګڼل او ویل به یې دې باندي و کوچني ته تاوان رسوی)، ځخه منعه کړم مګر کله چي ما ولیدل

وَفَارِسَ فَإِذَا هُمْ يُغِيلُونَ أَوْلَادَهُمْ فَلَا يَضُرُّ أَوْلَادَهُمْ ذٰلِكَ شَيْئًا ثُمَّ سَأَلُوهُ

چي د روم او فارس خلکو به د حمل په وخت کي غیله کوله او د غیلې په وجه و کوچني ته تاوان نه رسېدئ نو بیا ما خپله اراده پرېښودل وروسته خلکو د نبي کریم ﷺ ځخه د عزل په اړه

عَنِ الْعَزْلِ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذٰلِكَ الْوَأْدُ الْخَفِيُّ وَهِيَ

{ وَإِذَا الْمَوْءُودَةُ سُئِلَتْ } . رواه مسلم .

پوښتنه وکړه نو نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل: عزل کول د کوچني د ښخولو پټ شکل دی او د دې ایت په مفهوم کي داخل دی واذا الموءودة سئلت (یعني کومه کوچنۍ چي ژوندی ښخ کړل سي او د هغې ځخه به پوښتنه وسي). (مسلم).

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۱۰۶۷/۲، رقم: ۱۴۱- ۱۴۴۲

**د لغاتو حل**: الغِيلة: اى الارضاع حال الحمل. (د حمل په وخت کي تی ورکول).

**تشريح** د غیله معنی ده د حمل په حالت کي کوچني ته تی ورکول، په نهایه کي لیکلي دي چي د غیله مطلب دادی چي یو سړی د رضاعت په ورځو کي د خپل ښځي سره جماع وکړي، عربو د غیلې څخه پرهیز کوی او دا ګمان یې کوی چي په دغه صورت کي تي رودونکي کوچني ته تاوان رسیږي ځکه رسول الله ﷺ دا اراده وکړه چي خلک د رضاعت په ورځو کي خپل ښځي ته د ورتلو څخه منع کړي مګر کله چي رسول الله ﷺ ولیدل چي د روم او فارس خلک داسي کوي او د هغوی اولاد ته څه تاوان نه رسیږي نو رسول الله ﷺ د ممانعت اراده پرېښودل.

د (وادْ) معنی ده د ژوندي ښخول، د جاهلیت په زمانه کي به عربو د مفلسۍ د بیري څخه او د پېغور له کبله خپله لوڼي ژوندۍ ښخولې، په ذکر سوي آیت کریمه کي دې ته اشاره ده چي د قیامت په ورځ به د الله تعالی له لوري د هغه مور او پلار څخه پوښتنه کیږي چي په خپل لاس به يې خپل لوڼي ژوندۍ ښخولې، رسول الله ﷺ عزل هم په (واد خفي) یعني د ژوندیو په ښخولو سره تعبیر کړ همدارنګه دغه حدیث شریف د هغه حضراتو دلیل دی چي عزل ته جائز نه وايي او [...]وم حضرات چي عزل جائز ګڼي هغوی دا وايي چي یا خو دغه حدیث شریف منسوخ دی او یا [ر]سول الله ﷺ دا خبره د تهدید او خبرتیا په توګه فرمایلې ده یا دا چي د دغه ارشاد په ذریعه دې ته اشاره سوې ده چي عزل نه کول غوره دي.

د دغه حضراتو تائید د دغه روایت څخه هم کیږي چي یوه ورځ د رسول الله ﷺ یو مجلس جوړ سوی وو، په حاضرینو کي حضرت علي، حضرت زبیر او د حضرت سعد رضي الله عنهم څخه علاوه نور جلیل القدر صحابه کرام لکه حضرت امیر المؤمنین حضرت عمر فاروق رضي الله عنه هم موجود وو، د عزل په باره کي بحث کېدی، د صحابه کرامو رایه دا وه چي په دې کي څه پروا نه سته مګر یو صحابي دا وویل چي خلک خو دا وايي چي عزل کول موءودة صغری (یعني د ژوندیو ښخول) دي یعني څرنګه چي خپل اولاد ژوندي ښخول موءودة کبری دی همدارنګه عزل کول موءودة صغری دی، حضرت علي رضي الله عنه د دې په جواب کي وفرمایل چي تر څو پوري په کوچني کي ساه را نه سي د موءودة اطلاق نه پر کیږي یعني د ساه راتللو څخه وروسته که چیري د حمل اسقاط وکړل سي یا کوچنی د ژوندي پیدا کېدو څخه وروسته ژوندی ښخ کړل سي نو دې ته به موءودة ویل کیږي، د حضرت علي رضي الله عنه د دغه جواب په اورېدو سره حضرت عمر رضي الله عنه وفرمایل: اې علي! الله تعالی دي ستاسو عمر اوږد کړي تا رښتیا وویل، فقهي مسئله

داده چي تر څو پوري په کوچني کي ساه را نه سي د هغه د حمل اسقاط جائز دي او د حمل څخه یو سل او شل ۱۲۰ ورځو کي په حمل کي ساه راځي ، یعني د حمل څخه وروسته په یو سل او شلو ورځو کي دننه د حمل اسقاط جائز دی او د دې څخه وروسته جائز نه دی .

ځیني حضرات وايي چي دغه ارشاد مبارک د عزل پر حرام کېدو باندي دلالت نه کوي البته پر مکروه کېدو باندي دلالت کوي په دې معنی چي عزل کول د واد حقیقي (یعني په حقیقت کي د ژوندیو ښخولو) په حکم کي داخل نه دی ځکه چي د واد حقیقي مطلب دادی چي د یو نفس هلاکول حال دا چي په عزل کي دا صورت نه وي البته عزل کول د واد حقیقي مشابه دی ځکه دې ته پټ ژوندي ښخول ویل سوي دي چي دې ته اشاره کوي چي د عزل په ذریعه د خپل مني ضائع کول دي او دا خبره څرګند ده چي مني الله تعالی د کوچني پیدا کېدو لپاره تیار کړي دي ځکه دغه کار (یعني عزل کول) د خپل کوچني د هلاکولو یا د هغه ژوندي ښخولو مشابه دي .

علامه ابن همام رحمة الله علیه وايي چي د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه په باره کي دا صحیح روایت نقل سوی دی چي هغه وفرمایل : عزل مو ءودة صغری دی او د حضرت ابو امامه رضي الله عنه په باره کي نقل سوي دي چي د هغه څخه د عزل په باره کي پوښتنه وسوه نو هغه وفرمایل چي ما د هیڅ مسلمان په باره کي د عزل کولو نه دي اوریدلي ، معلومه سوه چي عزل غوره کار نه دی.

همدارنګه د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دي چي حضرت عمر فاروق رضي الله عنه به ځیني خلک پر عزل کولو باندي وهل او د حضرت عثمان غني رضي الله عنه په باره کي دا نقل سوي دي چي هغه به د عزل کولو څخه منع کول ، د دغه ټولو روایاتو څخه د عزل منع ثابتیږي مګر علماء کرام وايي چي دا منع د نهي تنزیهي په توګه ده .

## ښځي ته د راز خبرو ښوولو څخه منع

﴿۳۰۵۳﴾ : وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ان اعظم الامانة عند الله يوم القيامة وفي رواية إِنَّ مِنْ أَشَرِّ النَّاسِ عِنْدَ اللهِ مَنْزِلَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ الرَّجُلَ يُفْضِي إِلَى امْرَأَتِهِ وَتُفْضِي إِلَيْهِ ثُمَّ يَنْشُرُ سِرَّهَا . رواه مسلم

د حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : د قیامت په ورځ به د خداي تعالي په نظر هغه سړی ډیر خراب وي چي د خپلي بي بي سره کوروالي وکړي او د

هغې پټ راز نورو ته څرګند کړي (يعني کومي خبري چي تر پر دې شاته سوی وي يا کوم افعال او حرکات چي کړي وي د هغو بيان کوی) (مسلم)

**تخريج**: مسلم في الصحيح: ۲\۱۰۶۱، رقم: ۱۳۴- ۱۴۳۷.

**تشريح** علامه طيبي رحمة الله عليه د (ان اعظم الامانة...) په باره کي وايي چي ددې مطلب دادی چي هغه لوی امانت چي په هغه کي د خيانت کونکي څخه به د قيامت په ورځ سخته پوښتنه کيږي د ښځي او خاوند په مينځ کي جنسي معاملاتو سره متعلق خبري دي يعني د ښځي او خاوند په مينځ کي جنسي افعال او د راز خبري لوی امانت دی چي د هغه ساتنه د هر خاوند او ښځي ذمه داري ده کوم خاوند او ښځه چي ددغه امانت ساتنه ونه کړي په دې توګه چي هغه د خپل ښځي سره د کوروالی وروسته د هغې راز څرګند کړي نو د هغه څخه به د قيامت په ورځ سخته پوښتنه کيږي او د اشرف رحمة الله عليه د قول سره سم ددغه ارشاد معنی داده چي د قيامت په ورځ به د الله تعالی په نزد تر ټولو په لوی امانت کي خيانت د هغه سړي خيانت وي چي هغه د خپل ښځي سره کوروالي وکړي او بيا د هغې راز څرګند کړي ، د راز څرګندولو څخه مراد دادی چي د هغه او ښځي په مينځ کي د راز کومي خبري سوي وي او د جنسي اړيکو سره اړوند کوم کارونه سوي دي هغه خلکو ته وايي ، لکه څرنګه چي د بې حياء خلکو عادت دی چي د خپل ښځي يو عيب بيانوي يا دا چي د خپلو ښځو هغه ښه والی او صفت بيانوي کوم چي د هغه پټ ساتل شرعا او اخلاقا واجب وي.

ابن مالک رحمة الله عليه وايي چي ددغه ارشاد مطلب دادی چي ښځه او خاوند هر يو د بل د افعالو او اقوالو امين دی په دوی کي چي کوم يو د يو بل هغه افعال او اقوال ظاهروي د کوم چي ظاهرول دوهم نه خوښوي نو هغه ته به خيانت کونکی ويل کيږي.

په هر حال د حديث شريف خلاصه داده چي د ښځي او خاوند په مينځ کي د جنسي معاملاتو او ذاتي چارو سره اړوند چي کومي خبري يا کارونه وي هغه د بل په مخکي کي بيانول يا د يو بل عيبونه څرګندول يوازي په اخلاقي توګه نه بلکه په شرعي توګه هم په آخرت کي د مؤاخذې موجب دی.

دلته يوه عبرتناکه واقعه بيانول د ګټي څخه خالي نه ده چي يو وخت يو عالم او پوه سړي خپل ښځي ته د طلاق ورکولو اراده وکړه خلکو پوښتنه څيني وکړه چي داسي ولي کوې؟ هغه وويل زه د خپل ښځي عيبونه ولي ذکر کړم (يعني که چيري زه د طلاق وجه بيان کړم نو دا د هغې

عيب څرګندول سول چي زه تاسو د طلاق وجه بيان کړم او زه دا نه خوښوم تر څو چي هغه زما ښځه ده د هغې عيب بيان کړم بيا چي کله هغه طلاق ورکړی نو بيا خلکو پوښتنه ځيني وکړه چي تا خپل ښځي ته ولي طلاق ورکړ نو هغه وويل چي زه د يو پردی ښځي عيبونه ولي ښکاره کړم يعني که چيري زه د طلاق وجه بيان کړم نو ددې مطلب دادی چي زه د پردی ښځي عيبونه تاسو ته بيانوم او زه دا بالکل مناسب نه ګڼم .

ځيني علماء وايي چي د ښځي او خاوند لپاره د يو بل د خبرو څرګندول په هغه صورت کي وي کله چي د هغه ګټه او مقصد نه وي مګر که چيري يو ګټه يا يوه معقوله وجه وي نو بيا دا ممانعت نه سته د مثال په توګه د ښځي دا دعوه وي چي د هغې خاوند د هغې د جنسي خواهش د پوره کولو اهل نه دی يا ښځه دا شکايت وکړي چي د هغې خاوند د هغې سره د لاپرواهۍ چلن کوي نو په دغه صورت کي د ښځي لپاره د هغه شيانو ذکر کول به ناخوښه نه وي لکه څرنګه چي الله تعالی په خپله فرمايي :

لاَ يُحِبُّ اللهُ الْجَهْرَ بِالسُّوْءِ مِنَ الْقَوْلِ إِلاَّ مَن ظُلِمَ

ژباړه : الله ﷻ دا نه خوښوي چي يو خرابه خبره په ډاګه بيانه سي مګر که چيري پر چا باندي ظلم سوی وي (نو هغه په ډاګه هم بيانولای سي ) .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### په حيض کي د کوروالۍ منع

﴿۳۰۵۴﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ أُوحِيَ إِلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ {نِسَاؤُكُمْ حَرْثٌ لَكُمْ فَأْتُوا حَرْثَكُمْ أَنَّى شِئْتُمْ} أَقْبِلْ وَأَدْبِرْ وَاتَّقِ الدُّبُرَ وَالْحَيْضَةَ . رواه الترمذي وابن ماجة والدارمي .

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی چي پر رسول الله ﷺ باندي دا ايت نازل سو نسائكم .... حرثكم .(يعني ښځي ستاسو کښت دی څنګه چي غواړی د هغوی سره کوروالي وکړئ )(که د مخکني لور څخه دخول کوئ يا د وروسته طرفه څخه)البته د لويو بولو د ځاي د دخول څخه ځان وژغورئ او د حيض په وخت کي ور سره جماع مه کوئ . (ترمذي ابن ماجه دارمي) .

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\ ۲۰۰، رقم: ۲۹۸۰، وابن ماجه ۱\ ۶۲۰، رقم: ۱۹۲۵.

**تشریح** لفظ د اَقبَلَ (یعني که د مخ له خوا مخکنی شرمګاه ته راسي) او اَدبَرَ (یعني که د شا له خوا مخکنی شرمګاه ته راسي) دغه دواړه لفظونه د آیت کریمه (فاتوا حرثکم ...) په تفسیر او بیان کي دي یعني ددغه دواړو الفاظو په ذریعه دا وضاحت سوی دی چي د آیت کریمه مطلب دادی که څوک وغواړي دمخ له خوا راسي یا د شا له خوا مګر دخول به په هر صورت کي په مخکنی شرمګاه کي وي او بدفعلي یعني د شا په شرمګاه کي دخول حرام دی همدارنګه دحیض په حالت کي هم په مخکنی شرمګاه کي دخول حرام دی.

﴿۳۰۵۵﴾: وَعَنْ خُزَيْمَةَ بْنِ ثَابِتٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ اللّٰهَ لَا يَسْتَحِي مِنَ الْحَقِّ لَا تَأْتُوا النِّسَاءَ فِي أَدْبَارِهِنَّ. رواه احمد والترمذي وابن ماجة والدارمي.

د حضرت خزیمه بن ثابت رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: الله تعالی د حق خبره کولو څخه نه شرمیږي تاسو د ښځو سره د لویو بولو په ځای کي کوروالي مه کوئ. (احمد ترمذي ابن ماجه دارمي)

**تخریج**: احمد في المسند ۵\ ۲۱۳، والترمذي ۳\ ۴۶۸، رقم: ۱۱۶۴، وابن ماجه ۱\ ۶۱۹، رقم: ۱۹۲۴، والدارمي ۲\۱۹۶، رقم: ۲۲۱۳.

**تشریح**: حیاء هغه تغیر ته وایي چي د عیبجن کېدو او بد ویلو د بیري څخه په انسان کي واقع کیږي او د الله تعالی په ذات کي د تغیر واقع کېدل محال دي ځکه نو دلته د حیاء څخه حقیقي حیاء مراده نه ده بلکه مجازي حیاء یعني ترک کول مراد دي کوم چي د حیاء مقصد دی، همدارنګه د (ان الله لا یستحي ...) مطلب به دا وي چي الله تعالی د حق خبري کولو او د هغه د اظهار څخه ترک کوي نو په حدیث کي دا خبره د وروستني مضمون (د ښځي سره د بدفعلی کولو ممانعت) د تمهید او مقدمي په توګه ذکر کول ددغه بدفعلی د پر خرابي او د هغه پر حرام کېدو باندي خبرداری ورکول دي چي دا خبره دومره ناخوښه او مکروه ده چي ددې پر ژبه راوړل او ددې ذکر کول هم د شرم او حیاء خلاف کار دی که څه هم د هغه ذکر کول د هغه د منع کېدو په وجه وي مګر دا یو شرعي مسئله ده او د شرعي مسئلې د بیانولو څخه پرته بله چاره نه سته ځکه نو واورئ چي د ښځو سره (د هغوی د شا په شرمګاه کي) بد فعلي کول حرام دي ځکه نو ددې څخه پرهیز وکړئ، ددې څخه معلومه سوه چي د ښځو سره بدفعلي کول حرام دي نو د خلکو سره

دغه فعل کول په طريقه اولی حرام دي .

علامه طيبي رحمة الله عليه فرمايي چي دلته مناسب دا وه چي رسول الله ﷺ دا فرمايلي واى چي زه د حق خبري بيانولو څخه حياء نه کوم مگر رسول الله ﷺ دا خبره الله تعالى ته منسوبه کړې ده او ددې څخه د رسول الله ﷺ مقصد د حکم ارزښت څرګندول او ددغه بدفعلۍ خرابي د مبالغې په توگه بيانول دي نو دا ددې خبري دليل دی چي د خپلو ښځو او مينځو سره بدفعلي کول حرام دي کوم خلک چي دا جائز ګڼي هغوی په سخته ګمراهي کي اخته دي .

علامه طيبي رحمة الله عليه وايي که چيري يو سړی د يو پردۍ ښځي سره بدفعلي وکړي نو هغه به د زنا په حکم کي وي مگر ددې په بدله کي به نه سنګسار کيږي او نه به پر هغه حد جاري کيږي البته يو څه سزا به خامخا ورکول کيږي .

علامه نووي رحمة الله عليه وايي که چيري يو سړی د خپل غلام سره بدفعلي وکړي نو هغه به د پردي سره د بدفعلي کونکي په حکم کي وي او امام ابو حنيفة رحمة الله عليه فرمايي چي پر دغه بد فعلي باندي فاعل او مفعول (يعني دواړه بدفعلي کونکي) د سزا وړ دي او دواړو ته د هغوی د حال مناسب سزا دي ورکړل سي مگر که چيري مفعول (د چا سره چي بدفعلي سوې وي) کوچنی وي يا ليونی وي يا په زور بدفعلي ورسره سوې وي نو هغه ته به سزا نه ورکول کيږي .

### د ښځي سره د شاله خوا کوروالي کونکی ملعون دی

﴿۳۰۵۶﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَلْعُونٌ مَنْ أَتَى امْرَأَتَهُ فِي دُبُرِهَا . رواه احمد وابو داؤد .

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي په مقعد (کونه) کي د ښځي سره بد کار کوي هغه لعنتي دی . (احمد ابو داؤد)

**تخريج**: احمد في المسند ۲\۴۴۴، وابوداود في السنن ۲\۶۱۸، رقم: ۲۱۶۲.

﴿۳۰۵۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ الَّذِيْ يَأْتِيْ امْرَأَتَهُ فِيْ دُبُرِهَا لاَ يَنْظُرُ اللّٰهُ اِلَيْهِ . رواه في شرح السنة.

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي د خپلي ښځي

سره په مقعد (کونه) کي جماع کوی خداي تعالي هغه ته د شفقت او د رحمت په سترګه نه ګوری. (شرح السنة).

**تخریج**: البغوي في شرح السنة ۹\۱۰۷، رقم: ۲۲۹۷.

﴿۳۰۵۸﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَنْظُرُ اللّٰهُ إِلَى رَجُلٍ أَتَى رَجُلًا أَوْ امْرَأَةً فِي الدُّبُرِ. رواه الترمذي.

د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: خداي تعالي هغه سړي ته په د رحمت او شفقت نه ګوری چي د نر یا ښځي سره په مقعد (کونه) کي جماع کوی. (ترمذي).

**تخریج**: الترمذي في السنن ۳\۴۶۹، رقم: ۱۱۶۵.

## د غیله منع

﴿۳۰۵۹﴾: وَعَنْ اَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيْدٍ قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَا تَقْتُلُوا أَوْلَادَكُمْ سِرًّا فَإِنَّ الْغَيْلَ يُدْرِكُ الْفَارِسَ فَيُدَعْثِرُهُ عَنْ فَرَسِهِ. رواه ابوداؤد

د بي بي اسماء بنت یزید رض څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اورېدلي دی چي تاسي خپل اولادونه په پټه سره مه قتلوئ (یعني غیله مه کوئ) ځکه چي غیله سپور کمزوره کوي او هغه د آس څخه غورځوي یعني د رضاعت په حالت کي استقرار د حمل سره کوچنی کمزوره کیږي او په ځوانئ کي دا کمزوري خپل اثر ښیي. (ابو داؤد).

**تخریج**: ابوداود في السنن ۴\۲۱۱، رقم: ۳۸۸۱.

**د لغاتو حل**: الغَيل: وهو لبن يحصل عند الاغالة، اى ضرره واثره.

**تشریح**: خپل اولادونه په پټه سره مه قتلوئ: ددې مطلب دادی چي د غیلې په ذریعه په هلاکت کي مه اچوئ او دا مخکي ښوول سوې ده چي د حمل په حالت کي تی ورکول یا د رضاعت په وخت کي جماع کولو ته غیله وایي نو د حدیث خلاصه دا سوه چي د غیلې په وجه د کوچني په مزاج کي خرابي پیدا کیږي او د هغه قوه کمزورې کیږي او ددغه خرابۍ او ضعف اثر د هغه د

بالغ کېدو څخه وروسته معلومېږي چې دهغه نتيجه دا سي چې هغه کوچنی د لوی کېدو څخه وروسته کله چې د جنګ ډګر ته ولاړ سي نو د دښمن په مقابله کي سست او کمزوری وي او د آس څخه لوېږي او دا شی د هغه په حق کي داسي دی لکه هغه چې د مقابلې څخه مخکي قتل کړل سوی وي نو غیله مه کوئ چې د غیله په وجه د خپل کوچني د قتل سبب ګرځي .

دلته دا اشكال پیدا کیږي چې د دغه حدیث څخه معلومه چې پر کوچني باندي د غیلې اثر لوېږي حال دا چې ددې څخه مخکي په ځينو حديثو کي راغلي دي چې غیله پر کوچني اثر نه اچوي، ددې جواب طيبي رحمه الله دا ورکړی دی چې په تېرو حديثو کي پر کوچني د غیلې د اثر لوېدۀ نفي د جاهلیت د زمانې د هغه عقیدې د تردید لپاره وه چې خلکو حقيقي غيله مؤثر ګڼل او د دغه حدیث په ذریعه د غیلې د اثر کېدو چې کوم اثبات سوی دی هغه ددې لپاره چې غیله في الجمله سبب جوړېږي او مؤثر حقیقي د الله تعالیٰ رضا او دهغه حکم دی ، یا داسي به ووايو چې په دغه حدیث کي د غیلې کومه منع سوې ده هغه د نهي تنزيهي په توګه ده او د رسول الله ﷺ ارشاد (لقد هممت . .) پر تحريم باندي محمول دی همدارنګه په دواړو حديثو کي څه تضاد نه پاته کیږي ددې څخه پرته دا هم ویل کیدای سي چې د غیلې په اړه د رسول الله ﷺ له خوا ممانعت او عدم ممانعت د دواړو بنیاد د رسول الله ﷺ پر اجتهاد وو يعني کله چې رسول الله ﷺ ولیدل چې د عربو خلک غیله کوي او د هغوی کوچنیان ضعیف او کمزوري کیږي نو رسول الله ﷺ د غیلې څخه منع وکړل مګر وروسته چې رسول الله ﷺ د روم او فارس خلک وليدل چې د هغوی په نزد د غیلې په وجه کوچني ته څه تاوان نه رسیږي نو رسول الله ﷺ د غیلې څخه منع وکړه ، د بي بي جدامه رضي الله عنها روايت ددې خبري تائید کوي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### دعزل مشروط جواز

﴿۳۰۶۰﴾: عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُعْزَلَ عَنِ الْحُرَّةِ إِلَّا بِإِذْنِهَا . رواه ابن ماجة .

د حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ د یوې ازادي ښځي سره د جماع په وخت کي د ښځي د اجازت څخه بغیر د عزل څخه منعه کړېده . (ابن ماجه)

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۱/ ۶۲۰، رقم: ۱۹۲۸.

**تشريح**: كه چيري د ازادي ښځي سره د جماع پر وخت عزل وكړل سي نو د هغې څخه اجازه اخيستل ضروري دي ، د هغې د اجازې اخيستلو پرته عزل نه كيږي ځكه د عزل په وجه نه يوازې دا چي كوچنى نه كيږي بلكه د ښځي په جنسي لذت كي هم كمي كيږي او ددغه دواړو شيانو سره د ازادي ښځي حق متعلق دى ، كه چيري ښځه د كوچني پيدا كېدل غواړي نو سړي ته دا اختيار نه سته چي هغه د ښځي دغه خواهش پوره نه كړي همدا رنگه كه چيري ښځه د عزل په وجه په خپل جنسي لذت كي كمي محسوس كړي نو دا هم د هغې سره بې انصافي دهٔ ځكه ضروري ده چي د عزل لپاره د ښځي اجازه واخيستل سي كه چيري هغه اجازه وركړي نو عزل دي وكړي او كه نه نو عزل دي نه كوي ، دغه حديث شريف د ازادي ښځي د اجازې په شرط سره او د مينزي د اجازې څخه پرته هم د عزل په جائز كېدو دلالت كوي لكه څرنگه چي د حنفيه مذهب دى .

==========

# بَابُ خيار الْمملكوكيْن

## ( مينزي ته د ازادۍ وروسته اختيار وركول )

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړى فصل)

### مينزه د ازادۍ وروسته نكاح فسخ كولاى سي

﴿۳۰۶۱﴾: عَنْ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهَا

حضرت عروه رضي الله عنه د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه روايت كوي چي رسول الله ﷺ هغې ته وفرمايل :

فِيْ بَرِيْرَةَ خُذِيْهَا فَاعْتَقِيْهَا وَكَانَ زَوْجُهَا عَبْدًا فَخَيَّرَهَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاخْتَارَتْ نَفْسَهَا وَلَوْ كَانَ حُرًّا لَمْ يُخَيِّرْهَا . متفق عليه .

د بريره په معامله كي چي ته دا واخله ازاده يې كړه د بريرې رض خاوند يو غلام وو كوم وخت چي هغه ازاده كړل سوه نو رسول الله ﷺ و هغې ته اختيارات وركړه (يعني د خپل خاوند په نكاح كي پاته كيږي يا ځان ازادوي) بريرې رض ازادي خوښه كړه او د خاوند څخه جلا سوه كه د هغې خاوند ازاد واى نو نبي كريم ﷺ هغې ته اختيار نه وركوى .(بخاري او مسلم) .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۵\ ۱۹۰، رقم: ۲۵۶۳، ومسلم ۲\ ۱۱۴۲، رقم: ۸\ ۱۵۰۴.

**تشريح**: د بريره رضي الله عنها ذكر سوې واقعې د په كتاب البيوع كي په تفصيل سره ذكر سوې ده ، دغه مينزه د يهودي په ملكيت كي وه بيا بي بي عائشې رضي الله عنها په رانيولو سره ازاده كړې وه ، د بريره رضي الله عنها د رانيولو پر وخت رسول الله ﷺ بي بي عائشې رضي الله عنها ته وفرمايل چي مخكي يې د مالک څخه رانيسه بيا يې ازاده كړه ، د رسول الله ﷺ د قول سره سم حضرت عائشې رضي الله عنها هغه رانيول او بيا يې ازاده كړه ، د بريره رضي الله عنها خاوند يو غلام وو ځكه رسول الله ﷺ بريره ته دا اختيار كړى وو چي د ازاد كېدو څخه وروسته كه ته غواړې نو د خپل خاوند په نكاح كي اوسه او كه د هغه په نكاح كي اوسېدل نه غواړې نو د هغه څخه جلا سه ، ددغه اختيار سره سم بريرې جلاوالى اختيار كړ او د خپل خاوند سره يې تعلق قطع كړ ، د حديث آخري جمله (ولو كان حرا ...) او كه چيري د هغې خاوند ازاد وي..الخ. دا په ظاهره د عروه خپل قول معلومېږي او د امام مالک ، امام شافعي او امام مالک رحمة الله عليهم مذهب هم دادى چي د مينزي د ازادولو څخه وروسته په خپل نكاح كي ساتل يا د فسخ كولو اختيار په هغه صورت كي دى كله چي د هغې خاوند غلام وي چي هغه د ازادېدو څخه وروسته د يو غلام په نكاح كي پاته كېدل پيغور محسوس نه كړي، كه چيري د هغې خاوند غلام نه وي نو بيا هغې ته دغه اختيار نه سته ، مگر امام ابو حنيفة رحمة الله عليه فرمايي چي هغې ته په هر صورت كي اختيار دى كه د هغې غلام ازاد وي يا غلام ، د دواړو خواوو د علماؤ دليلونه د فقهي په كتابو كي ذكر سوي دي. او كه چيري ښځه او خاوند دواړه يو ځاى ازاد سي نو د ټولو علماؤ په اتفاق سره دا مذهب دى چي په دغه صورت كي ښځي ته اختيار نه سته همدارنگه كه چيري خاوند ازاد سي نو هغه ته د خپل نكاح باقي ساتلو د فسخ كولو اختيار نه سته كه څه هم د هغه ښځه ازاده وي يا مينزه وي .

﴿۳۰۶۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كَانَ زَوْجُ بَرِيرَةَ عَبْدًا اَسْوَدَ يُقَالُ لَهُ مُغِيثٌ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دى چي د بريرې رضي الله عنها خاوند يو تور رنگه غلام وو او مغيث

كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَيْهِ يَطُوفُ خَلْفَهَا فِيْ سِكَكِ الْمَدِيْنَةِ يَبْكِي وَدُمُوعُهُ تَسِيلُ عَلَى

نو مېدى لكه هغه چي زه اوس هم وينم چي هغه د مدينې منورې په كوڅو كي په بريرې پسي گرځېدى او د ستر گو څخه يې او ښكي څڅېدلې او پر

لِحُيَتِهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلعَبَّاسِ يَا عَبَّاسُ أَلَا تَعْجَبُ مِنْ

ړیره یې پرېوتلې (یوه ورځ) رسول الله ﷺ وفرمایل: اې عباس! ایا تا ته په دې تعجب نه دي چې مغیث رضی الله عنه د بریرې رضی الله عنها سره څومره مینه کوله

حُبِّ مُغِيثٍ بَرِيرَةَ وَمِنْ بُغْضِ بَرِيرَةَ مُغِيثًا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

او بریرې رضی الله عنها د هغه څخه څومره نفرت کوی بیا نبي کریم ﷺ بریرې ته وفرمایل: اې بریرې!

وَسَلَّمَ لَوْ رَاجَعْتِيهِ فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ تَأْمُرُنِي قَالَ إِنَّمَا أَشْفَعُ قَالَتْ لَا حَاجَةَ لِي فِيهِ. رواه البخاري.

کاشکې تا رجوع کړې وای یعني د مغیث سره دې د دویم وار لپاره نکاح کړې وای! بریرې رض عرض وکړ یا رسول الله! ایا تاسو ما ته حکم را کوئ؟ نبي کریم ﷺ وفرمایل: زه سفارش کوم بریرې رضی الله عنها عرض وکړ زه ده ته ضرورت نه لرم یعني زه د ده سره نکاح کول نه غواړم). (بخاري).

**تخریج**: البخاري في الصحیح (فتح الباري): ۴۰۸/۹، رقم: ۵۲۸۳.

**تشریح**: د ځینو روایتو څخه دا معلومیږي چې مغیث رضی الله عنه یعني د بریره رضي الله عنها خاوند ازاد وو ځکه که چیري د دغه حدیث د اولي جملې دا وضاحت وکړل سي چې مغیث یو تور غلام وو یا دا چې مغیث مخکې غلام وو او بیا ازاد کړل سو، نو په دغه صورت کې د روایتو په مینځ کې هیڅ تضاد نه پاته کیږي.

د دغه حدیث شریف څخه معلومه سوه چې یو مشر او حاکم د چا په حق کې د جائز کار سفارش کول ښه خبره ده، د دغه حدیث څخه دا هم ثابته سوه چې د خپل مشر او حاکم سفارش قبلول واجب نه دي او نه د هغه د سفارش نه منلو په وجه مشر او حاکم ته د مؤاخذې کولو حق سته او د دغه حدیث څخه دا هم معلومه سوه چې د یو چا سره د هغه د بد شکلې او بد اخلاقی په وجه تعلق نه ساتل جائز دي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### مملوک ښځه او خاوند ازادول

﴿۳۰۶۳﴾: عَنْ عَائِشَةَ أَنَّهَا أَرَادَتْ أَنْ تَعْتِقَ مَمْلُوكَيْنِ لَهَا زَوْجٌ فَسَأَلَتِ النَّبِيَّ ﷺ فَأَمَرَهَا أَنْ تَبْدَأَ بِالرَّجُلِ قَبْلَ الْمَرْأَةِ. رواه ابوداؤد والنسائي.

د بي بي عائشې ﷞څخه روايت دی چي هغې د دوو غلامانو چي يو ښځه او بل يې خاوند وه د ازادولو اراده وکړه د نبي کريم ﷺ څخه يې پوښتنه وکړه نبي کريم ﷺ ورته امر وکړ چي اول سړی ازاد کړه بيا ښځه (چي ښځي ته د نکاح د فسخ کولو اختيار پاته نسي). (ابو داؤد نسائي).

**تخريج**: ابوداود في السنن ٢\٦٧٣، رقم: ٢٢٣٧، والنسائي ٦\١٦١، رقم: ٣٤٤٦.

**تشريح**: که چيري بي بي عائشې ﷞ مخکي ښځه ازاده کړې وي نو هغه د ازادولو څخه وروسته به د يو غلام په نکاح کي وه، په دغه صورت کي به هغې ته دا اختيار وو که چيري هغې غوښتلای نو خپل نکاح به يې باقي ساتلای او که هغې ته د خاوند سره اوسيدل خوښ نه وه نو نکاح به يې فسخ کړې وای، (لکه څرنګه چي د درو سره امامانو مذهب دی او د هغه تفصيل تېر سوی دی) نو رسول الله ﷺ بي بي عائشې ﷞ ته مخکي د سړي د ازادولو حکم ورکړ چي ښځي ته اختيار پاته نه سي او د سړي زړه مات نه سي مګر صحيح خبره داده چي رسول الله ﷺ اول د سړي د ازادولو حکم ځکه ورکړ چي سړی د ښځي په نسبت زيات کامل او افضل وي نو هغه مقدم کول پکار دي يا دا چي رسول الله ﷺ دا خبره محسوس کړه چي سړی خو مينزه ښځه زغملای سي مګر که ښځه د يو غلام په نکاح کي وي نو هغه ځيني بېزاره وي او هر وخت په ذهني اذيت کي اخته وي ځکه رسول الله ﷺ اول د سړي د ازادولو حکم وکړ چي د هغه ښځه د خپل خاوند له خوا په بې بيزارۍ کي اخته نه سي.

## مينزي ته د نکاح اختيار

﴿٣٠٦٤﴾: وَعَنْهَا أَنَّ بَرِيرَةَ عَتَقَتْ وَهِيَ عِنْدَ مُغِيثٍ فَخَيَّرَهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ لَهَا إِنْ قَرِبَكِ فَلَا خِيَارَ لَكِ. رواه ابو داؤد.

د بي بي عائشې ﷞څخه روايت دی چي بريره ﷞ په داسي حال کي ازاده سوه چي هغه د مغيث په نکاح کي وه نبي کريم ﷺ هغې ته د نکاح د ساتلو يا نه ساتلو اختيارات ورکړه او ورته يې وفرمايل: که ستا خاوند ستا سره جماع وکړي نو بيا تاته د نکاح د فسخ کولو اختيار نه پاته کيږي. ابو داؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ٢\٦٧٣، رقم: ٢٢٣٦.

**د لغاتو حل**: قَرِبَک: اي جامعک.

**تشريح**: په هدايه کي ليکل سوي دي که چيري يو مينزه د خپل بادار په رضا سره خپله نکاح وکړي يا د هغې بادار د هغې نکاح په رضا سره يا د رضا څخه پرته وکړي او بيا هغه مينزه ازاده

سي نو هغې ته د خپل نكاح باقي ساتلو يا فسخ كولو اختيار سته كه څه هم د هغې خاوند ازاد وي يا غلام وي، كه چيري مينزه د خپل بادار د رضا او اجازې څخه پرته خپل نكاح وكړي او بيا بادار هغه ازاده كړي نو د ازادكېدو سره د هغې نكاح صحيح كيږي مگر د هغې اختيار به نه وي ، ائمه ثلاثه (درې امامان) دا وايي كه چيري مينزه د يو ازاد سړي په نكاح كي وي نو د ازادېدو څخه وروسته هغه مينزي ته د خپل نكاح د باقي ساتلو يا فسخ كولو اختيار نه پاته كيږي .

علامه ابن همام رحمة الله عليه وايي چي د امام ابوحنيفة او ائمة ثلاثه په مينځ كي د دغه اختلاف بنياد دادى چي د بريره د خاوند په باره كي متعارض روايتونه نقل سوي دي ، په بخاري او مسلم كي د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه دا ثابته ده چي بريره ته په داسي حال كي اختيار وركړل سوى وو چي دهغې خاوند غلام وو مگر په بخاري او مسلم كي دا هم نقل سوي دي چي كله بريره ازاده سوه نو د هغې خاوند يو ازاد سړى وو .

همدارنگه روايت سنن اربعه يعني ابوداؤد، ترمذي، نسائي او ابن ماجه هم نقل كړى دى او ترمذي دغه روايت ته صحيح ويلي دي ، نو ائمه ثلاثه اول روايت ته ترجيح وركړې ده او امام ابوحنيفة رحمة الله عليه دوهم روايت ته ترجيح وركړه ده ، ملا علي قاري د ابن همام دغه قول په مرقات كي په تفصيل سره ليكلى دى ، دلته د اوږدوالي د بيري څخه د هغه خلاصه نقل سوې ده .

وهذا الباب خال عن الفصل الثالث

په دغه باب كي دريم فصل نه سته.

==========

## بَابُ الصَّدَاقِ (د مهر بيان)

مهر د زوجيت د حق تر لاسه كولو هغه معاوضې ته وايي چي ښځي ته د هغې د خاوند له خوا وركول كيږي، د مهر نه وركولو نيت نه كول د نكاح صحيح كېدو يو شرط دى يعني كه چيري يو څوک د نكاح پر وخت دا نيت وكړي چي مهر به نه وركول كيږي نو د هغه نكاح نه صحيح كيږي، دنكاح پر وخت د مهر ذكر كول د نكاح صحيح كېدو لپاره شرط نه دى كه چيري د مهر ذكر ونه سي نو نكاح صحيح كيږي او پر خاوند باندي مهر مثل واجبيږي .

**د مهر اندازه** : شريعت د مهر لپاره يو خاص اندازه واجب كړې ده او نه د هغه زيات حد ټاكل سوى دى بلكه هغه يې د خاوند پر حيثيت او توان باندي موقوف كړى دى ، كوم څوک چي د

څومره مهر ورکولو توان لري هغه دي وټاکل سي البته د مهر کم از کم يو حد ټاکل سوی دی چي سړی دي د هغه څخه کم مهر نه ټاکي ، د حنيفه په مذهب کي د مهر کم مقدار لس درهمه دي که يو سړی تر دې کم مهر وټاکي نو د هغه مهر به صحيح نه وي .

د امام مالک رحمۃ اللہ علیہ په نزد د مهر آخري حد څلورمه د دينار دی او امام شافعي او امام احمد رحمة الله عليهما فرمايي چي کوم شی د ثمن يعني قيمت صلاحيت لري په هغه سره مهر ټاکل جائز دي .

**د ازاج مطهراتو او مبارکو لوڼو مهر** : د ام المؤمنين بي بي ام حبيبه رضي الله عنها څخه پرته د ټولو ازواجو مطهراتو او د بي بي فاطمې رضي الله عنها څخه پرته د ټولو مبارکانو لوڼو مهر پنځه سوه درهمه وو ، پنځه سوه درهمه د سپينو زرو مقدار (۱۵۷۵) ماشې يعني يو کيلو ۵۳۰ گرامه کيږي ، د نن سبا د نرخ مطابق د يو کيلو ۵۳۰ گرامو سپينو زرو قيمت تقريبا ۷۱۸ روپۍ کيږي ، د ام المؤمنين ام حبيبې رضی اللہ عنہا مهر څلور زره درهم يا څلور سوه ديناره وو ، څلور زره درهمه دوولس زره شپږ سوه ماشه يعني دوولس کيلو ۲۴۷ گرام سپين زر په اندازه کيږي ، او د سپينو زرو د موجوده نرخ مطابق اووه زره درې سوه اته څلويښت (۷۳۴۸) کيږي .

د حضرت فاطمې زهراء رضی اللہ عنہا مهر څلور سوه مثقاله نقده وو څلور سوه مثقاله ۱۸۰۰ ماشه يعني ۷۵۰ گرامه سپين زر په اندازه کيږي او د سپينو زرو موجوده نرخ ۱۰۵۰ روپۍ کيږي .

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ (لومړی فصل)

### د مهر کم از کم مقدار

﴿۳۰۶۵﴾ : عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَاءَتْهُ امْرَأَةٌ

د حضرت سهل بن سعد رضی اللہ عنہ څخه روايت دی چي يوه ښځه د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم په خدمت کي حاضره

فَقَالَتْ يَارَسُوْلَ اللهِ إِنِّي وَهَبْتُ نَفْسِي لَكَ فَقَامَتْ طَوِيلًا فَقَامَ رَجُلٌ فَقَالَ

سوه او عرض يې وکړ يا رسول الله! زه خپل ځان و تاسو ته هبه کوم په دې ويلو سره هغه د جواب لپاره تر ډيره و درېده يو سړی را ولاړ سو او عرض يې وکړ

يَارَسُوْلَ اللهِ زَوِّجْنِيهَا إِنْ لَمْ تَكُنْ لَكَ فِيهَا حَاجَةٌ فَقَالَ هَلْ عِنْدَكَ مِنْ

يا رسول الله! که ستاسو دې ته ضرورت نه وي نو نکاح يې زما سره وکړه نبي کريم صلی اللہ علیہ وسلم ورڅخه

پوښتنه وکړه چي ایا ستا سره يې د ولورېو څه شی سته ؟

شَيْءٍ تُصْدِقُهَا قَالَ مَا عِنْدِي إِلَّا إِزَارِي هٰذَا قَالَ فَالْتَمِسْ وَلَوْ خَاتَمًا مِنْ

هغه عرض وکړ چي د دې لونګ څخه پرته (چي ما پر ځان اچولي دی) نور هيڅ راسره نسته نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل : ولاړ سه يو شی پيدا کړه که څه هم هغه د اوسپني ګوتمۍ وي

حَدِيدٍ فَالْتَمَسَ فَلَمْ يَجِدْ شَيْئًا فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلْ

د هغې پلټنه يې وکړه مګر هغه هيڅ شی يې پيدا نکړ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: ايا

مَعَكَ مِنَ الْقُرْآنِ شَيْءٌ قَالَ نَعَمْ سُورَةُ كَذَا وَسُورَةُ كَذَا فَقَالَ قَدْ زَوَّجْتُكَهَا

تا ته د قرانکريم څخه هم يو شی ياد نه دي ؟ هغه عرض وکړ چي فلاني فلاني سورتونه مي په ياد دي نو نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل څه چي دي د قرانکريم څخه په ياد دي د هغه په بدله کي

بِمَا مَعَكَ مِنَ الْقُرْآنِ، و في رواية قال انطلق فقد زوجتكها فعلمها من القرآن .متفق عليه.

مي ستا نکاح د دې ښځي سره وکړه او په يوه بل روايت کي راځي چي نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل ما ستا نکاح د دې سره وکړه ته دې ته قرانکريم ورزده کړه . (بخاري او مسلم) .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۹\۱۹۰– ۱۹۱، رقم: ۵۱۳۵، ومسلم ۱۲\۱۰۴۰، رقم: ۱۷۶\۱۴۲۵.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ په مبارک ژوند کي دا حکم وو که چيري يو ښځي به خپل ځان رسول الله ﷺ ته هبه کوی او رسول الله ﷺ به د هغې هبه قبوله کړه نو هغه ښځه به د رسول الله ﷺ لپاره حلاله وه او پر رسول الله ﷺ به د هغې مهر نه واجب کېدی، دا د بل چا لپاره نه بلکه يوازي د رسول الله ﷺ لپاره جائز وه ، اوس دا جائز نه دي بلکه دا د رسول الله ﷺ د خاصيتو څخه وو يعني يوازي د رسول الله ﷺ لپاره جائز وو، د قرآن کريم دغه آيت کريمه پر دې دلالت کوي :

وَامْرَأَةً مُؤْمِنَةً إِن وَهَبَتْ نَفْسَهَا لِلنَّبِيِّ إِنْ أَرَادَ النَّبِيُّ أَن يَسْتَنكِحَهَا خَالِصَةً لَّكَ مِن دُونِ الْمُؤْمِنِينَ،

ژباړه: او که چيري يو مؤمنه ښځه خپل ځان پيغمبر (ﷺ) ته هبه کړي (يعني د مهر اخيستلو څخه پرته د هغه په نکاح کي راتلل غواړي) او پيغمبر ﷺ هم د هغې سره نکاح کول غواړي نو هغه ښځه حلاله ده مګر اې محمد ! (ﷺ) دا اجازه يوازي تا ته ده ټولو مسلمانانو ته نه ده .

په دې باره کې فقهي تفصيل دادی چې د امام شافعي رحمه الله په نزد د مهر څخه ماسوا د هبې د لفظ په ذريعه د نکاح جواز يوازې د رسول الله ﷺ لپاره وو او دا د بل چا لپاره جائز نه دې حال دا چې حنفي مذهب دادی چې د هبې د لفظ په ذريعه د دواړو (خاوند او ښځې) په مينځ کې نکاح صحيح کيږي او پر هغه سړي مهر مثل واجبيږي، که څه هم هغه ښځه د مهر ذکر ونه کړي يا د مهر نفي وکړي، د حنفي مذهب سره سم د ذکر سوي آيت الفاظ (خالصة لک ...) په معنی کې د خپل ځان د هبه کونکې ښځې د مهر واجب کېدو څخه پرته حلالېدل يوازې د رسول الله ﷺ لپاره دي.

ولو خاتما من حديد (که څه هم هغه د اوسپني ګوتمۍ وي) ددې څخه دا معلومه سوه چې په هر ډول مال سره مهر ټاکل جائز دې که څه هم هغه شی د هر څومره لږ قيمت وي، په شرط ددې چې ښځه او سړی دواړه پر هغه راضي وي، د امام شافعي او امام احمد رحمة الله عليهما دا مذهب دی، په دې باره کې د امام ابوحنيفة او امام مالک رحمة الله عليهما مذهب د باب په شروع کې ذکر سوی دی، د حنفيه حضراتو دليل د حضرت جابر رضي الله عنه هغه روايت دی کوم چې دارقطني او بيهقي نقل کړی دی : قال رسول الله : لا تنکحوا النساء الا الاکفاء ولا يزوجهن الا الاولياء ولامهر دون عشرة دراهم.

ژباړه: رسول الله ﷺ فرمايلي دي د ښځو نکاح دې د هغوی د سيالانو سره وکړل سي او د ښځو نکاح دې د هغوی ولي (سرپرست) کوي او د لس درهمو څخه د کم مهر اعتبار نه سته.

د حنفي مذهب تائيد په دار قطني او بيهقي کې د حضرت علي رضي الله عنه څخه د دغه ارشاد څخه هم کيږي : (لا صداق اقل من عشرة دراهم) : حضرت علي رضي الله عنه وفرمايل د لسو درهمو څخه کم مهر معتبر نه دی.

د حضرت سهيل رضي الله عنه دغه روايت حنفيه حضراتو پر مهر معجل باندې محمول کړی دی ځکه چې د رسول الله ﷺ دا معمول وو چې خپلو بيبيانو مبارکانو ته به يې د هغوی د ټاکل مهر يو څه برخه سمدستي يعني د جماع کولو څخه مخکې ورکول ځکه رسول الله ﷺ هغه صحابي ته هم دا حکم وکړ چې تا ته کوم شی تر لاسه سي که څه هم هغه د اوسپني ګوتمۍ وي هغه راوړه چې د نکاح څخه وروسته هغه ښځې ته د مهر په توګه ورکړل سي ، له دې څخه ځينو علماؤ دا مسئله اخذ کړې ده چې د نکاح څخه وروسته د خپل ښځې سره تر هغه وخته پوري جماع کول نه دي پکار تر څو چې د هغې د مهر څخه يو څه برخه ورکړل سوې نه وي ، د حضرت ابن عباس، حضرت زهري او حضرت قتاده رضي الله عنهم دا مذهب وو، د هغوی دليل دادی چې کله

حضرت علي ﷺ د بي بي فاطمې رضي الله عنها سره نکاح وکړه نو رسول الله ﷺ هغه بي بي فاطمې ته تر هغه وخته پورې د ورتللو څخه منع کړ تر څو چې هغه بي بي فاطمې رضي الله عنها ته د هغې د مهر څخه یو څه ورنه کړي ، حضرت علي ﷺ وویل اې دالله رسوله ! دا وخت خو زما سره هيڅ نه سته ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : ته فاطمې ته خپل زغره ورکړه ، نو هغه خپل زغره ورکړه او ددې څخه وروسته هغې ته ورغلی ، دا خو معلومه ده چې د بي بي فاطمې رضي الله عنها مهر څلور سوه مثقاله سپين زر وه او رسول الله ﷺ حضرت علي ﷺ ته د ټاکلي سوي مهر څخه د يوې زغري په اندازه ورکولو حکم ورکړی وو نو ددغه حضراتو په نزد د مهر ټاکلو څخه سمدستي (يعني دجماع کولو څخه مخکي) يو څه ورکول واجب دي حال دا چې د حنفيه حضراتو په نزد دا مستحب دي او واجب نه دي .

د حديث د آخري الفاظو څخه په څرګنده دا معلوميږي چې رسول الله ﷺ د قرآن کريم تعليم مهر وټاکی ، ځيني امامان دا جائز ګڼي حال دا چې د امام ابوحنيفة رحمة الله عليه په نزد جائز نه دي ، هغه وايي چې په دغه صورت کي (يعني د قرآن کريم د تعليم په مهر ګرځولو سره ) نکاح خو صحيح کيږي مګر پر خاوند باندي مهر مثل واجبيږي او کوم چې ددغه روايت تعلق دی نو په ارشاد مبارک کي (مجامعک ...) کي حرف د با د بدل لپاره نه دی بلکه د سببيت د اظهار لپاره دی يعني ددغه جملې معنی داده چې په قرآن کريم تا ته چې څه په ياد وي د هغه په سبب ما ستا نکاح ددغه ښځي سره وکړه يعني تا ته د قرآن کريم په يادول ددغه ښځي سره سوي وه نو د اسلام قبوليت د هغوی د نکاح سبب وو او هغه مهر نه وو ګرځول سوی .

ته هغې ته د قرآن کريم ښوونه کوه : دا حکم د وجوب په توګه نه وو بلکه د استحباب په توګه وو نو دا ددې خبري دليل نه دی چې رسول الله ﷺ د قرآن کريم تعليم مهر ګرځولی وو .

## د ازواج مطهراتو د مهر مقدار

﴿۳۰۶۶﴾ : وَعَنْ اَبِيْ سَلَمَةَ قَالَ سَأَلْتُ عَائِشَةَ كَمْ كَانَ صَدَاقُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى

د حضرت ابو سلمه ﷺ څخه روايت دی چې ما د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه پوښتنه وکړه چې د

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ كَانَ صَدَاقُهُ لِأَزْوَاجِهِ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ أُوْقِيَّةً وَنَشٌّ قَالَتْ

رسول الله ﷺ مهر څومره وو ؟ هغې راته وويل : د نبي کريم ﷺ مهر د خپلو بي بي ګانو لپاره دولس اوقيه او يو نش وو بيا بي بي عائشې رضي الله عنها وويل :

أَتَدْرِي مَا النَّشُّ قُلْتُ لَا قَالَتْ نِصْفُ أُوقِيَّةٍ فَتِلْكَ خَمْسُ مِائَةِ دِرْهَمٍ. رواه مسلم و نش بالرفع في شرح السنة في جميع الاصول.

په نش پوهېږې (چي څه ته وايي؟) ما ورته وويل چي يا نو هغې راته وويل :نيم اوقيه او ټول چي يو ځای سي نو پنځه سوه درهمه سوه. (مسلم) د شرح السنه او د اصول په ټولو کتابو کي ((نش)) په پېښ (رفع) سره دی.

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\۱۰۴۲، رقم: ۷۸\۱۴۲۶.

**تشريح** پنځه سوه درهمه د اوسني وزن او اوسني حيثيت تفصيل د باب په شروع کي بيان سوی دی د دغه حديث څخه شوافع دا استدلال کوي چي پنځه سوه درهمه مهر تاکل مستحب دي.
دلته يو شک پيدا کيږي چي بي بي عائشې رضي الله عنها د رسول الله ﷺ د ټولو بيبيانو مبارکو د مهر شمېر پنځه سوه درهم ښوولی دی حالنکه د بي بي ام حبيبه رضي الله عنها مهر څلور زره درهم يا څلور سوه ديناره وو او بي بي ام حبيبه رضي الله عنها هم د رسول الله ﷺ بي بي مبارکه وه، ددې جواب دادی چي بي بي عائشې رضي الله عنها د ټولو بيبيانو مبارکانو د مهر شمېر ښوولی دی چي د هغوی مهر خپله رسول الله ﷺ ټاکلی وو حال دا چي د ام حبيبه رضي الله عنها مهر د حبشې پاچا نجاشي ټاکلی وو.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د ډېر مهر منع

﴿۳۰۶۷﴾: عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ أَلَا لَا تُغَالُوا صَدُقَةَ النِّسَاءِ فَإِنَّهَا لَوْ

د حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه څخه روايت دی چي هغه وويل: پوه سئ !د ښځو دروند مهر مه

كَانَتْ مَكْرُمَةً فِي الدُّنْيَا وَتَقْوَى عِنْدَ اللّٰهِ لَكَانَ أَوْلَاكُمْ بِهَا نَبِيُّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

ټاکئ که ډېر مهر د بزرګئ او عظمت وجه وي او د خداي تعالی په نېزد د پرهېزګارۍ موجب وي نو رسول الله ﷺ د دې زيات مستحق وو

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا عَلِمْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَكَحَ شَيْئًا مِنْ نِسَائِهِ

او ماته معلومه ده چي نبي کريم ﷺ د خپلو بي بي ګانو او لور مهر

وَلَا أَنْكَحَ شَيْئًا مِنْ بَنَاتِهِ عَلَى أَكْثَرَ مِنْ اثْنَتَيْ عَشْرَةَ أُوقِيَّةً . رواه احمد والترمذي و ابوداؤد والنسائي وابن ماجة والدارمي .

دولس اوقیه څخه زیات نه دی اېښي. (احمد ترمذي ابو داؤد نسائي ابن ماجه دارمي)

**تخریج**: احمد في المسند ۱\ ۴۰- ۴۱، وابوداود في السنن ۲\ ۵۸۲، رقم: ۲۱۰۶، والترمذي في السنن ۳\ ۴۲۳، رقم: ۱۱۱۴، والنسائي ۶\ ۱۱۷، رقم: ۳۳۴۹، وابن ماجه في السنن ۱\ ۶۰۷.

**تشریح**. دلته د تقوا څخه مراد زياته تقوا ده، (ان کرمکم عند الله اتقاکم) یعني د الله تعالی په نزد په تاسو کي تر ټولو د لوی مرتبې والا هغه دی چي تر ټولو زیات متقي کېدو په وجه د الله تعالی په نزد د امتياز ورکونکي بزرګۍ او فضيلت مستحق ګرځي . خلاصه دا چي د زیات مهر په وجه نه یوازي دا چي په دنیا کي عظمت او بزرګي نه ترلاسه کیږي بلکه ددې په وجه په آخرت کي هم د الله تعالی په نزد د بزرګۍ او فضيلت درجه نه ترلاسه کيږي او کله چي ددې په وجه نه د دنیا فائده سته او نه د دین ګټه نو بیا دغه بې معنی شی ولي اختیار کړل سي، د بیبیانو مبارکانو د مهر په اړه درې روایتونه دي چي په ظاهره متضاد معلومیږي یو خو د بي بي عائشې رضي الله عنها روایت دی، دوهم روایت دادی چي په هغه کس دوولس اوقیه یعني څلور سوه اتیا درهمه مقدار ذکر سوی دی او یو روایت مخته راځي چي په هغه کي د ام حبیبه رضي الله عنها د مهر مقدار څلور زره درهمه ذکر سوی دی ، په دغه درو سره روایتو کي د بي بي ام حبیبه رضي الله عنها مهر والا روایت مستثنی ګڼل پکار دي ، ځکه چي د هغې مهر رسول الله ﷺ نه وو ټاکلی بلکه د حبشه پاچا نجاشي ټاکلی وو او نجاشي پاچا هم دومره زیات مهر محض د رسول الله ﷺ د تعظیم او تکریم سره سم ټاکلی وو .

اوس پاته سو د بي بي عائشې ﷺ او حضرت عمر ﷺ روایتونه نو د هغوی دواړو په مینځ کي هم په حقیقت کي هیڅ تضاد نه سته ځکه چي بي بي عائشې رضي الله عنها د مهر د اصل مقدار په وضاحت کولو سره په اوقیه سره کسر یعني د نیم اوقیه ذکر هم کړی دی او حضرت عمر ﷺ یوازي د اوقیه ذکر وکړ او کسر یې پرېښودی . ددې څخه پرته دا احتمال هم دی چي حضرت عمر ﷺ دوولس اوقیه څخه د زیات نفي د خپل علم سره سم کړی دی یعني حضرت عمر ﷺ ته به یوازي د وولس اوقیه علم وو او بي بي عائشې ﷺ چي یونش زیات (نیم اوقیه) ذکر کړی دی هغه به د حضرت عمر ﷺ په علم کي نه وي راغلی .

دا خبره بايد په ذهن كي وي چي حضرت عمر رضي الله عنه دلته يوازي غوره او افضل بيان كړى دى يعني د هغه د ارشاد مطلب به دا وي چي زيات غوره دادي چي مهر كم وټاكل سي چي د هغه سنت اندازه دوولس اوقيه دي او كوم چي د جواز تعلق دى نو دا ښوول سوي دي چي تر دې زيات مهر ټاكل هم جائز دي .

## د مهر لږ برخه سمدستي وركول غوره دي

﴿۳۰۶۸﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ أَعْطَى فِي صَدَاقِ امْرَأَتِه مِلْءَ كَفَّيْهِ سَوِيقًا أَوْ تَمْرًا فَقَدْ اسْتَحَلَّ . رواه ابوداؤد.

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : كوم سړى چي د خپلي بي بي په مهر كي دواړه ډک لاسونه ستوان يا خرماوى وركړي نو هغه خپله بي بي په ځان حلاله كړه .ابو داؤد

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲\ ۵۸۵، رقم: ۲۱۱۰.

﴿۳۰۶۹﴾: وَعَنْ عَامِرِ بْنِ رَبِيعَةَ أَنَّ امْرَأَةً مِنْ بَنِي فَزَارَةَ تَزَوَّجَتْ عَلَى نَعْلَيْنِ فَقَالَ لَهَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرَضِيتِ مِنْ نَفْسِكِ وَمَالِكِ بِنَعْلَيْنِ قَالَتْ نَعَمْ فَأَجَازَهُ . رواه الترمذي.

د حضرت عامر بن ربيعه رضي الله عنه څخه روايت دى چي د بني فزاره د قبيلې يوې ښځي په يوه جوړه څپلې سره د يوه سړي سره نكاح وكړه رسول الله ﷺ و هغې ته وفرمايل :ايا تا خپل ځان يوازي د دوو څپليو په بدله كي حواله كړ او په دې راضي سوې هغې وويل: چي هو نو نبي كريم ﷺ د هغې د نكاح د باقي پاته كېدو اجازت وركړ. (ترمذي) .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\ ۴۲۰، رقم: ۱۱۱۳.

**تشريح** د تعارض د د فع له كبله دا حديث به هم پر مهر معجل باندي محمول سي مگر ددې وضاحت دا مناسب دى چي كله هغه ښځي د خپل مهر مثل د مطالبې حق تر لاسه سو مگر كله چي هغه په يوه جوړه څپليو راضي سوه نو هغه د خپل مهر مثل څخه د يوې جوړې څخه زيات حق څخه خلاصه سوه نو رسول الله ﷺ هغه مهر جائز وگرځوى او په دغه صورت كي د هغه په جائز كېدو كي اختلاف نه سته ځكه دا حديث د امام شافعي رحمه الله د مذهب دليل نه سي كيداى او دا حديث هم ضعيف دى .

## د مهر مثل واجب کېدو يو صورت

﴿۳۰۷۰﴾: وَعَنْ عَلْقَمَةَ عَنْ ابْنِ مَسْعُودٍ أَنَّهُ سُئِلَ عَنْ رَجُلٍ تَزَوَّجَ امْرَأَةً وَلَمْ

حضرت علقمه رضی الله عنه د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه څخه روايت کوي چي د هغه څخه دا مسئله و پوښتل سوه چي يوه سړي د يوې ښځي سره نکاح وکړه

يَفْرِضْ لَهَا شيئا وَلَمْ يَدْخُلْ بِهَا حَتَّى مَاتَ فَقَالَ ابْنُ مَسْعُودٍ لَهَا مِثْلُ

چي نه يې مهر مقرر کړی دي او نه يې ورسره جماع کړې ده چي مړ سو ابن مسعود رضی الله عنه وويل:

صَدَاقِ نِسَائِهَا لَا وَكْسَ وَلَا شَطَطَ وَعَلَيْهَا الْعِدَّةُ وَلَهَا الْمِيرَاثُ فَقَامَ مَعْقِلُ

د هغه په قوم کي چي د ښځو کوم مهر تاکل سوی دی هغومره مهر دي ورکړي نه کم نه زيات پر دې عده تېرول واجب ده او په ميراث کي هم ورسره شريکېږي په دې اورېدو سره معقل بن

بْنُ سِنَانٍ الْأَشْجَعِيُّ فَقَالَ قَضَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي بِرْوَعَ

سنان اشجعي رضی الله عنه ودرېدئ او اعلان يې وکړ چي زموږ د قبيلې د يوې ښځي بروع بنت واشق

بِنْتِ وَاشِقٍ امْرَأَةٍ مِنَّا بمثل ما قَضَيْتَ فَفَرِحَ بِهَا ابْنُ مَسْعُودٍ. رواه الترمذي و ابوداؤد والنسائي والدارمي.

په معامله کي رسول الله صلی الله علیه وسلم دا حکم ورکړی وو په دې اورېدو سره ابن مسعود رضی الله عنه ډېر خوشحاله سو (چي زما فيصله د نبي کريم صلی الله علیه وسلم د فيصلې سره موافقه وَخته).

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲\ ۵۸۹، رقم: ۲۱۱۵، والترمذي في السنن ۳\ ۴۵۰، رقم: ۱۱۴۵، والنسائي ۶\ ۱۲۱، رقم: ۳۳۵۵. والدارمي ۲\ ۲۰۷، رقم: ۲۲۴۶.

**تشريح** حضرت ابن مسعود رضی الله عنه ته الله تعالى علم، فضل، ذهانت، ذکاوت او د ديني فراست لوی دولت ورکړی وو، يو مشکل مسئله به يې د خپل بې پايه قوت او اجتهاد په ذريعه همداسي حل کوله چي هغه به د قرآن او حديث بالکل سمه وه دلته دا مسئله هم د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه څخه وپوښتل سوه نو تر يوې مياشتي پوري د قرآن او حديث په رڼا کي پر دې فکر کولو بيا په خپل قوت اجتهاد سره د هغه شرعي فيصله يې وکړه نو يو صحابي حضرت معقل

رضي الله عنه ته على الاعلان دا شهادت ورکړ چي د ابن مسعود ﷠ دغه فيصله د رسول الله ﷺ د حکم عين مطابق ده ځکه چي رسول الله ﷺ هم په دا ډول يو مسئله کي داسي فيصله کړې وه نو حضرت ابن مسعود ﷠ خپله پر دغه خبره باندي د ډېري زياتي خوشحالۍ اظهار وکړ چي الله تعالى زما رهبري وکړه او زما دغه فيصله د رسول الله ﷺ د حکم مطابق سوه .

په ذکر سوې مسئله کي د حضرت علي ﷠ او د صحابه کرامو د يو ډلي دا مذهب وو چي په دغه صورت کي ښځه د عدم دخول په وجه د مهر نه حقداره کيږي مګر که چيري پر هغې عده واجب وي او هغې ته به د خاوند ميراث هم حاصليږي، په دې باره کي د امام شافعي ﷫ دوه قوله دي يو خو د حضرت علي ﷠ موافق دی او دوهم قول د ابن مسعود ﷠ مطابق ده ، د امام ابو حنيفة او امام احمد مذهب هغه دی کوم چي ابن مسعود ﷠ بيا کړ .

**مهر مثل څه ته وايي** ؟ مهر مثل د ښځي هغه مهر ته وايي چي د هغې د پلار د کورنۍ د هغه ښځو وي چي په دغه خبرو کي د هغو په مثل وي ، عمر، جمال، مال، ښار، زمانه، عقل، دينداري، بکارت، ثيبيت، علم او ادب او اخلاق او داسي نور .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د ام حبيبې نکاح او مهر

﴿۳۰۷۱﴾: عَنْ أُمِّ حَبِيبَةَ أَنَّهَا كَانَتْ تَحْتَ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ جَحْشٍ فَمَاتَ بِأَرْضِ

د بي بي ام حبيبې ﷞ څخه روايت دی چي زه د عبد الله بن جحش په نکاح کي وم چي زما خاوند

الْحَبَشَةِ فَزَوَّجَهَا النَّجَاشِيُّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَمْهَرَهَا عَنْهُ أَرْبَعَةَ

په حبشه کي مړ سو د حبشې باچا زما نکاح د نبي کريم ﷺ سره په څلور زره مهر باندي وکړه

آلَافٍ و في رواية أَرْبَعَةَ آلَافٍ دِرْهَمٍ وَبَعَثَ بِهَا إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَعَ شُرَحْبِيلَ ابْنِ حَسَنَةَ . رواه ابو داؤد والنسائي .

او په يوه روايت کي د څلورو زرو درهمو الفاظ سته او هغه يې د نبي کريم ﷺ په خدمت کي د شرحبيل بن حسنه په نګرانۍ کي ولېږه . (ابو داؤد نسائي) .

**تخريج**: سنن ابي داود ۲\ ۵۸۳، رقم: ۲۱۰۷، والنسائي ۶\ ۱۱۹، رقم: ۳۳۵۰ .

**تشریح**: د ام حبیبه رضي الله عنها د اول خاوند نوم د مشکوة په ټولو نسخو کي عبدالله ابن حجش لیکل سوی دی حالانکه د هغه صحیح نوم عبیدالله ابن حجش دی ، په سنن ابوداؤد او اصول وغیره کي همداسي لیکل سوي دي .

د ام حبیبه رضي الله عنها اصلي نوم رمله وو چي د ابوسفیان لور او د حضرت معاویه خور وه ، مخکي د هغې واده د عبیدالله ابن حجش سره سوی وو ، عبیدالله اسلام قبول کړی وو او د ام حبیبه سره د مکې څخه په هجرت کولو حبشې ته راغلی وو بیا هلته په رسیدو سره مرتد سو یعني د اسلام په پرېښودو سره عیسائي سو او هلته مړ سو . ام حبیبه رضي الله عنها پر اسلام باندي ثابته قدمه پاته سوه بیا رسول الله ﷺ عمرو ابن امیه ضمري د حبشې پاچا اصحمه ته چي د هغه لقب نجاشي وو په دغه حکم ورکولو سره ولیږی چي هغه ام حبیبه ته د رسول الله ﷺ د نکاح پیغام ورکړي .

نجاشي د رسول الله ﷺ ددغه حکم په اورېدو سره خپله یوه مینزه ابرهه د ام حبیبه په خدمت کي واستول ، ابرهه هغې ته وویل چي زه پاچا تا ته را استولې یم او ویلي یې دي چي ماته د رسول الله ﷺ دا حکم سوی دی چي ستا سره د رسول الله ﷺ نکاح وکړم ، ام حبیبه دغه پیغام په خوشحالۍ سره قبول کړ او سمدستي یې یو سړی حضرت خالد بن سعید رضي الله عنه ته واستوی او هغه یې خپل وکیل وټاکی چي د هغه د پلار د اکا زوی وو او ورسره ابرهه ته ددغه زیري اورولو په عوض کي دوې جوړې جامې او د سپینو زرو یوه ګوتمۍ هم ورکړه ، بیا چي ماښام سو نو نجاشي حضرت جعفر ابن ابوطالب رضي الله عنه او هغه ټولو مسلمانانو ته چي هغه وخت حبشه کي موجود وه د جمع کېدو حکم ورکړ کله چي هغوي ټول جمع سول نو نجاشي دا خطبه وویل : الحمد لله الملک القدوس السلام المؤمن المهین العزیز الجبار اشهد ان لا اله الا الله وان محمدا عبده ورسوله ارسله بالهدی ودین الحق لیظهره علی الدین کله ولوکره المشرکین . او بیا یې دغه الفاظ وویل : ددې څخه وروسته ما هغه شی قبول کړ کوم چي رسول الله ﷺ فرمایلی دي او ما څلور زره دیناره مهر وټاکی ددې څخه وروسته هغوی هغه څلور زره دیناره د خلکو په مخکي وړاندي کړل ، ددې څخه وروسته حضرت خالد ابن سعید رضي الله عنه دا خطبه وویل : الحمد لله و احمده واستعینه واستغفره واشهد ان لا اله الا الله وحده لا شریک له وان محمدا عبده ورسوله ارسله بالهدی ودین الحق لیظهره الدین کله ولو کره المشرکین .، بیا یې دغه الفاظ وویل : ددې څخه وروسته ما هغه شی قبول کړ کوم چي رسول الله ﷺ فرمایلی دی او ما د ابوسفیان لور ام حبیبه سره د رسول الله ﷺ نکاح وکړه ، الله تعالی دي رسول الله ﷺ ته دا نکاح مبارکه کړي ، ددغه ایجاب او قبول څخه وروسته د مهر هغه څلور زره دیناره حضرت

خالد ابن سعيد رضي الله عنه ته ورکړل سول چي هغه يې د ځان سره وساتي بيا چي خلکو د ولاړېدو اراده وکړه نو نجاشي وويل اوس لا تاسو خلک ناست اوسئ ځکه چي د نکاح پر وخت ډوډۍ خوړل د انبياؤ سنت دي نو هغوی ډوډۍ را وغوښتل او ټولو خلکو په ډوډۍ خوړلو سره خپلو کورو ته ولاړل، دا د اووم هجري کال واقعه ده هغه وخت د ام حبيبه رضي الله عنها پلار ابوسفيان مشرک وو ، او د رسول الله صلی الله علیه وسلم سخت دښمن وو بيا وروسته يې اسلام قبول کړی دی .

## د اسلام قبلول د مهر قائم قام دی

﴿۳۰۷۲﴾ : وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ تَزَوَّجَ أَبُو طَلْحَةَ أُمَّ سُلَيْمٍ فَكَانَ صِدَاقُ مَا بَيْنَهُمَا

د حضرت انس رضي الله عنه ځخه روايت دی چي ابو طلحه رضي الله عنه په دې شرط د ام سليم سره نکاح وکړه چي

الْإِسْلَامَ أَسْلَمَتْ أُمُّ سُلَيْمٍ قَبْلَ أَبِي طَلْحَةَ فَخَطَبَهَا فَقَالَتْ إِنِّي قَدْ أَسْلَمْتُ

اسلام قبلول به يې مهر وي ام سليم د ابو طلحه رضي الله عنه ځخه وړاندي مسلمانه سوې وه بيا يې ابو طلحه ته پېغام ورولېږئ چي ما اسلام قبول کړی دی

فَإِنْ أَسْلَمْتَ نَكَحْتُكَ فَأَسْلَمَ فَكَانَ صِدَاقَ مَا بَيْنَهُمَا . رواه النسائي .

که ته هم مسلمان سوې نو زه به ستا سره نکاح کوم نو ابو طلحه اسلام قبول کړ او اسلام قبلول يې مهر سو. (نسائي) .

**تخريج** : سنن النسائي ٦\ ١١٤، رقم: ٣٣٤٠.

**تشريح**: أم سليم رضي الله عنها د ملحان لور او د حضرت انس بن مالک رضي الله عنه مور ده ، اول د هغې واده د مالک ابن نضر سره سوی وو چي د هغه ځخه حضرت انس رضي الله عنه پيدا سو ، مالک د اسلام په دولت مشرف سوی نه وو او هغه د شرک په حالت کي ووژل سو بيا ام سليم اسلام قبول کړی او ابو طلحه رضي الله عنه چي هغه وخت مشرک وو هغې ته د نکاح پيغام واستوی او نکاح يې ورسره وسوه.

د حديث الفاظ (او اسلام قبلول يې مهر وټاکل) ددې وضاحت د حنفيه حضراتو د مذهب سره سم دادی چي ام سليم د ابو طلحه سره نکاح په مهر سره وسوه مګر ام سليم د خپلي وعدې سره سم د ابو طلحه رضي الله عنه د اسلام راوړلو يوه وجه خپل مهر وټاکی يعني د ابو طلحه اسلام قبلول د هغوی په مينځ کي د نکاح سبب سو نه دا چي د اسلام قبوليت مهر وو ، مګر نور امامان د حديث پر ظاهري معنی باندې په محمول کولو سره وايي چي د ابو طلحه اسلام قبلول د هغه مهر وو .

# بَابُ الْوَلِيْمَةِ

## ( دواده د ډوډۍ کولو بیان )

وليمه هغه خوراک ته وايي چي په نکاح کي خوړل کيږي، وليمه د التيام څخه مشتق دی چي د هغه معنی د اجتماع ده ، دغه خوراک ته وليمه ځکه وايي چي په هغه اجتماع کي د زوجينو په مراسمو کي تر سره کيږي.

## دوليمې شرعي حيثيت او وخت

د اکثرو علماؤ د قول سره سم وليمه سنت ده او ځيني علماء ورته مستحب وايي او د ځينو په نزد واجب ده، همدارنګه د وليمې د وخت په باره کي هم اختلافي قولونه دي ځيني علماء وايي چي د وليمې اصل وخت د دخول (يعني د واده د شپې) څخه وروسته دی، ځيني حضرات وايي چي وليمه د نکاح پر وخت خوړل پکار دي او ځيني علماء وايي چي د نکاح پر وخت هم خوړل پکار دي او د نکاح څخه وروسته هم.

د دوو ورځو څخه تر زيات وخت پوري د وليمې په باره کي هم د علماؤ مختلف قولونه دي وه ډله دې ته مکروه وايي يعني د علماء د دغه ډلې په نزد تر دوو ورځو پوري خوړل کيدای سي تر دې زيات خوړل مکروه دي ، د امام مالک رحمة الله عليه په نزد تر يوې هفتې پوري خوړل مستحب دي مګر په دې باره کي صحيح خبره داده چي دا د خاوند پر توان او حثيثت پوري اړه لري که ري هغه يوازي پر يوه وخت اکتفاء وکړي او که تر څو ورځو پوري د خوراک ورکولو توان ي نو تر څو ورځو پوري دي يې ورکړي.

**مېلمستيا ډولونه** : په مجمع البحار کي ليکلي دي چي د مېلمستيا اته ډولونه دي ۱: وليمه، : خُرس، ۲: اعذار، ۴: وکيره، ۵: نقيعه، ۶: وضيمه، ۷: عقيقه، ۸: مادبه.

وليمه هغه مېلمستيا ته وايي چي د واده پر موقع تر سره کيږئ ، خرس هغه مېلمستيا ته وايي ي د کوچني د پيدا کېدو په خوشحالي کي وکړل سي ، اعذار هغه مېلمستيا ته وايي چي د تنه (سنت کېدو) په وخت کي وکړل سي، وکيره هغه مېلمستيا ته وايي چي د سرای جوړولو په وشحالۍ کي وکړل سي، نقيعه هغه مېلمستيا ته وايي چي د مسافر د راتلو په خوشحالۍ کي وکړل سي، عقيقه هغه مېلمستيا ته وايي چي د کوچني د نوم ايښودو په خوشحالۍ کي وکړل سي، او مادبه هغه مېلمستيا ته وايي چي بېله يو خاص وجه وکړل سي ، د مېلمستيا دغه ټول

ډولونه مستحب دي البته د وليمې په باره کي ځيني علماء وايي چي واجب ده .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### دوليمې کولو حکم

﴿۳۰۷۳﴾: عَنْ أَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى عَلَى عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ

د حضرت انس رضی اللہ عنہ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د عبدالرحمن بن عوف په جامو د ژړوالي

عَوْفٍ أَثَرَ صُفْرَةٍ فَقَالَ مَا هٰذَا قَالَ إِنِّي تَزَوَّجْتُ امْرَأَةً عَلَى وَزْنِ نَوَاةٍ مِنْ ذَهَبٍ قَالَ بَارَكَ اللّٰهُ لَكَ أَوْلِمْ وَلَوْ بِشَاةٍ. متفق عليه.

نښه وليده پوښتنه يې ځيني وکړه چي دا څه دي ؟ هغه ورته وويل : يو نوا (پنځه درهمه) په سرو زرو باندي مي د يوې ښځي سره نکاح وکړه نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل :خداي تعالي دي درباندي مبارک کړي ته وليمه وکړه که څه هم يو پسه وي . بخاري او مسلم .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\۳۰۴، رقم: ۵۱۴۸، ومسلم ۲\ ۱۰۴۲، رقم: ۷۹- ۱۴۲۷.

**د لغاتو حل**: اثر صُفرة (ای من الزعفران). د زعفران ژړ رنګ.

**تشريح**: د حضرت عبدالرحمن رضی اللہ عنہ پر جامو باندي يا د هغه پر بدن باندي د زعفرانو په ليدو سره رسول الله ﷺ وفرمايل چي دا څه دي ؟ ددې مطلب دا هم کيدای سي چي رسول الله ﷺ د هغه د لګېدو سبب پوښتلی وي او دا هم کېدای سي چي رسول الله ﷺ نارينه د خلوق (يو ډول خوشبويي چي د زعفران څخه جوړېږئ) د استعمال څخه منع کړې وي، ځکه رسول الله ﷺ ددغه الفاظو په ذريعه هغه ته خبردار ورکړ چي دا د نارينوو لپاره منع ده نو بيا تا ولي استعمال کړې ده . نو عبدالرحمن رضی اللہ عنہ جواب ورکړ چي ما په قصد سره نه دي استعمال کړي بلکه د ناوي سره د اختلاط په وجه بېله زما قصد او علمه هغه لګيدلي دي .

قاضي رحمة الله عليه وايي لکه څرنګه چي نش شل درهمه او اوقيه د څلوېښت درهمو برابر وزن ته وايي همدارنګه نواة د پنځه درهمه وزن ته وايي، نو د يوه نواة سرو زرو مطلب دادی چي ما ددغه ښځي مهر د پنځه درهمه په اندازه يعني شپاړلس ماشې سره زر ټاکلي دي، ځيني حضرات وايي چي د نواة څخه نواة تمر يعني د خرما هډوکي مراد دي او په ظاهره دا صحيح معلوميږي په دغه صورت کي به د حضرت عبدالرحمن رضی اللہ عنہ مطلب دا وي چي ما د خرما د

هڅو کي په اندازه د سرو زرو مهر ټاکلی دی.

ته ولیمه وکړه که څه هم هغه یو پسه وي، دغه ډول عبادت د کم مقدار بیانولو لپاره هم استعمالیږي او ډېر هم ځیني مراد کیږي، یعني د رسول الله ﷺ مقصد دا بیانول وه چي که څه هم زیات مصرف وي مگر بیا هم ولیمه وکړه او د تکثیر د مراد اخیستو وجه داده چي په هغه زمانه کي پسه د یو ډېر لږ اندازې لپاره ذکر کول د قیاس څخه لیري معلومیدی ځکه چي د حدیثو څخه معلومیږي چي په هغه زمانه کي د مسلمانانو مالي او اقتصادي حالت ډېر کمزوری وو خلکو به د ستوان او دا ډول نورو معمولي شیانو په ذریعه د ولیمې سنت پوره کوی بیا دا چي خپله د عبدالرحمن ابن عوف رضي الله عنه مالي حیثیت هغه وخت دومره زیات نه وو چي رسول الله ﷺ هغه ته د پسه په ډول د کم شی صورت بیان کړی وي.

## د رسول الله ﷺ تر ټولو لویه ولیمه

﴿۳۰۷۴﴾: وَعَنْهُ قَالَ مَا أَوْلَمَ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى احد مِنْ نِسَائِهِ مَا أَوْلَمَ عَلَى زَيْنَبَ أَوْلَمَ بِشَاةٍ. متفق عليه

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د خپلي یوې بي بي په نکاح کي هم دومره ولیمه نه وه کړې څومره چي یې د بي بي زینب رضي الله عنها په نکاح کي کړی وه نو نبي کریم ﷺ د هغې په نکاح کي د یو پسه ولیمه کړی وه. (بخاري او مسلم).

**تخریج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري):۹\ ۲۳۲، رقم: ۵۱۶۸، ومسلم ۲\ ۱۰۴۹، رقم: ۹۰\ ۱۴۲۸.

**تشریح**: ددې څخه په مخکي حدیث کي دا ښوول سوي دي چي د پسه ذکر د تکثیر لپاره دی نو د حدیث څخه ددې تائید کیږي چي داسي ولیمه چي په هغه کي یو پسه استعمال کړل سوی وي د یو لوی او ډېر مصرف والا ولیمې حیثیت لري.

﴿۳۰۷۵﴾: وَعَنْهُ قَالَ أَوْلَمَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ بَنَى بِزَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ فَأَشْبَعَ النَّاسَ خُبْزًا وَلَحْمًا. رواه البخاري.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ بي بي زینب بنت جحش د نکاح کولو وروسته کور ته راوسته نو نبي کریم ﷺ ولیمه وکړه او د خلکو نسونه یې په غوښو او ډوډۍ سره ماړه کړه. (بخاري)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۸\ ۵۲۸، رقم: ۴۷۹۴.

## د ښځي ازادول د هغې مهر کيداى سي که يا؟

﴿۳۰۷۶﴾: وَعَنْهُ قَالَ إِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْتَقَ صَفِيَّةَ وَتَزَوَّجَهَا وَجَعَلَ عِتْقَهَا صَدَاقَهَا وَأَوْلَمَ عَلَيْهَا بِحَيْسٍ. متفق عليه.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ ته بي بي صفيه د خيبر په غزا کي په لاس راغلې وه هغه يې ازاده کړه او وروسته يې ور سره نکاح وکړه او د هغې مهر يې د هغې ازادي وکرځوله او د حيس (خرماوي پنير او غوړيو) وليمه يې وکړه. (بخاري او مسلم).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\ ۲۳۲، رقم: ۵۱۶۹، ومسلم ۲\ ۱۰۴۳، رقم: ۸۴- ۱۳۶۵.

**د لغاتو حل**: حَيس: طعام يتخذ في التمر والاقط والسمن. (يو ډول خوراک).

**تشريح**: بي بي صفيه رضي الله عنها د حيي ابن اخطب لور وه چي په خيبر کي د بنوقريظه او بنو نضير سردار وو، کله چي د خيبر د يهوديانو سره د مسلمانانو جنګ وسو او الله تعالى مسلمانانو ته فتح ورکړه نو صفيه هم د مينزي په توګه د رسول الله ﷺ په ملکيت کي راغلل مګر رسول الله ﷺ هغه ازاده کړه او بيا په خپل زوجيت کي ه راوستو سره يې هغه د دين او دنيا تر ټولو لوى سعادت سره مشرفه کړه.

په دغه مسئله کي د عالمانو اختلافي قولونه دي که چيري يو سړى خپل مينزه ازاده کړي او دهغې سره نکاح وکړي او د هغې ازادي د هغې مهر وټاکي نو دا جائز دي که يا؟ د صحابه کرامو يو ډله او ځيني علماء د دغه حديث د ظاهري مفهوم سره د دې د جواز قائل دي حال دا چي د صحابه کرامو او علماؤ يو ډله دې ته جائز نه وايي او د حنفيه حضراتو مذهب هم دادى، د هغوى له خوا د دغه حديث تاويل دا حديث کيږي چي د رسول الله ﷺ له خوا د بي بي صفيې رضي الله عنها ازادي د هغې مهر ټاکل يو استثنائي صورت دى چي يوازي د رسول الله ﷺ د ذات مبارک سره خاص دى نو دا د رسول الله ﷺ د خصائصو څخه وو او بل چا ته دا جائز نه دي.

د هدايه په تشريح کي ليکلي دي که چيري يو سړى خپل مينزه ازاده کړي او د هغې ازادي د هغې مهر وټاکي په دې توګه چي هغې ته داسي ووايي چي ما ته په دې شرط ازاده کړې چي ته به زما سره د ازادۍ په عوض کي نکاح کوې او بيا مينزه دا خبره ومني نو دغه ازادول به صحيح سي يعني هغه به ازاده سي البته د نکاح په اړه به هغه خود مختاره وي تر دې که چيري هغه سړى

دهغې سره نکاح وکړي نو د هغه لپاره به د هغې مهر مثل واجب وي.
حیس د یو خوراک نوم دی چې دحلوا په ډول دی او د خرما، غوړو او اقط (کروت) څخه جوړیږي چې د پیروي په ډول دی او د مستو څخه جوړیږي.

## د حضرت صفیه ﷺ ولیمه

﴿۳۰۷۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ أَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ خَيْبَرَ وَالْمَدِينَةِ ثَلَاثَ لَيَالٍ يُبْنَى عَلَيْهِ بِصَفِيَّةَ فَدَعَوْتُ الْمُسْلِمِينَ إِلَى وَلِيمَتِهِ وَمَا كَانَ فِيهَا مِنْ خُبْزٍ وَلَا لَحْمٍ وَمَا كَانَ فِيهَا إِلَّا أَنْ أَمَرَ بِالْأَنْطَاعِ فَبُسِطَتْ فَأَلْقَى عَلَيْهَا التَّمْرَ وَالْأَقِطَ وَالسَّمْنَ. رواه البخاري.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ (د خیبر د غزا څخه وروسته) د خیبر او مدینې په مینځ کې درې ورځې قیام وکړ او د بي بي صفیې ﷺ سره یې تر نکاح کولو وروسته هلته شپه تېره کړه او (سهار ته) د ولیمې لپاره یې مسلمانان را وبولل او په ولیمه کې نه غوښه وه نه ډوډۍ بلکه نبي کریم ﷺ سترخان را وړ او حکم یې وکړ چې سترخوان هوار کړي کله چې سترخوان هوار سو نو پر هغه باندې د خرما پنیر او غوړي کښېښودل سوه. (بخاري او مسلم).

**تخریج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۷\۴۷۹، رقم: ۴۲۱۳.

**د لغاتو حل**: الانطاع: جمع النطع وهو المتخذ من الاديم. (سترخوان)

**تشریح**: په ذکر سوي حدیث کې د بي بي صفیې رضي الله عنها په ولیمه کې چې د کوم حیس ذکر سوی دی د هغه تفصیل په دغه حدیث شریف کې بیان سوی دی چې د حیس اجزاء خرما، اقط (کُرت) او غوړي وي.

## د حضرت ام سلمه (رض) ولیمه

﴿۳۰۷۸﴾: وَعَنْ صَفِيَّةَ بِنْتِ شَيْبَةَ قَالَتْ أَوْلَمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى بَعْضِ نِسَائِهِ بِمُدَّيْنِ مِنْ شَعِيرٍ. رواه البخاري.

د بي بي صفې ﷺ بنت شیبه څخه روایت دی چې نبي کریم ﷺ د خپلې یوې بي بي ولیمه په دوه

سبره او ربشو سره وکړه . (بخاري)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\۲۳۸، رقم: ۵۱۷۲.

## دوليمې بلنه قبلول پکار ده

﴿۳۰۷۹﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا دُعِيَ أَحَدُكُمْ إِلَى الْوَلِيمَةِ فَلْيَأْتِهَا . متفق عليه و في رواية لمسلم فليجب عرساكان او نحوه.

د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي د وليمې دعوت وکړي هغه قبلول پکار ده او د مسلم په يوه روايت کي دا الفاظ دي د وليمې دعوت دي قبول کړي که واده وي يا دا ډول بل يو دعوت وي . (بخاري او مسلم) .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\۲۴۰، رقم: ۵۱۷۳، ومسلم ۲\۱۰۵۲، رقم: ۹۶\۱۴۲۹.

**تشريح**: د بل ډول دعوت څخه مراد ختنه (سنت کېدل) او د عقيقي يا نوري مېلمستياوي مراد دي ، ددې څخه معلومه سوه چي په دغه روايتو کي د وليمې څخه مراد يوازي هغه خوراک دی چي د واده په وخت کي خوړل کيږي .

ځيني حضرات وايي چي د واده د مېلمستيا بلنه قبلول واجب دي که يو څوک بېله عذره دا بلنه قبوله نه کړي نو هغه ګناه کار دی ځکه د رسول الله ﷺ ارشاد دی : من ترک الدعوة فقد عصى الله ورسوله : يعني څوک چي مېلمستيا قبوله نه کړي هغه د الله او د هغه د رسول نافرماني وکړه .

ځيني علماء وايي چي واجب نه ده بلکه مستحب ده مګر دا خبره بايد په ذهن کي وي چي د قبلولو څخه مراد مېلمستيا ته تلل دي يعني که چيري يو څوک واده ته وبلل سي نود هغه لپاره ورتلل د ځينو علماؤ په نزد واجب دي او د ځينو علماؤ په نزد مستحب دي ، اوس پاته سوه دا خبره چي په خوراک کي ګډون وکړي نو په دې باره کي په اتفاق سره دا مسئله ده که چيري د يو چا روژه نه وي نو په خوراک کي ګډون کول مستحب دی ، د دواده د خوراک څخه پرته د نورو مېلمستياو قبلول مستحب دي .

طيبي او ابن مالک (رح) هم دا وېلي دي چي د مېلمستيا قبلولو وجوب يا استحباب په

ځینو صورتو کي ساقط کیږي مثلا دا شبه کېدل چي په مېلمستیا کي کوم خوراک ورکول کیږي هغه به د حلال مال څخه نه وي یا په هغه مېلمستیا کي د شتمنو کسانو تخصیص وي یا په هغه مېلمستیا کي یو داسي سړی وي چي د هغه څخه د تاوان رسیدو بېره وي یا هغه ددې وړ نه وي چي د هغه سره کښیني، نو په دغه صورت کي که چیري یو سړی مېلمستیا قبوله نه کړي نو څه پروا نه لري ، همدارنګه که چیري یو سړی مېلمستیا ته یوازي ددې لپاره وبلل سي چي د هغه څخه کار واخلي او هغه ته یو تاوان رسیږي نو په داسي صورت کي مېلمستیا نه قبلول غوره دي ، همدارنګه که چیري یو څوک یو سړی ددې لپاره مېلمستیا ته ته راوبولي چي هغه د خلکو په باطل ارادو یا غیر شرعي کارو کي مرسته وکړي یا په یو مېلمستیا کي منع شیان لکه شراب او داسي نور وي یا هلته غزلي او سروز او نور غیر شرعي کارونه وي یا په کوم ځای کي چي مېلمستیا وي هغه د ورېښمو فرش اوار سوی وي نو په داسي مېلمستیا کي ګډون کول باید ونه سي دا خبره باید په ذهن کي وي چي نن سبا مجلسو د ذکر سوو شیانو څخه خالي نه وي که ټول شیان نه وي نو په هغه کي ځیني مجلسو داسي وي ، ځکه د صوفیانو قول دی چي عزلت (یعني کونج نشیني ) حلاله سوې ده بلکه دا ویل زیات مناسب دي چي نن سبا کونج نشیني واجب سوې ده نو کوم سړی چي د احتیاط سره سم کونج نشیني اختیارول غواړي او په یو مجلس یا مېلمستیا کي ګډون مناسب نه ګڼي نو د هغه لپاره نه ورتلل غوره دي .

﴿۳۰۸﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دُعِيَ أَحَدُكُمْ إِلَى طَعَامٍ فَلْيُجِبْ فَإِنْ شَاءَ طَعِمَ وَإِنْ شَاءَ تَرَكَ . رواه مسلم .

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : څوک چي د ډوډۍ لپاره وبلل سي هغه ته پکار ده چي دعوت قبول کړي او هلته دي ولاړ سي که یې خوري او که یې نه خوري (خپله خوښه یې ده ). (مسلم) .

**تخریج** : مسلم في الصحیح ۲\ ۱۰۵۴، رقم: ۱۰۵\ ۱۴۳۰.

**تشریح** ددغه حدیث څخه معلومه سوه چي د مېلمستیا قبلولو مطلب بلونکي ته ورتلل دي او دا واجب یا سنت دی مګر په خوراک کي ګډون کول سنت دي په شرط ددې روژاتي نه وي .
ابن مالک رحمة الله علیه وایي چي په دغه حدیث شریف کي د دعوت قبلولو چي کوم حکم ورکړل سوی دی هغه د وجوب په توګه دی مګر ددې تعلق هم د هغه چا سره دی چي هغه ته یو عذر نه وي او

که چیري يو څوک معذور وي مثلاً د مېلمستيا ځای دومره ليري وي چي هلته ورتلل تکليفي وي نو په دغه صورت کي د هغه مېلمستيا په نه قبلولو کي څه پروا نه سته.

## په وليمه کي يوازي شتمن خلک را بلل بد کار دی

﴿۳۰۸۱﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَرُّ الطَّعَامِ طعام الْوَلِيمَةِ يُدْعَى لَهَا الْأَغْنِيَاءُ وَيُتْرَكُ الْفُقَرَاءُ وَمَنْ تَرَكَ الدَّعْوَةَ فَقَدْ عَصَى اللّٰهَ وَرَسُولَهُ . متفق عليه .

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د وليمې هغه طعام خراب ضعام دي چي په هغه کي دولتمند خلک و بلل سي او فقيران و نه غوښتل سي او چا چي د دعوت څخه انکار وکړ هغه د خداي جل جلاله او د رسول الله ﷺ نافرماني وکړه. (بخاري او مسلم).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\ ۲۴۴، رقم: ۵۱۷۷، ومسلم ۲\ ۱۰۵۴، رقم: ۱۰۷\ ۱۴۳۲.

**تشريح** شر الطعام: يعني د خراب خوراک مطلب دادی چي کوم نور د ډېر خراب خوراکونه دي په هغو يو دا هم دی، دا ځکه ويل سوي دي چي ځيني خوراکونه تر دې هم زيات خراب دي او دا فرمايل سوي دي (شر الناس من اکل وحده) يعني خراب سړی هغه دی چي هغه يوازي خوراک وکړي، او دا هم مراد دی چي په خرابو خلکو کي يو خراب سړی هغه هم دی چي يوازي خوراک کوي.

ددغه حديث مقصد د وليمې د خوراک خرابي بيانول دي ځکه چي نه يوازي د وليمې کولو حکم ورکړل سوی دی بلکه د هغه قبلولو تاکيد هم سوی دی او کوم څوک چي د وليمې دعوت قبول نه کړي نو هغه گناه کار دی، د حديث مراد دادی چي کومه وليمه داسي وي چي په هغه کي يوازي شتمن خلک راوبلل سي او مسکينان پرېښودل سي نو هغه يو خرابه وليمه ده، هغه وخت د ځينو خلکو دا عادت وو چي هغوی به خپل وليمې ته يوازي شتمن خلک را بلل چي هغوی ته به يې ښه ښه خوراکونه ورکول او مسکينان به يې پرېښودل، نو رسول الله ﷺ ددغه ارشاد په ذريعه ددغه خراب عادت څخه منع وفرمايل.

د دعوت نه قبلولو په وجه د الله تعالی نافرماني داسي کيږي چي د الله تعالی رسول د دعوت قبلولو حکم ورکړی دی چا چي دعوت قبول نه کړ هغه د الله تعالی د رسول نافرماني وکړه نو هغه د الله تعالی د حکم نافرماني وکړه.

کوم حضرات چي مېلمستيا قبلولو ته واجب وايي هغوی دغه حديث د خپل قول دليل

کړخولی دی، حال دا چي جمهور علماء دا حدیث پر تاکید او استحباب باندي محمول کړی دی.

**نابلل سوي کس ته خوراک ورکول .....**

﴿۳۰۸۲﴾: وَعَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ قَالَ كَانَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ يُكْنَى أَبَا

د حضرت ابو مسعود انصاري رضی الله عنه څخه روایت دی چي یو انصاري سړی چي د هغه کنیت ابو

شُعَيْبٍ وَكَانَ لَهُ غُلَامٌ لَحَّامٌ فَقَالَ اصْنَعْ لِي طَعَامًا يَكْفِي خَمْسَةً لَعَلِّي أَدْعُو

شعیب وو ده یو غلام وو چي غوښه به یې خرڅوله یوه ورځ هغه خپل غلام ته وویل: د پنځو کسانو غذا تیاره کړه شاید چي زه

النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَامِسَ خَمْسَةٍ فَصَنَعَ لَهُ طُعَيِّمًا ثُمَّ أَتَاهُ فَدَعَاهُ

رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دعوت ورکړم غلام یو څه (لږ) غذا تیاره کړه بیا هغه سړی د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کي حاضر سو او د ډوډۍ بلنه یې ورکړه

فَتَبِعَهُمْ رَجُلٌ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا أَبَا شُعَيْبٍ إِنَّ رَجُلًا تَبِعَنَا

یو بل کس هم د نبي کریم صلی الله علیه وسلم سره ملګري سو نبي کریم صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل: اې ابو شعیبه! یو بل سړی هم زموږ سره ملګري سوی دی

فَإِنْ شِئْتَ أَذِنْتَ لَهُ وَإِنْ شِئْتَ تَرَكْتَهُ قَالَ لَا بَلْ أَذِنْتُ لَهُ. متفق عليه.

که دي خوښه وي ده ته اجازه ورکړه او که دي خوښه وي پرې یې ږده ابو شعیب رضی الله عنه ورته وویل زه ده ته هم اجازت ورکوم. (بخاري او مسلم).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\۵۸۳، رقم: ۵۴۶۱، ومسلم ۳\۱۶۰۸، رقم: ۱۳۸- ۲۰۳۶.

**تشريح**: دا حدیث ددې خبري دلیل دی چي د هیڅا لپاره دا جائز نه ده چي هغه د یو چا مېلمستیا ته بېله بلني ولاړ سي او همدا رنګه د مېلمه لپاره هم جائز نه ده چي هغه بېله بلني یو بل سړی د ځان سره بوځي مګر که چیري کوربه ددې خبري اجازه ورکړې وي یا داسي مېلمستیا وي چي هلته عامه اجازه وي یا مېلمه په دې پوهېږي که چیري زه بل څوک د ځان سره بوځم نو د کوربه د خوښۍ خلاف به نه وي نو په دغه صورت کي بلنه ورکړل سوی سړی بل څوک د ځان سره بېولای سي.

د دغه حديث شريف څخه نوري څو خبري هم معلوميږي : اول دا چي د كوربه د اجازې څخه پرته د هغه په كور كي داخلېدل جائز نه دي ، دوهم دا چي كه چيري يو سړى د يو څو خاصو كسانو دعوت وكړي او د هغوى سره يو بل سړى هم يو ځاى سي نو د هغه مېلمنو لپاره دا مستحب دي چي هغوى د كوربه څخه د هغه سړي اجازه وغواړي ، دريم دا چي د بل چا په باره كي د كوربه لپاره دا مستحب دي چي هغه پر دسترخوان باندي د ناستي څخه منع نه كړي مګر دا چي د هغه په وجه مېلمنو ته د تاوان يا تكليف رسيدو بېره وي او كه چيري هغه په خوراك كي د ګډون څخه پرته جواب كړي نو په نرمۍ سره دي هغه جواب كړي مګر غوره داده چي د هغه خوراك څخه يو څه هغه ته وركړي په شرط د دې چي هغه يې وړ وي .

په شرح السنه كي ليكلي دي چي دا حديث پر دې دلالت كوي چي يو نابلل سوي سړي ته د مېلمستيا په خوراك كي ګډون كول جائز نه دي ، ځيني علماء كرام وايي چي كله يو سړى د چا مېلمستيا وكړي او هغه د خوراك په اېښودو سره هغه د خوراك مالک وګرځوى نو اوس هغه مېلمه مختار دى چي هغه خوراک په خپله خوري يا بل چا ته يې وركوي او يا په وړلو سره يې خپل كور ته يوسي مګر كه چيري داسي صورت وي چي كوربه د سترخوان په غوړلو سره پر هغه خوراک كښېږدي چي دد‌ې نښه ده چي هغه مېلمه يې د هغه خوراک مالک نه وي جوړ كړى بلكه هغه ته يې دد‌ې اجازه وركړې وي چي هغه دلته په كښېنستلو سره خوراک وكړي او څه چي پاته سي هغه به د كوربه وي نو اوس د مېلمه لپاره دا ضروري ده چي هغه پر دسترخوان باندي په ناستي سره خوراک وكړي ، نه دا چي هغه خوراک كور ته يوسي او يا د هغه څخه بل چا ته څه وركړي .

ځيني علماؤ دې ته ښه ويلي دي چي كله پر يو دسترخوان باندي خلک د خوراک كولو لپاره كښېني نو هغوى پر دسترخوان باندي موجود شيان په خپلو كي يو بل ته وركوي مګر كه چيري هغه خلک پر دوو دسترخوانو باندي ناست وي نو د يوه دسترخوان خلک د دوهم دسترخوان خلكو ته د خپل دسترخوان څخه شيان وركول جائز نه دي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د حضرت صفيه (رض) وليمه

﴿۳۰۸۳﴾: عَنْ اَنَسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْلَمَ عَلَى صَفِيَّةَ بِنْتِ حُيَيٍّ بِسَوِيقٍ وَتَمْرٍ . رواه احمد والترمذي وابوداؤد وابن ماجة .

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي نبي کريم ﷺ د بي بي صفيې رض وليمه يې د ستوانو او خرماؤ سره کړې وه .(احمد ترمذي ابو داؤد ابن ماجه)

**تخريج**: احمد في المسند ٣\ ١١٠، وابوداود في السنن ٤\ ١٢٦، رقم: ٣٧٤٤، والترمذي في السنن ٣\ ٤٠٣، رقم: ١٠٩٥، وابن ماجه في السنن ١\ ٦١٥، رقم: ١٩٠٩.

**تشريح** د بي بي صفيې رضي الله عنها د وليمې په باره کي چي کوم حديث تېر سوی دی په هغه کي د وليمې خوراک حيس ذکر سوی دی حال دا چي دلته د ستوانو او خرماوو ذکر دی، په دواړو روايتو کي به مطابقت داسي وي چي د بي بي صفيې رضي الله عنها په وليمه کي دواړه شيان موجود وه حيس هم وو او ستوان او خرماوي هم وې، راويانو چي څه ليدلي هغه يې ذکر کړي دي .

## د دنيوي زيب او زينت څخه د رسول الله ﷺ پرهېز

﴿۳۰۸۴﴾: وَعَنْ سَفِيْنَةَ أَنَّ رَجُلًا ضَافَ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ فَصَنَعَ لَهُ طَعَامًا

د حضرت سفينه رضي الله عنه څخه روايت دی چي حضرت علي رضي الله عنه ته يو ميلمه راغلی حضرت علي رضي الله عنه د هغه لپاره غذا تياره کړه

فَقَالَتْ فَاطِمَةُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا لَوْ دَعْوَنَا رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

بي بي فاطمې رضي الله عنها وويل :که موږ و نبي کريم ﷺ ته دعوت ورکړو

فَأَكَلَ مَعَنَا فدعوه فجاء فوضع يديه على عضادتي الباب فراى القرام قَدْ

او ډوډۍ زموږ سره وخوري نو دا به بهتره وي نو نبي کريم ﷺ تشريف راوړ او د دروازې په دواړو اړخو يې لاس کښېښودی او و درېد نبي کريم ﷺ په کور کي د ننه

ضُرِبَ فِي نَاحِيَةِ الْبَيْتِ فرَجَعَ قَالَتْ فَاطِمَةُ فَتبعته فقلت يَا رَسُولَ اللّٰهِ ماردك

په کونج کي يوه پرده وهل سوې وليدل نو واپس يې تشريف يوړ بي بي فاطمه رضي الله عنها وايي زه هم په نبي کريم ﷺ پسي روانه سوم او عرض مي وکړ يا رسول الله! تاسو بيرته ولي تشريف يووړ

قَالَ إِنَّهُ لَيْسَ لِي أَوْ لِنَبِيٍّ أَنْ يَدْخُلَ بَيْتًا مُزَوَّقًا . رواه احمد وابن ماجة .

نبي کريم ﷺ راته وفرمايل: ما او هيڅ يو نبي ته د زينت والا په کور کي داخلېدل مناسب نه دی . (ابن ماجه احمد) .

**تخریج**: احمد في المسند ۵\۲۲۰، رقم: ۳۳۶۰.

**د لغاتو حل**: القِرام: وهو ثوب رقيق من صوف فيه الوان العهون و رقوم و نقوش. (يو ډول ټوکر).

**تشریح** قرام نازکي او نقش لرونکي پردې ته وايي، ځيني حضرات وايي چي د بي بي فاطمې ﷺ په کور کي چي کومه پرده وه هغه نقش لرونکې نه وه مگر هغه پردې ديوال داسي ښائسته کړی وو لکه څرنگه چي د واده د ناوي او زوم کټ په پردو سره ښائسته کيږي او دا د شتمو خلکو د خپل شتمنۍ او وجاهت بې ځايه اظهار کولو طريقه ده ځکه رسول الله ﷺ د هغه پردې په لېدو سره بېرته ولاړی په دې سره رسول الله ﷺ دا تنبيه وفرمايل چي دېوالونه په داسي پردو سره ښائسته کول مناسب نه دي ځکه چي دا د نيا زينت دی چي د آخرت لپاره تاوان کونکی هم کېدای سي.

## بېله بلني مېلمستيا ته ورتلل بد کار دی

﴿۳۰۸۵﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

مَنْ دُعِيَ فَلَمْ يُجِبْ فَقَدْ عَصَى اللهَ وَرَسُوْلَهُ وَمَنْ دَخَلَ عَلَى غَيْرِ دَعْوَةٍ دَخَلَ سَارِقًا وَخَرَجَ مُغِيْرًا. رواه ابوداؤد.

چا ته چي د خوراک بلنه وسي او هغه دعوت قبول نه کړي نو هغه دخداي تعالي او دهغه د رسول الله ﷺ نافرماني وکړه او څوک چي بېله اجازې د چا و ډوډۍ ته ورسی نو هغه د غلو پشان راغی او د مال د غلا کولو څخه وروسته بير ته ولاړی. (ابو داؤد).

**تخریج**: ابوداود في السنن ۴\۱۲۵، رقم: ۲۷۴۱.

**تشریح** مېلمستيا ته بېله بلني تلونکي سړي ته په غله سره ځکه تشبيه ورکړل سوې ده چي څرنگه يو غل په پټه په يو کور کي داخليږي همدارنگه بېله بلني سړی هم د غله په ډول راځي نو څرنگه چي غل د چا په کور کي د ننوتلو په وجه گناه کار دی همدارنگه بېله بلني سړی هم د خپل دغه غير اخلاقي او بد کار په وجه گناه کار دی، رسول الله ﷺ ددغه حديث په ذريعه د خپل اُمت خلکو ته د ژوند د اخلاقو دوه بنيادي درسونه ورکړي دي چي د انسان د ټولني لوی او انساني وقار ضامن دی اول خو دا چي د يو چا بلنه بېله عذره نه قبلول د نفس پر تکبر او پر عدم الفت باندي دلالت کوي، دوهم دا چي بېله بلني د يو چا کور ته ورتلل د نفس پر حرص او خپل عزت د لاسه ورکولو باندي دلالت کوي.

## که دوه کسان په یو وار بلنه ورکړي نو اول د چا بلنه قبلول پکار دي؟

﴿۳۰۸۶﴾: وَعَنْ رَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ إِذَا اجْتَمَعَ الدَّاعِيَانِ فَأَجِبْ أَقْرَبَهُمَا بَابًا وَإِنْ سَبَقَ أَحَدُهُمَا فَأَجِبِ الَّذِي سَبَقَ. رواه احمد وابوداؤد

په صحابه کرامو رض کي د یو سړي بیان دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: که دوو نفرو دعوت درکړی نو د هغه دعوت قبول کړه چي د چا دروازه در نژدې وي او که په هغوی کي هر یوه اول درته وویل نو د هغه دعوت قبول کړه. (احمد ابوداؤد).

**تخریج**: احمد في المسند ۵\۴۰۸، وابوداود في السنن ۴\۱۳۳، رقم: ۳۷۵۶.

**تشریح**: دا حکم د هغه صورت سره اړوند دی کله چي په یوه وخت کي د دوو مېلمستیاوو کېدو په وجه یا په یو بل وجه د دواړو په دعوت کي ګډون کول ممکن نه وي مګر که چیري د دواړو په مېلمستیا کي ګډون کول ممکن وي نو بیا دا حکم دی چي د دواړو په بلنه کي ګډون وکړي او دا حکم د دوو همسایګانو د بلني په باره کي هم دی، که چیري په یوه وخت کي دوه همسایګان مېلمستیا وکړي نو د هغه همسایه بلني ته به ترجیح ورکول کیږي کوم چي ډېر نژدې وي او که چیري د همسایګانو څخه پرته د ښار او کلي نور دوه خلک په یوه وخت کي بلنه وکړي نو په دغه صورت کي د وهمه وجه مثلا شناخت، اصلاح، او د حقوقو سره سم ترجیح ورکول کیږي یعني په هغه دواړو کي به د هغه سړي بلني ته ترجیح ورکوي کوم چي د بل څخه نژدې قریب وي یا د هغه دوهم څخه زیات نیک او صالح وي او یا د حقوقو په اعتبار هغه دوهم ډېر نژدې وي.
د دغه حدیث شریف څخه یوه نکته دا معلومه سوه که چیري یو د یو معلم سره د هغه دوه شاګرد په یوه وخت کي د سبق زده کولو لپاره راسي، یا یو حاکم ته دوه خلک د مسئلې پوښتلو لپاره راسي نو مخکي دي هغه چا ته سبق ووایي یا مسئله دي ور وښیي کوم چي مخکی راغلی وي.

## د نامه لپاره تر ډېرو ورځو پوري د ولیمي کولو وعید

﴿۳۰۸۷﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَعَامُ أَوَّلِ يَوْمٍ حَقٌّ وَطَعَامُ يَوْمِ الثَّانِي سُنَّةٌ وَطَعَامُ يَوْمِ الثَّالِثِ سُمْعَةٌ وَمَنْ سَمَّعَ سَمَّعَ اللَّهُ بِهِ. رواه الترمذي.

د حضرت ابن مسعود ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د اولي ورځي طعام حق دی يعني ضروري دی او د دويمي ورځي سنت دی او د دريمي ورځي مشهورتيا ده الله تعالي به (د قيامت په ورځ) هغه مشهور او رسوا کړی . (ترمذي) .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\۴۰۳، رقم: ۱۰۹۷.

**تشريح**: مطلب دادی چي په واده کي په اوله ورځ خلک خوراک ته رابلل او د خلکو بلنه قبلول سنت مؤکده دي او کوم علماء چي د وليمې بلني ته واجب وايي د هغوی په نزد د حق څخه مراد واجب دی، او په دوهمه ورځ خلک رابلل سنت او مستحب دي ، د دوو ورځو څخه وروسته که چيري هغه يو چا ته بلنه ورکړي نو پوهېدل پکار دي چي اوس د هغه په بلنه کي د نامه جذبه پيدا سوې ده يعني هغه په دريمه ورځ خلک د خوراک لپاره ځکه رابولي چي شهرت يې زيات سي او خلک يې تعريف وکړي د هغه په باره کي دا تنبيه فرمايل سوې ده چي کوم څوک د نامه لپاره په دريمه ورځ هم خلک د خوراک لپاره را بولي او ددې خواهش لرونکی وي چي خلک د هغه د سخاوت تعريف وکړي چي د هغه د فخر اظهار وکړل سي نو د داسي سړي په اړه به الله تعالی د حشر په ميدان کي دا اعلان وکړي چي وګورئ ! دا سړی درواغجن دی ، محض د ښوولو لپاره يې خلکو ته خوراک ورکوئ نو هغه سړی به د ټول مخلوق په مخکي سخت رسوا او ذليل سي.

علامه طيبي ﷫ وايي کوم بنده ته چي الله تعالی يو نعمت ورکړي (د مثال په توګه هغه نکاح وکړي) نو پر هغه لازمه ده چي د هغه شکر ادا کړي او د نکاح شکر دادی چي و ليمې په مېلمستيا کي د خلکو په رابللو سره هغوی ته خوراک ورکړي او دا شکر ادا کول مثلا بلنه کول په اوله ورځ خو ضروري وي او په دومه ورځ مستحب وي که په اوله ورځ کوتاهي سوې وي نو په دوهمه ورځ به د هغه کمي پوره سي ځکه چي سنت واجب پوره کوي او په دريمه ورځ بلنه کول محض د ښووني او نامه لپاره وي يعني په دريمه ورځ مېلمستيا کول نه يوازي دا چي ګټه يې نه سته بلکه د نامه په وجه د آخرت تاوان هم دی، همدارنګه کومو خلکو ته چي بلنه ورکړل سي د هغوی په باره کي دا مسئله ده چي د اولي ورځي بلنه قبلول د هغوی لپاره واجب دي، د دوهمي ورځي بلنه قبلول مستحب دي او د دريمي ورځي بلنه قبلول مکروه بلکه حرام دي .

ددغه حديث شريف څخه د مالکيه ددغه مذهب ترديد کيږي چي تر اوو ورځو پوري د وليمې مېلمستيا کول مستحب دي .

## د فخر كوونكو بلنه منع ده

﴿۳۰۸۸﴾: وَعَنْ عِكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى

حضرت عكرمه رضي الله عنه د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت كوي چې رسول الله ﷺ د ددو مقابله

عَنْ طَعَامِ الْمُتَبَارِيَيْنِ أَنْ يُؤْكَلَ . رواه ابوداؤد وقال محي السنة والصحيح انه عن عكرمة عن النبي صلى الله عليه وسلم مرسلا .

كونكو او فخر كونكو د ډوډۍ خوړلو څخه منعه كړې ده (يعني د داسي دوو سړو د طعام خوړلو څخه يې منعه كړېده چي په خپل مينځو كي مقابله كوي). (ابوداؤد)محي السنه وفرمايل: صحيح دا ده چي عكرمه رضي الله عنه د رسول الله ﷺ څخه مرسلا بيان كړې دی .

**تخريج**: ابوداود في السنن ۴\۱۳۲، رقم: ۲۷۵۴.

**تشريح**: متبارييں هغه دوو خلكو ته وايي چي د زيات خوراک پخولو او خوړولو كي مقابله وكړي او په هغوی كي د هر يوه دا هڅه وي چي هغه د دوهم په ضد كي زيات خوراک تيار كړي او زياتو خلكو ته بلنه وركړي چي هغه لوړ او بل سړی كم سي ، يعني ددغه مقابلې څخه د دواړو مقصد فخر او نوم كول وي د داسي خلكو په باره كي دا حكم سوی دی چي د هغوی بلنه دي نه قبليږي او د هغوي په خوراک كي دي ګډون نه كيږي .

نن سبا په دې اړه احتياط نه كيږي مګر د پخوانۍ زمانې د بزرګانو دا حال وو كه چيري هغوی ته به د يو چا د مېلمستيا په باره كي دا شک وسو چي د هغه د مېلمستيا مقصد نوم او فخر دی نو د هغه په مېلمستيا كي د ګډون كولو څخه به يې پرهيز كوی .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ (دريم فصل)

﴿۳۰۸۹﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْمُتَبَارِيَانِ

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د فخر كونكو دي نه

لَا يُجَابَانِ وَلَا يُؤْكَلُ طَعَامُهُمَا. قَالَ الْإِمَامُ أَحْمَدُ يَعْنِي الْمُتَعَارِضَيْنِ بِالضِّيَافَةِ فَخْرًا وَرِيَاءً .

دعوت قبلوي او نه دي د هغوی طعام خوري امام احمد رح وايي د مقابله کونکو څخه مراد هغه خلک دي چي د فخر او ريا په ډول په دعوت کي مقابله کوي. (بيهقي).

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۱۲۹\۵، رقم: ۶۰۶۸.

## د فاسق بلنه مه قبلوئ

﴿۳۰۹۰﴾: وَعَنْ عِمْرَانَ بنِ حُصَيْنٍ قَالَ نَهٰى رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ إِجَابَةِ طَعَامِ الْفَاسِقِيْنَ.

د حضرت عمران بن حصين رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د ټولو فاسقانو خلکو د دعوت قبلولو څخه منعه فرمايلې ده. (بيهقي)

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۶۶\۵، رقم: ۵۸۰۳

**تشريح**: د فاسق څخه مراد مطلق فاسق دی که څه هم هغه په هر ډول فسق کي اخته وي، د فاسق د مېلمستيا قبلولو د منع سبب دادی چي اکثر فاسقان د خپل مزاج په اعتبار ظالم هم وي او دا مسئله هم ده چي ظالم د خلکو مال په ظلم اخلي د هغه په مېلمستيا کي ګډون کول حرام دی، ددې څخه علاوه د فاسق مېلمستيا قبلول د هغه خوشحاله کول او د هغه عزت کول چي دا شرعا ناجائز کار دی.

## د يو پرهېزګار د خوراک پلټنه مه کوئ

﴿۳۰۹۱﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ أَحَدُكُمْ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کله چي په تاسو کي يو

عَلٰى أَخِيْهِ الْمُسْلِمِ فَلْيَأْكُلْ مِنْ طَعَامِهِ وَلَا يَسْأَلْ وَيَشْرَبْ مِنْ شَرَابِهِ وَلَا

مسلمان ورور ته ورسيږ نو د هغه سره خوراک او چيښاک وکړئ خو دا پوښتنه دي نه کوي چي

يَسْأَلْ، روى الأحاديث الثلاثة البيهقي في "شعب الإيمان" وقال: هذا إن صح فلأن الظاهر أن المسلم لا يطعمه ولا يسقيه إلا ما هو حلال عنده.

هغه خوراک او چيښاک د کوم ځايه څخه او څنګه راغلي دا درې حديثونه بيهقي په ((شعب

الایمان)) کي روایت کړی دی .

**تخریج**: البیهقي في شعب الایمان ۵\ ٦٧ رقم: ۵۸۰۱

**تشریح** د مسلمان څخه کامل یعني متقي او پرهیزګار مسلمان مراد دی ، په دې باره کي ویل سوي دي که چیري یو سړی هغه ته د خوراک کولو لپاره ورسي نو د هغه د خوراک د جائز او ناجائز کېدو تحقیق دي نه کوي بلکه څه چي مخته راسي هغه دي بېله شکه او شبهې وخوري ځکه چي اول خو د هغه د پرهېزګار کېدو په وجه دهغه په باره کي دا ګمان کول پکار دي چي هغه ناجائز او حرام مال په چا نه خوري، دوهم دا که چیري د هغه خوراک د جائز او ناجائز کېدو تحقیق کوي نو هغه ته به تکلیف ورسیږي چي دا مناسب کار نه دی مګر که چیري دا یقین وي چي کوم شی هغه په خوراک کي راوړی دی د هغه یو برخه په حرامه ذریعه تر لاسه سوې ده یا د هغه اکثر خوراک حرام دی نو بیا دي هغه نه خوري .

==========

# بَابُ الْقَسَمِ

## (د ښځو په منځ کي دوختونو وېشلو بیان)

که د یو چا تر یوې زیاتي ښځي وي نو د هغه ښځو سره د شپې تېرولو لپاره د نوبت (وار) تاکل واجب دي یعني هغه ښځو ته وار په وار ورتلل پکار دي، په دې باره کي د یو څو خبرو باید خیال وساتل سي:

۱. کله چي وار و ټاکل سي نو د یوې ښځي په وار کي د دوهمي ښځي سره شپه تېرول جائز نه دي مثلاً کومه شپه چي کومي ښځي ته ورتلل وي په هغه شپه کي دي بلي ښځي ته نه ورځي .

۲. په یوه شپه کي د دوو ښځو سره شپه تېرول جائز نه دي مګر که چیري دواړي ښځي هغه ته اجازه ورکړي او هغه خپله هم ددې لپاره تیار وي نو بیا جائز دي، د رسول الله ﷺ په باره کي نقل سوي دي چي هغه ﷺ په یوه شپه کي د ډېرو بیبیانو مبارکانو سره جماع کړې ده ، نو دا دهغه وخت خبره ده کله چي وار ټاکل واجب سوي نه وه ، یا دا چي په دې باره کي رسول الله ﷺ ته د بیبیانو اجازه تر لاسه سوې وه ، حنفیه حضرات وایي چي د وار ټاکل پر رسول الله ﷺ واجب نه وه بلکه رسول الله ﷺ په خپل کرم او مهربانۍ سره خپل هري بي بي ته وار ټاکلی وو .

۳. د سفر په حالت كي ښځو ته د وار تاكلو حق نه سته او نه د يو ښځي د وار لحاظ ساتل ضروري دي بلكه د دې انحصار د خاوند پر خوښې دى چي هغه د كومي ښځي سره غواړي د ځان سره په سفر كي بيولاى سي ، كه څه هم غوره دا دي چي خاوند خپلو ښځو په مينځ كي قرعه اندازي (پچه) واچوي او د كومي ښځي په نامه چي پچه راووځي هغه دي په سفر كي د ځان سره بوځي .

۴. د مقيم په باره كي د وار تعلق د شپې سره دى او ورځ د شپې تابع ده ، مګر كوم سړى چي د شپې په خپل كاروبار كي اخته وي د مثال په توګه چوكيداري يا بل كار كوي او د هغه په وجه شپه په كور كي نه سي تېرولاى نو د هغه په حق كي د وار تعلق د ورځي سره دى .

په درمختار كي دا ليكلي دي چي د كوم سړى زياتي ښځي وي نو پر هغه باندي د ښځو سره په شپه كي د اوسيدو او د هغوى د خوراک په باره كي برابري كول واجب دي ، د هغوى سره د جماع كولو يا نه كولو او په مينه كي برابري كول واجب نه دي بلكه مستحب دي .

د يوې ښځي سره د جماع په باره كي د هغې پر خاوند دا حق دى چي هغه به په يوار جماع كولو سره ساقط كيږي د جماع كولو په باره كي خاوند خودمختار دى چي كله وغواړي وه يې كړي مګر كله كله جماع كول پر هغه ديانتًا واجب وي او د ايلاء د وخت په اندازه (يعني تر څلور مياشتو پوري) جماع نه كول د خاوند لپاره مناسب نه دي مګر كه چيري د يو ښځي په خوښه تر دومره وخت پوري جماع نه كوي نو بيا څه پروا نه لري مګر د هري ښځي سره يوه يوه شپه او يوه يوه ورځ تېرول پكار دي مګر برابري كول په شپه كي ضروري دي كه چيري يو څوک خپل يوې ښځي ته د مابنام څخه وروسته سمدستي ورغلى او دوهمي ښځي ته د ماخستن څخه وروسته ورغلى نو د هغه دغه كار د برابرۍ خلاف دى او د هغه په باره كي به دا ويل كيږي چي د وار حكم پرې ايښى دى ، د يوې ښځي سره د هغه د وار څخه علاوه (يعني د بلي ښځي وار كي) دي جماع نه كوي ، همدارنګه د يوې ښځي سره د هغې د وار څخه علاوه په بله شپه كي دي نه ورځي مګر كه چيري هغه ښځه ناروغه وي نو د هغې د پوښتني او علاج لپاره ورتللاى سي بلكه كه چيري د هغې ناروغي سخته وي نو د هغې د وار څخه علاوه هم د هغې سره تر هغه وخته پوري پاته كېدل جائز دي تر څو چي هغه روغه سي يا وفات سي مګر دا په هغه صورت كي جائز دي كله چي د هغې سره بل څوک خدمت كونكى نه وي او كه چيري خاوند په كور كي د ناروغۍ په حالت كي وي نو هغه دي خپله هره ښځه د هغې په وار كي خپل ځان ته رابولي .

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ (لومړی فصل)

### د رسول الله ﷺ د ازواج مطهراتو شمېر

﴿۳۰۹۲﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُبِضَ عَنْ تِسْعِ نِسْوَةٍ وَّكَانَ يَقْسِمُ مِنْهُنَّ لِثَمَانٍ. متفق عليه

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دى چي کوم وخت رسول الله ﷺ وفات سو نو هغه وخت د نبي كريم ﷺ په نكاح كي نهه بيبياني وې او په هغوى كي د اتو وار تاكل سوى وو (ځكه چي نهمي بي بي سودې رضي الله عنها د خپل وار ورځ بي بي عائشې رضي الله عنها ته وركړې وه). (بخاري او مسلم).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\۱۱۲ رقم: ۵۰۶۷. ومسلم ۲\۱۰۸۶، رقم: ۵۱\۱۴۶۵.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ يوولس بيبياني مباركاني وې مګر دوې بيبياني بي بي خديجه رضي الله عنها او بي بي زينب بنت خزاعه رضي الله عنها د رسول الله ﷺ په ژوند مبارك كي وفات سوي دي ځكه دلته يوازي د هغه بيبيانو ذكر كيږي كوم چي د رسول الله ﷺ د وفات پر وخت د رسول الله ﷺ په نكاح كي وې او د هغوى نومونه دادي:

۱. حضرت عائشة رضي الله عنها
۲. حضرت حفصه رضي الله عنها
۳. حضرت ام حبيبه رضي الله عنها
۴. حضرت سوده رضي الله عنها
۵. حضرت ام سلمه رضي الله عنها
۶. حضرت صفيه رضي الله عنها
۷. حضرت ميمونه رضي الله عنها
۸. حضرت زينب رضي الله عنها
۹. حضرت جويره رضي الله عنها

په دغه نهه بيبيانو مباركانو كي د اتو وار تاكل سوى وو او د نهمي بي بي سوده رضي الله عنها لپاره وار تاكل سوى نه وو ځكه چي هغې د خپلي ناروغۍ په وجه خپل وار بي بي عائشې رضي الله عنها ته وركړى وو، نو رسول الله ﷺ د هغې په وار كي د بي بي عائشې رضي الله عنها سره وو لكه څرنګه چي د راتلونكي حديث څخه به معلوم سي.

## يوه ښځه خپل وار خپل بني ته وركولاى سي

﴿۳۰۹۳﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ اَنَّ سَوْدَةَ لَمَّا كَبِرَتْ قَالَتْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَدْ جَعَلْتُ

د بي بي عائشې ﷺڅخه روايت دى كوم وخت چي بي بي سوده رض د ډېر وخت سوه نو هغې وويل: يا رسول الله!

يَوْمِي مِنْكَ لِعَائِشَةَ فَكَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْسِمُ لِعَائِشَةَ يَوْمَيْنِ يَوْمَهَا وَيَوْمَ سَوْدَةَ. متفق عليه.

ما د خپل وار ورځ بي بي عائشې ﷺته وركړه نو د دې څخه وروسته نبي كريم ﷺ دوې ورځي د بي بي عائشې ﷺسره وو يوه ورځ د بي بي سودې ﷺاو بله خپله ورځ. (بخاري او مسلم).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹۴\ ۲۱۲رقم: ۵۲۱۲. ومسلم ۲\ ۱۰۸۵، رقم: ۴۷- ۱۴۶۳.

**تشريح**: د بي بي سوده ﷺ دپلار نوم زمعه او د مور نوم يې سموس وو، مخكي ددې واده د حضرت سكران سره سوى وو، دوى دواړو د رسول الله ﷺ د پيغمبرۍ په اولو ورځو كي اسلام راوړى وو او په هجرت سره حبشې ته تللي وه كله چي د هغې خاوند حضرت سكران ﷺ وفات سو نو رسول الله ﷺ د بي بي خديجې ﷺد وفات څخه وروسته د هغې سره نكاح وكړه، د بي بي عائشې ﷺسره د رسول الله ﷺ نكاح د بي بي سوده رضي الله عنها دنكاح څخه وروسته سوې ده، د حضرت عمر ﷺ يا حضرت معاويه ﷺ په زمانه كي بي بي سوده ﷺوفات سوه او په مدينه منوره كي دفن كړل سوه. رضي الله عنها.

كه يو ښځه خپل ټا كل سوى وار خپل بني ته وركړي نو دا جائز دي په شرط ددې چي په هغه كي د خاوند له خوا زور نه وي او د خپل وار بلي ښځي ته وركونكي لپاره هم دا جائز دي چي كله هغه وغواړي خپل وار بېرته واخلي.

﴿۳۰۹۴﴾: وَعَنْهَا أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَسْأَلُ فِي مَرَضِهِ

د بي بي عائشې ﷺڅخه روايت دى چي رسول الله ﷺ به په خپلي ناروغي كي چي په هغه كي

الَّذِي مَاتَ فِيهِ أَيْنَ أَنَا غَدًا أَيْنَ أَنَا غَدًا يُرِيدُ يَوْمَ عَائِشَةَ فَأَذِنَ لَهُ أَزْوَاجُهُ

وفات سو پوښتنه كوله سبا به زه د چا په كور كي يم سبا به زه د كومي بي بي سره يم او د نبي

کریم ﷺ خواهش دا وو چي د بي بي عائشې ﷝ د نمبر ورځ معلومه سي د نبي کریم ﷺ د

یَکُونُ حَیْثُ شَاءَ فَکَانَ فِي بَیْتِ عَائِشَةَ حَتّٰی مَاتَ عِنْدَهَا. رواه البخاري.

خواهش او رغبت په محسوسولو سره بیبیانو اجازت ورکړ چي کوم ځاي مو خوښه وي هلته قیام وکړئ نو د فات تر وخته پوري نبي کریم ﷺ د بي بي عائشې ﷝ سره وو. (بخاري).

**تخریج**: البخاري في الصحیح (فتح الباري): ۹\۳۱۷ رقم: ۵۲۱۷.

**تشریح**: (یرید یوم عائشة) دا د مخکنۍ جملې وضاحت دی یعني د رسول الله ﷺ هره ورځ دا پوښتنه کول د بیبیانو مبارکانو څخه د اجازې غوښتلو لپاره وو چي ټولي بیبیاني د بي بي عائشې ﷝ سره د اوسیدو اجازه ورکړي، نو دغه جمله (فاذن له ازواجه) یعني بیبیانو رسول الله ﷺ ته اجازه ورکړه دا پر دې خبره دلالت کوي.

## د ښځي په سفر بېولو لپاره قرعه اندازي کول

﴿۳۰۹۵﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ کَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَرَادَ سَفَرًا [أَقْ]رَعَ بَیْنَ نِسَائِهِ فَأَیَّتُهُنَّ خَرَجَ سَهْمُهَا خَرَجَ بِهَا مَعَهُ. متفق علیه.

[د] بي بي عائشې ﷝ څخه روایت دی چي کله به رسول الله ﷺ د سفر اراده کوله نو د خپلو [ب]یبیانو په منځ کي به یې قرعه اندازي کوله او د کومي بي بي نوم چي په قرعه کي را ووتِ نو [هغ]ه به یې د ځان سره په سفر کي بېول. (بخاري او مسلم).

[تخ]ریج: البخاري في الصحیح (فتح الباري): ۵\۲۹۳، رقم: ۲۶۸۸، ومسلم ۴\۲۱۲۹، رقم: ۵۶ – ۲۷۷۰.

﴿۳۰۹۶﴾: وَعَنْ أَبِي قِلَابَةَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ مِنَ السُّنَّةِ إِذَا تَزَوَّجَ الرَّجُلُ الْبِکْرَ عَلَی الثَّیِّبِ أَقَامَ عِنْدَهَا سَبْعًا وَقَسَمَ وَإِذَا تَزَوَّجَ الثَّیِّبَ أَقَامَ عِنْدَهَا ثَلَاثًا

[د] حضرت ابو قلابه ﷜ څخه روایت دی چي د انس ﷜ بیان دی چي د سنتو څخه یو دا دی چي کله یو سړی په کونده ښځه باندي

د پیغلي سره نکاح وکړي نو اووه ورځي دې د پیغلي سره وي او بیا دې وار و ټاکي او کله چي د انجلي څخه وروسته د یوې کونډي سره واده وکړي نو درې ورځي د هغې سره وي

ثُمَّ قَسَمَ قَالَ أَبُو قِلَابَةَ وَلَوْ شِئْتُ لَقُلْتُ إِنَّ أَنَسًا رَفَعَهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. متفق عليه.

بيا دي وار مقرر كړي ابو قلابه ﷺ وايي زړه مي غواړي چي دا ووايم چي د انس ﷺ دا حديث د نبي كريم ﷺ د لوري مرفوع كړی دی. (بخاري او مسلم).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\ ۳۱۴، رقم: ۵۲۱۴، ومسلم ۲\ ۱۰۸۴، رقم ۴۴\ ۱۴۶۱.

**تشريح** امام شافعي رحمة الله عليه په دغه حديث شريف باندي په عمل كولو سره ويلي دي كه چيري د يو سړي په نكاح كي ډېري ښځي وي يا يوه ښځه وي او هغه د يو بلي ښځي سره نكاح وكړي، كه چيري هغه ښځه پېغله وي نو د هغې سره دي تر اوو شپو پوري اوسيږي او كه چيري هغه كونډه يا طلاقه سوې وي نو د هغې سره دي تر درو شپو پوري اوسيږي او بيا تر دې وروسته دي د نوي او زړې ښځو په مينځ كي وار وټاكي او هري يوې ته دي مساوي يوه يوه شپه ورځي، مگر د امام ابو حنيفة رحمة الله عليه په نزد په دې باره كي په پېغلي، كونډې، نوي او زړې كي څه فرق نه سته په دې اعتبار ټولي برابري دي، هغه په دغه دواړو حديثو باندي عمل كړی دی كوم چي د دغه باب په دوهم فصل كي راځي او په هغه كي دا ډول فرق نه دی بيان سوی، د امام ابو حنيفة رحمة الله عليه په نزد د دغه حديث معنی دا ده كه چيري يو سړی د خپل يوې يا ډېرو ښځو په موجودتيا كي د يو پېغلي ښځي سره نكاح وكړي نو د هغې سره دي تر اوو شپو پوري وي او بيا دي د مخكنيو ښځو سره د هري يوې سره اووه اووه شپو پوري وي او كه چيري د كونډې سره نكاح وكړي نو د هغې سره دي تر درو شپو پوري وي او بيا دي د مخكنيو ښځو كي د هري يوې سره درې درې شپې وكړي.
د روايت په پای كي د حضرت ابو قلابه ﷺ مطلب دا دی كه چيري ما غوښتلای نو دغه حديث ته به مي مرفوع ويلي وای يعني دا به مي ويلي وای چي دا حديث حضرت انس ﷺ د رسول الله ﷺ څخه نقل كړی دی ځكه چي د صحابي دا ويل چي دا سنت دي د مرفوع په حكم كي دی.

﴿۳۰۹۷﴾: وَعَنْ أَبِي بَكْرِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو بكر بن عبدالرحمن ﷺ څخه روايت دی چي كله رسول الله ﷺ

حِينَ تَزَوَّجَ أُمَّ سَلَمَةَ واصبحت عنده قال لها ليس بك على اهلك هوان ان

د ام سلمه ﷺ سره نكاح وكړه نو په دويمه ورځ سهاريي هغې ته وويل ستا دپاره دا خبره د ذلت نه ده

شئت سبعت عندك و سبعت عندهن وان شئت ثلثت عندك ودرت قالت ثلث وفي رواية انه قال لها لِلْبِكْرِ سَبْعٌ وَلِلثَّيِّبِ ثَلَاثٌ . رواه مسلم .

چي زه درې شپې ستا سره يم که ته غواړې نو زه به اووه ورځي ستا سره يم او اووه ورځي به د نورو بيبيانو سره يم او که ستا خوښه وي نو درې ورځي به ستا سره يم او بيا به وار وتاکم ام سلمې رض وويل : تاسو درې ورځي زما سره و اوسيږئ او په يو بل روايت کي دي د پيغلو لپاره اووه ورځي دي او کونډو دپاره درې ورځي . (مسلم) .

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\۱۰۸۳، رقم: ۴۱- ۱۴۶۰.

**تشريح**: په دې کي څه ذلت نه سته : ددې مطلب دادی چي زه به ستا سره درې شپې يم نو ددې په وجه به ستا پر قبيله او کورنۍ د حقارت او ذلت داغ نه وي ځکه چي زما ستا سره تر درو شپو پوري پاته کېدل ستا سره د صحبت او بې شوقۍ په وجه نه دی بلکه د شرعي حکم په وجه دي ، ددغه الفاظو په ذريعه رسول الله ﷺ د هغه عذر تمهيد بيان کړی دی چي د هغه په وجه د واده په اولو ورځو کي د بي بي ام سلمه ﷞ سره د شپې تېرولو لپاره يوازي پر درو شپو باندي اکتفاء وسول او هغه عذر دغه شرعي حکم دی که چيري د خپل اول ښځي په موجودتيا کي د بلي ښځي سره نکاح وکړل سي نو د هغه نوي ښځي سره به پرله پسې تر اووه ورځو پوري شپه تېرول په هغه صورت کي جائز وي کله چي هغه پيغله وي مګر ددې څخه وروسته د مخکنيو ښځو سره هم د هري يوې سره تر اووه شپو پوري تېرول پکار دي چي د دوار په اعتبار د چا سره بې انصافي ونه سي او که چيري هغه نوې ښځه کونډه يا طلاقه سوې وي نو بيا د هغې سره به درې شپې تېرول کيږي مګر د هغه څخه وروسته به د مخکنيو ښځو سره هم د هري يوې سره درې درې شپې تېرول دي ، نو رسول الله ﷺ د بي بي ام سلمې په وړاندي ددغه مسئلې په وضاحت کولو سره وفرمايل که ته غواړې نو زه ستا سره هم تر اوو شپو پوري پاته کېدای سم مګر دغه حق د پيغلي انجلۍ لپاره دی او ته ثيبه (کونډه) يې، او بيا دا چي وروسته به زه د خپلو ټولو بيبيانو سره تر اووه اووه شپو پوري يم ځکه نو غوره داده چي د کونډې په حق کي کوم حکم دی د هغه سره سم زه ستا سره درې شپې تېرې کړم او بيا وروسته د هري بي بي سره درې درې شپې تېرولو سره ستاسو د ټولو په مينځ کي وار وټاکم. نو بي بي ام سلمه د شريعت سره سم دا خبره ومنل او رسول الله ﷺ د هغې سره تر درو شپو پوري وو .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### يو څوک د خپل ټولو ښځو سره په يو ډول مينه کولو مجبور نه دی

﴿۳۰۹۸﴾: عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقْسِمُ بَيْنَ نِسَائِهِ

د عائشې رضي الله عنها څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د خپلو بيبيانو په مينځ کي وار تاكلی وو

فَيَعْدِلُ وَيَقُولُ اللَّهُمَّ هَذِهِ قِسْمَتِي فِيمَا أَمْلِكُ فَلَا تَلُمْنِي فِيمَا تَمْلِكُ وَلَا أَمْلِكُ . رواه الترمذي وابوداؤد والنسائي وابن ماجة والدارمي .

او د عدل او انصاف څخه به يې كار اخيستی او فرمايل به يې اې الله ! ما دا وارونه ټاكلي دي دا زما تقسيم دي په هغه شي كي چي په هغه كي زه مالک يم او د كوم شي چي ته مالک يې زه يې مالک نه يم ما په هغه شي باندي ملامت نه كړې . (ترمذي ابوداؤد نسائي ابن ماجه دارمي)

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\ ۴۴۶، رقم: ۱۱۴۰، وابوداود ۲\ ۶۰۱، رقم: ۲۱۳۴، والنسائي ۷\ ۶۴، رقم: ۳۹۴۳، وابن ماجه ۱\ ۶۳۳، رقم: ۱۹۷۱، والدارمي ۲\ ۱۹۳، رقم: ۲۲۰۷.

**تشريح**: د دعاء مطلب دادی چي خپلو ښځو ته د ورتللو او د هغوی د نفقې برابرولو زه مالک يم نو په دغه شيانو كي عدل او انصاف كول زما ذمه داري ده چي زه يې پوره كړم او د يوې ښځي سره نا انصافي او د هغې حق تلف نه كړم مګر د ميني او محبت معامله د زړه سره وي چي پر هغه باندي زما اختيار نه سته زه په هغه كي برابري نه سم كولای ځكه كه چيري د يوې بي بي سره زما زيات مينه او د بلي سره كمي مينه وي نو په دې كي به زما د مقصد او ارادې دخل نه وي او زما څخه مؤاخذه مه كوې .

د حديث شريف څخه معلومه سوه چي د چا تر يوې زياتي ښځي وي نو پر هغه دا لازم دي چي د هغه ښځو سره په شپه تېرولو او نفقي وركولو كي د عدل او انصاف څخه كار واخلي او په دغه شيانو كي د هغوی په مينځ كي داسي مساوات وكړي چي يوې ښځي ته هم د فرق شكايت نه وي مګر د ميني، محبت، مباشرت او جماع په باره كي عدل او برابري لازم نه ده ځكه چي دغه شيان د زړه او طبيعت سره متعلق دي چي پر هغه باندي د هيڅ انسان اختيار نه وي .

### د ښځو په منځ کي پر انصاف نه کولو وعيد

﴿۳۰۹۹﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا كَانَ عِنْدَ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د چا چي دوې ښځي وي

الرَّجُلِ امْرَأَتَانِ فَلَمْ يَعْدِلْ بَيْنَهُمَا جَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَشِقُّهُ سَاقِطٌ . رواه الترمذي و ابوداؤد والنسائي وابن ماجة والدارمي .

او د هغوی په مينځ کي عدل او انصاف ونه کړي نو د قيامت په ورځ به هغه داسي راځي چي نيم بدن به يې غورځېدلي وي . (ترمذي ابوداؤد نسائي ابن ماجه دارمي)

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\ ۴۴۷، رقم: ۱۱۴۱، وابوداود ۲\ ۶۰۰، رقم: ۲۱۳۳، والنسائي ۷\ ۶۳، رقم: ۳۹۴۲، وابن ماجه ۱\ ۶۳۳، رقم: ۱۹۶۹، والدارمي ۲\ ۱۹۳، رقم: ۲۲۰۶.

**تشريح**: د چا چي ډيري ښځي وي که دوې وي يا درې او يا څلور وي او هغه د دوی په مينځ کي عدل او انصاف نه کوي نو د هغه پر دغه بې انصافۍ باندي ذکر سوې سزا بيان سوې ده ، نو په وار ورکولو کي برابري کول په دې اعتبار واجب دي چي د شپې څومره برخه د يوې ښځي سره تېروي هغومره برخه به د بلي سره هم تېروي مثلاً که چيري يوې ښځي ته د ماښام څخه وروسته ورځي نو بلي ته به هم د ماښام څخه وروسته ورځي که چيري هغې ته د ماخستن څخه وروسته ورځي نو دا به د عدل او انصاف خلاف کار دی مګر د صحبت په باره کي برابري کول واجب نه دي ، دلته دا خبره هم په ذهن کي ساتل پکار دي چي په دغه حکم کي باکره، ثيبه، نوې، زړه، مسلمانه، کتابيه او ټولي ښځي برابري دي او د ټولو حقوق يو ډول دی البته د ازادي ښځي په نسبت د مينځي، مکاتبې، مدبره او ام ولد لپاره نيم وار دی يعني که چيري د يو سړي په نکاح کي يوه ازاده ښځه وي او يوه مينزه وي نو د مينزي سره به يوه شپه تېروي او د ازادي ښځي سره دوې شپې تېروي د مينزي لپاره وار تاکل واجب نه دي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د نبي کريم ﷺ په نهه بي بيانو کي د يوې وار ټاکلی نه وو

﴿۳۱۰۰﴾: عَنْ عَطَاءٍ قَالَ حَضَرْنَا مَعَ ابْنِ عَبَّاسٍ جَنَازَةَ مَيْمُونَةَ بِسَرِفَ

د حضرت عطاء رضي الله عنه څخه روايت دی چي موږ د ابن عباس رضي الله عنه سره په سَرَف په ځای کي د بي بي ميموني رضي الله عنها په جنازه کي شريک سو

فَقَالَ هَذِهِ زَوْجَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِذَا رَفَعْتُمْ نَعْشَهَا فَلَا تُزَعْزِعُوهَا

ابن عباس رضي الله عنه وويل چي دا د رسول الله ﷺ د بي بي جنازه ده کله چي دا پورته کړئ نو زيات

وَلَا تُزَلْزِلُوهَا وَارْفُقُوا بِهَا فَإِنَّهُ كَانَ عِنْدَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حرکت مه ورکوئ او کرار ځئ د رسول الله ﷺ په نکاح کي نهه بيبياني وې نبي کريم ﷺ په

تِسْعُ نسوة كَانَ يَقْسِمُ منهن لِثَمَانٍ وَلَا يَقْسِمُ لِوَاحِدَةٍ قَالَ عَطَاءٌ الَّتِي كَان

هغوی کي د اتو لپاره وار مقرر کړی وو او د يوې بي بي واري نه وو حضرت عطاء رضي الله عنه فرمايي

رسول الله صلى الله عليه وسلم لا يقسم لها بلغنا أنها صفية و كَانَتْ آخِرَهُنَّ

چي د کومي بي بي چي واري مقرر نه وو موږ ته معلومه سوې ده چي هغه بي بي صفيه رض وه چي هغه د نبي کريم ﷺ په بيبيانو کي تر ټولو په اخير کي په نکاح سوې وه

مَوْتًا مَاتَتْ بِالْمَدِينَةِ . متفق عليه، وَقَالَ رَزِينٌ قَالَ غَيْرُ عَطَاءٍ هِيَ سَوْدَةُ

او په مدينه کي وفات سوه . (بخاري او مسلم) د رزين بيان دی چي هغه بي بي چي د هغې واري مقرر نه وو هغه بي بي سوده رضي الله عنها وه

وَهُوَ أَصَحُّ وَهَبَتْ يَوْمَهَا لِعَائِشَةَ حِينَ أَرَادَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

کوم وخت چي رسول الله ﷺ هغې ته د طلاق ورکولو اراده وکړه نو هغې خپله ورځ و بي بي عائشې رضي الله عنها ته ورکړه

طَلَاقَهَا فَقَالَتْ لَهُ : اَمْسِكْنِي قَدْ وَهَبْتُ يَوْمِي لِعَائِشَةَ لَعَلِّي أَكُونُ مِنْ نِسَائِكَ فِي الْجَنَّةِ .

او دا د هغې الفاظ دي ((تاسو ما په خپله نکاح کي و ساتئ زه خپله ورځ بي بي عائشې رض ته ورکوم د دې لپاره چي په جنت کي ستاسو د بيبيانو سره شامله سم)) .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\۱۱۲۱، رقم: ۵۰۶۷، ومسلم ۲\۱۰۸۶، رقم: ۵۱- ۱۴۶۵.

**تشريح**: بي بي ميمونه رضي الله عنها د رسول الله ﷺ زوجه مباركه وه او د حضرت ابن عباس رضي الله عنه خاله وه ، د هغې د پلار نوم حارث او د مور نوم يې هنده وو او خپله ددې نوم بره وو مگر رسول الله ﷺ دهغې نوم ميمونه كښېښودى، دا مخكې د مسعود ابن عمر په نكاح كې وه او د رسول الله ﷺ سره يې د هجرت په شپږم كال د ذي قعده په مياشت كې د سرف په ځاى كې چې د مكې مكرمې څخه پر اته مېله فاصله باندې واقع دى د هغې نكاح وسوه ، دلته د واده شپه تېره سوه او اتفاقي خبره داده چې په دغه ځاى كې ددې وفات هم وسو او دلته دفن سوه .

د كومې بي بي مباركې لپاره چې وارنه وو تاكل سوى هغه بي بي صفيه رضي الله عنها وه او يا بي بي سوده رضي الله عنها ، په دې باره كې په ظاهره دوه متضاد روايتونه دي مگر تحقيقي خبره داده چې هغه بي بي سوده رضي الله عنها وه ، بلكه خطابي رحمة الله عليه د عطاء دغه قول چې هغه بي بي صفيه وه په دې باره كې دا ويلي دي چې دا د يو راوي غلطي ده يعني عطاء خو دلته د بي بي سوده ويلي دي مگر د يو راوي په غلطۍ سره بي بي صفيه نقل سوي دي .

وكانت اخرهن موتا ماتت بالمدينة: او د رسول الله ﷺ په بيبيانو كې بي بي صفيه رضي الله عنها تر ټولو په آخر كې په مدينه منوره كې وفات سوې ده، ددې تر وضاحت كولو مخكې په دې پوه سئ چې د رسول الله ﷺ په بيبيانو مباركانو كومه بي بي كله وفات سوې ده ، صاحب د مواهب ليكلي دي چې بي بي صفيه د هجرت په پنځوسم كال د رمضان په مياشت كې وفات سوې ده او ځيني علماء وايي چې د حضرت معاويه رضي الله عنه په زمانه كې په دوپنځوسم ياپنځه پنځوسم هجري كال كې وفات سوې ده او په بقيع كې دفن سوې ده ، بي بي ميمونه رضي الله عنها په ۵۱ هجري كال كې وفات سوه او د ځينو علماؤ د قول سره سم په ۶۶ هجري يا ۶۳ هجري كال كې وفات سوې ده حال دا چې ځيني علماء وايي چې په ۵۸ هجري كال كې وفات سوې ده ، بي بي سوده په ۵۴ هجري كال كې او بي بي حفصه په ۵۰ هجري كال كې وفات سوې ده او د ځينو علماؤ قول دادى چې په ۴۱ هجري كال كې وفات سوې دي، بي بي سلمه په ۵۹ هجري كال ، بي بي ام حبيبه په ۴۴ يا د ځينو علماؤ د قول سره سم په ۴۳ هجري كال كې، بي بي زينب بنت حجش په ۳۰ هجري كال يا د ځينو علماؤ د قول سره سم په ۲۱ هجري كال كې او بي بي جويره په ۵۰ هجري كال كې وفات سوې ده ، بي بي خديجه رضي الله عنها د هجرت څخه مخكې په مكه مكرمه كې وفات سوې ده او بي بي زينب بنت خزيمه هم د رسول الله ﷺ د وفات څخه مخكې وفات سوې ده.

کله چي دغه تفصيل ته وکتل سي نو معلوميږي چي دا ويل چي بي بي صفيه رضي الله عنها تر ټولو په آخر کي په مدينه منوره کي وفات سوې ده صحيح نه دی او که چيري لفظ د کانت د ضمير مرجع بي بي ميمونه وګرځول سي نو هم خبره نه صحيح کيږئ ځکه چي د ځينو علماؤ د قول سره سم د بي بي ميمونې د وفات کال ۶۶ هجري يا ۶۳ هجري کال صحيح ګڼل کيږي نو په بيبيانو مبارکانو کي تر ټولو په اخر کي وفات کېدل خو به ثابت سي مګر دا خبره خپله ددې عبارت د مخکني جملې (ماتت بالمدينة) يعني هغه په مدينه کي وفات سوې ده مطابق نه وي ځکه چي په دې باره کي حديث وضاحت کړی دی چي هغه په صرف نامي ځای کي وفات سوې ده نو ددغه عبارت صحيح مفهوم متعين کول ډېر مشکل دی ، الله تعالی ښه پوهيږي چي په دغه عبارت کي کوم مفهوم پټ دی او ددې صحيح مطلب څه شي دی.

===========

# بَابُ عِشْرَةِ النِّسَاءِ وَمَا لِكُلِّ وَاحِدَةٍ مِّنَ الْحُقُوْقِ

## (د ښځو د حقوقو بيان)

په دغه باب کي هغه حديثونه نقل کيږي چي د ښځو سره د صحبت او اختلاط او ښه چلن او دهري ښځي د حقوقو په باره کي منقول دي ، په عنوان کي د هري ښځئ د حقوق ويلو پر ځای د ښځو حقوق ويل په ظاهره مناسب دي مګر په دې کي نکته داده چي دلته د ښځو جنس مراد نه دی بلکه د ښځو اقسام مراد دي يعني د کومو ښځو سره چي نکاح کيږي هغه پر څو ډوله وي ځيني باکره (پيغلي) وي ځيني ثيبه (کونډه) وي او ځيني خوش اخلاقه وي او ځيني بد اخلاقه وي همدارنګه ځيني ښځي شتمني وي او ځيني غريباني وي او داسي نور...
دلته د ښځو اقسام مراد وه ځکه نو په عنوان کي د هري ښځي حقوق وويل سول.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ　(لومړی فصل)

### د ښځي کوروالی په بده لهجه نه سي سميدلای

﴿۳۱۰۱﴾ : عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَوْصُوا

د حضرت ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د ښځو سره نيکي کوئ

بِالنِّسَاءِ خَيْرًا فَإِنَّهُنَّ خُلِقْنَ مِنْ ضِلَعٍ وَإِنَّ أَعْوَجَ شَيْءٍ فِي الضِّلَعِ أَعْلَاهُ فَإِنْ

(نرمي) ځکه چي دوی د کږې پوښتۍ څخه پیدا سوی دي چي کوږ شی دی او په پوښتۍ کي تر ټولو زیات کوږ پورته برخه ده که تاسو د هغې د سیده کولو کوښښ کوئ نو پوښتۍ به ماته

ذَهَبْتَ تُقِيمُهُ كَسَرْتَهُ وَإِنْ تَرَكْتَهُ لَمْ يَزَلْ أَعْوَجَ فَاسْتَوْصُوا بِالنِّسَاءِ. متفق عليه

سي او که يې په خپل حال پرېږدئ نو د هغې کوږ والي به ليري نسي نو زما وصيت قبول کړئ د ښځو سره د ښه کولو په باره کي. (بخاري او مسلم).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\۲۵۳، رقم: ۵۱۸۶، ومسلم ۲\۱۰۹۱، رقم: ۶۰ – ۱۴۶۸

**تشريح** په دغه حديث شريف کي د ښځي د خلقت او طبيعت په باره کي دوې بنيادي نکتې بيان سوي دي اول دا چي د ښځو اصل او بنياد بي بي حواء ده (چي زموږ د ټولو انسانانو مور ده) چي د حضرت آدم عليه السلام د لوري پوښتۍ څخه پيدا سوې ده چي ډېره زياته کږه وي، نو د ښځو په اصل خلقت کي کوږوالی دی چي څوک يې سمولای نه سي، دوهم دا چي څرنګه چي د پښتۍ حال دی که يو څوک د هغه سيده کول وغواړي نو نه سيده کيږي بلکه ماتيږي او که چيري يو څوک دا پر خپل حال پرېږدي نو همېشه به کږه وي بالکل همدارنګه د ښځو حال دی چي د هغوی اصل خلقت د اعمالو او اخلاقو کوږوالی دی ځکه که يو سړی وغواړي چي د هغوی دغه کوږوالی سم کړي نو په دې کي به کامياب نه سي بلکه هغه به ماته کړي (د ماتولو څخه مراد طلاق ورکول دي لکه څرنګه چي د راتلونکي حديث څخه معلوميږي) نو د ښځو څخه ګټه اخيستل او د هغوی پر کار راتلل په هغه صورت کي ممکن دي چي د هغوی خلقي کوږوالي د ماتولو څخه وژغورل سي.

نو د حديث خلاصه دا سوه چي د ښځو د اصلاح او صحيح کېدو معامله ډېره پېچيده او نازکه ده د هغوی پر غلطۍ او کوتاهي باندي د سختۍ او غضب پر ځای په يخ زړه سره فکر کول پکار دي او د دغه بنيادي نکتې لحاظ ساتل پکار دي چي د هغوی د کوږوالي د صحيح کولو لپاره که د سختۍ څخه کار واخيستل سي نو د هغه انجام به ماتول يعني د طلاق په صورت کي ظاهر سي او يوازي د هغه ښځو د تباهۍ نه بلکه د خپل ژوند لپاره به هم د تاوان او اضطراب باعث وي ځکه د خپلو ښځو سره ښه چلن کوئ او د هغوی پر کوږوالي باندي صبر کوئ او دا توقع مه کوئ چي هغوی به په ټولو خبرو کي ستاسو د رضا او خوښۍ سره سم عمل کوي مګر ددې دا مطلب هم نه دی چي هغه کوږوالي دي د ورځني کورني ژوند او ټولنيزو کارو څخه په تېرېدو د ګناه او معصيت حد ته ورسيږي بلکه د هغوی پر کوږوالي باندي صبر کول او د هغه

څخه سترګي پټول هغه وخت مناسب دي تر څو چي يو ګناه لازمه نه سي که چيري ګناه لازمه سي نو بيا غفلت کول او سترګي پټول بالکل مناسب نه دي .

﴿۳۱۰۲﴾ : وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الْمَرْأَةَ خُلِقَتْ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : چي ښځه د پوښتۍ څخه

مِنْ ضِلَعٍ لَنْ تَسْتَقِيمَ لَكَ عَلَى طَرِيقَةٍ فَإِنْ اسْتَمْتَعْتَ بِهَا اسْتَمْتَعْتَ بِهَا

پيدا سوې ده هغه هيڅکله ستا لپاره په يوه سيده حالت کي نسي پاته کېدای که ته د هغې څخه فائده پورته کول غواړې نو په دغه حالت کي ور څخه فائده حاصله کړه

وَبِهَا عِوَجٌ وَإِنْ ذَهَبْتَ تُقِيمُهَا كَسَرْتَهَا وَكَسْرُهَا طَلَاقُهَا . رواه مسلم .

او که يې ته سيده کول غواړې نو ماته به يې کړې او د هغې ماتول طلاق ورکول دي . (مسلم) .

**تخريج** : مسلم في الصحيح ۲\۱۰۹۱، رقم: ۵۹- ۱۴۶۸.

**تشريح** : هيڅکله به سيده نه سي پاته کېدای : ددې مطلب دادی که چيري ته وغواړې چي يو ښځه پر خپل حالت باندي همېشه قائمه وي نو دا ناممکن نه ده ځکه چي د هغې په خلقت کي کوږوالی دی د هغه حالت بدلېږي کله د شکر د لاري په پرېښودو سره ناشکري اختيار کړي او کله د فرمانبرداری پر لاره په تلو کي د نافرمانۍ لار اختيار کړي چي د قناعت په لاس ورکولو سره د طمع او حرص په جال کي وموښلي ، مقصد دا چي همدارنګه د هغې د مزاج او عمل نوري تبديلۍ دي .

### د ښځو سره ښه چلن کوئ

﴿۳۱۰۳﴾ : وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَفْرَكُ مُؤْمِنٌ مُؤْمِنَةً إِنْ كَرِهَ مِنْهَا خُلُقًا رَضِيَ مِنْهَا آخَرَ . رواه مسلم .

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هيڅکله دي يو مسلمان د يوې مسلماني ښځي سره بغض او عناد نه کوي ځکه چي يو عادت که خراب وي نو بل عادت يې ښه دی .(مسلم) .

**تخريج** : مسلم في الصحيح ۲\۱۰۹۱، رقم: ۶۱- ۱۴۶۹.

**تشريح** د حديث د آخري برخي مطلب دادی چي د يو انسان ټول افعالو او خاصيتونه خراب نه وي که چيري د هغه يو څه کارونه او خصلتونه خراب وي نو ځيني ښه عادتونه هم لري نو هر مسلمان بايد د خپل ښځي پر هغه کارو او اخلاقو نظر ولري کوم چي د هغه په نظر کي غوره دي او کوم کارونه او اخلاق چي خراب دي پر هغه دي صبر کوي، يا ددغه ارشاد مقصد دد ترغيب ورکول دي چي د ښځو سره ښه چلن کوئ د هغوی سره په يو ځای والي کي د خوشحالي او مسرت ژوند تيروئ او که چيري د هغوی له خوا يو داسي کوتاهي يا غلطي وسي يا په هغوی کي يو داسي خراب عادت وي چي د هغه څخه تکليف رسيږي نو پر هغه باندي صبر کوئ.

دغه حديث شريف يو لوی نکتې ته اشاره کوي چي بې عيبه يار او د خپل طبيعت سره سم ملګری په لاس نه راځي که چيري يو سړی بې عيبه يار لټول شروع کړي نو هغه به همېشه بې ياره پاته سي ځکه چي داسي هيڅ انسان نه سته چي په هغه کي يو عيب او يو ناخوښه خبره نه وي، همدارنګه هيڅ انسان په خاصه توګه مسلمان د ښه خصلتو او عادتو څخه بالکل خالي نه وي نو عقل غوښتنه داده چي د هغه ښه خصلتونه په نظر کي ولري او د خرابو عادتو څخه يې سترګې پټې کړي.

## کورنوالی هري ښځي ته په ميراث کي تر لاسه دی

﴿۳۱۰۴﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْلَا بَنُو إِسْرَائِيلَ لَمْ يَخْنَزْ اللَّحْمُ وَلَوْلَا حَوَّاءُ لَمْ تَخُنْ أُنْثَى زَوْجَهَا الدَّهْرَ. متفق عليه.

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: که بني اسرائيل نه وای نو غوښه به نه خرابېدلای او که بي بي حوا نه وای نو ښځي به د خپل خاوند سره هيڅکله خيانت نه کولای (بني اسرائيل د شيانو د جمعه کېدو څخه منعه سوي وه حکم يوازي داوو چي د ضرورت موافق به يې شيان اخيستل او خوړل به يې دا چي دوی د دې حکم نافرماني وکړه او خدای ﷻ هغوی ته د دې سزا ورکړه چي کوم شی به هغوی ساتئ هغه به خرابيدئ). (بخاري او مسلم).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ٦\ ٤٣٠، رقم: ٣٣٩٩، ومسلم ٢\ ١٠٩٢، رقم: ٦٣– ١٤٧٠.

**د لغاتو حل**: لم يخنز: اى تغير وانتن، يشير الى ان خنز اللحم شئ عوقب به بنو اسرائيل.

**تشريح** د حضرت موسی علیه السلام په وخت کي د بني اسرائيلو لپاره په ځنګل کي د الله تعالی له خوا د من او سلوا نعمت نازليدی او هغوی ته دا حکم وو چي هغوی ته څومره اړتيا وي هغومره

دي دي اخلي د ضرورت څخه زيات دي نه ذخيره كوي مگر بني اسرائيلو پر ځاى ددې چي د خپل كم فطرتى او د الله تعالى د نافرمانى څخه منع سي په دغه وخت كي د الله تعالى د حكم نافرماني وكړه او د هغه څخه نعمت څخه يې د خپل اړتيا څخه زيات ذخيره كول شروع كړل مگر داسي وسول چي كله به هغوى ذخيره كول نو هغه غوښه به خرابه سوه د غوښو دغه خرابېدل د هغوى د بد كار يعني پر الله تعالى باندي د باور نه كولو او محض د حرص او طمع په وجه د ذخيره كولو د سزا په توګه وو، ددې څخه وروسته د همېشه لپاره د غوښو خرابېدل لازم وګرځېدل، په دې باره كي رسول الله ﷺ وفرمايل كه چيري بني اسرائيل په دغه خراب عادت كي اخته نه واى او هغوى ته سزا نه واى وركړل سوې نو غوښه به نه خرابېدل بلكه تر څو چي خلكو غوښتلاى هغه به يې د خپل ضرورت سره سم ساتلاى.

دلته د خيانت څخه مراد د امانت ضد معنى مراد نه ده بلكه د خيانت څخه كوږوالي مراد دى، د بي بي حواء كوږوالى داوو چي هغې حضرت آدم عليه السلام ته د جنت د هغه درختي خوړلو ترغيب وركړ د كوم څخه چي الله تعالى منع كړې وه، رسول الله ﷺ وفرمايل كومه بې لاري چي د بي بي حواء څخه سوې ده هغه د هري ښځي جز ګرځول سوى دى، كه چيري بي بي حواء دغه بې لاري نه واى كړې نو په هيڅ ښځه كي به د بې لارى تخم نه واى او هغې به د خپل خاوند سره هيڅكله د بې لارى چلن نه كولاى.

## د ښځي دوهلو منع

﴿۳۱۰۵﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ زَمْعَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن زمعه رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

لَا يَجْلِدُ أَحَدُكُمُ امْرَأَتَهُ جَلْدَ الْعَبْدِ ثُمَّ يُجَامِعُهَا فِي آخِرِ الْيَوْمِ و في رواية

په تاسو كي دي څوك خپله ښځه داسي نه وهي څنګه چي (په بې دردي سره) غلام وهي او بيا دي د ورځي په اخيري برخه د هغې سره كوروالي وكړي (يعني دا مناسبه نه ده چي هغې ته وهل هم وركړي او بيا په هغه ورځ ورسره جماع هم وكړي) او په يو بل روايت كي دي

يَعْمَدُ اَحَدُكُمْ فَيَجْلِدُ اِمْرَاَتَه جَلْدَ الْعَبْدِ فَلَعَلَّهُ يُضَاجِعُهَا فِيْ اٰخِرِ يَوْمِهٖ ثُمَّ

په تاسو كي چي يو سړى اراده وكړي او خپله ښځه ووهي داسي لكه څنګه چي غلام وهي او شايد هغه په هغه ورځ د هغې سره هم بستر هم سي (دا مناسبه نه ده) بيا

وَعَظَهُمْ فِي ضَحِكِهِمْ مِنَ الضَّرْطَةِ فَقَالَ لِمَ يَضْحَكُ أَحَدُكُمْ مِمَّا يَفْعَلُ.

متفق عليه.

نبي كريم ﷺ د باد د خارجېدو (ګوز) پسې خندېدونکي ته په نصيحت کولو سره وفرمايل: په تاسو کي يو سړی په داسي خبره باندي ولي خاندي چي هغه په خپله هم دا کار کوي. بخاري او مسلم

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۸\۷۰۵، رقم: ۴۹۴۲، ومسلم في الموضع السابق.

**تشريح**: او بيا د ورځي په آخري برخه کي د هغې سره جماع کوي: ددې په ذريعه رسول الله ﷺ يوه لويه نفسياني نکته بيان کړل چي کوم څوک د خپل ښځي څخه جنسي خوند تر لاسه کوي د هغه لپاره دا خبره څرنګه مناسب کيدای سي چي يوې خوا ته د هغې سره داسي بې کيفه معامله کوي او بلي خوا ته د هغې سره دومره وحشيانه چلن وکړي، که څه هم د خپلي ښځي پرله پسې نافرماني او سرکښي باندي د وهلو اجازه ده مګر داسي نه ده چي د غلامانو په ډول هغه ووهل سي، دا يوازي يو غير شرعي کار نه دی بلکه يو غير انساني او غير اخلاقي کار هم دی، ددې څخه معلومه سوه چي د خپل ښځي سره مينه، اتفاق او ښه چلن کول پکار دي.

د حديث د آخري خبرو مطلب دادی چي د انسان پر يو داسي عجيبه خبره باندي خندل خو ښه خبره ده مګر کله چي يو شی په خپل ځان کي موجود وي او بيا هغه د بل چا څخه وسي نو پر هغه باندي د خندا څه خبره ده، ددې څخه معلومه سوه که د يو سړي باد پرې سي نو د هغه څخه دي ځان ناخبره وښيي تر څو هغه سړی شرمنده نه سي.

دلته يوه عبرتناکه واقعه د بيانولو وړ ده چي يو ډېر لوی عالم تېر سوی دی چي نوم يې عاصم وو، هغه کوڼ وو مګر هغه د دنيا په نظر کي خپل ځان کوڼ کړی وو، ددې تفصيل دادی چي يوه ورځ يوه ښځه د مسئلې پوښتلو لپاره هغه ته راغلې وه، په دغه دوران کي د هغې باد خارج سو، عاصم فکر وکړ چي دا ښځه ده اوس به ډېره شرمندګي محسوس کړي نو د هغې د شرمندګۍ ليري کولو لپاره هغه وويل لږ په زوره خبري کوي ته څه وايې؟ يعني هغه دا ظاهره کړه چي زه کوڼ يم په لوړ آواز سره خبري اورم، هغه ښځه ډېره خوشحاله سوه او شرمندګي يې ليري سوه مګر عاصم د خپل دغه خبري ظاهرولو لپاره خپل ځان د همېشه لپاره کوڼ کړی.

علامه طيبي رحمة الله عليه وايي چي په دغه حديث کي دا تنبيه پټه ده چي هر عقلمند انسان کله د بل مسلمان ورور د عيب ويلو اراده وکړي نو په خپل زړه کي دي فکر وکړي چي دغه عيب يا دا

ډول بل عيب په ما کي هم موجود دی که یا؟ که هغه خپل ځان د یو عیب څخه خالي پيدا نه کړي نو د هغه لپاره د هغه مسلمان ورور د عيب ويلو پر ځای دا غوره دي چي د خپل ځان د عيب پر پاکولو باندي توجه وکړي ، يو هوښيار سړي څومره ښه ويلي دي چي زه اکثر خلک وينم چي هغوی د نورو عيبونو ته ګوري مګر خپله په هغوی کي چي کوم عيب وي د هغه څخه ړانده وي.

## د خپلي ښځي سره ښه چلن کوئ

﴿۳۱۰۶﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ كُنْتُ أَلْعَبُ بِالْبَنَاتِ عِنْدَ النَّبِيِّ

د بي بي عائشي ﷺ څخه روايت دی چي ما به د رسول الله ﷺ کره (په ګوډيانو سره) لوبي کولې

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانَ لِي صَوَاحِبُ يَلْعَبْنَ مَعِي فَكَانَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ إِذَا

او زما همځولو به هم زما سره لوبي کولې بيا چي نبي کريم ﷺ به راغلی نو زما همزولي به د

دَخَلَ يَتَقَمَّعْنَ مِنْهُ فَيُسَرِّبُهُنَّ إِلَيَّ فَيَلْعَبْنَ مَعِي . متفق عليه.

شرم په وجه پټي سوې نو نبي کريم ﷺ به هغوی وما ته را لېږلې او هغوی به زما سره لوبي کولې . (بخاري او مسلم).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ١٠\٥٢٦، رقم: ٦١٣٠، ومسلم ٤\١٨٩٠، رقم: ٨١- ٢٤٤٠.

**د لغاتو حل**: يَنقَمِعن: ای يتغيين، ويستترن حياء . فيسربهن: ای يرسلهن الی سربا سربا.

**تشريح**: په دغه حديث شريف کي ددې خبري بيان دی چي د خپل ښځي سره په خندا او خوشحالي اوسيدل د هغې د جائز جذباتو او شوق لحاظ ساتل د خوشحاله ژوند يو دروازه ده چي د هغه څخه پرته هيڅ انسان ته خوشحالي او اطمينان نه په برخه کيږي، په ناوکيو باندي د بازۍ کولو حکم او تفصيل د باب الولي په بحث کي تېر سوی دی .

﴿۳۱۰۷﴾:وَعَنْهَا قَالَتْ وَاللّٰهِ لَقَدْ رَأَيْتُ النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُومُ عَلَى

د بي بي عائشي ﷺ څخه روايت دی چي ما نبي کريم ﷺ وليدی او ښه مي په ياد دي چي هغه

بَابِ حُجْرَتِي وَالْحَبَشَةُ يَلْعَبُونَ بالحراب فِي الْمَسْجِدِ و رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

زما دحجرې د دروازې سره ولاړ دی او د حبشي خلکو په يوه مسجد کي په نېزو سره لوبي کولې (جنګي مشق به يې کوئ) او نبي کريم ﷺ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتُرُنِي بِرِدَائِهِ لِأَنْظُر إِلَى لَعِبِهِمْ بين اذنه وعاتقه ثُمَّ يَقُومُ

په خپل پټو سره پرده وکړه د دې لپاره چې زه هم د هغوی لوبه ووينم نو زه د نبي کريم ﷺ تر شا ودرېدم او د نبي کريم ﷺ د غوږ او اوږې په مينځ کې مې لوبه کتله نبي کريم ﷺ تر هغه وخت

مِنْ أَجْلِي حَتَّى أَكُونَ أَنَا الَّتِي أَنْصَرِفُ فَاقْدِرُوا قَدْرَ الْجَارِيَةِ الْحَدِيثَةِ السِّنِّ الْحَرِيصَةِ عَلَى اللَّهْوِ. متفق عليه.

پورې زما په خاطر ولاړ وو تر څو پورې چې زه ولاړه وم د دې څخه اندازه ولګوئ چې د يوې کم عمره انجلۍ چې د لوبې د تماشې (ليدني) شوق يې در لودې تر هغه وخته پورې نبي کريم ﷺ ور سره ولاړ وو. (بخاري او مسلم).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\۳۳٦، رقم: ۵۲۳٦، ومسلم ۲\٦۰۹، رقم: ۱۸- ۸۹۲

**تشريح**: د مسجد څخه مراد د مسجد غولى دى چې د مسجد سره پيوست يو پوټکى غونډي ځاى وو، يعني حبيشانو په مسجد کې خپل لوبه نه ښودل بلکه د مسجد سره پيوست په غولي کې يې د خپل لوبې څرګندونه کول، او که چيرې مسجد مراد واخيستل سي يعني دا وويل سي چې د هغوی لوبه په مسجد کې دننه وه نو په دې کې هم څه قباحت نه سته ځکه چې د هغوی د برچو لوبه ښوول د جهاد يو تمرين وو، نو د غشي وېشتلو په ډول د هغوی دغه لوبه هم د عبادت په ډول وه همدا رنګه د هغوی لوبه کول هم خوښه وه، په ظاهره دا معلومېږي چې دغه واقعه د پردې د واجب کېدو څخه مخکې ده.

## رسول الله ﷺ د عائشې ﷺ خوښي او ناخوښي څرنګه پېژندل؟

﴿۳۱۰۸﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ قَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّي لَأَعْلَمُ إِذَا

د بي بي عائشې ﷺ څخه روايت دى چې يوه ورځ رسول الله ﷺ وفرمايل: زه پوهېږم چې ته کله

كُنْتِ عَنِّي رَاضِيَةً وَإِذَا كُنْتِ عَلَيَّ غَضْبَى فَقُلْتُ مِنْ أَيْنَ تَعْرِفُ ذَلِكَ فَقَالَ إِذَا

زما څخه خوشحاله يې او کله زما څخه ناراضه يې ما عرض وکړ تاسو ته څنګه معلومه سي؟ نبي کريم ﷺ را ته وفرمايل: کله چې

كُنْتِ عَنِّي رَاضِيَةً فَإِنَّكِ تَقُولِينَ لَا وَرَبِّ مُحَمَّدٍ وَإِذَا كُنْتِ عَلَيَّ غَضْبَى قُلْتِ لَا

ته زما څخه خوشحاله او راضي يې نو داسي وايې د محمد ﷺ په پروردګار دي مي قسم وي دا خبره داسي نه ده او چي ناراضه يې نو داسي وايي چي

وَرَبِّ إِبْرَاهِيمَ قَالَتْ قُلْتُ أَجَلْ وَاللّٰهِ يَا رَسُولَ اللّٰهِ مَا أَهْجُرُ إِلَّا اسْمَكَ . متفق عليه.

د ابراهيم علیه السلام په پروردګار دي مي قسم وي دا خبره داسي نه ده بي بي عائشه رضي الله عنها وايي ما عرض وکړ يا رسول الله! دا خبره صحيح ده زه يوازي ستاسو نوم پرېږدم . (بخاري او مسلم) .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\۳۲۵، رقم: ۵۲۲۸، ومسلم ۴\۱۸۹۰، رقم: ۸۰- ۲۴۳۹

**تشريح**: مګر زه يوازي ستاسو نوم پرېږدم : ددې مطلب دادی چي د غصې په حالت کي زما عقل سلب سي که څه هم زه ستا نوم نه اخلم مګر زما په زړه کي ستا لپاره د ميني کوم درياب چي څپې وهي د هغه په څپو کي د ذرې په اندازه کمي هم نه کيږي بلکه زما زړه ستا په مينه کي مستغرق وي.

## ښځي ته د کوروالۍ څخه انکار کول نه دي پکار

﴿۳۱۰۹﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابوهريره رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

وَسَلَّمَ إِذَا دَعَا الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ إِلَى فِرَاشِهِ فَأَبَتْ فَبَاتَ غَضْبَانَ لَعَنَتْهَا

کله چي يو سړی خپله بي بي د کوروالي لپاره وبولي او هغه انکار وکړي او خاوند د هغې د انکاره څخه ټوله شپه په قهر وي نو تر سهاره پوري

الْمَلَائِكَةُ حَتّٰى تُصْبِحَ متفق عليه و في رواية لهما قَالَ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ مَا

روايت کي راغلي دي چي نبي کريم ﷺ وفرمايل : زما دي په هغه ذات باندي قسم وي چي زما ملائکې پر هغې ښځي باندي لعنت وايي . (بخاري او مسلم) او د بخاري او مسلم په دويم

مِنْ رَجُلٍ يَدْعُو امْرَأَتَهُ إِلَى فِرَاشِهِ فَتَأْبَى عَلَيْهِ إِلَّا كَانَ الَّذِي فِي السَّمَاءِ سَاخِطًا عَلَيْهَا حَتّٰى يَرْضَى عَنْهَا .

روح د هغه په لاس کي ده څوک چي خپله ښځه د خوب ځاي ته وبولي (يعني د کوروالي لپاره)

او هغه انکار وکړي نو هغه ذات چې په اسمان کې دي (الله جل جلاله) تر هغه وخته ځيني ناراضه دی تر څو يې چې خاوند ناراضه وي.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ٦\ ٣١٤، رقم: ٣٢٣٧، ومسلم ٢\ ١٠٦٠، رقم: ١٢٢- ١٤٣٦

**تشريح**: دا وعيد په هغه صورت کې دی کله چې يو ښځه د يو شرعي عذر نه کېدو په وجه د خاوند بسترې ته د ورتللو څخه انکار وکړي، ځيني حضرات وايي چې حيض يو داسي عذر نه دی چې د هغه په موجودتيا کې ښځي ته د خاوند بسترې ته د ورتللو څخه د انکار حق وي ځکه چې د جمهورو علماؤ په نزد خاوند ته په دغه حالت کې هم د جامو سربېره د خوند اخيستلو يعني د بدن سره يو ځای کېدلو، مچه اخيستلو او داسي نور جائز دي او د ځينو علماؤ په نزد د شرمگاه څخه پرته د ټول بدن څخه خوند اخيستل جائز دي.

تر سهار پوري: د غالب گمان په اعتبار دا فرمايل سوي دي يعني اکثر د غه صورت په شپه کې پېښيږي ځکه تر سهار پوري ذکر سوي دي که چيري د خاوند له خوا خواهش او د ښځي له خوا انکار د ورځي وو او د هغه په وجه خاوند ټوله ورځ ناراضه وي نو ملائکي تر مابنام پوري هغه ښځه لعنت وايي.

هغه چې په آسمان کې دي: ددې مطلب دادی چې هغه ذات چې د هغه حکم په آسمانو کې جاري دی يا هغه ذات چې د هغه په آسمانو کې عبادت کيږي او ددې څخه مراد د الله تعالی ذات دی، الله تعالی د ځمکي او د ځمکي د ټول مخلوق معبود هم دی او د آسمان د ټول مخلوق معبود هم دی لکه چې الله تعالی فرمايي: وهو الذي في السماء اله وفي الارض اله: او هغه (الله تعالی) هغه ذات دی چې په آسمان کې هم معبود دی او په ځمکه کې هم معبود دی.

مگر په حديث شريف کې يوازي د آسمان معبود ځکه ويل سوي دي چې د ځمکي په نسبت آسمان زيات شرف لري او يوازي د آسمان ذکر د مقصد لپاره کافي دی او دا اهم احتمال دی چې د دغه جملې څخه ملائکي مراد وي.

ددغه حديث شريف څخه معلومه سوه چې د خاوند ناراضگي د الله تعالی د ناراضگۍ سبب دی او کله چې د جنسي جذباتو د پوره کولو لپاره د خاوند د ناراضگۍ دا ارزښت دی نو بيا په ديني معامله کې د خاوند د ناراضگۍ به څومره اهميت وي.

## ښځه دي د خپلي بني سره بد چلن نه کوي

﴿۳۱۱۰﴾: وَعَنْ أَسْمَاءَ أَنَّ امْرَأَةً قَالَتْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّ لِي ضَرَّةً فَهَلْ عَلَيَّ

جُنَاحٌ إِنْ تَشَبَّعْتُ مِنْ زَوْجِي غَيْرَ الَّذِي يُعْطِينِي الْمُتَشَبِّعُ بِمَا لَمْ يُعْطَ كَلَابِسِ ثَوْبَيْ زُورٍ. متفق عليه

د بي بي اسماء ﷺ څخه روايت دی يوې ښځي رسول الله ﷺ ته عرض وکړ يا رسول الله!زما يوه بن ده که زه د هغې په مخکي د داسي شيانو ذکر وکړم چي زما خاوند ماته نه وي راکړي نو ايا دا کار ګناه لري ؟ نبي کريم ﷺ وفرمايل : د نه ورکول سوي شی اظهار داسي دی لکه چا چي د دوکې لباس اغوستي وي (يعني دا سي لباس چي په حقيقت کي يوه جامه وي مګر دوه تر سترګو کيږي څو مره ګناه چي دغه لري هغو مره ګناه د دې هم ده). (بخاري او مسلم).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\۳۱۷، رقم: ۵۲۱۹، ومسلم ۳\۱۶۸۱، رقم: ۱۲۷- ۲۱۳۰

**د لغاتو حل**: تشبعت: ای تزينت وتکثرت باکثر مما عندی واظهرت لخسرتي انه يعطيني اکثر مما يعطيها ادخالا للغيظ عليها وتحصيلا للضرر بها. (مرقاة)

**تشريح**: د دوو جامو څخه مراد څادر او لونګ دی ، او د درواغو د جامې اغوستونکي څخه هغه سړی مراد دی چي د يو چا څخه غوښتل سوي يا د چا امانت جامې واغوندي او دا ظاهره کړي چي هغه جامې د هغه دي، يا هغه سړی مراد دی چي د زاهدانو او بزرګانو لباس واغوندي حالنکه د هغه د زهد او بزرګۍ سره هيڅ نسبت نه وي ، ځيني علماء وايي چي په حديث کي د هغه سړي سره تشبيه ورکړل سوې ده چي داسي قميص يې اغوستی وي چي د هغه د لستوڼو لاندي دوه نور لستوڼي وي چي ليدونکي دا فکر وکړي چي هغه دوې جامې اغوستي دي او ځيني حضرات وايي چي په عربو کي يو سړی وو چي محض ددې لپاره به يې دوې جامې اغوستلې چي خلک هغه ته د عزت او احترام په نظر وګوري او که هغه په درواغو شاهدي ورکړي نو څوک د هغه شاهدي درواغ ونه ګڼي نو په حديث کي د هغه سړي سره تشبيه ورکړل سوې ده .

## د ايلاء مطلب

﴿۳۱۱۱﴾: وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ آلَی رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت انس ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ ايلاء وکړه

مِنْ نِسَائِهِ شهرا وَكَانَتْ انْفَكَّتْ رِجْلُهُ فَأَقَامَ فِي مَشْرُبَةٍ تِسْعًا وَعِشْرِينَ

د خپلو بيبيانو سره د يوې مياشتي (چي هغوی ته به نه ورځي) د نبي كريم ﷺ پښه له بنده ختلې وه او نبي كريم ﷺ تر نهه ويشت ورځو پوري په بالاخانه كي وو

لَيْلَةً ثُمَّ نَزَلَ فَقَالُوا يَا رَسُولَ اللهِ آلَيْتَ شَهْرًا فَقَالَ إِنَّ الشَّهْرَ يَكُونُ تِسْعًا وَعِشْرِينَ. رواه البخاري.

كله چي يې لاندي تشريف راوړ نو خلكو پوښتنه پر وكړه چي يا رسول الله! تاسو خو د يوې مياشتي ايلاء كړې وه او تر اوسه پوري نهه ويشت ورځي كيږي نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل: مياشت نهه ويشت ورځي هم وي. (بخاري).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\۳۰۰، رقم: ۵۲۰۱.

**د لغاتو حل**: آلي: اى حلف (قسم كول)

**تشريح**: د ايلاء لغوي معنى د قسم اخيستلو ده او د شريعت په اصطلاح كي ايلاء دې ته وايي چي يو سړی پر دې باندي قسم واخلي چي زه به څلور مياشتي يا ددې څخه زيات وخت پوري خپل ښځي ته نه ورځم يعني د هغې سره به جماع نه كوم، كه چيري قسم پوره سي يعني هغه سړی د خپل قسم سره سم تر څلور مياشتو پوري يا تر دې زيات وخت پوري خپل ښځي ته ورنه سي نو طلاق بائن واقع كيږي او كه چيري هغه قسم پوره نه كړي يعني د هغه وخت د پوره كېدو څخه مخكي خپل ښځي ته ورسي نو ايلاء ساقط كيږئ او كه چيري د يو سړي په نكاح كي د يو چا مينزه وي يعني كه چيري د هغه ښځه ازاده نه وي بلكه د يو چا مينزه وي او د هغې سره ايلاء وكړي نو د هغې كم او كم وخت د څلورو مياشتو پر ځای دوې مياشتي دي او كه چيري يو سړی د ازادي ښځي په حق كي د څلورو مياشتو څخه كم او د مينزي په حق كي د دوو مياشتو څخه د كم وخت لپاره قسم واخلي نو دغه ايلاء ته به شرعي ايلاء نه ويل كيږي، په حديث كي رسول الله ﷺ ته چي د كومي ايلاء نسبت سوی دی هغه شرعي ايلاء نه ده بلكه ايلاء لغوي ده يعني رسول الله ﷺ دا قسم اخيستی وو چي زه به خپلو بيبيانو ته تر يوې مياشتي پوري نه ورځم، د هغه سبب دا وو چي د رسول الله ﷺ بيبيانو د زياتي نفقې غوښتنه كړې وه په هغه سره رسول الله ﷺ ته سخته ناخوښي وسول او رسول الله ﷺ په قسم سره دا عهد وكړ چي زه به دغه بيبيانو ته تر يوې مياشتي پوري نه ورځم، په هغه ورځو كي دا پېښه رامنځته سوه چي رسول الله ﷺ د آس څخه راولويدی چي د هغه په وجه د رسول الله ﷺ په پښه مباركه كي برېښ راغلی، بيا رسول

الله ﷺ تر یوې میاشتې پورې په بالاخانه کې وو او لاندې نه راغلی مګر هغه میاشت غالبا د یو کم دیرش ورځو وه ځکه رسول الله ﷺ پر نهه ویشت ورځو باندې اکتفاء وکړه او لاندې راغلی.

**د رسول الله ﷺ د ایلاء واقعه**

﴿۳۱۱۲﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ دَخَلَ أَبُو بَكْرٍ يَسْتَأْذِنُ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دی چې حضرت ابو بکر رضی الله عنه تشریف راوړ او د رسول الله ﷺ په خدمت کې د حاضرېدو اجازه یې وغوښتل

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَجَدَ النَّاسَ جُلُوسًا بِبَابِهِ لَمْ يُؤْذَنْ لِأَحَدٍ مِنْهُمْ قَالَ فَأُذِنَ

هغه ولیدل چې په دروازه کې خلک سره ټول دي او هیچا ته د حاضرېدو اجازه ورنه کړل سوه

لِأَبِي بَكْرٍ فَدَخَلَ ثُمَّ أَقْبَلَ عُمَرُ فَاسْتَأْذَنَ فَأُذِنَ لَهُ فَوَجَدَ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ

یوازې ابو بکر صدیق رضی الله عنه ته اجازت ورکړل سو وروسته حضرت عمر رضی الله عنه راغلی او اجازه یې وغوښتل او هغه ته اجازت ورکړل سو ابو بکر رضی الله عنه ولیدل چې نبي کریم ﷺ تشریف فرما دی

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسًا حَوْلَهُ نِسَاؤُهُ وَاجِمًا سَاكِتًا قَالَ فَقَالَ لَأَقُولَنَّ شَيْئًا

او د نبي کریم ﷺ په خدمت کې بیبیانې شاوخوا ناستې وی نبي کریم ﷺ دغه وخت فکرمند او خاموش ناست وو د راوي بیان دی چې حضرت عمر رضی الله عنه په خپل زړه کې وویل چې زه به یوه

أُضْحِكُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ لَوْ رَأَيْتَ بِنْتَ خَارِجَةَ

داسې خبره وکړم چې نبي کریم ﷺ پرې وخاندې. اخیر حضرت عمر رضی الله عنه عرض وکړ یا رسول الله! که د خارجه لور (زما ښځه)

سَأَلَتْنِي النَّفَقَةَ فَقُمْتُ إِلَيْهَا فَوَجَأْتُ عُنُقَهَا فَضَحِكَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

زما څخه زیاته نفقه وغواړې نو زه به را ولاړ سم او د هغې څټ به وپیچم رسول الله ﷺ وخندل

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ هُنَّ حَوْلِي كَمَا تَرَى يَسْأَلْنَنِي النَّفَقَةَ فَقَامَ أَبُو بَكْرٍ إِلَى

او ویې فرمایل: دا بیبیګانې چې زما شاوخوا ناستې دي زما څخه زیات خرڅ غواړي په دې

او ربدو سره حضرت ابو بكر رضي الله عنه و دربدی او

عَائِشَةَ يَجَأُ عُنُقَهَا وَقَامَ عُمَرُ إِلَى حَفْصَةَ يَجَأُ عُنُقَهَا كِلَاهُمَا يَقُولُ تَسْأَلِين

بي بي عائشه رضي الله عنها يې تر ستوني ونيول او حضرت عمر رضي الله عنه ولاړ سو او خپله لور حفصه رضي الله عنها يې تر ستوني ونيول (ابو بكر رضي الله عنه او عمر رضي الله عنه) وويل: تاسو د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه هغه شی غواړي

رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا لَيْسَ عِنْدَهُ فَقُلْنَ وَاللَّهِ لَا نَسْأَلُ رَسُولَ

چي دده سره نسته د نبي كريم صلى الله عليه وسلم بيبيانو وويل: قسم په خداي چي موږ به د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه هيڅكله داسي شی نه غواړو

اللَّهِ صلى الله عليه وسلم شَيْئًا أَبَدًا لَيْسَ عِنْدَهُ ثُمَّ اعْتَزَلَهُنَّ شَهْرًا أَوْ تِسْعًا وَعِشْرِينَ ثُمَّ

چي د هغه سره نه وي د دې څخه وروسته نبي كريم صلى الله عليه وسلم د خپلو بيبيانو څخه جلاوالي اختيار كړ (يعني ايلاء يې وكړه) تر نويشت ورځو پوري بيا

نَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ { يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ قُلْ لِأَزْوَاجِكَ حَتَّى بَلَغَ لِلْمُحْسِنَاتِ مِنْكُنَّ

دا ايت نازل سو : ياايها النبي قل لازواجک.........تر للمحسنات منكن

أَجْرًا عَظِيمًا } قَالَ فَبَدَأَ بِعَائِشَةَ فَقَالَ يَا عَائِشَةُ إِنِّي أُرِيدُ أَنْ أَعْرِضَ عَلَيْكِ

اجرا عظيما . د دې ايت تر نازلېدو وروسته نبي كريم صلى الله عليه وسلم تر ټولو وړاندي بي بي عائشې رضي الله عنها ته ورغلی او هغې ته يې وفرمايل : اې عائشې ! زه وتاته يوه خبره وړاندي كوم

أَمْرًا أُحِبُّ أَنْ لَا تَعْجَلِي فِيهِ حَتَّى تَسْتَشِيرِي أَبَوَيْكِ قَالَتْ وَمَا هُوَ يَا رَسُولَ

او اميد لرم چي ته به (په فيصله كولو كي) په دې كار كي تلوار نه كوې او په دې معامله كي به د خپل پلار او مور سره مشوره كوې بي بي عائشې رضي الله عنها ورته وفرمايل يا رسول الله !

اللَّهِ فَتَلَا عَلَيْهَا الْآيَةَ قَالَتْ أَفِيكَ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَسْتَشِيرُ أَبَوَيَّ بَلْ أَخْتَارُ اللَّهَ

راته ووايه هغه څه خبره ده ؟ نبي كريم صلى الله عليه وسلم ورته دغه ايت ولوستی (چي د هغه په اوربدو سره) بي بي عائشې رضي الله عنها وويل : يا رسول الله! ايا ستا په هكله زه د خپل پلار او مور سره مشوره وكړم ما الله تعالي

وَرَسُولَهُ وَالدَّارَ الْآخِرَةَ وَأَسْأَلُكَ أَنْ لَا تُخْبِرَ امْرَأَةً مِنْ نِسَائِكَ بِالَّذِي قُلْتُ

او دهغه رسول الله ﷺ او د اخرت کور ته ترجیح ورکړېده او زه امید لرم چي په دې خبره چي ما

قَالَ لَا تَسْأَلُنِي امْرَأَةٌ مِنْهُنَّ إِلَّا أَخْبَرْتُهَا إِنَّ اللَّهَ لَمْ يَبْعَثْنِي مُعَنِّتًا وَلَا

تاسو ته عرض کړل تاسو د دې ذکر بلې بي بي ته مه کوئ نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل : هغه بیبیاني چي کومه یوه زما څخه پوښتنه وکړي زه به هغې ته هم وایم ځکه چي الله ﷻ زه د دې

مُتَعَنِّتًا وَلَكِنْ بَعَثَنِي مُعَلِّمًا مُيَسِّرًا . رواه مسلم .

لپاره نه یم را لېږلی چي چاته تکلیف ورسوم بلکه د دې لپاره یې را لېږلي یم چي د خداي تعالي و مخلوق ته د دین احکام ور وښودم او اساني وکړم . (مسلم) .

**تخریج**: مسلم في الصحیح ۲\۱۱۰۲، رقم: ۲۹\۱۴۷۸

**د لغاتو حل**: واجما : ای حزینا (غمجن). فوجات: ای ضربت (ما ووهل).

**تشریح**: حضرت عمر رضی الله عنه رسول الله ﷺ په داسي حال کي ولیدی ...الخ:د ددې څخه دا څرګندیږي چي دغه واقعه د پردې واجب کېدو څخه مخکي ده ځکه که چیري پرده واجب سوې وای نو نه به حضرت عمر رضی الله عنه بالاخانې ته د ښځو مخته ورتلی او نه به ښځي د هغوی مخته وای.

چي په هغه سره نبي کریم ﷺ وخندل : ددې څخه د حضرت عمر رضی الله عنه مقصد دا وو چي زه یو داسي په زړه پوري خبره وکړم چي په هغه سره د رسول الله ﷺ خفګان ختم سي او رسول الله ﷺ خوشحاله سي، ددې څخه معلومه سوه چي دا مستحب دي که چیري یو څوک خپل قریب او ملګري غمجن وویني نو د هغه په مخکي دي یو داسي خبره وکړي چي په هغه سره هغه وخاندي او خوشحاله سي او خپله هم په هغه خبره کي په ګډون کولو سره خپل غم هیر کړي ، نقل سوي دي چي رسول الله ﷺ به کله خپل یو صحابي غمجن ولیدی نو هغه به یې د خوش طبعی او ټوکو په ذریعه خوشحاله کوی .

په حدیث شریف کي چي د کوم آیت ذکر سوی دی هغه پوره آیت داسي دی :

يَاأَيُّهَا النَّبِيُّ قُل لِّأَزْوَاجِكَ إِن كُنتُنَّ تُرِدْنَ الْحَيَاةَ الدُّنْيَا وَزِينَتَهَا فَتَعَالَيْنَ أُمَتِّعْكُنَّ وَأُسَرِّحْكُنَّ سَرَاحًا جَمِيلاً ۲۸ وَإِن كُنتُنَّ تُرِدْنَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَالدَّارَ الْآخِرَةَ فَإِنَّ اللَّهَ أَعَدَّ لِلْمُحْسِنَاتِ مِنكُنَّ أَجْرًا عَظِيمًا

۲۹ . سورة الاحزاب

ژباړه : اې پیغمبره ! خپلو بیبیانو ته ووایه چي (ما فقر اختیار کړی دی) که تاسو (زما پر فقر باندي راضي نه یاست بلکه) د دنیا ژوند او د هغه زیب او زینت غواړئ نو زه به تاسو ته څه مال درکړم او په ښه ډول به مو رخصت کړم (یعني د همېشه لپاره به ستاسو څخه جلاوالی اختیار کړم) او که تاسو (زما پر فقر راضي یاست او دا) غواړئ چي تاسو ته د الله تعالی او د هغه د رسول رضا تر لاسه سي او جنت ستاسو د اوسېدو ځای سي نو په تاسو کي څوک نیکي کونکي دي د هغوی لپاره الله تعالی اجر عظیم تیار کړی دی (یعني ستاسو د دغه سختۍ په عوض کي چي تاسو زما د فقر او فاقې د ژوند ملګرتیا په جوړېدو کي پر ځان ورئ الله تعالی به تاسو ته بې اندازې اجر او ثواب درکړي).

د دغه آیت کریمه د نازلېدو څخه وروسته رسول الله ﷺ په خپلو بیبیانو کي تر ټولو مخکي د بي بي عائشې رضي الله عنها سره رابطه وکړه او هغه یې په اسماني هدایت خبره کړه چي زه ستا مخکي کوم هدایت او ضابطه ایښودونکی یم زه غواړم چي ته په هغه باره کي یو فیصله کولو څخه مخکي د خپل پلار او مور سره مشوره وکړې او دا حکم یې ځکه ورکړ چي بي بي عائشه رضي الله عنها که څه هم تر ټولو زیاته هوښیاره او عقلمنده وه مګر په هر حال د کم عمر وه ، رسول الله ﷺ ته دا بېره وه چي عائشه رضي الله عنها د کم عمرۍ په جذباتو کي رانه سي او د دنیا د عیش او عشرت له کبله زما په پرېښودو سره د آخرت د ابدي سعاتونو څخه مخ وانه ړوي چي د هغه نتیجه به دا وي چي په دې سره به یوازي عائشې رضي الله عنها تاوان نه وي بلکه مور او پلار ته به یې سخت اذیت او تکلیف ورسیږي مګر که چیري په دې باره کي د مور او پلار سره مشوره وکړي نو هغوی به هغه صلاح ورکړي چي د هغه د دین او دنیا دواړو د خیر او غوره والي سره سمه وي ، مګر دا د بي بي عائشې رضي الله عنها د فطري سعادت خبره وه چي هغې د خپل مور او پلار د مشورې څخه پرته خپله فیصله دا وکړه چي زه د دنیا آرام ژوند باندي د آخرت همېشنۍ سعادتونو ته ترجیح ورکوم او الله جل جلاله او د هغه د رسول رضا او منشاء اختیاروم.

بي بي عائشې رضي الله عنها چي رسول الله ﷺ ته دا خواست وکړ چي ما تاسو ته کوم جواب درکړی دی هغه تاسو خپل بي بي ته مه وایاست د هغې دا خیال وو چي کېدای سي هیڅ یو بي بي د رسول الله ﷺ پر فقر باندي په راضي کېدو سره د آرام ورکونکي ژوند لپاره د رسول الله ﷺ څخه جلا سي ځکه هغې فکر وکړ که چیري یو بي بي ته زما د دغه ایمان او یقین څخه ډکي فیصلي خبر وسي نو کیدای سي هغو ته هم لارښوونه تر لاسه سي او هغه هم دا سي فیصله وکړي مګر که چیري زما د دغه فیصلې څخه بې خبره وي نو کېدای سي چي یوه بي بي د دنیا عیش او آرام ته د

رسول الله ﷺ پر ملګرتیا باندي ترجیح ورکړي ځکه نو ښه به دا وي چي یوه بي بي د رسول الله ﷺ د نکاح څخه ونه وځي ، د بي بي عائشې رضي الله عنها ددغه خواهش محرک د رسول الله ﷺ د هغې زیاته مینه وه چي په هغه کي بله ښځه ګډېدل یې نه خوښول مګر په هر حال د رسول الله ﷺ په نظر کي د ټولو بیبیانو مبارکانو خیر او نیکي یو ډول حیثیت درلودئ ، رسول الله ﷺ دا څرنګه زغملای سول چي یوه بي بي دي د آخرت په سعادتونو سره ونازول سي او نوري بیبیاني دي د دنیا په اختیارولو سره د تباهۍ پر لار رواني سي، رسول الله ﷺ د بي بي ددغه درخواست قبلولو څخه انکار وکړ او هغې ته یې واضحه کړه که زما څخه یو بي بي پوښتنه وکړي نو زه به یې هغې ته وایم ځکه چي د هغې خیر په دې کي پټ دی ،

او که چیري زه ورته ونه وایم نو ددې مطلب به دا وي چي ما د هغې سره د شفقت رویه اختیار نه کړه او هغه لار مي ورته ونه ښوول چي دهغې د راحت او د هغې خیر او فلاح لپاره ضروري ده حالانکه الله تعالی زه ددې لپاره پیغمبر نه یم را استولی چي زه په خلکو کي بدخواهي وکړم یا یو څوک په تکلیف او غم کي اخته کړم زه دغه دنیا ته ددې لپاره را استول سم چي د انساني کائناتو هر فرد ته د دنیا او اخرت د خبرو تعلیم ورکړم او هر انسان ته د هغه دیني او دنیوي معاملاتو کي د آساني او سهولت لاره وښیم .

﴿۳۱۱۳﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كُنْتُ أَغَارُ عَلَى اللَّائِي وَهَبْنَ أَنْفُسَهُنَّ لِرَسُولِ

د بي بي عائشې ﷺ څخه روایت دی چي ما به هغي ښځي ته په ذلیله سترګه کتل کومي چي خپل ځان و نبي کریم ﷺ ته هبه کوی

اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فقلت اتَهَبُ الْمَرْأَةُ نَفْسَهَا فَلَمَّا أَنْزَلَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ

یعني خپل ځان به یې د نبي کریم ﷺ په خوښه کي پرېښودی یوه ورځ ما عرض وکړ ایا یوه ښځه خپل ځان هبه کولای سي ؟ (یعني دومره ذلیله کیدای سي) بیا چي دا ایت نازل سو :

{ تُرْجِي مَنْ تَشَاءُ مِنْهُنَّ وَتُؤْوِي إِلَيْكَ مَنْ تَشَاءُ وَمَنِ ابْتَغَيْتَ مِمَّنْ عَزَلْتَ

ترجي من تشاء..... جناح علیک . (یعني د هغو ښځو څخه چي ته غواړې اې محمده! هغه جلا کړه او کومه چي غواړې هغه د ځان سره وساته او کومي ښځي چي تا جلا کړې دي که د هغوی څخه ته هم څوک وبلې

فَلاَ جُنَاحَ عَلَيْكَ قُلْتُ مَا أَرَى رَبَّكَ إِلَّا يُسَارِعُ فِي هَوَاكَ . متفق عليه ، و حديث جابر اتقوالله في النساء ذكر في قصة حجة الوداع .

نو په تا څه ګناه نسته) نو ما (بي بي عائشه رض وايي) نبي كريم ﷺ ته عرض وكړ زه وينم چي ستاسو پروردګار ستاسو رضامندي او خواهش ژر پوره كوي او وروسته د دې ايت حكم منسوخ سو او د جابر رضي الله عنه په حديث كي چي د ښځو په باره كي چي د الله تعالى څخه وډېرېږئ د حجة الوداع په واقعه كي بيانيږي .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۸\ ۵۲۴، رقم: ۴۷۸۸، ومسلم ۲\ ۱۰۸۵، رقم: ۴۹\ ۱۴۶۴

**تشريح**: كومو ښځو چي به خپل ځان رسول الله ﷺ ته هبه كوى نو هغوى ته بي بي عائشې رضي الله عنها ځكه په ښه نظر نه كتل چي د ښځي خپل ځان بل چا ته هبه كول د ښځي د عزت او شرف خلاف دي او د دې حرص د حياء پر قلت باندي دلالت كوي كه څه هم كومو ښځو چي رسول الله ﷺ ته خپل ځانونه هبه كول د هغه ښځو لپاره دا د هغوى د عزت باعث وو چي هغه يې خپل خوشبختي ګڼل .

يوه ښځه خپل ځان هبه كولای سي، بي بي عائشې رضي الله عنها دا خبره د هغه ښځو د هبه كولو په مخالفت كي كول، د دې څخه د هغې مطلب دا وو چي د يو ښځي لپاره مناسب نه دي چي هغه خپل ځان يو پردي سړي ته هبه كړي ، په يوه روايت كي د بي بي عائشې رضي الله عنها دا الفاظ هم نقل سوي دي چي ايا ښځه خپل ځان په هبه كولو سره شرم او حياء نه محسوس كوي.

د ذكر سوي آيت كريمه مطلب يا خو دا دى چي رسول الله ﷺ په خپلو بيبيانو كي چي كومي غواړي خپل هم بستري دي يې جوړ كړي او كومي چي غواړي د ځان څخه دي يې جلا كړي ، يا دا مطلب دى چي رسول الله ﷺ د كومو بيبيانو څخه غواړي په خپل نكاح كي وساتي او كومي چي غواړي د خپل نكاح څخه يې جلا كړي ، يعني طلاق وركړي، يا دا مطلب دى چي رسول الله ﷺ د خپل امت په ښځو كي د كومو سره چي غواړي نكاح دي وكړي او د كومو سره چي غواړي نكاح دي نه كوي .

امام نووي رحمة الله عليه وايي چي د غه آيت كريمه په اصل كي د د غه آيت (لا يحل لك النساء من بعد) لپاره ناسخ دى ځكه چي د رسول الله ﷺ تر وفات پوري د رسول الله ﷺ لپاره د ازواج مطهرات څخه علاوه نوري ښځي هم مباح وې .

مشهور مفسر امام بغوي رحمة الله عليه وايي چي (په حديث کي د ذکر سوي آيت په باره کي) تر ټولو صحيح قول دادی چي دغه آيت کريمه په اصل کي د رسول الله ﷺ د بيبيانو مبارکانو په باره کي نازل سوی وو ، د هغه تفصيل دادی چي د خپلو بيبيانو کي وار تاکل مخکي پر رسول الله ﷺ باندي هم واجب وه مگر کله چي دغه آيت کريمه نازل سو نو دا وجوب د رسول الله ﷺ په حق کي ساقط سو او رسول الله ﷺ ته اختيار تر لاسه سو چي خپل بيبياني رسول الله ﷺ د وار څخه جلا کړي او د هغوی څخه چي کومه يو ځان ته رابولي نو رسول الله ﷺ داسي کولای سي، په دې کي څه گناه نه سته ، الله تعالى د امت پر نورو خلکو باندي د رسول الله ﷺ د فضيلت او غوره والي په ظاهرولو سره د خپلو ښځو لپاره د وار تاکلو حکم باندي عمل نه کول د رسول الله ﷺ لپاره مباح کړي وه چي د کومي بي بي په باره کي د رسول الله ﷺ خواهش وي رسول الله ﷺ د هغې د وار څخه پرته هغې ته ورتلای سي او که چيري رسول الله ﷺ خپل يو بي بي د هغې په وار کي د ځان سره کول نه غواړي نو رسول الله ﷺ ته ددې هم اجازه ده .

ما ارى بک ...الخ : ددې معنی داده چي زما گمان دادی چي تاسو (د کوم شي خواهش کوئ ستاسو پروردگار هغه ژر پوره کوي، علامه نووي رحمة الله عليه وايي چي ددې خبري څخه د بي بي عائشې رضي الله عنها مراد دا وو چي الله تعالى د ځينو احکامو پابندي د رسول الله ﷺ په حق کي نرمه کړې ده او رسول الله ﷺ ته په هغه د عمل نه کولو اساني ورکړل سوې ده ځکه په ذکر سوې معامله کي هم رسول الله ﷺ ته د خپل خوښي سره سم د عمل کولو اختيار ورکړل سوی دی.

اوس دا سوال پيدا کيږي چي هغه کومه ښځه وه چي هغې خپل ځان رسول الله ﷺ ته هبه کړی وو، ځيني علماء وايي چي هغه بي بي ميمونه رضي الله عنها وه او ځيني وايي چي بي بي ام شريک وه ، ځيني حضرات وايي چي هغه بي بي زينب بنت خزيمه وه او ځيني وايي چي بي بي خوله بنت حکيم وه ، مگر د دغه حديث د ظاهري مفهوم څخه دا ثابتيږي چي هغه يوه ښځه نه وه بلکه ډيري ښځي وې .

و حديث جابر اتقوا الله في النساء، ذکر في قصة حجة الوداع، او د حضرت جابر رضي الله عنه حديث (اتقوا الله....) د حجة الوداع په بيان کي نقل سوی دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د رسول الله ﷺ د خپلو بيبيانو سره ښه چلن

﴿۳۱۱۴﴾: عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا أَنَّهَا كَانَتْ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د بي بي عائشي رضي الله عنها څخه روايت دی چي (په يوه سفر کي) زه د رسول الله ﷺ سره وم (په دې

فِي سَفَرٍ قَالَتْ فَسَابَقْتُهُ فَسَبَقْتُهُ عَلَى رِجْلَيَّ فَلَمَّا حَمَلْتُ اللَّحْمَ سَابَقْتُهُ فَسَبَقَنِي قَالَ هَذِهِ بِتِلْكَ السَّبْقَةِ . رواه ابوداؤد .

موقع) زما او د رسول الله ﷺ په مينځ کي د ځغاستي مقابله وسوه زه د نبي کريم ﷺ تر مخه سوم بيا ډېر وخت وروسته چي زه غټه سوم نو بيا د ځغاستي مقابله وسوه نو په دې وار رسول الله ﷺ زما څخه مخته سو نو نبي کريم ﷺ وفرمايل :دا د هغه ځغاستي بدله ده . (چي په هغه کي ته زما څخه مخته سوې وې). (ابوداؤد) .

**تخريج**: ابوداود في السنن ۳\ ٦۵، رقم: ۲۵۷۸

**د لغاتو حل**: حملت اللحم: ای سمنت (چاغه سوم)

**تشريح**: په خپلو ښځو سره: دلته ددې خبري تاکيد کول مقصد دي چي زه پر سپرلۍ باندي په ناستي سره نه وم ځغستلی بلکه پر خپل پښو مي ځغستل، طيبي رحمه الله وايي چي ددغه جملې څخه تاکيد مقصد دی لکه يو څوک چي ووايي چي ما په خپل [illegible]س سره وليکل يا ما په خپل [illegible]ترګو وليدل .

دغه روايت د خپلو ښځو سره د رسول الله ﷺ د ښه ژوند يو مثال دی، ددې څخه واضحه [illegible]يږي چي رسول الله ﷺ د خپلو بيبيانو مبارکانو سره د خوشحالۍ ژوند تېروي او د خپلو بيبيانو په باره کي ډېر مهربان او ورين تندی وو، په دغه روايت کي د امت لپاره هم دا سبق دی چي په خپل ژوند کي د رسول الله ﷺ د ښه ژوند پيروي وکړل سي او د خپلو بيبيانو سره په ورين تندي او خوشحالۍ سره ژوند وکړل سي .

قاضي خان رحمه الله وايي چي سياق (يعني د ځغاستي او داسي نورو شيانو مقابله) په څلورو شيانو کي جائز ده : په اوښ کي، په غاتره کي، په غشي ويشتلو کي او پر پښو په ځغاسته کي، او دا مقابله که چيري په شرط سره وي نو په هغه صورت کي به جائز وي کله چي د

دواړو څخه یوازې د یوې خوا څخه شرط وي مثلاً د زید او بکر په مینځ کې مقابله وسوه او زید بکر ته وویل که چیرې ما وګټل نو زه به دومره روپۍ یا فلانی شی غواړم او که چیرې مقابله تا وګټل نو تا ته به هیڅ نه درکول کیږئ او که چیرې دواړو خواوو ته دا شرط وي یعني دواړو د یو بل سره شرط لګولی وي چې په موږ دواړو کې کوم یو مقابله وګټي هغه ته به دومره روپۍ یا فلانی شی ورکول کیږي نو دا حرام دی ځکه چې دا خمار دی مګر که چیرې دواړو خواوو یو محلل (یعني د دواړو شرط حلالونکی یو دریم سړی) په خپلو کې شامل کړي نو په دغه صورت کې به شرط جائز وي د محلل د شامل کېدو صورت دا وي چې مثلاً زید او بکر په خپلو کې دا شرط ولګوي چې زموږ په مقابله کې چې کوم مخکې سي نو دومره روپۍ یا فلانی شی به هغه ته ورکول کیږي او په خپل مقابله کې یو دریم سړی مثلاً خالد هم شامل کړي او دا فیصله وسي که دغه دریم سړی یعني خالد مقابله وګټل نو هغه ته به هیڅ نه ورکول کیږي نو دا صورت جائز دی او حلال دی مګر د جائز کېدو مطلب دا دی چې د هغه په نتیجه کې ګټونکی ته چې کوم شی ورکول کیږي هغه به حلال او طیب وي نه دا چې هغه په شرعي توګه سره استحقاق لري ځکه چې د شریعت په نظر کې ګټونکی محض د هغه مقابلې سره یا پر هغه روپو باندې څه قانوني حق نه لري ، دمقابلې انعام جائز دي مګر د یو فرد یا ادارې له خوا که چیرې د انعام په توګه یا د یو شي په ټاکلو سره مقابله کونکو ته وویل سي چې په تاسو کې کوم سړی مقابله وګټي هغه ته به دغه روپۍ یا دغه شی ورکول کیږي فقهاؤ دې ته جائز ویلي دي .

## د خپلې کورنۍ سره ښه چلن کونکی غوره انسان دی

﴿۳۱۱۵﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْرُكُمْ خَيْرُكُمْ

د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: په تاسو کې بهتره سړی هغه

لِأَهْلِهِ وَأَنَا خَيْرُكُمْ لِأَهْلِي وَإِذَا مَاتَ صَاحِبُكُمْ فَدَعُوهُ . رواه الترمذي والدارمي وابن ماجة عن ابن عباس الى قوله لاهلي.

دی چې د خپل اهل او عیال (عزیزانو خپلوانو او خادمانو) سره بهترین چلن وکړي او په ښه اخلاقو سره ور سره مخامخ کیږي او زه په خپل اهل و عیال کې په تاسو کې تر ټولو ښه یم په تاسو کې چې کوم سړی مړ سي نو بیا هغه پرېږدی (یعني په بدې یې د هغه ذکر مه کوئ). (ترمذي) او په دارمي او ابن ماجه کې د حضرت ابن عباس څخه تر ((اهله)) پورې روایت را غلی دی .

**تخريج**: الترمذي في السنن ٥\٦٦٦، رقم: ٣٨٩٥، والدارمي ٢\٢١٢، رقم: ٢٢٦٠

**تشريح**: د حديث د اولي برخي معنی داده چي الله ﷻ او د هغه د مخلوق په نزد غوره سړی هغه دی چي د خپل ښځي، اولاد، قريبانو او تر ځان لاندي كسانو سره ښه چلن كوي ځكه چي د هغه نيک چلن كول د هغه پر خوش اخلاقۍ او خوش طبعي باندي دلالت كوي.

او كله چي ستاسو صاحب مړ سي ...الخ: ددې مطلب دادی چي كله ستاسو يو قريب يا ملګری مړ سي نو د هغه د بدۍ ذكر كول پرېږدي، يعني ددغه جملې په ذريعه دا تعليم وركول مقصد دي چي كوم خلک د دنيا څخه تللي دي د هغوي غيبت مه كوئ لكه څرنګه چي په يوه روايت كي ددې خبري تعليم وركړل سو ی دی چي خپل مړه خلک په نيكۍ سره يادوی يعني يوازي د هغوی نيكۍ بيانوي د هغوی د بديو يادونه مه كوئ.

ځيني علماؤ ددغه جملې څخه دا مراد اخيستی دی چي كله يو سړی مړ سي نو د هغه پر مينه او د هغه پر مرګ باندي ژړا كول پرېږدئ او اوس يوه سئ چي د هغه سره ستا بدني تعلق نه سته.

ځيني حضرات وايي چي رسول الله ﷺ په دغه جمله كي د صاحب څخه خپل ذات مبارک مراد اخيستی دی، ددې مطلب امت ته دا تلقين وركول دي چي كله زه ددغه دنيا څخه رخصت سم نو تاسو د افسوس، تحير او اضطرار اظهار مه كوئ ځكه چي الله تعالی ستاسو كار جوړونكی دی، كوم ذات چي زما ژوند ستاسو د هدايت او سعادت ذريعه جوړ كړی وو هغه ذات به زما څخه وروسته هم تاسو پر دغه هدايت او سعادت قايم ولري.

ځيني حضرت ددغه جملې معنی دا بيانوي چي كله زه ددغه دنيا څخه رخصت سم نو تاسو پرېږدئ په دې معنی چي زما كورنۍ، زما صحابه، او زما د شريعت پيروان يعني علماء او اولياؤ ته په تكليف رسولو سره ما ته د تكليف رسولو سبب مه جوړېږئ ځكه كه چيري تاسو هغوی ته تكليف رسوئ نو د هغوی په تكليف رسولو سره به ما ته تكليف رسيږي.

## فرمانبرداره ښځي ته د جنت زيری

﴿٣١١٦﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْمَرْاَةُ اِذَا صَلَّتْ

حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: كومه ښځه چي پنځه وخته

خَمْسَهَا وَصَامَتْ شَهْرَهَا وَاَحْصَنَتْ فَرْجَهَا وَاَطَاعَتْ بَعْلَهَا فَلْتَدْخُلْ مِنْ اَيِّ اَبْوَابِ الْجَنَّةِ شَاءَتْ. رواه ابونعيم في الحلية.

لمونځ کوي د روژې د مياشتي روژه نيسي خپل شرمګاه وساتي د خپل خاوند اطاعت کوي هغې ته اختيار دي د جنت کومي دروازې څخه چي يې خوښه وي داخله دي سي. (ابو نعيم)

**تخريج**: ابو نعيم في الحلية ٦\٣٠٨،

## که چيري غير الله ته سجده کول جائز وای نو ...

﴿٣١١٧﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ كُنْتُ آمِرًا أَحَدًا أَنْ يَسْجُدَ لِأَحَدٍ لَأَمَرْتُ الْمَرْأَةَ أَنْ تَسْجُدَ لِزَوْجِهَا. رواه الترمذي

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: که ما يو چا ته د سجدې کولو امر ورکولای نو ښځي ته به مي حکم کړی وای چي و خپل خاوند ته دي سجده کوي. (ترمذي)

**تخريج**: الترمذي في السنن ٣\٤٦٥، رقم: ١١٥٩

**تشريح**: مطلب دادی چي د الله جل جلاله څخه علاوه بل چا ته سجده کول صحيح نه دي که چيري د الله جل جلاله څخه پرته بل چا ته سجده کول صحيح وای نو ما به ښځو ته دا حکم ورکړی وای چي هغه دي خپل خاوند ته سجده کوي ځکه چي پر ښځه باندي د خاوند ډېر زيات حقوق دي چي د هغه د شکر ادا کولو څخه عاجزه ده، په ارشاد مبارک کي د دې خبري ارزښت او تاکيد بيان سوی دی چي پر ښځه باندي د خپل خاوند اطاعت او فرمانبرداري واجب ده.

## د خاوند د رضا اهميت

﴿٣١١٨﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّمَا امْرَأَةٍ مَاتَتْ وَزَوْجُهَا عَنْهَا رَاضٍ دَخَلَتِ الْجَنَّةَ. رواه الترمذي.

د بي بي ام سلمه رضي الله عنها څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کومه ښځه چي په دې حال کي وفات سي چي د هغې خاوند د هغې څخه راضي او خوشحاله وي نو هغه و جنت ته داخله سوه. (ترمذي)

**تخريج**: الترمذي في السنن ٣\٤٦٦، رقم: ١١٦١

**تشريح**: کوم خاوند چي عالم او متقي وي د هغه د رضامندۍ او خوشحالۍ دا اجر بيان سوی دی د فاسق او جاهل خاوند د رضا او خوشحالۍ به څه اعتبار نه وي.

## د خاوند اطاعت وکړئ

﴿٣١١٩﴾: وَعَنْ طَلْقِ بْنِ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا الرَّجُلُ دَعَا زَوْجَتَهُ لِحَاجَتِهِ فَلْتَأْتِهِ وَإِنْ كَانَتْ عَلَى التَّنُّورِ. رواه الترمذي.

د حضرت طلق بن علي رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کله چي يو خاوند خپله ښځه د کوروالي لپاره را وبولي نو ښځي ته د هغه د حکم منل پکار دي که څه هم هغه پر تنور وي. (يعني په ډوډۍ يا د خوراک په شي باندي مصروفه وي نو هغه دي پرېږدي او د خپل خاوند حاجت دي پوره کړي). (ترمذي)

**تخريج**: الترمذي في السنن ٣\٤٦٥، رقم: ١١٦٠

**تشريح**: که څه هم هغه پر تنور وي: ددې مطلب دادی چي که څه هم ښځه په يو ډېر ضروري کار کي بوخته وي او د يو شي د تاوان احتمال هم وي نو بيا هم د خاوند اطاعت دي وکړل سي او د هغه په بلنه سمدستي هغه ته رسيدل پکار دي مثلا ښځه د نغري سره وي او ډوډۍ يې پر تبخي اچولې وي په دغه حالت کي يې خاوند د جماع لپاره راوبولي نو ددې خبري پروا کولو څخه پرته چي د ډوډۍ او اوړو تاوان به وسي د خاوند د حکم پوره کولو لپاره هغه ته دي سمدستي وسي.

## خاوند ته تکليف مه ورکوئ

﴿٣١...﴾: وَعَنْ مُعَاذٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تُؤْذِي امْرَأَةٌ زَوْجَهَا

...ذ رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کله چي يوه ښځه و خپل خاوند ته په

...ي الدُّنْيَا إِلَّا قَالَتْ زَوْجَتُهُ مِنَ الْحُورِ الْعِينِ لَا تُؤْذِيهِ قَاتَلَكِ اللّٰهُ فَإِنَّمَا هُوَ

... دنيا کي تکليف ورکوي نو هغې ته په جنت کي غټو سترګو والا حوره وايي خداي دي تا تباه کړي ته خپل خاوند ته تکليف مه ورکوه دی خو

عِنْدَكَ دَخِيلٌ يُوشِكُ أَنْ يُفَارِقَكِ إِلَيْنَا. رواه الترمذي وابن ماجة وقال الترمذي هذا حديث غريب.

ستا مېلمه دی چي ژر به ستا څخه جلا سي او موږ ته به جنت ته راسي. (ترمذي ابن ماجه) او په ترمذي کي دا حديث غريب شمېرل سوي دی.

**تخریج**: الترمذي في السنن ۳\٤٧٦، رقم: ١١٧٤، وابن ماجه في السنن ١\٦٤٩، رقم: ٢٠١٤

**تشریح**: په یو بل روایت کي داسي ویل سوي دي چي (لعن الملائکة لعاصیة الزوج) یعني ملائکي پر هغه ښځو باندي لعنت وایي کوم چي د خپل خاوند نافرماني کوي، ددغه دواړو روایتونو څخه یوې خوا ته د خاوند د نافرمانۍ یا هغه ته د تکلیف رسولو سخته بدي ثابتیږي او بلي خوا دا هم واضحه سوه چي په دنیا کي انسان څه کوي هغه د ملاء اعلی یعني د آسمان د اوسیدونکو په علم کي راځي.

## پر خاوند د ښځي حق

﴿۳۱۲۱﴾: وَعَنْ حَكِيمِ بْنِ مُعَاوِيَةَ الْقُشَيْرِيِّ عَنْ أَبِيهِ قَالَ قُلْتُ يَارَسُوْلَ اللهِ

د حکیم بن معاویه قشیري رضی الله عنه د خپل پلاره څخه نقل کوي چي ما عرض وکړ یا رسول الله! د

ما حَقُّ زَوْجَةِ أَحَدِنَا عَلَيْهِ قَالَ اَنْ تُطْعِمُهَا إِذَا طَعِمْتَ وَتَكْسُوهَا إِذَا اكْتَسَيْتَ

ښځي پر خاوند څه حق دی؟ نبي کریم ﷺ راته وفرمایل: کله چي ته څه خورې و هغې ته یې هم ورکوه او چي څه اغوندې نو په هغې یې هم اغونده

وَلَا تَضْرِبُ الْوَجْهَ وَلَا تُقَبِّحْ وَلَا تَهْجُرْ إِلَّا فِي الْبَيْتِ. رواه احمد وابن ماجة

هغه پر مخ مه وهه بدو رد مه ورته وایه او د هغې څخه جلاوالي مه اختیاروه خو په کور کي د ننه (یعني په کور کي د ښځي سره ناخوښي او ناراضګي وي نو د هغې سره په کور کي جلاوالي اختیاروه). (احمد ابوداؤد ابن ماجه)

**تخریج**: احمد في المسند ٤\٤٤٦، رقم: ٢١٤٢، وابن ماجه في السنن ١\٥٩٣، رقم: ١٨٥٠

**تشریح**: په خاصه توګه پر مخ باندي د نه وهلو حکم ځکه ورکړل سوی دی چي په ټولو اندامو کي مخ افضل دی، ددې څخه دا مفهوم اخیستل کیږي چي د یو معقول وجه له کبله مثلاً د فواحش پر کولو باندي یا د فرضو پر پرېښودو باندي د مخ څخه پرته پر بل ځای باندي وهل خو جائز دي مګر پر مخ باندي وهل په هیڅ صورت کي جائز نه دي.

## خاوند خپله ښځه تادیباً وهلای سي که یا؟

په دې کي شک نه سته چي ښځه او خاوند د انسانیت له نظره د یو مرتبې حامل دي او د اسلام په نظر کي ښځه هم د هغه شرف او مرتبې حامله ده کوم چي سړی یې حامل دی مګر په دې

كي هم څه شک نه سته چي کله يو سړی او يوه ښځه د ازواج په قرابت کي په منسلک کېدو سره د يو بل د ژوند ملګري جوړ سي نو د دغه دواړو په شرعي او معاشرتي حيثيت کي لږ فرق راځي او هغه دا چي خاوند ته په قدرتي توګه سره يو خاص غوره والی تر لاسه کيږي چي د هغه تعلق د انساني شرف او مرتبې په فرق او امتياز سره نه وي بلکه د هغوي د يو بل تر مينځ د غوښتنو او د يو بل د حقوقو د ادا کولو سره وي ، خاوند د خپل دغه خاص غوره والي په وجه ښځه په هغه معاملاتو کي د خپل حکم پابند جوړولو اختيار لري چي د هغه شريعت هغه ته دا حق ورکړی دی يا د هغې تعلق د شرعي فرائضو او واجباتو په ادا کولو کي وي که چيري يوه ښځه په خپلو معاملاتو کي د خپل خاوند د حکم پابندي نه کوي او د خاوند د وينا پر هغې اثر نه کوي يعني د هغه نصيحت او تنبيه نه قبلوي او خاوند ته يقين وسي او س بېله سختۍ کار نه کيږي نو هغه ته به د ښځي د وهلو اجازه وي مګر په دې باره کي دا خيال ساتل پکار دي چي د ښځي داسي نافرماني چي پر هغه باندي وهل کېدای سي يوازي په هغه کارو کي معتبر دي چي د هغه شريعت وضاحت کړی دی ، په فتاوی قاضي خان کي ليکلي دي چي خاوند خپل ښځه پر څلورو خبرو باندي وهلای سي :

۱. د خاوند د خواهش او حکم سربېره زينت او ښکلا نه کوي .
۲. خاوند د جماع خواهشمند وي مګر ښځه د يو عذر (لکه حيض او داسي نورو) نه کېدو سربېره انکار وکړي .
۳. اسلامي فرضونه مثلاً لمونځ پريږدي ، د جنابت او ناپاکۍ څخه وروسته د ښځي غسل نه کول هم د فرضو د ترک په حکم کي دی، يعني که چيري ښځه د ناپاکۍ او حيض د غسل څخه انکار کوي نو خاوند هغه وهلای سي .
۴. کله چي ښځه د خپل خاوند د اجازې او خوښۍ څخه پرته د کور څخه ووځي .

د حديث د آخري جملې مطلب دادی که چيري د ښځي د يو نافرمانۍ يا د هغې پر يو خبره باندي د ناراضګۍ په وجه د هغې څخه په جلا والی اختيارولو کي حکمت وي نو د همېشه لپاره د جلا والي اختيارولو پر ځای دا غوره ده چي پر خپل بستره باندي د هغې څخه جلا والی اختيار کړي يعني د هغې سره پرېوتل پريږدي او د شپې په کور کي ورسره مه اوسه چي هغه ستا داسي کول په خپل حق کي د سزا ګڼلو سره سمه سي ، او د همېشه جلا والي يعني طلاق نوبت را نه سي ، په قرآن کريم کي داسي فرمايل سوي دي :

وَاللاَّتِي تَخَافُونَ نُشُوزَهُنَّ فَعِظُوهُنَّ وَاهْجُرُوهُنَّ فِي الْمَضَاجِعِ وَاضْرِبُوهُنَّ.

ژباړه : او کومي ښځي چي داسي وي چي تاسو ته د هغوی د نافرمانۍ احتمال وي نو هغوی ته اول په ژبه سره نصیحت وکړئ او بیا هغوی د پرېوتلو په ځایو کي یوازي پرېږدي (یعني د هغوی سره مه بیدېږئ) او بیا په اعتدال سره هغوی وهئ.

**بدزبانه ښځي ته طلاق ورکړئ**

﴿۳۱۲۲﴾: وَعَنْ لَقِيطِ بْنِ صَبْرَةَ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّ لِي امْرَأَةً فِي لِسَانِهَا

د لقیط بن صبره رضی الله عنه څخه روایت دی چي ما عرض وکړ یا رسول الله! زما ښځه بد زبانه ده

شَيْءٌ يَعْنِي الْبَذَاءَ قَالَ طَلِّقْهَا قُلْتُ إِنَّ لِيْ مِنْهَا وَلَدًا وَلَهَا صُحْبَةٌ قَالَ فَمُرْهَا

نبي کریم صلی الله علیه وسلم راته وویل : طلاق ورکړه ما عرض وکړ د هغې د نس څخه زما اولاد پیدا سوی دی او پخوانۍ اړیکي ورسره لرم نبي کریم صلی الله علیه وسلم راته وویل (نصیحت ورته وکړه)

يَقُولُ عِظْهَا فَإِنْ يَكُ فِيهَا خَيْرٌ فَسَتقبل وَلَا تَضْرِبَنَّ ظَعِينَتَكَ ضَرْبَكَ أُمَيَّتَكَ . رواه ابوداؤد.

که په هغې کي یو څه نیکي هم وي نو ستا نصیحت به قبول کړي او هغه داسي مه وهه لکه څوک چي خپله مینزه وهي یعني زیاته یې مه وهه. (ابوداؤد).

**تخریج**: ابوداود في السنن ۱\۹۷، رقم: ۱۴۲

**تشریح**: (یقول عظها) دا الفاظ د راوي چي د هغه په ذریعه دا وضاحت کول مقصد دی چي دغه ارشاد (فمرها) یعني بیا هغې ته حکم کوه، ددې څخه د رسول الله صلی الله علیه وسلم مراد دا وو چي هغې ته نصیحت کوه.

د حدیث په آخري جملې کي دې ته اشاره ده چي مخکي خپل ښځي ته په ژبه سره نصیحت کولو هڅه وکړئ که چیري په ژبه سره نصیحت اثر نه پر کوي نو بیا یې ووهئ، مګر په بې رحمۍ سره یې مه وهئ بلکه په معمولي او لږ ډول یې وهئ.

**د ښځو د وهلو څخه منع**

﴿۳۱۲۳﴾: وَعَنْ إِيَاسِ ابْنِ عَبْدِاللّٰهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت اياس بن عبدالله رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

لَا تَضْرِبُوا إِمَاءَ اللّٰهِ فَجَاءَ عُمَرُ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ

خپلي بيبياني مه وهئ (د دې حکم څخه وروسته)حضرت عمر رضي الله عنه د نبي کريم ﷺ په خدمت کي حاضر سو او عرض يې وکړ (يا رسول الله!)

ذَئِرْنَ النِّسَاءُ عَلَى أَزْوَاجِهِنَّ فَرَخَّصَ فِي ضَرْبِهِنَّ فَأَطَافَ بِآلِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى

ښځي په خپلو خاوندانو باندي غالبه سوي دی او جرئت يې زيات سوی دی (په دې او رېدو سره )نبي کريم ﷺ د ښځو د وهلو اجازت ورکړ. د دې څخه وروسته ډېري ښځي د نبي کريم ﷺ

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نِسَاءٌ كَثِيرٌ يَشْكُونَ أَزْوَاجَهُنَّ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

بيبيانو ته را ټولي سوې او د خپلو خاوندانو شکايتونه يې ورته وکړل (يعني دا چي هغوی وهي او بد و رد ورته وايي) (د دې شکايت په اورېدو سره ) رسول الله ﷺ وفرمايل :

وَسَلَّمَ لَقَدْ طَافَ بِآلِ مُحَمَّدٍ نِسَاءٌ كَثِيرٌ يَشْكُونَ أَزْوَاجَهُنَّ لَيْسَ أُولَئِكَ

بِخِيَارِكُمْ. رواه ابوداؤد وابن ماجة والدارمي .

د محمد (ﷺ) بيبيانو ته ډېري ښځي د خپلو خاوندانو څخه په شکايت راغلي دي دغه کسان په تاسو کي ښه نه دي (کوم چي د خپلو ښځو سره د اندازې زياته سختي کوي ). (ابوداؤد ابن ماجه دارمي).

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲\۶۰۸، رقم: ۲۱۴۶، وابن ماجه في السنن ۱\ ۶۳۸، رقم: ۱۹۸۵، والدارمي ۲\ ۱۹۸، رقم: ۲۲۱۹

**د لغاتو حل**: ذئرن: اى اجتران ونشزن وغلبن (غالبي سوې)

**تشريح**: د حديث د آخري الفاظو مطلب دادی چي کوم خلک خپل ښځي ډېري وهي يا مطلق يې وهي نو په تاسو کي غوره خلک نه دي بلکه غوره خلک هغه دي چي خپل ښځي نه وهي د هغوی پر تکليف ورکولو باندي صبر او تحمل کوي او دومره زياتي يې نه وهي چي د هغوی د شکايت باعث وي د ادب په توګه يې لږ وهي .

په شرح السنه کي ليکلي دي چي د دغه روايت څخه معلومېږي که چيري يو ښځه د خپل

خاوند د نکاح د حقوقو د ادا کولو څخه انکار کوي نو د هغې وهل مباح دي مګر زیات وهل یې ښه نه دي ، په تېرو مخونو کې د حضرت حکیم ابن معاویه رضی الله عنه روایت تېر سوی دی او د هغه په تشریح کې چې کوم آیت کې راغلی دی د هغه څخه د! معلومیږي چې د تادیب لپاره د خپل ښځې د وهلو اجازه ورکړل سوې ده حال دا چې ددغه روایت څخه د هغه منع ثابتیږي یعنې په دواړو کې په ظاهره تضاد او تعارض معلومیږي نو دا تضاد او تعارض د امام شافعي رحمه الله څخه نقل سوي دي چې په دغه تطبیق سره تضاد ختم کیدای سي چې رسول الله ﷺ ددغه آیت د نازلېدو څخه مخکې د ښځود وهلو څخه منع کړې وې بیا چې کله ښځې پر خاوندانو غالبې سوې او د هغوی جرئت زیات سو نو رسول الله ﷺ د وهلو اجازه ورکړه او د رسول الله ﷺ د حکم په توثیق کې دغه آیت نازل سو مګر ددې څخه وروسته چې د ښځو له خوا دا شکایت وسو چې د هغوی خاوندان هغوی ډېر وهي نو رسول الله ﷺ اعلان وکړ چې که څه هم د ښځو وهل مباح دي مګر د هغو پر بدیو صبر کول او هغوی نه وهل غوره او افضل دي .

## د ښځې د خاوند پر خلاف د پارولو منع

﴿۳۱۲۴﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ مِنَّا مَنْ خَبَّبَ امْرَأَةً عَلَى زَوْجِهَا أَوْ عَبْدًا عَلَى سَيِّدِهِ . رواه ابوداؤد .

د حضرت ابوهریره رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل : هغه سړی زموږ د ډلې څخه نه دی کوم چې و یوې ښځې ته بد چلن ورزده کړي یا یو غلام و خپل مالک ته بې لاري کړي. (ابوداؤد)

**تخریج**: ابوداود في السنن ۲\ ۳۶۵، رقم: ۵۱۷۰

**د لغاتو حل**: خبب: ای خدع وافسد

**تشریح**: یوه ښځه د هغې د خاوند پر خلاف یا یو غلام او مینزه د هغو د بادار پر خلاف ګمراه کول یو ډېر بد کار دی ، ددغه حدیث شریف مطلب دادی چې هغه سړی زموږ د پیروانو څخه نه دی چې د یو ښځې زړه د هغې د خاوند څخه اړوي مثلاً د ښځې په مخکې د هغې د خاوند خرابي بیانوي یا د هغې په مخکې د یو پردي سړي ښه والی بیان کړي یا هغه وهڅوي چې خپل خاوند څخه د زیات مال او سامان غوښتنه وکړي یا د خپل خاوند خدمت او پیروي مه کوه همدارنګه یو غلام او مزدوري وهڅوي چې ته د خپل بادار د لور په پرېښودو سره ولاړ سه یا د هغه په

خدمت کي کوتاهي وکړه ، همدارنګه د ښځي خلاف خاوند يا مينزه د هغې د مالک خلاف يا مالک د هغه د غلام يا مينزي پر خلاف هڅول هم په دغه حکم کي داخل دي .

## د کمال ايمان دليل

﴿۳۱۲۵﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ مِنْ أَكْمَلِ الْمُؤْمِنِينَ إِيمَانًا أَحْسَنُهُمْ خُلُقًا وَأَلْطَفُهُمْ بِأَهْلِهِ. رواه الترمذي

د بي بي عائشې ﷺ څخه روايت دی چي رسول اللهﷺ وفرمايل: کامل مؤمن هغه مسلمان دی چي د هغه اخلاق ښه وي او په خپل اهل و اولاد باندي مهربانه وي . (ترمذي)

**تخريج**: الترمذي في السنن ۵\۱۰–۱۱، رقم: ۲۶۱۲

**تشريح**: خوش اخلاقه او پر خپل کورنۍ باندي ډېر مهربان مسلمان ته کامل مؤمن ځکه ويل سوي دي چي د ايمان کمال خوش اخلاقي او د مخلوق په خاصه توګه د خپل کورنۍ په حق کي سر تر پايه مهربانه او خوش اخلاقه وي .

﴿۳۱۲۶﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَكْمَلُ الْمُؤْمِنِينَ إِيمَانًا أَحْسَنُهُمْ خُلُقًا وَخِيَارُكُمْ خِيَارُكُمْ لِنِسَائِهِمْ . رواه الترمذي و قال هذا حديث حسن صحيح و رواه ابوداؤد الى قوله خلقا .

د حضرت ابو هريره ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : په مسلمانانو کي کامل مؤمن هغه دی چي د هغه اخلاق ښه وي او په تاسو کي بهتره سړی هغه دی چي د خپلي ښځي سره په ښه چلن مخته کيږئ(يعني ښه چلن ور سره کوي ) او په ترمذي کي دا حديث صحيح حسن دی او په ابو داؤد کي تر ((خلقا)) پوري روايت سوی دی .

**تخريج**: ابوداود في السنن ۵\۶۰، رقم: ۴۶۸۲، والترمذي في السنن ۳\۴۶۶، رقم: ۱۱۶۲

## د حضرت عائشې ﷺ سره د رسول الله ﷺ يوه واقعه

﴿۳۱۲۷﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَدِمَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ غَزْوَةِ

د بي بي عائشې ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ دتبوک د غزا

تَبُوكَ أَوْ حنين وَفِي سَهْوَتِهَا سِتْرٌ فَهَبَّتْ رِيحٌ فَكَشَفَتْ نَاحِيَةَ السِّتْرِ عَنْ

یا د حنین د غزا ځخه راغلی نو په کور کي یې په لویه تاخچه کي یوه لویه پرده ولیده

بَنَاتٍ لِعَائِشَةَ لُعَبٍ فَقَالَ مَا هٰذَا يَا عَائِشَةُ قَالَتْ بَنَاتِي وَرَأَى بَيْنَهُنَّ فَرَسًا لَهُ

چي د هغې يوه څوکه په هوا سره خلاصه سوه او په هغه کې د بي بي عائشې ﷞ ناوکياني په نظر راغلې نو رسول الله ﷺ ورځخه پوښتنه وکړه اې عائشې ! دا څه شي دي؟ بي بي عائشې ﷞ ورته وويل چي دا زما ناوکياني دي په دې ناوکيانو کي نبي کريم ﷺ يو آس هم وليدی

جَنَاحَانِ مِنْ رِقَاعٍ فَقَالَ مَا هٰذَا الَّذِي أَرَى وَسْطَهُنَّ قَالَتْ فَرَسٌ قَالَ وَمَا

چي هغه د ټوکر دوه وزره درلودل نبي کريم ﷺ ورځخه پوښتنه وکړه د دې ناوکيانو په مينځ کي څه شي دي ؟ بي بي عائشې ﷞ ورته وويل چي دا آس دی نبي کريم ﷺ ورځخه

الَّذِي عَلَيْهِ قَالَتْ جَنَاحَانِ قَالَ فَرَسٌ لَهُ جَنَاحَانِ قَالَتْ أَمَا سَمِعْتَ أَنَّ

پوښتنه وکړه او د ده دا وزر څنګه دی ؟ بي بي عائشې ﷞ ورته وويل ايا تاسو نه دي اورېدلي

لِسُلَيْمَانَ خَيْلًا لَهَا أَجْنِحَةٌ قَالَتْ فَضَحِكَ حَتَّى رَأَيْتُ نَوَاجِذَهُ. رواه ابوداؤد.

چي د حضرت سليمان ؈ آس وزرونه درلودل بي بي عائشه رض وايي په دې اورېدوسره رسول الله ﷺ په خندا سو تر دې چي ما د هغوی اخيري غاښونه وليدل . (ابو داؤد) .

**تخريج**: ابوداود في السنن ۵\۲۲۷، رقم: ۴۹۳۲

**تشريح**: (تبوک يا حنين) دلته حرف د يا د راوي شک ظاهروي يعني راوي ته په يقين سره معلومه نه ده چي بي بي عائشې رضي الله عنها د تبوک د غزا ذکر کړی وو که د حنين د غزا .
تبوک د يو ځای نوم دی چي د مدينې منورې ځخه ۴۶۵ مېله فاصله باندي د دمشق او مدينې په درمياني لاره باندي واقع دی ، په نهم هجري کال کي نبي کريم ﷺ دلته لښکر راوستلی وو مګر دښمن ته د مقابلې همت پاته نه سو ځکه نو جګړه ونه سوه .
حنين د يو شيلې نوم دی چي د مکې مکرمې ځخه شمال مشرق ته د طائف پر لار واقع ده ، دغه شيلې ته وادي اوطاس هم ويل کيږي، په اتم هجري کال کي د مکې د فتح ځخه څو ورځي وروسته مشهوره د حنين غزا دلته سوې ده ، د کوچنيو انجونو په ناوکيو سره د بازی کولو

شرعي حکم او د هغه تفصيل د باب الولي په نکاح کي تېر سوی دی۔

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### غير الله ته سجده کول جائز نه دي

﴿۳۱۲۸﴾: عَنْ قَيْسِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ أَتَيْتُ الْحِيرَةَ فَرَأَيْتُهُمْ يَسْجُدُونَ

د حضرت قيس بن سعيد رضی الله عنه څخه روايت دی چي زه و حيرې (ديو ځاي نوم دی) ته ولاړم ما وليدل چي د هغه ځاي خلکو و خپل مشر ته سجده کوله

لِمَرْزُبَانٍ لَهُمْ فَقُلْتُ لَرَسُولُ اللهِ أَحَقُّ أَنْ يُسْجَدَ لَهُ فَأَتَيْتُ رسول الله صَلَّى

ما په زړه کي وويل رسول الله ﷺ خو د دې زيات مستحق دی چي سجده ورته وسي نو زه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوم

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ إِنِّي أَتَيْتُ الْحِيرَةَ فَرَأَيْتُهُمْ يَسْجُدُونَ لِمَرْزُبَانٍ لَهُمْ

او ومي ويل: زه حيرې ته تللي وم هلته مي وليدل چي د هغه ځای خلکو خپل سردار ته سجده کوله

فَأَنْتَ أَحَقُّ أَنْ يَسْجُدَ لَكَ فقَالَ أَرَأَيْتَ لَوْ مَرَرْتَ بِقَبْرِي أَكُنْتَ تَسْجُدُ لَهُ

تر ده خو ته ډېر زيات حقدار يې چي سجده درته وکړل سي نبي کريم ﷺ راته وفرمايل: که ته زما و قبر ته ورسې نو ايا ته به زما قبر ته سجده کوې؟

فقُلْتُ لَا فقَالَ فَلَا تَفْعَلُوا لَوْ كُنْتُ امر أَحَدًا أَنْ يَسْجُدَ لِأَحَدٍ لَأَمَرْتُ

ما عرض وکړ يا! نبي کريم ﷺ راته وفرمايل: داسي مه کوه که ما چاته د سجدې حکم

النِّسَاءَ أَنْ يَسْجُدْنَ لِأَزْوَاجِهِنَّ لِمَا جَعَلَ اللهُ لَهُمْ عَلَيْهِنَّ مِنْ حَقٍّ. رواه ابوداؤد و رواه احمد عن معاذ بن جبل.

ورکولای نو ښځو ته به مي حکم ورکړی وای چي خپلو خاوندانو ته دي سجده کوي ځکه چي الله جل جلاله په ښځو باندي د خاوندانو حق ټاکلي دی. (ابوداؤد او احمد د معاذ بن جبل څخه).

**تخريج**: سنن ابي داود ۲\۶۰۴، رقم: ۲۱۴۰

**تشریح**: حضرت قیس ابن سعد رضی اللہ عنہ چي په حیره کي خلک خپل سردار ته پر سجده کولو باندي ولیدل نو د هغه په زړه کي دا خیال پیدا سو چي دا خلک د خپل سردار د عظمت او مرتبې سره سم هغو ته سجده کوي نو په انساني کائناتو کي د رسول الله ﷺ څخه زیات بل څوک د عظمت او مرتبې خاوند کېدای سي نو رسول الله ﷺ ته دي ولي سجده ونه کړل سي ، د هغه دغه خیال د رسول الله ﷺ په خدمت کي د عرض کولو صورت اختیار کړ چي هلته دغه عرض په ډېر نرم انداز کي رد کړل سو او دا واضحه کړل سوه چي د انسان تندی دومره مقدس دی چي هغه یوازي د خپل خالق په مخکي پر سجده کېږي د مخلوق په مخ کي کښته کېدای نه سي که څه هم هغه مخلوق هر څومره د عظمت او فضیلت والا وي ځکه چي الله تعالی فرمایي :

لاَ تَسْجُدُوا لِلشَّمْسِ وَلاَ لِلْقَمَرِ وَاسْجُدُوا لِلَّهِ الَّذِي خَلَقَهُنَّ إِن كُنتُمْ إِيَّاهُ تَعْبُدُونَ:

ژباړه: مه لمر ته سجده کوئ او مه سپوږمۍ ته سجده کوئ بلکه یوازي الله تعالی ته سجده کوئ چي هغه د هغوی پیدا کونکی دی که چیري تاسو د الله جل جلاله عبادت کوئ .

**نافرمانه ښځي ته سزا**

﴿۳۱۲۹﴾: وَعَنْ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يُسْأَلُ الرَّجُلُ فِيمَا ضَرَبَ امْرَأَتَهُ عليه . رواه ابوداؤد وابن ماجة .

د حضرت عمر رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : کوم سړی چي خپله ښځه وهي نو د هغه د وهلو وجه به نه ځیني معلوموئ. (ابوداؤد ابن ماجه)

**تخریج**: سنن ابي داود ۲\۶۰۹ ، رقم: ۲۱۴۷، وابن ماجه ۱\۶۳۹ ، رقم: ۱۹۸۶

**تشریح**: د مؤاخذې وړ نه دی: ددې مطلب دادی چي د خپل ښځي په وهلو باندي څه گناه نه لازمیږي چي د هغه څخه په دنیا او آخرت کي پوښتنه وسي په شرط ددې چي د ښځي وهلو کوم شرطونه دي د هغو خیال وساتل سي او د حد څخه تجاوز ونه کړل سي .

د (علیه) ضمیر ما ته راجع دی او د ما څخه مراد نافرماني ده کوم چي په دغه آیت کریمه کي مذکور ده (واللاتي تخافون نشوزهن ...) نو دغه جمله (پر هغه څه ووهئ) یعني کله چي یو سړی خپل ښځه پر نافرماني وهي نو هغه گناه کار نه دی .

## ښځه دي د خاوند د اجازې پرته نفل روژه نه نیسي

﴿۳۱۳۰﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ جَاءَتْ امْرَأَةٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو سعید رضی الله عنه څخه روایت دی چي مور د رسول الله ﷺ په خدمت کي ناست وو

وَنَحْنُ عِنْدَهُ فَقَالَتْ زَوْجِي صَفْوَانَ بْنَ الْمُعَطَّلِ يَضْرِبُنِي إِذَا صَلَّيْتُ

یوه ښځه حاضره سوه او عرض یې وکړ زما خاوند صفوان بن معطل کوم وخت چي زه لمونځ

وَيُفَطِّرُنِي إِذَا صُمْتُ وَلَا يُصَلِّي الْفَجْرِ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ قَالَ وَصَفْوَانُ عِنْدَهُ

کوم ما وهي او کله چي روژه نیسم نو روژه راباندي ماتوی او د سهار لمونځ په داسي وخت کي کوي چي لمر را خیژي د راوي بیان دی دغه وخت صفوان هم د نبي کریم ﷺ سره موجود وو

قَالَ فَسَأَلَهُ عَمَّا قَالَتْ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَمَّا قَوْلُهَا يَضْرِبُنِي إِذَا صَلَّيْتُ فَإِنَّهَا

نبي کریم ﷺ د هغه څخه حقیقي احوال و پوښتی هغه عرض وکړ یا رسول الله! د دې دا ویل چي کله زه لمونځ کوم نو زه دا وهم وجه یې دا ده چي

تَقْرَأُ بِسُورَتَيْنِ وَقَدْ نَهَيْتُهَا قَالَ فَقَالَ له رسول الله ﷺ لَوْ كَانَتْ سُورَةً

دا په لمانځه کي دوه اوږده سورته وایي او زه یې د دې څخه منعه کوم راوي وایي په دې اورېدو سره رسول الله ﷺ وفرمایل: د سورة

وَاحِدَةً لَكَفَتْ النَّاسَ قَالَ وَأَمَّا قَوْلُهَا يُفَطِّرُنِي إِذَا صُمْتُ فَإِنَّهَا تَنْطَلِقُ تَصُومُ

فاتحې څخه وروسته یو سورت ویل هم مناسب دی بیا صفوان رضی الله عنه عرض وکړ د دې دا قول چي روژه نیسي او زه یې وربانديماتوم

وَأَنَا رَجُلٌ شَابٌّ فَلَا أَصْبِرُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَصُومُ

وجه یې دا ده چي کوم وخت نفلي روژې پیل کړي نو مسلسل روژه نیسي او روژه نه پرېږدي او زه یو ځوان یم صبر نسم کولای نو نبي کریم ﷺ ورته وویل: هیڅ یوه ښځه دي روژې نه نیسي

امْرَأَةٌ إِلَّا بِإِذْنِ زَوْجِهَا وَأَمَّا قَوْلُهَا إِنِّي لَا أُصَلِّي حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ فَإِنَّا أَهْلُ

د خپل خاوند د اجازې څخه ماسېوا نفلي د دې څخه وروسته صفوان رضي الله عنه عرض وکړ او د دې دا بيان چې زه دلمر ختو په وخت کې لمونځ کوم د دې وجه داده چې موږ

بَيْتٍ قَدْ عُرِفَ لَنَا ذَاكَ لَا نَكَادُ نَسْتَيْقِظُ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ قَالَ فَإِذَا اسْتَيْقَظْتَ يَا صَفْوَانُ فَصَلِّ. رواه ابوداؤد وابن ماجة

د شپې کارکوو او زموږ د خلکو دا عادت سوی دی چې د لمر ختو په وخت کي بيداريږو نبي کريم ﷺ وفرمايل کوم وخت چې دي سترګي وغړيږي لمونځ کوه. (ابوداؤد ابن ماجه).

**تخريج**: سنن ابي داود ۲\۸۲۷، رقم: ۲۴۵۹، وابن ماجه ۱\۵۶۰، رقم: ۱۷۶۲، باختصار

**تشريح**: صفوان يو کښبت ګر سړی وو هغه به د شپې تر ډېره وخته پوري خپل مځکه او باغونه اوبه کول او بيا به هلته بېده سو او هلته به دخوب څخه راوېښونکی څوک به نه وو ځکه نو د هغه سترګي به ډېر وخت وروسته ولغړېدلې، له دې کبله هغه معذور وو نو رسول الله ﷺ د هغه د عذر په وجه هغه ته حکم وکړ که ستا سترګي پر وخت ونه لغړېدې نو کله چي بېدار سې اول خپل لمونځ وکړه او د هغه څخه وروسته په خپل کار کي بوخت سه.

## په سخت حکم کي هم د خاوند اطاعت وکړئ

﴿۳۱۳۱﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ فِي نَفَرٍ مِنَ

د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ د انصارو او مهاجرينو په مينځ کي

الْمُهَاجِرِينَ وَالْأَنْصَارِ فَجَاءَ بَعِيرٌ فَسَجَدَ لَهُ فَقَالَ أَصْحَابُهُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ

تشريف درلود په دې وخت کي يو اوښ راغی او نبي کريم ﷺ ته يې سجده وکړه اصحابو کرامو عرض وکړ يا رسول الله!

تَسْجُدُ لَكَ الْبَهَائِمُ وَالشَّجَرُ فَنَحْنُ أَحَقُّ أَنْ نَسْجُدَ لَكَ فَقَالَ اعْبُدُوا

تاسو ته چارپايان او درختي سجده کوي بيا خو موږ ته اول پکار ده چي تا سو ته سجده وکړو نبي کريم ﷺ وويل: د خپل رب عبادت کوئ

رَبَّكُمْ وَأَكْرِمُوا أَخَاكُمْ وَلَوْ كُنْتُ آمِرًا أَحَدًا أَنْ يَسْجُدَ لِأَحَدٍ لَأَمَرْتُ الْمَرْأَةَ

او د خپل ورور عزت کوئ (يعني زما عزت کوئ نه سجده کول) که ما چاته د سجدې کولو حکم ورکولای نو ښځې ته به مې حکم کړی وای چې

أَنْ تَسْجُدَ لِزَوْجِهَا وَلَوْ أَمَرَهَا أَنْ تَنْقُلَ مِنْ جَبَلٍ أَصْفَرَ إِلَى جَبَلٍ أَسْوَدَ وَمِنْ

خپلو خاوندانو ته سجده کوئ (نه بزرګ يا پير ته) او خاوند چې ښځې ته دا حکم ورکړی چې د هغه ژړ غره څخه ډبرې

جَبَلٍ أَسْوَدَ إِلَى جَبَلٍ أَبْيَضَ كَانَ يَنْبَغِي لَهَا أَنْ تَفْعَلَهُ . رواه احمد.

هغه بل تور غر ته وړی او د هغه ځايه څخه يې بيا و هغه بل سپين غر ته يوسي نو ښځې ته همداسې کول پکار ده .(احمد).

**تخريج**: الامام احمد في المسند ٧٦\٦

**تشريح**: د خپل رب عبادت کوئ : ددې مطلب دادی چې سجده په اصل کې عبادت دی او د عبادت وړ يوازې الله تعالى دی ، د الله تعالى څخه علاوه هيڅوک که څه هم هغه نبي وي د چا معبود نه سي جوړېدای تاسو ما په خپل مسجود جوړولو سره ما د خدای ﷻ په خدايي کې ګډول غواړئ حالنکه خدای ﷻ زه په نبي جوړولو سره ستاسو لپاره له دې کبله نه يم رالېږلی چې زه پر تاسو باندې د خپل عبادت په کولو سره تاسو په شرک کې اخته کړم بلکه زه خو دغه دنيا ته ددې لپاره راغلی يم چې تاسو د شرک د تيارو څخه په را ايستلو سره د الله ﷻ د بندګۍ پر لاره روان کړم او تاسو ته دا ښوونه وکړم چې ستاسو دغه مقدس تندی يوازې د الله ﷻ په مخکې کښېنته سئ، رسول الله ﷺ ددغه ارشاد په ذريعه د قرآن کريم دغه آيت کريمه ته اشاره کړې ده :

مَا كَانَ لِبَشَرٍ أَن يُؤْتِيَهُ اللَّهُ الْكِتَابَ وَالْحُكْمَ وَالنُّبُوَّةَ ثُمَّ يَقُولَ لِلنَّاسِ كُونُواْ عِبَادًا لِّي مِن دُونِ اللَّهِ وَلَكِن كُونُواْ رَبَّانِيِّينَ .

ژباړه : هيچا ته مناسب نه دي چې الله ﷻ هغه ته کتاب ، د دين فهم او نبوت ورکړي او هغه دي خلکو ته ووايي چې الله پرېږدئ او زما بندګان جوړ سئ بلکه (هغه بايد داسې ووايي چې اې خلکو !) تاسو الله والا جوړ سئ .

او کوم چې د اوښ رسول الله ﷺ ته د سجدې کولو سوال دی نو په دې کې څه تردد نه سته ځکه چې د اوښ سجده کول د عادت او قانون خلاف د يو عجيبه خبرې په توګه وو چې اوښ ته د

الله تعالی له خوا د مسخر کېدو په سبب واقع سوی وو او ظاهره ده چي د الله تعالی په حکم او فعل کي د رسول الله ﷺ هیڅ دخل نه وو او بیا دا چي اوبښ معذور محض وو ځکه څرنګه چي الله تعالی ملائکو ته دا حکم کړی وو چي هغوی حضرت آدم علیه السلام ته سجده وکړي او ملائکو حضرت آدم علیه السلام ته سجده کول په دې وجه د اشکال محل نه سي کیدای چي هغوی د الله تعالی د حکم پر ځای راوړلو باندي مجبور دي همدارنګه اوبښ ته هم د الله تعالی له خوا دا حکم ورکړل سو چي هغه رسول الله ﷺ ته سجده وکړي او هغه ددغه حکم پر منلو باندي مجبور وو.

او د خپل ورور یعني زما تعظیم کوئ: ددې مطلب دادی چي زما د ذات او زما د منصب ستاسو د عقیدې او میني دومره تقاضا باید وي چي تاسو په خپل زړه کي زما مینه ولرئ او په ظاهر او باطن کي زما پیروي وکړئ.

د غرونو د رنګونو مقصد د هغه غرونو د درمیاني فاصلې زیات لیري والي بیانول دي ځکه چي داسي غرونه یو بل ته نژدې نه وي، نو ددغه جملې مطلب دا سو که چیري دوه غرونه د یو بل څخه لیري واقع وي او خاوند خپل ښځي ته حکم ورکړي چي د یوه غره ډبري پورته کړي او دوهم غره ته یې یوسي نو ښځي ته ددغه سخت حکم پوره کول هم پکار دي، خلاصه دا که چیري خاوند ښځي ته د دومره سخت کار حکم ورکړي نو ښځه باید چي د هغه حکم پر ځای کړي.

### د کومي ښځي خاوند چي ناراض وي د هغې لمونځ په پوره توګه نه قبلیږي

﴿۳۱۳۲﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَةٌ لَا تُقْبَلُ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د درو کسانو لمونځ نه صحیح

لَهُمْ صَلَاةٌ وَلَا تَصْعَدُ لَهُمْ حَسَنَةٌ الْعَبْدُ الْآبِقُ حَتَّى يَرْجِعَ إِلَى مَوَالِيهِ فَيَضَعَ

کیږي او نه د هغو څه نیکي د اسمان پر لور ځي (۱)- یو تښتېدلی غلام چي تر څو هغه بیرته راسي او خپل ځان و خپل خاوند ته حواله نه کړي

يَدَهُ فِي أَيْدِيهِمْ وَالْمَرْأَةُ السَّاخِطُ عَلَيْهَا زَوْجُهَا وَالسَّكْرَانُ حَتَّى يَصْحُوَ. رواه البيهقي في شعب الإيمان.

(۲)- هغه ښځه ده چي خپل خاوند ځیني ناراضه وي. (۳)- هغه نشه کونکي چي ترڅو پوري

په هوش کي نه وي راغلی. (بيهقي په شعب الايمان کي).

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ٦\٤١٧، رقم: ٨٧٢٧

**تشريح**: (مالکانو) دلته د جمع په صيغه کي مالک او د هغه اولاد ته اشاره ده چي غلام ته يوازي د خپل مالک نه بلکه د هغه د اولاد وفاداري کول هم ضروري دي.

په يو بل روايت کي د زوجها لفظ څخه وروسته حتى يرضاعنها الفاظ هم نقل سوي دي يعني د کومي ښځي خاوند چي د هغې څخه ناراضه وي د هغې لمونځ تر هغه وخته پوري په پوره توګه نه قبليږي او د هغې هيڅ يو نيکي پورته نه ځي تر څو چي د هغې خاوند هغې څخه خوشحاله نه سي، په دغه روايت کي دا الفاظ ځکه نقل نه سول چي دا مفهوم خپله واضح دی او مراد دادی چي يا خو د هغې خاوند د هغې څخه راضي سي او يا هغې ته طلاق ورکړي.

## د غوره ښځي پيژندنه

﴿۳۱۳۳﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قِيلَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وسوه چي کومه

النِّسَاءِ خَيْرٌ قَالَ الَّتِي تَسُرُّهُ إِذَا نَظَرَ وَتُطِيعُهُ إِذَا أَمَرَ وَلَا تُخَالِفُهُ فِي نَفْسِهَا وَلَا مَالِهَا بِمَا يَكْرَهُ. رواه النسائي و البيهقي في شعب الايمان.

ښځه بهترينه ده نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل: هغه ښځه چي کوم وخت د هغې خاوند وهغې ته وګوري نو هغه يې خوشحاله کړي او کله چي خاوند ورته څه حکم وکړي نو د هغه اطاعت وکړي او په خپل ځان او د خاوند په مال کي داسي کار ونه کړي چي په هغه باندي خاوند خفه کيږي. (نسائي بيهقي).

**تخريج**: سنن النسائي ٦\٦٨، رقم: ٣٢٣١، البيهقي في شعب الايمان ٦\٤١٩، رقم ٨٧٣٧.

**تشريح**: په دغه روايت کي د يو ښه ښځي پيژندل دا ښوول سوي دي چي کله د هغې خاوند هغې ته وګوري يعني د هغې خوش اخلاقي او خوش طبعي ووينې نو هغه خوشحاله سي او که چيري هغه ښځه په صورت او سيرت دواړو کي ښه وي نو بيا نور على نور دی، او د ښځي يوه پيژندنه دا هم ښودل سوې ده چي هغه په خپل ذات او خپل مال کي داسي خبره نه کوي چي د هغې د خاوند په نظر کي ناخوښه وي.

دلته د خپل مال څخه د ښځي مال هم مراد كيداى سي يعني د كوم مال چي په حقيقت كي هغه خپله مالكه وي نو هغه مال هم د خاوند د خوښي خلاف نه مصرف كوي او ددې څخه هغه مال هم مراد كيداى سي چي خپله د هغې ملكيت نه وي بلكه په حقيقت كي د هغې خاوند د هغه مالک وي البته د ښځي په واک او تصرف كي وي نو په دغه صورت كي هم دا مطلب دى چي د هغې خاوند هغې ته مال او سامان وركړي نو هغه د ځان سره په امانت ساتي په هغه كي خيانت نه كوي او نه د خاوند خوښي خلاف هغه مصرف كوي.

﴿۳۱۳۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنه اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صلى الله عليه وسلم قَالَ: اَرْبَعٌ مَنْ اُعْطِيهِن،

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: څلور شيان داسي دي چي چا ته وركړل سي نو

فَقَد اعطِيَ خَيْرُ الدُّنيَا وَالاٰخِرَةِ: قَلْبٌ شَاكِرٌ، وَلِسَانٌ ذَاكِر، وَبَدَن عَلَى البَلَاء صَابِرٌ، وَزَوجَةٌ لاتَبغِيهِ خونا فِي نَفسِهَا وَلامَالِه. رواه البيهقي في شعب الايمان

د دنيا او آخرت ښېګڼه وركړل سوه، شكر كوونكى زړه، ذكر كوونكې ژبه، پر ستونزو صبر كوونكى بدن او داسي ښځه چي سركښي نه كوي، نه په خپل ځان كي او نه دده په مال كي. بيهقي په شعب الايمان.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۴\۱۰۴، رقم: ۴۴۲۹.

===========

## بَابُ الْخُلْعِ وَالطَّلَاقِ (د خلعي او طلاق بيان)

**د خلع مطلب**: خُلع د خاء په پېښ سره او د خاء په زور سره اسم دى، د خلع لغوي معنى د يو شي كښل دي او په عامه توګه سره دا لفظ د بدن څخه اغوستى شى مثلا جامې، څپلۍ او داسي نورو د كښلو په معنى كي استعماليږي مګر د شريعت په اصطلاح كي ددغه لفظ معنى داده چي د نكاح د ملكيت د مال په عوض كي د خلع په لفظ سره زائل كول، يا د نكاح د ملكيت ختمولو لپاره د خلع په لفظ سره د خپل ښځي څخه مال اخيستل، ددغه شرعي اصطلاح وضاحت دادى كه چيري په ښځه او خاوند كي اختلاف راسي او په دواړو كي هيڅ ډول روغه نه سي

کیدای او سړی طلاق هم نه ورکوي نو ښځي ته جائز دي چي د څه مال په ورکولو سره یا د خپل مهر په ورکولو سره خلاصون تر لاسه کړي، مثلا خپل سړي ته ووایي چي دومره روپۍ واخله او خلع وکړه یعني ما پرېږده ، یا داسي ووایي چي کوم مهر ستا پر ذمه دی د هغه په عوض کي ما پرېږده ، ددې په جواب کي سړی ووایي چي ما پرې ښودلې نو په دې سره پر ښځه باندي یو طلاق بائن واقع کیږي او په دواړو کي به جلاوالی وسي .

مظهر رحمة الله عليه وايي چي په دې باره کي د علماؤ اختلافي قولونه دي که چیري یو سړی ښځي ته ووايي چي ما د دومره مال په عوض کي ستا سره خلع وکړه او ښځه ووایي چي ما قبوله کړه او بیا په ښځه او خاوند کي جلاوالی واقع سي نو آیا دا طلاق دی که فسخ دی؟ د امام ابوحنیفة او امام مالک رحمة الله علیهما مذهب دادی چي دا طلاق بائن دی ، او د امام شافعي رحمة الله عليه صحیح قول هم دادی مګر د امام محمد رحمة الله عليه مذهب دادی چي دا فسخ دی او د امام شافعي رحمة الله عليه یو قول دا هم دی .

که چیري د ښځي او خاوند په مینځ کي د اختلاف په وجه د خاوند زیاتي او سرکښي وي او خاوند ددغه زیاتۍ او سرکښۍ په وجه د ښځي څخه خلع غواړي نو په دغه صورت کي د خاوند لپاره دا مکروه دي چي هغه د خلع د معاوضې په توګه یو شی واخلي او که چیري د ښځي او خاوند د اختلاف بنیاد د ښځي نافرماني او سرکښي وي یعني د ښځي د نافرمانۍ او بد اخلاقۍ په وجه د خلع نوبت راغلی وي نو په دغه صورت کي د خاوند لپاره دا مکروه دی چي د هغې څخه د خلع په عوض کي دومره روپۍ واخلي کوم چي هغه د ښځي په مهر کي ورکړي وي او تر هغه هم زیات وي .

**د طلاق معنی** : د طلاق لغوي معنی خلاصول او پرېښودل دي، مګر د شریعت په اصطلاح کي د ښځي په نکاح سره عائد کېدونکو پابندیو څخه ازادولو ته طلاق ویل کیږي، د طلاق ډولونه او احکام به مخته راسي انشاء الله .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د ناخوښه خاوند څخه طلاق تر لاسه کیدای سي

﴿۳۱۳۵﴾: عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ امْرَأَةَ ثَابِتِ بْنِ قَيْسٍ أَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دی چي د ثابت بن قیس رضي الله عنه ښځه د رسول الله صلى الله عليه وسلم په

وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ ثَابِتُ بْنُ قَيْسٍ مَا أَعْتِبُ عَلَيْهِ فِي خُلُقٍ وَلَا دِينٍ

خدمت کي حاضره سوه او عرض يې وکړ : يا رسول الله! د ثابت بن قيس رضي الله عنه ما ته غصه نه راځي او نه د هغه په اخلاقو او دين کي ما ته څه عيب په نظر راځي

وَلٰكِنِّي أَكْرَهُ الْكُفْرَ فِي الْإِسْلَامِ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم أَتَرُدِّينَ عَلَيْهِ حَدِيقَتَهُ

مګر زه د هغه په نعمتو کي ناشکري نه خوښوم (يعني زما ورسره محبت نسته) په دې پوښتني نبي کريم صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل :ايا ته هغه باغ چي هغه يې په مهر کي در کړی دی ورکولای سې ؟

قَالَتْ نَعَمْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم اقْبَلِ الْحَدِيقَةَ وَطَلِّقْهَا تَطْلِيقَةً .رواه البخاري

هغې ورته وويل : هو ! نبي کريم صلى الله عليه وسلم ثابت را وغوښت او ورته يې وفرمايل : ته خپل باغ د هغې څخه بيرته واخله او هغې ته يو طلاق ورکړه .(بخاري) .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\۳۹۵،رقم: ۵۲۷۳.

**تشريح**: د ثابت ابن قيس رضي الله عنه د ښځي مطلب دا وو چي زه د خپل خاوند څخه جلاوالی له دې کبله نه غواړم چي هغه بد اخلاقه دی يا د هغه عادتونه زما خوښ نه دي يا دا چي د هغه په دين کي تاوان دی بلکه له دې کبله چي زما دهغه سره مينه نه سته او هغه په طبعي توګه زما خوښ نه دی مګر په هر حال هغه زما خاوند دی او زما سره دا ډېره ده چي زما له خوا داسي يو حرکت ونه سي چي د اسلامي حکم خلاف وي د مثال په توګه زما څخه نافرماني ونه سي يا د هغه د خوښي خلاف يو کار را څخه ونه سي نو په دغه صورت کي به د نعمت کفران يا ګناه وي چي زه يې نه خوښوم ځکه زه د هغه څخه جلاوالی اختياروم ،

ويل کيږي چي ثابت ابن قيس رضي الله عنه ډېر بد صورته او لنډی وو، او د هغه ښځه چي حبيبه يا جميله نومېدل ډېره ښائسته وه ځکه د دواړو جوړه ډېره نابرابره وه او د هغه ښځي هغه نه خوښوی نو رسول الله صلى الله عليه وسلم د هغوی دخوښي سره سم حضرت ثابت رضي الله عنه ته دا حکم ورکړ چي هغه خپل ښځي ته يو طلاق ورکړي ، ددې څخه معلومه سوه چي د طلاق ورکونکي په حق کي دا غوره او افضل دي چي هغه يو طلاق ورکړي که چيري رجوع کول وي نو رجوع به وکړي او ددې څخه دا خبره هم ثابته سوه چي خلع طلاق دی او فسخ نه دی ، د هدايه صاحب په دې باره کي د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه يو حديث هم نقل کړی دی چي (الخلع تطليقة بائنة) يعني خلع طلاق بائن دی .

## په حیض کي د طلاق څخه منع

﴿۳۱۳۶﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّهُ طَلَّقَ امْرَأَةً وَهِيَ حَائِضٌ فَذَكَرَ عُمَرُ

د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي هغه خپلي ښځي ته د حيض په حالت کي طلاق ورکړ حضرت عمر رضي الله عنه د دې ذکر

لِرَسُولِ اللهِ صلى الله عليه وسلم فَتَغَيَّظَ فِيهِ رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم ثُمَّ قَالَ لِيُرَاجِعْهَا ثُمَّ يُمْسِكْهَا

نبي کريم صلى الله عليه وسلم ته وکړ نبي کريم صلى الله عليه وسلم په دې واقعه باندي ډير خفه سو او ويې فرمايل: عبد الله دي خپله ښځه بيرته واخلي او هغه ته پکار دي چي خپله ښځه د خپل ځان سره وساتي

حَتَّى تَطْهُرَ ثُمَّ تَحِيضَ فَتَطْهُرَ فَإِنْ بَدَا لَهُ أَنْ يُطَلِّقَهَا فَلْيُطَلِّقْهَا طَاهِرًا قَبْلَ

تر دې پوري چي هغه پاکه سي د دې څخه وروسته که طلاق ضروري وي نو د پاکی په حالت کي دي طلاق ورکړي او په دې دوران کي دي

أَنْ يَمَسَّهَا فَتِلْكَ الْعِدَّةُ الَّتِي أَمَرَ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ ان تطلق لها النساء وفي

لاس نه وروړي او دا هغه عدت دی چي خداي جل جلاله د هغه حکم په قرانکريم کي فرمايلی دی چي په دې کي دي طلاق ورکړل سي.

رواية مُرْهُ فَلْيُرَاجِعْهَا ثُمَّ لِيُطَلِّقْهَا طَاهِرًا أَوْ حَامِلًا. متفق عليه.

او په دويم روايت کي دا الفاظ دي چي نبي کريم صلى الله عليه وسلم و حضرت عمر رضي الله عنه ته وفرمايل: عبد الله ته امر ورکړه چي بيرته رجوع وکړي او بيا چي هغه پاکه سي يا د حمل په حالت کي دي طلاق ورکړي. (بخاري او مسلم)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۸\ ۶۵۳، رقم: ۴۹۰۸، ومسلم ۲\ ۱۰۹۳، رقم: ۱\ ۱۴۷۱

**تشريح**: (فتغيظ فيه) يعني رسول الله صلى الله عليه وسلم ددغه واقعي څخه ډېر په غصه سو، دا ددې خبري دليل دی چي د حيض په حالت کي طلاق ورکول حرام دي که چيري دا حرام نه وای نو رسول الله صلى الله عليه وسلم به نه په غصه کېدی او د حيض په حالت کي طلاق ورکول ځکه حرام دي چي کيدای سي طلاق ورکونکي د حيض په حالت کي محض د کراهت په وجه طلاق ورکړی وي او هغه مصلحت

د هغه د طلاق ورکولو وجه نه وي چي د هغه په وجه طلاق ورکول حرام دي ، مګر که چيري يو ځوک د حيض په حالت کي طلاق ورکړي نو طلاق به واقع سي ، همدا وجه ده چي رسول الله ﷺ عبدالله ته د رجوع کولو حکم ورکړ او دا بالکل ظاهره خبره ده چي رجوع کول د طلاق وروسته وي .

دلته يو سوال پيدا کيږي چي په ذکر سوي صورت کي دوهم طهر (يعني د دوهم حيض ځخه وروسته د پاکۍ حالت) پوري د طلاق په مؤخذ کولو کي ځه حکمت دی ؟ صحيح خبره داده که چيري حکم دا وي چي په کوم حيض کي طلاق ورکړل سوی دی او بيا رجوع سوې ده نو د هغه حيض د تېريدو ځخه وروسته د پاکۍ په حالت کي دي طلاق ورکړل سي مګر ددې برعکس تر دوهم طهر پوري مؤخذ کړل سو په دې باره کي علماء وايي چي ددې ځو وجي دي اول خو دا چي رجوع کول يوازي د طلاق په غرض سره نه وي نو طلاق ورکول تر يو داسي وخت پوري زنډول پکار دي چي په هغه کي يوې خوا ته طلاق ورکول حلال او بلي خوا ته د طلاق پر فيصله د فکر کولو موقع هم ورکړل سي او کيدای سي يو داسي حل پيدا سي چي د طلاق ورکولو بالکل نوبت را نه سي او ظاهره ده چي ددغه دواړو حکمتونو رعايت په دوهم طهر کي کيدای سي .

دوهم دا چي تر دومره وخت پوري د طلاق ورکول زنډول په اصل کي د طلاق ورکونکي ددغه بد کار (يعني د حيض په حالت کي د طلاق ورکولو) سزا ده .

دريم دا چي د کوم حيض په حالت کي طلاق ورکړل سوی دی هغه او د هغه ځخه وروسته طهر دواړه د يو شي په حکم کي دي که چيري په اول طهر کي ورکړل سوی وي نو د حيض په حالت کي ورکړه ده مګر دا خبره دي په فکر کي وي چي ددغه درو وجهو ځخه دا خبره راسخ کيږي چي تر دوهم طهر پوري طلاق ځخه منع کېدل واجب نه دي بلکه غوره دي .

**دطلاق ډولونه** : په دې خبره پوه سئ چي د وخت او محل په اعتبار د نفس طلاق درې ډولونه دي ۱: احسن، ۲: حسن، او حسن ته سني هم وايي، ۳: بدعي .

د طلاق احسن صورت دادی چي طلاق هم په داسي طهر (يعني د پاکۍ په حالت) کي ورکړل سي چي په هغه کي يې جماع نه وي کړې او بيا هغه په هغه حالت پريږدي (يعني بيا هغې ته طلاق ور نه کړي او نه د هغې سره جماع وکړي تر دې چي د هغې عده پوره سي، د طلاق دغه اول ډول تر ټولو غوره دی .

د طلاق حسن صورت دادی چي يو طلاق رجعي په داسي طهر کي ورکړل سي چي په هغه کي جماع نه وي سوې په شرط ددې چي ښځه مدخول بها وي او که چيري ښځه مدخول بها نه وي نو د هغې لپاره يو طلاق حسن دی او هغې ته د حيض په حالت کي هم طلاق ورکول کېدای

سي ، او د آئسه، صغیره او حامله ښځو لپاره طلاق حسن دادی چي هغوی (تر درو میاشتو پوري) په هره میاشت کي یو طلاق ورکړل سي او دغه ښځو ته د جماع څخه وروسته هم طلاق ورکول جائز دي، د طلاق دغه دوهم ډول هم غوره دی.

د طلاق بدعي صورت دادی چي مدخول بها ښځي ته په یوه طهر کي په یو وار دري طلاق ورکړي یا داسي دوه طلاقه ورکړي چي په هغه کي د رجعت امکان نه وي یا هغې ته په هغه طهر کي طلاق ورکړي په کوم کي چي جماع کړې وي همدارنګه که چیري یو سړی د حیض په حالت کي طلاق ورکړي نو دا حکم د طلاق بدعي په حکم کي دی او که چیري هغه ښځه چي هغې ته د حیض په حالت کي طلاق ورکړل سوی دی مدخول بها وي نو د صحیح روایت سره سم هغې ته رجوع کول واجب دي مګر ځیني علماء رجوع کولو ته مستحب وایي بیا که چیري هغه پاکه سي او د هغه څخه وروسته دوهم حیض ورته راسي او بیا د هغه څخه هم پاکه سي نو طلاق ورکول که چیري ضروري وي نو هغې ته په دوهم طهر کي دي طلاق ورکړل سي ، د طلاق دغه دري سره ډولونه د شریعت په نظر کي ناخوښه دي که څه هم طلاق واقع کیږي مګر طلاق ورکونکی به ګناه کاروي.

د واقع کېدو په اعتبار د طلاق دوه ډولونه دي ۱: رجعي، ۲: بائن، د طلاق رجعي صورت دادی چي طلاق ورکونکی یو وار یا دوه واره په واضح الفاظو کي داسي ووایي چي (انت طالق یا طلقتک) یا داسي ووایي چي ته دي طلاقه یې یا ما تا ته طلاق درکړی، همدارنګه د طلاق په ورکولو سره طلاق ورکونکی د عدې په ورځو کي بېله نکاح رجوع کولای سي یعني که چیري هغه داسي ووایي چي ما تا ته رجوع وکړه یا هغې ته لاس وروړي یا مس یې کړي یا د هغې سره جماع وکړي نو په دې سره رجوع کیږي او دنوي نکاح ضرورت نه سته ، د طلاق بائن صورت دادی چي د طلاق په واضح الفاظو پر ځای په داسي الفاظو طلاق ورکړل سي کوم چي صراحتا د طلاق لپاره نه استعمالیږي مګر کنایتًا هغه د طلاق مفهوم ادا کوي ، پرته ددغه درو الفاظو د کنایه څخه کوم چي فقهاؤ د طلاق لپاره ګرځولي دي ، د طلاق بائن حکم دادی چي ښځه د نکاح څخه ووځي نو د نکاح د نوي کولو څخه پرته هغه ښځه خپل بي بي ګرځول حرام دي.

د حکم او نتیجې په اعتبار هم د طلاق دوه ډولونه دي ۱: مغلظه، ۲: مخففه، د طلاق مغلظه صورت دادی چي په یو وار دري طلاق ورکړل سي مثلا داسي ووایي چي ما دري طلاقه درکړل یا جلا جلا دري طلاقه ورکړل سي مثلا داسي ووایي چي ما طلاقه کړې، ما طلاقه کړې، ما طلاقه کړې، ددغه طلاق څخه وروسته طلاق ورکونکی هغه ښځه دوهم وار په خپل نکاح کي

بېله حلاله نه سي راوستلای ، د حلاله صورت دادی چي هغه ښځه د عدې تېرولو څخه وروسته د یو بل سړي سره نکاح وکړي او هغه دوهم سړی د هغې سره په جماع کولو هغې ته طلاق ورکړي او بیا چي د هغې عده پوره سي نو مخکنی خاوند د هغې سره نکاح وکړي .

د طلاق مخففه صورت دادی چي په یو وار یا جلا جلا دوه طلاقه ورکړي یا یو طلاق ورکړي ، بیا که چیري دغه دواړه طلاقه یا یو طلاق په واضح الفاظو سره وي نو په عده کي دننه رجوع کولای سي او د نکاح نوي کولو ضرورت نه سته او که چیري الفاظ په کنایه سره وي نو د نکاح د نوي کولو څخه وروسته هغه خپل ښځه جوړولای سي د حلاله ضرورت نه سته .

## د کومو خلکو ورکړی طلاق واقع کیږي او د کومو خلکو نه واقع کیږي

د هر عاقل او بالغ سړی ورکړی طلاق واقع کیږي که هغه ازاد وي یا غلام وي او که هغه په خپل خوښه سره طلاق ورکړی وي او که د چا په زور سره یا د نشې په حالت کي یې ورکړی وي .

همدارنګه که چیري عاقل او بالغ سړی ګونګی وي او هغه د اشارې په ذریعه طلاق ورکړي نو د هغه طلاق هم واقع کیږي او د هلک او لیوني ورکړی طلاق نه واقع کیږي همدارنګه که چیري بېده سړی طلاق ورکړی او د کښېنستو څخه وروسته ووایي چي ما تا ته په خوب کي طلاق درکړی دی نو د هه طلاق هم نه واقع کیږي که چیري یو مالک د خپل غلام ښځي ته طلاق ورکړي نو د هغه طلاق هم نه واقع کیږي .

په طلاق کي اصل اعتبار د ښځي دی، د ازادي ښځي لپاره درې طلاقه دي که چیري هغه د یو غلام په نکاح کي وي ، همدارنګه د مینزي لپاره دوه طلاقه وي که چیري هغه د یو ازاد سړي په نکاح کي وي .

## د اختیار مسئله

﴿۳۱۲۷﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ خَيَّرَنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاخْتَرْنَا اللّٰهَ وَرَسُولَهُ فَلَمْ يَعُدَّ ذٰلِكَ عَلَيْنَا شَيْئًا . متفق علیه .

د بي بي عائشې ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ موږ ته د دنیا او اخرت اختیار را کړ او په دې اختیار را کولو کي په موږ کي هیڅ شی واقع نه سو (یعني هیڅ ډول طلاق واقع نه سو ) او د دې صورت دادی چي که څوک و خپلي ښځي ته ووایي چي تا ته اختیار دی ما قبلوی یا د خپل نفس اختیار لری نو په دې سره ښځه نه طلاقیږي . (بخاري او مسلم) .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\۳٦۷، رقم: ۵۲٦۲، ومسلم ۲\۱۱۰۳، رقم: ۲۴- ۱۴۷۷

**تشريح**: ددغه حديث شريف څخه معلومه سوه كه چيري يو څوک خپل ښځي ته ووايي چي خپل ځان اختيار كړه يا ما اختيار كړه او بيا ښځه خاوند اختيار كړي نو په دغه صورت كي طلاق نه واقع كيږي، د امام ابو حنيفة او امام شافعي رحمة الله عليهما دا مذهب دى مگر كه چيري ښځه خپل ځان اختيار كړي نو په دغه صورت كي د امام شافعي او امام احمد رحمة لله عليهما په نزد طلاق رجعي او د امام ابو حنيفة رحمه الله په نزد طلاق بائن او د امام مالک رحمه الله په نزد دري طلاقه واقع كيږي.

نقل سوي دي چي په صحابه كرامو كي اميرالمؤمنين حضرت علي رضي الله عنه ددې قائل وو چي ښځي ته د خاوند په محض اختيار وركولو سره طلاق رجعي واقع كيږي كه څه هم هغه خپل خاوند اختيار كړي.

حضرت زيد ابن ثابت رضي الله عنه ددې قائل وو چي طلاق بائن واقع كيږي، بي بي عائشې رضي الله عنها ددغه دواړو قولونو په رد كي ددغه حديث په بيانولو سره دا واضحه كړې ده چي خاوند په محض اختيار وركولو سره هيڅ طلاق نه واقع كيږي.

## يو شی پر ځان باندي حراموlو سره كفاره لازميږي

﴿۳۱۳۸﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ فِي الْحَرَامِ يُكَفِّرُ لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللّٰهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ }. متفق عليه.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي كوم سړی په ځان باندي يو شی حرام كړی نو پر هغه باندي كفاره ده او ستاسو لپاره د رسول الله صلى الله عليه وسلم پيروي كول څومره ښه ده. (بخاري او مسلم).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۸\٦۵٦، رقم: ۴۹۱۱، ومسلم ۲\۱۱۰۰، رقم: ۱۸\ ۱۴۷۳

**د لغاتو حل**: في الحرام: اى في التحريم.

**تشريح**: مطلب دادی كه چيري يو سړی پر ځان باندي يو شی حرام كړي كه هغه شی دده خپل يا د بل چا شی وي نو پر هغه د قسم كفاره لازميږي او هغه شی نه حراميږي، ابن عباس رضي الله عنه ددې قائل وو او د حنفيه حضراتو مذهب هم دادی كه چيري يو سړی يو شی پر ځان حرام كړي كه څه هم هغه شی په خپله حرام وي يا د بل چا په ملكيت كي وي مثلا داسي ووايي چي پر ما شراب حرام دي يا د فلاني مور پر ما حرامه ده نو دا د قسم په توګه دی په شرط ددې كه چيري هغه د يو

حرام شي په باره کي دا ويلي وي چي دا شی پر ما حرام دی او هغه وخوري يا يې استعمال کړي نو هغه حانث يعني قسم ماتونکی سو او پر هغه باندي هغه کفاره لازميږي کوم چي پر قسم ماتونکي باندي لازميږي مګر که چيري هغه شی صدقه کړي يا يې يو چا ته هبه کړي نو بيا نه حانث کيږي او پر هغه هيڅ کفاره نه لازميږي.

حضرت ابن عباس ﷺ د خپل خبري په تائيد کي دغه آيت کريمه (لقد کان لکم...) ووايه او دې ته يې اشاره وکړه چي کله رسول الله ﷺ پر ځان باندي عسل حرام کړل نو د دغه آيت کريمه (يا ايها النبي لم تحرم ما احل الله لک) په ذريعه رسول الله ﷺ ته د کفارې ورکولو حکم ورکړل سو (چي تفصيلي ذکر به يې مخته راسي) نو پر تاسو د رسول الله ﷺ پيروي لازمه ده که تاسو يو شی پر ځان حرام کړی او بيا د هغه شي په استعمالولو سره حانث سئ نو کفاره ادا کړئ.

که يو څوک داسي ووايي چي ټول حلال شيان پر ما حرام دي نو د داسي قول په باره کي فتوا داده چي په داسي ويلو سره د هغه پر ښځي باندي طلاق واقع کيږي که څه هم هغه د طلاق نيت نه وي کړی او که چيري خپل ښځي ته داسي ووايي چي ته پر ما حرامه يې نو دا به ايلاء سي په شرط ددې چي هغه په حقيقت کي د حرام کولو نيت کړی وي يا يو نيت يې نه وي کړی او که چيري هغه ددغه ويلو په وخت کي چي ته پر ما حرامه يې د درواغو نيت کړی وي نو دا ويل به لغو وي يعني په دغه ويلو سره به عندالله هيڅ نه کيږي مګر دا معامله که حاکم ته ورسيږي نو حاکم به د ايلاء حکم جاري کوي او که چيري ددغه ويلو پر وخت هغه د طلاق نيت کړی وي نو طلاق بائن واقع کيږي او که چيري د درو طلاقو نيت يې کړی وي نو درې طلاقه واقع کيږي او فتوا پر دې ده، که چيري د طلاق نيت يې نه وي کړی نو بيا هم طلاق بائن واقع کيږي.

﴿۳۱۳۹﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَمْكُثُ عِنْدَ زَيْنَبَ

د عائشې ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به بي بي زينب بن حجش (خپله بي بي) ته ورتلی

بِنْتِ جَحْشٍ وَشَرِبَ عِنْدَهَا عَسَلًا فَتَوَاصَيْتُ أَنَا وَحَفْصَةُ أَنَّ أَيَّتَنَا دَخَلَ

او هلته به يې شات خوړل (بي بي عائشه ﷺ وايي) چي ما او بي بي حفصې ﷺ په خپلو منځو کي مشوره وکړه چي په موږ کي چي و کومي يوې ته تشريف راوړي نو هغه وخت به

عَلَيْهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلْتَقُلْ إِنِّي أَجِدُ مِنْكَ رِيحَ مَغَافِيرَ أَكَلْتَ

رسول الله ﷺ ته وواېو چې ستا د خولې څخه د مغافيرو (يو قسم ميوه چې د شاتو سره مشابه ده) بوی راځي ايا تاسو مغافير خوړلی دي؟

مَغَافِيرَ فَدَخَلَ عَلَى إِحْدَاهُمَا فَقَالَتْ له ذٰلِكَ فَقَالَ لَا بَاسَ شَرِبْتُ عَسَلًا

نو نبي کريم ﷺ په هغوی کي يوې ته تشريف راوړ او هغې د نبي کريم ﷺ څخه دغه عرض وکړ نبي کريم ﷺ ورته وويل : هيڅ خبره نه ده د بي بي زينبي ﷺ کره مي شات خوړلی دي

عِنْدَ زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ فَلَنْ أَعُودَ لَهُ وَقَدْ حَلَفْتُ لَا تُخْبِرِي بِذٰلِكَ أَحَدًا

او بيا به هيڅکله زه شات نه خورم خو ته د دې څخه څوک مه خبروه چې ما د شاتو د خوړلو څخه قسم اخيستي دی .

يَبْتَغِي مَرْضَاتَ أَزْوَاجِهِ فَنَزَلَتْ يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ لِمَ تُحَرِّمُ مَا أَحَلَّ اللَّهُ لَكَ

تَبْتَغِي مَرْضَاتَ أَزْوَاجِكَ الاية . متفق عليه .

چې په بيبيانو کي د دې څخه و چاته تکليف و نه رسيږي . په دې خبره باندي دا ايت نازل سو : يا ايها النبي .........ازواجک. (اې نبي !ته په ځان باندي ولي هغه شيان حراموې چې د هغې خوراک تاته حلال دی ). (بخاري او مسلم) .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۸\۶۵۶، رقم: ۴۹۱۲، ومسلم ۲\۱۱۰۰، رقم: ۲۰- ۱۴۷۴

**د لغاتو حل**: مغافير: وهو ثمرة العصاه كالعرفط والقشر. (يو ډول ميوه)

**تشريح**: د بي بي زينب بنت حجش ﷺ سره به پاته کېدی: دا د هغې د نوبت (وار) ذکر نه دی بلکه ددې څخه مراد دادی چې رسول الله ﷺ به خپلو بيبيانو ته د ګښت کولو لپاره ورتلی او د بي بي زينب کور ته به يې تشريف راوړ نو هغه وخت به د هغې سره پاته کېدی .

مغافير د يو درختي د ميوې نوم دی چې د سرېښو مشابه وي او د هغه بوی خراب دی او يو ډول د عسلو د بوی سره مشابهت لري .

ددغه حديث شريف خلاصه داده چې د رسول الله ﷺ عسل ډېر خوښ وه کله چې به رسول الله ﷺ د ګښت (ګرځېدو) پر وخت بي بي زينب ﷺ ته راغلی نو هغې به رسول الله ﷺ ته عسل ورکول ، په دې وجه رسول الله ﷺ به د بي بي زينب ﷺ سره لږ زيات پاته کيدی ، دا خبره بي بي

عائشې ﷞ ته سخته سوه نو هغې د رسول الله ﷺ د يو بلي بي بي حفصې ﷞ سره چي بي بي عائشې ﷞ ته ډېره نژدې وه او په اکثرو معاملو کي به يې د هغې سره اتفاق کوی د ذکر سوي خبري کولو په باره کي يې مشوره سره وکړه چي رسول الله ﷺ د بي بي زينب ﷞ سره پاته کېدل او عسل خوړل پرېږدي نو همداسي وسول لکه څرنګه چي ذکر سول مګر الله تعالی ته دا خبره خوښه نه سوه چي رسول الله ﷺ يو حلال شی د خپلو بيبيانو د خوښۍ لپاره پر ځان حرام کړي نو ذکر سوی آيت کريمه نازل سو .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د بېله ضرورته طلاق غوښتونکي ښځي لپاره وعيد

﴿۳۱۴۰﴾: وَعَنْ ثَوْبَانَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّمَا امْرَأَةٍ سَأَلَتْ زَوْجَهَا طَلَاقًا مِنْ غَيْرِ بَأْسٍ فَحَرَامٌ عَلَيْهَا رَائِحَةُ الْجَنَّةِ . رواه احمد والترمذي وابوداؤد وابن ماجة والدارمي .

د حضرت ثوبان ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کومه ښځه چي بيله کومي وجي د خپل خاوند څخه طلاق غواړي په هغې باندي د جنت بوی حرام دی . (احمد ترمذي ابو داؤد ابن ماجه دارمي)

**تخريج**: احمد في المسند ۵\ ۲۷۷، وابوداود في السنن ۲\ ۶۶۷، رقم: ۲۲۲۶، والترمذي في السنن ۳\ ۴۹۳، رقم: ۱۱۸۷، وابن ماجه في السنن ۱\ ۶۶۲، رقم: ۲۰۵۵، والدارمي ۲\۲۱۶، رقم: ۲۲۷۰

### طلاق ښه شی نه دی

﴿۳۱۴۱﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَبْغَضُ الْحَلَالِ إِلَى اللهِ تَعَالَى الطَّلَاقُ . رواه ابوداؤد .

د حضرت ابن عمر ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : په حلالو شيانو کي تر ټولو بد شی د الله تعالی په نزد طلاق دی . (ابوداؤد)

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲\ ۶۳۱، رقم: ۲۱۷۸

**تشریح**: مطلب دادی که څه هم طلاق حلال او مباح دی مګر د الله تعالی په نزد مبغوض او مکروه دی، داسي ډېر شیان دي چي هغه مباح خو دي مګر مکروه ګڼل کیږي د مثال په توګه فرض لمونځ بېله عذره په کور کي کول، یا پر غضب وهل سوي مځکه باندي لمونځ کول که څه هم دا مباح دي مګر مکروه دي.

## د نکاح څخه مخکي د طلاق ورکولو مسئله

﴿۳۱۴۲﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لاَ طَلاَقَ قَبْلَ نِكَاحٍ

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د نکاح تر مخه طلاق نسته او

وَّلاَ عِتَاقَ إِلاَّ بَعْدَ مِلْكٍ وَّلاَ وِصَالَ فِيْ صِيَامٍ وَّلاَ يُتْمُ بَعْدَ احْتِلاَمٍ وَلاَ رِضَاعَ بَعْدَ فِطَامٍ وَّلاَ صُمْتَ يَوْمٍ إِلَى اللَّيْلِ. رواه في شرح السنة

نه د مالک کېدو ترمخه غلام ازادولای سي او (په یو مخ) روژې نیول جائز نه دي او د بالغ کېدو څخه وروسته څوک یتیم نه پاته کیږي او د شیدو د رودلو د مودې څخه وروسته څوک په رضاعت کي نه شاملیږي او تمه ورځ چپه خوله پاته کېدل هم جائز نه دي. (شرح السنة).

**تخریج**: البغوي في شرح السنة ۹\۱۹۸، رقم: ۲۳۵۰.

**تشریح**: په دغه روایت کي د یو څو اصولي خبرو ذکر سوی دی، فرمایل سوي دي که یو سړی د نکاح څخه مخکي طلاق ورکړي نو هغه طلاق نه واقع کیږي ځکه چي طلاق په اصل کي د نکاح جز دی که چیري د نکاح وجود پیدا سي نو پر هغه د طلاق اثر هم مرتب کیږي او کله چي نکاح بالکل سوې نه وي نو د طلاق هم څه حقیقت نه وي.

همدارنګه ویل سوي دي چي غلام تر څو پوري په خپل ملکیت کي را نه سي د هغه ازادول هیڅ معنی نه لري او که چیري یو سړی داسي یو غلام ازاد کړي چي تر اوسه د هغه مالک نه وي نو هغه غلام به ازاد نه وي، په دې اعتبار دغه حدیث د امام شافعي او د امام احمد رحمة الله علیهما د مذهب دلیل دی، د امام ابو حنیفة رحمه الله مذهب دادی که چیري یو سړی د نکاح څخه مخکي د طلاق نیت وکړي نو صحیح دی مثلاً زید یو پردۍ ښځي ته ووایي که ما ستا سره نکاح وکړه نو ته پر ما طلاقه یې، یا داسي ووایي چي زه د کومي ښځي سره نکاح وکړم هغه طلاقه ده، نو په دغه صورت کي که چیري زید د هغه ښځي سره نکاح وکړي نو د نکاح په وخت کي هغه طلاقه کیږي، همدارنګه که چیري یو څوک ووایي که زه د هغه غلام مالک سم یا داسي ووایي

چي زه د کوم غلام مالک سم هغه ازاد دی نو په دغه صورت کي هغه غلام د هغه په ملکیت کي په راتلو سره ازادیږي.

ددغه حدیث شریف د حنفیه حضراتو په نزد دا مطلب نه دی چي د هغه پر طلاق باندي هیڅ اثر نه مرتب کیږي بلکه مطلب دادی چي په کوم وخت کي هغه طلاق ورکړی دی په هغه وخت کي طلاق واقع کیږي همدارنګه ددغه حدیث د طلاق د تعلیق نفي نه کیږي، یوه خبره یې دا وفرمایل چي تړوله ورځ چپ اوسېدل ناجائز او لا حصل وي ددغه ممانعت وجه داده چي په تېرو امتونو کي چپ اوسېدل په عبادت کي شمېرل کېدل او تړوله ورځ چپ اوسېدل د الله تعالی د تقرب ذریعه ګڼل کېدل، رسول الله ﷺ دا وضاحت وفرمایه چي زما د امت لپاره دا صحیح نه دي چي ددې په وجه هیڅ ثواب نه تر لاسه کیږي مګر خپل ژبه د لا یعني (بې ګټو) خبرو کي د بوختیا پر ځای دا غوره ده چي خپله ژبه هر وخت پټه وساتي.

﴿۳۱۴۳﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ

حضرت عمرو بن شعیب رضي الله عنه د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار څخه روایت کوي چي رسول

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا نَذْرَ لِابْنِ آدَمَ فِيمَا لَا يَمْلِكُ وَلَا عِتْقَ فِيمَا لَا يَمْلِكُ

الله ﷺ وفرمایل: د انسان فکر په هغه شي کي درست نه دي چي د هغه مالک نه وي او د هغه شي ازادول هم صحیح نه دي کوم چي د هغه مالک نه وي

وَلَا طَلَاقَ فِيمَا لَا يَمْلِكُ. رواه الترمذي و زاد ابوداؤد ولا بيع الا فيما يملك

او نه د هغې ښځي طلاق صحیح کیږي کوم چي د هغې سره یې نکاح نه وي کړې. (ترمذي ابوداؤد) او د ابوداؤد په یو بل روایت کي راغلي دي د هغه شی بیع صحیح نه ده چي د هغه مالک نه وي.

**تخریج**: ابوداود في السنن ۲\۶۴۰، رقم: ۲۱۹۰، والترمذي في السنن ۳\۴۸۶، رقم: ۱۱۸۱

**تشریح**: د نذر نه صحیح کېدو مطلب دادی که چیري یو سړی ووایي چي زه د الله تعالی د رضا لپاره نذر منم حالانکه د نذر منلو پر وخت هغه غلام د هغه په ملکیت کي نه وي نو دا به صحیح نه وي او که چیري ددې څخه وروسته د هغه غلام مالک سي نو هغه غلام به نه ازادیږي د طلاق او ازادولو په باره کي د مخکني حدیث په تشریح کي وضاحت سوی دی.

## د طلاق بت مسئله

﴿۳۱۴۴﴾: وَعَنْ رُكَانَةَ بْنِ عَبْدِ يَزِيدَ اَنَّهُ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ سُهَيْمَةَ الْبَتَّةَ فَأَخْبَرَ

د حضرت رکانه بن عبد يزيد رضي الله عنه څخه روايت دی چي هغه خپلي ښځي سهيمه رضي الله عنها ته طلاق بائن ورکړ وروسته يې په دغه اړه

بذالك النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالَ وَاللّٰهِ مَا أَرَدْتُ إِلَّا وَاحِدَةً فَقَالَ

رسول الله صلی الله علیه وسلم ته اطلاع ورکړه او عرض يې وکړ چي قسم په خداي ما د يوه طلاق اراده کړې وه رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمايل :

رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاللّٰهِ مَا أَرَدْتَ إِلَّا وَاحِدَةً فَقَالَ رُكَانَةُ وَاللّٰهِ

قسم په خداي تا د يوه طلاق اراده کړې وه ؟ رکانه وويل : قسم په خداي

مَا أَرَدْتُ إِلَّا وَاحِدَةً فَرَدَّهَا إِلَيْهِ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَطَلَّقَهَا

ما د يوه طلاق اراده کړې وه رسول الله صلی الله علیه وسلم و هغه ته خپله ښځه بيرته ورکړه وروسته رکانه رضي الله عنه

الثَّانِيَةَ فِي زَمَانِ عُمَرَ وَالثَّالِثَةَ فِي زَمَانِ عُثْمَانَ . رواه ابوداؤد والترمذي وابن ماجة والدارمي الا انهم لم يذكروا والثانية والثالثة .

خپلي ښځي ته دويم طلاق د حضرت عمر رضي الله عنه په خلافت کي ورکړ او دريم طلاق يې د حضرت عثمان رضي الله عنه په خلافت کي ورکړ (ابوداؤد ترمذي ابن ماجه) خو ابن ماجه د دويم او دريم طلاق ذکر نه دی کړی . .

**تخريج** : ابوداود في السنن ۲\ ۶۵۵ ، رقم: ۲۲۰۶ ، والترمذي ۳\ ۴۸۰ ، رقم: ۱۱۷۷ ، وابن ماجه في السنن ۱\ ۶۶۱ ، رقم: ۲۰۵۱ ، والدارمي ۲\ ۲۱۶ ، رقم: ۲۲۷۲

**تشريح** : د طلاق بته مطلب دادئ چي حضرت رکانه په دغه الفاظو سره طلاق ورکړ (انت طالق البتة) يعني تا ته دي طلاق البته وي، لفظ د البته د بته اسم دی چي معنی يې ده پرې کول، قطع کول نو د طلاق بته مفهوم دا سو چي داسي طلاق چي د نکاح تعلق بالکل نه پاته کوي او ښځي د نکاح څخه په قطعي توګه باسي ، ددې مطلب د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد دادی چي رسول الله

ﷺ رکانه ته د رجوع کولو حکم ورکړ یعني رکانه د رجوع کولو ددغه حکم په وجه (راجعتها الى نكاحي) یعني ما هغه په خپل نکاح کي بېرته واخیستل، ددغه الفاظو په ذريعه هغه ښځه په خپل نکاح کي بېرته واخیستل.

امام شافعي رحمة الله عليه دا مطلب ځکه اخیستی دی چي د هغه په نزد طلاق بته یو رجعي طلاق دی مګر که چیري ددې په ذریعه د دوو یا درو طلاقو نیت یې کړی وي نو بیا به دنیت سره سم دوه یا درې طلاقه واقع کیږي او د امام ابو حنیفة رحمة الله عليه په نزد په دغه لفظ سره په طلاق ورکولو سره یو طلاق بائن واقع کیږي که د یوه طلاق نیت یې کړی وي یا د وو طلاقو یا بالکل هیڅ نیت یې نه وي کړی ځکه د هغه په نزد ددغه جملې معنی داده چي رسول الله ﷺ هغه ښځه د نوي نکاح په ذریعه رکانه ته بېرته ورکړه.

## د نکاح او طلاق الفاظ په خندا او مخسرو کي هم ثابتیږي

﴿۳۱۴۵﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ثَلَاثٌ

د حضرت ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: درې داسي شیان دي چي

جِدُّهُنَّ جِدٌّ وَهَزْلُهُنَّ جِدٌّ النِّكَاحُ وَالطَّلَاقُ وَالرَّجْعَةُ. رواه الترمذي وابوداؤد وقال الترمذي هذا حديث غريب.

د ارادې سره واقع کیږي او په خندا (مسخرو) کي هم واقع کیږي. (۱): نکاح (۲): طلاق (۳): رجعت (یعني په یوه یا دوو طلاق ورکول څخه وروسته رجوع کول). (ترمذي ابوداؤد) او په ترمذي کي دا حدیث حسن غریب ګڼل سوی دی.

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲\۶۴۳، رقم: ۲۱۹۴، والترمذي في السنن ۳\۴۹۰، رقم: ۱۱۸۴

**تشريح**: د جد معنی ده په یو کار کي سعي او کوښښ کول، مګر دلته دا معنی مراد ده چي کوم لفظ د کومي معنی لپاره وضع سوی وي هغه په ژبه سره د ادا کولو پر وخت هغه معنی ځیني مراد سي د مثال په توګه لفظ د نکحت چي کله په ژبه سره ادا کړل سي نو ددې معنی نکاح اخیستل کیږئ یا کله چي لفظ د طلقت په ژبه سره ادا کړل سي نو ددې معنی د یوه طلاق ورکول دي او د لفظ هزل معنی ده چي په ژبه سره څه ادا کړل سي هغه معنی مراد نه وي.

نو د حدیث شریف مطلب دادی چي کوم شیان داسي وي چي په ژبه سره په ادا کولو سره واقع کیږي که څه هم د هغه معنی مراد وي یا مراد نه وي که د دوو پردي سړي او ښځي په مینځ

کي په خندا خندا کي د دوو شاهدانو په مخکي ایجاب او قبول وسي نو نکاح کیږي او هغوی دواړه به خاوند او ښځه وي او که یو څوک په خندا او مسخرو کي طلاق ورکړي نو طلاق واقع کیږي همدارنګه د طلاق رجعي څخه وروسته په خندا کي په رجوع کولو سره هم رجعت ثابتیږي او ددغه درو شیانو څخه علاوه نور شیان د مثال په توګه بیع، شراء او داسي په خندا او مسخرو کي نه واقع کیږي.

## په زوره طلاق واقع کیږي که یا؟

﴿۳۱۴۶﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَا طَلَاقَ وَلَا عَتَاقَ فِي اِغْلَاقٍ. رواه ابوداؤد وابن ماجة قیل معنی الاغلاق الاکراه

د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اورېدلي دي د زور په حالت کي نه طلاق واقع کیږي او نه ازادي (یعني که په زوره سره یو چا ښځي ته طلاق ورکړي یا یو غلام یې ازاد کړي نو طلاق او ازادي نه صحیح کیږي). (ابوداؤد ابن ماجه) او د اغلاق څخه مراد زور دی.

**تخریج**: ابوداود في السنن ۲\ ۶۴۲، رقم: ۲۱۹۳، وابن ماجه ۱\ ۶۶۰، رقم: ۲۰۴۶

**تشریح**: د اکراه معنی ده زور کول، نو ددغه حدیث شریف مطلب دا سو که چیري په یو چا په زوره طلاق ورکړل سي یا د هغه غلام ازاد سي نو نه طلاق واقع کیږي او نه د هغه غلام ازاد وي. دغه حدیث د امام شافعي، امام مالک او امام احمد رحمة الله علیهم د مذهب دلیل دی ځکه چي ددغه درو سره امامانو په نزد دغه دواړه شیان د زور په حالت کي نه واقع کیږي او د امام ابوحنیفة رحمه الله مذهب دادی چي واقع کیږي هغه دا پر هزل قیاس کړی دی (چي بیان یې په مخکني حدیث کي تېر سو) امام ابوحنیفة رحمه الله چي د خپل مذهب په دلیل کي څه وړاندي کړي دي هغه د فقهي په کتابو کي مذکور دي.

دلته دا ښوول ضروري دي چي د امام ابوحنیفة رحمه الله د مذهب سره سم د زور په حالت کي چي د کومو شیانو حکم ثابتیږي هغه یوولس دي: ۱: نکاح، ۲: طلاق، ۳: رجعت، ۴: ایلاء، ۵: فئ یعني د ایلاء څخه رجوع کوي، ۶: ظهار، ۷: عتاق، ۸: عفو قصاص یعني د قصاص معافول، ۹: قسم، ۱۰: نذر، ۱۱: د اسلام قبلول.

## د ليوني طلاق نه واقع كيږي

﴿۳۱۴۷﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّ طَلَاقٍ جَائِزٌ إِلَّا طَلَاقَ الْمَعْتُوهِ وَالْمَغْلُوبِ عَلَى عَقْلِهِ . رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب وعطاء بن عجلان الراوي ضعيف ذاهب الحديث .

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر طلاق ورکول واقع كيږي خو د بې عقل او مغلوب العقل طلاق نه واقع كيږي . (ترمذي كي د احديث غريب ګڼل كيږي )او عطاء بن عجلان راوي ضعيف دی او حافظه يې خرابه ده .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\۴۹۶، رقم: ۱۱۹۱

**تشريح**: د امام ابو حنيفة رحمه الله مذهب د دغه حديث مطابق دی ځکه چي د هغه په نزد د ليوني طلاق نه واقع كيږئ دلته په حديث كي د معتوه څخه مراد ليونی دی يعني هغه سړی چي كله مسلوب العقل وي او كله يې عقل پر ځای وي، په قاموس كي ليكلي دي چي د عته معنی د كم عقل كېدل، مدهوش كېدل دي او په صراح كي ليكلي دي چي معتوه بې عقل سړي ته هم وايي، د فقهي په كتابو كي د دې معنی دا بيان سوې ده، په دې اعتبار د حديث دغه جمله (والمغلوب علی عقله) دا د معتوه لفظ عطف تفسيري دی يعني په دغه جمله كي د معتوه وضاحت كول مقصد دی ځكه په ځينو روايتو كي المغلوب بېله واو نقل سوی دی .

د دغه تفصيل څخه ثابته سوه چي كله د معتوه طلاق نه واقع كيږي نو د ليوني سړی چي بالكل عقل او شعور نه لري د هغه طلاق په طريقه اولی نه واقع كيږي، زين العرب رحمه الله وايي چي معتوه ناقص العقل او مغلوب العقل ته وايي مګر ليونی، بيده سړی، مدهوش او داسي ناروغ چي د هغه عقل د هغه د مرضۍ په وجه تللی وي ټول هم د دغه لفظ په مفهوم كي داخل دي يعني د دغه ټولو طلاق هم نه واقع كيږي .

د معتوه لفظ په باره كي ابن همام رحمه الله د ځينو علماؤ دا قول نقل كړی دی چي معتوه هغه سړي ته وايي چي ناقص العقل او ناپوه وي او د بې عقلۍ او ناپوهۍ خبري كول مګر نه څوك وهي نه چا ته بښكنځل كوي پر خلاف د ليوني چي هغه خلک وهي او بښكنځل كوي .

د امام ترمذي رحمه الله د قول سره سم د دغه حديث راوي كه څه هم ضعيف دی مګر د دې تائيد د هغه روايت څخه كيږي كوم چي د حضرت علي رضي الله عنه څخه نقل سوی دی چي (كل طلاق جائز الا

طلاق المعتوه) يعني هر طلاق واقع كيږي مگر د معتوه سړی طلاق نه واقع كيږي.

## درې مرفوع القلم كسان

﴿۳۱۴۸﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رُفِعَ الْقَلَمُ

د حضرت علي ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د درو كسانو څخه قلم پورته

عَنْ ثَلَاثَةٍ عَنِ النَّائِمِ حَتَّى يَسْتَيْقِظَ وَعَنِ الصَّبِيِّ حَتَّى يبلغ وَعَنِ الْمَعْتُوهِ

سوی دی(يعني د هغوی قول او فعل د مواخذې څخه پاک دی). (۱): يو خو بيده دي تر څو پوري چي بيداره سوی نه وي.(۲): هغه كوچنی دی تر څو پوري چي بالغ سوی نه وی (۳): بې

حَتَّى يَعْقِلَ. رواه الترمذي وابوداؤد و رواه الدارمي عن عائشة وابن ماجة عنهما

عقل تر څو پوري چي په هوش نه وي را غلی. (ترمذي ابو داؤد دارمي) د بي بي عائشې رض او د ابن ماجه دواړو څخه روايت روايت سوې دی.

**تخريج**: ابوداود في السنن ۴\ ۵۶۰، رقم: ۴۴۰۳، والترمذي في السنن ۴\ ۲۴، رقم: ۱۴۳۲

## مينزي ته دوه طلاقه دي

﴿۳۱۴۹﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ طَلَاقُ الْأَمَةِ تَطْلِيقَتَانِ وَعِدَّتُهَا حَيْضَتَانِ. رواه الترمذي وابوداؤد وابن ماجة والدارمي

د بي بي عائشې ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ فرمايلي دی: د مينزي لپاره دوه طلاقه دي او عدت يې دوه حيضه دی او د دريم طلاق ضرورت نسته. ترمذي ابوداؤد ابن ماجه دارمي

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲\ ۶۳۹، رقم: ۲۱۸۹، والترمذي في السنن ۳\ ۴۸۸، رقم: ۱۱۸۲، وابن ماجه في السنن ۱\ ۶۷۲، رقم: ۲۰۸۰، والدارمي ۲\ ۲۲۴، رقم: ۲۲۹۴

**تشريح**: مطلب دادی چي څرنگه چي ازادي ښځي عده درې حيضه ده او كه چيري هغې ته حيض نه راځي نو د هغې عده درې مياشتي ده همدارنگه د مينزي عده دوه حيضه ده او كه چيري هغې ته حيض نه راځي نو د هغې عده به يوه نيمه مياشت وي.

همدارنگه دغه حديث شريف پر دې دلالت كوي چي په طلاق او عده كي د ښځي اعتبار وي نه د سړي، كه چيري ښځه ازاده وي نو د هغې طلاق به درې وي او د هغې د عدې وخت به

دري حيضه وي كه څه هم هغه د يو غلام په نكاح كي وي او كه ښځه مينزه وي نو د هغې طلاق به دوه وي او د هغې د عدې وخت به دوه حيضه وي كه څه هم د هغې خاوند ازاد سړى وي، د حنفيه مذهب هم دادى مګر د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد په طلاق او عده كي د سړي اعتبار دى كه چيري سړى ازاد وي نو د هغه د ښځي طلاق به درې وي او د هغې د عدې وخت به درې حيضه وي كه څه هم د هغه ښځه مينزه وي او كه چيري سړى غلام وي نو د هغه د ښځي طلاقه به دوه وي او د هغې د عدې وخت به دوه حيضه وي كه څه هم د هغه ښځه ازاده وي.

د دغه حديث شريف څخه معلومه سوه چي د عدې د وخت تعلق د حيض سره دى نه د طهر سره لكه څرنګه چي د حنفيه مذهب دى، يعني دا حديث ددې دليل سو چي د عدې د وخت په باره كي چي په قرآن كريم كي (ثلاثة قروء) فرمايل سوي دي نو د هغه څخه درې حيضه مراد دي او درې طهره مراد نه دي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د خپل خاوند څخه د طلاق يا خلع غوښتونكو ښځو وعيد

﴿۳۱۵۰﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْمُنْتَزِعَاتُ وَالْمُخْتَلِعَاتُ هُنَّ الْمُنَافِقَاتُ. رواه النسائي.

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د خپلو خاوندانو نافرماني ښځي او د خلعي (خلع د شرعي په اصطلاح كي دېته ويل كيږي چي د مال په مقابل كي دخپلي ښځي څخه جلاوالي اختيار كړي كه خاوند مال واخلي نو د ښځي سره يې خلعه وكړه نو ښځه په طلاق بائن سره طلاقيږي) مطالبه كونكي ښځي منافقي دي. (نسائي).

**تخريج**: سنن النسائي ۶/۱۶۸، رقم: ۳۴۶۱

**د لغاتو حل**: المُنتَزِعات: اى الناشزات التي ينتزعن انفسهن عن ازواجهن. (نافرمانه). المُختَلِعات: اى التي يطلبن الخلع والطلاق (هغه چي خلع او طلاق غواړي).

**تشريح**: مطلب دادى چي كومي ښځي بېله سببه د خپلو خاوندانو څخه طلاق غواړي يا د هغوى څخه خلع غواړي نو هغوى منافقي دي، د منافق مطلب دادى چي هغوى په ظاهره د اسلام د احكامو فرمانبرداره دي مګر په باطني توګه ګناه كاره دي.

## د ښځو د ټول مال په عوض کې خلع مکروه ده

﴿۳۱۵۱﴾: وَعَنْ نَافِعٍ عَنْ مَوْلَاةٍ لِصَفِيَّةَ بِنْتِ أَبِي عُبَيْدٍ أَنَّهَا اخْتَلَعَتْ مِنْ زَوْجِهَا بِكُلِّ شَيْءٍ لَهَا فَلَمْ يُنْكِرْ ذٰلِكَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ . رواه مالك .

حضرت نافع رضي الله عنه د صفيه بنت ابو عبيد رضي الله عنه د ازادي سوي مينزي څخه نقل کوي چي صفيې رض د خپل ټول مال په ورکولو سره د خپل خاوند څخه د خلعي مطالبه وکړه او عبدالله بن عمر رضي الله عنه د هغې څخه انکار ونکړ. (مالک).

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۲\۵۶۵، رقم: ۳۲

**تشريح** حضرت عبدالله ابن عمر رضي الله عنه ځکه د دې څخه انکار ونه کړ چي خلع په هر حال جائز وه که څه هم داسي (يعني د ښځي د ټول مال په عوض کي) خلع کول مکروه دي.

## په يو وار درې طلاقه ورکول حرام دي

﴿۳۱۵۲﴾: وَعَنْ مَحْمُودِ بْنِ لَبِيدٍ قَالَ أُخْبِرَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت محمود بن لبيد رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله صلى الله عليه وسلم خبر کړل سو چي يوه سړي

عَنْ رَجُلٍ طَلَّقَ امْرَأَتَهُ ثَلَاثَ تَطْلِيقَاتٍ جَمِيعًا فَقَامَ غَضْبَانًا ثُمَّ قَالَ أَيُلْعَبُ

خپلي ښځي ته درې طلاقه په يوه ځاي ورکړی دي نبي کريم صلى الله عليه وسلم په قهر سو او ودرېدی او ويې فرمايل: د خداي تعالي د کتاب سره ټوکي کيږي

بِكِتَابِ اللّٰهِ وَأَنَا بَيْنَ أَظْهُرِكُمْ حَتَّى قَامَ رَجُلٌ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَلَا أَقْتُلُهُ. رواه النسائي

او حال دا چي زه ستا سو سره موجود يم په دې اورېدو سره په صحابه کرامو کي يو کس ودرېدی او وه يې ويل: يا رسول الله! ايا زه دغه سړی قتل نه کړم؟ (نسائي).

**تخريج**: سنن النسائي ۶\۱۴۲، رقم: ۳۴۰۱.

**تشريح**: د الله تعالی د کتاب څخه د قرآن کريم دغه آيت (الطلاق مرتان ..... آيت الله هزوا) مراد دی، په دغه آيت کي يوې خوا ته دا حکم بيان سوی دی چي پر يوه ځای درې طلاقه باندي

ور نه کړل سي بلکه په جلا توګه سره ورکول پکار دي ، بلي خوا ته د (ولا تتخذوا ...) په ذریعه دا خبرتيا ورکړل سوې ده چي د الله تعالی احکام د لهو او لعب په ډول بې وقعته مه ګڼئ ، رسول الله ﷺ د دغه آیت کریمه ته اشاره وفرمایل چي په جلا توګه د طلاق ورکولو پر ځای پر یوه ځای د درو طلاقو ورکول د الله تعالی د حکم او منشاء خلاف ورزي ده او دا خلاف ورزي د الله تعالی په احکامو پوري خندا کول دي ځکه چي کوم څوک د الله تعالی د حکم خلاف ورزي وکړي هغه په حقیقت کي په خپل عمل سره دا ثابته کړه چي د هغه په نظر کي د الله تعالی د حکم هیڅ حیثیت نه سته چي په هغه عمل کول او عمل نه کول دواړه ورته برابر وي .

د امام ابو حنیفة رحمة الله علیه په نزد درې طلاق پر یوه ځای ورکول بدعت او حرام دی او د دغه حدیث څخه هم دا ثابتیږي ځکه رسول الله ﷺ به د یو سړی پر هغه فعل باندي په غصه کیدی چي د ګناه باعث به وو د امام شافعي رحمة الله علیه په نزد درې طلاقه په یوه ځای ورکول حرام نه دي بلکه ښه کار نه دی .

علماء کرام وایي چي درې طلاقه په یو وار نه ورکولو کي ګټه داده چي یو طلاق یا دوه طلاقه څخه وروسته کیدای سي الله تعالی د خاوند زړه هغه ښځي ته مائل کړي او د هغه په فیصله کي یو تبدیلي راسي چي هغه بېرته رجوع وکړي او د دواړو په مینځ کي د جلاوالی نوبت نه راسي .

د علماؤ په دې باره کي مختلف قولونه نقل سوي دي که چیري یو سړی خپل ښځي ته دا ووایي چي انت طالق یعني پر تا دي درې طلاقه وي، نو ایا د هغه پر ښځه به یو طلاق واقع سي که درې طلاقه واقع کیږي ، امام ابو حنیفة، امام مالک، امام شافعي او امام احمد او جمهور علماء وایي چي درې طلاقه واقع کیږي حال دا چي طاوس او ځیني اهل ظاهر دا وایي چي یو طلاق واقع کیږي .

د یو صحابي دا ویل چي زه هغه سړی قتل نه کړم، دا په دې وجه وو چي رسول الله ﷺ هغه سړي ته په کتاب الله باندي ټوکي کونکی ویلي وه چي کفر دی که چیري یو مسلمان د کفر په حد کي داخل سي نو د هغه سزا قتل ده حالنکه هغه صحابي په دې پوه نه سو چي رسول الله ﷺ د هغه سړي په باره کي کوم الفاظ فرمایلي دي هغه د زجر او توبیخ په وجه دي او د هغه حقیقي معنی مراد نه ده .

﴿۳۱۵۳﴾: وَعَنْ مَالِكٍ بَلَغَهُ اَنَّ رَجُلاً قَالَ لِعَبْدِ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ إِنِّيْ طَلَّقْتُ

د حضرت مالک رضي الله عنه څخه روايت دی چي هغه ته معلومه سوې ده چي يوه سړی عبد الله ابن عباس رضي الله عنه ته وويل: چي ما و خپلي ښځي ته په يوه وار

امْرَأَتِي مِائَةَ تَطْلِيْقَةٍ فَمَاذَا تَرٰى عَلَيَّ؟ فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ طُلِّقَتْ مِنْكَ بِثَلاَثٍ

سل طلاقه ور کړی دی تاسو زما په هکله څه حکم کوی؟ ابن عباس رضي الله عنه ورته وويل: په درې واره طلاق ويلو سره ستا طلاقونه واقع سوه او ستا ښځه ستا څخه جلا سوه

وَسَبْعٌ وَتِسْعُوْنَ اتَّخَذْتَ بِهَا آيَاتِ اللهِ هُزُوًا. رواه في الموطأ

او پاته اوو نيوي طلاقو سره دې د خداي جل جلاله د اياتونو سره ټوکي وکړې. (مؤطا).

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۲\۵۵۰، رقم: ۱.

**تشريح**: په مخکني حديث کي چي د کوم آيت (الطلاق مرتان ...) ذکر سوی دی حضرت ابن عباس رضي الله عنه دې ته اشاره کړې ده چي تا په داسي کولو سره د الله جل جلاله د حکم خلاف ورزي کړې ده

**د الله جل جلاله په نزد طلاق بد شی دی**

﴿۳۱۵۴﴾: وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ قَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل:

يَا مُعَاذُ مَا خَلَقَ اللهُ شَيْئًا عَلَى وَجْهِ الْأَرْضِ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِنَ الْعِتَاقِ وَلاَ خَلَقَ

اې معاذه! الله تعالي چي څومره شيان د مځکي پر مخ پيدا کړی دي نو په هغوی کي تر ټولو

اللهُ شَيْئًا عَلَى وَجْهِ الْأَرْضِ أَبْغَضَ إِلَيْهِ مِنَ الطَّلاَقِ. رواه الدار قطني

خوښ شی الله جل جلاله ته د مينزي يا غلام ازادول دي او تر ټولو بد شی د الله جل جلاله په نزد طلاق دی. (دار قطني)

**تخريج**: سنن الدار قطني ۴\۳۵، رقم: ۹۴.

**تشريح**: غلام او مينزه ازادول د الله تعالى په نزد تر ټولو غوره ځکه دی چي ددې په وجه يو انسان ته د هغه پيدائشي او فطري حق رسيږي هغه ته د يو داسي مخلوق د غلامۍ څخه

خلاصون په برخه کیږئ چي د انسان کېدو د حیثیت سره د هغه د مرتبې برابر دي او هغه د خپل پروردګار عبادت او طاعت ته فارغ سي او د هغه مالک د خپل دغه قربانۍ په وجه د دوږخ د اور څخه خلاصون ترلاسه کوي.

د خراب طلاق څخه مراد دادی چي د الله تعالی په نزد هغه طلاق ډېر خراب دی چي د یو حاجت او ضرورت څخه پرته محض د خپل نفس د خوشحاله کولو لپاره ورکړل سي، علامه ابن همام رحمه الله وايي چي په ځینو حالاتو کي طلاق ورکول مستحب هم دی د مثال په توګه ښځه لمونځ نه کوي او بد کاره وي نو هغې ته طلاق ورکول غوره دی.

په فتاوی قاضي خان کي لیکلي دي که چیري د یو چا ښځه لمونځ نه کوي نو هغه ددې وړ ده چي هغې ته طلاق ورکړل سي که څه هم د هغه سړي سره دومره مال نه وي چي د هغې مهر ادا کړي.

د ابو حفص بخاري رحمه الله دا قول نقل سوی دی که چیري یو بنده په داسي حال کي د الله تعالی ملاقات وکړي (یعني مړ سي) چي د هغه پر غاړه د هغه د ښځي مهر وي نو هغه زما په نزد د هغه څخه زيات غوره دی چي هغه د یو داسي ښځي سره صحبت وکړي کوم چي لمونځ نه کوي. دغه حدیث شریف پر دې دلالت کوي چي نکاح کول د عبادت لپاره د کونج اختیارولو څخه غوره دی.

# بَابُ الْمُطَلَّقَةِ ثَلاَثًا

## (د هغي ښځي بيان چي درې طلاقه ورکړل سوي وي)

کومي ښځي ته چي درې طلاقه ورکړل سي د هغې حکم په دغه باب کي بیان سوی دی، چي کله یو سړی خپل ښځي ته درې طلاقه ورکړي او بیا هغه خپل ښځه بېرته کول غواړي نو دا صورت ممکن دی کله چي هغه ښځه دوهم سړي سره نکاح وکړي او د هغه سره کوروالي وکړي بیا هغه سړی طلاق ورکړي او هغه ښځه د خپل عدې د پوره کولو څخه وروسته د اول خاوند سره نکاح وکړي، د دغه مرحلو څخه د تېرېدو وروسته به هغه ښځه خپل اول خاوند ته حلاله وي.

د مشکوٰة په ځینو نسخو کي د باب المطلقة ثلاثا پر ځای دا عبارت هم لیکل سوی دی چي (وفیه ذکر الظهار والایلاء) یعني په دغه باب کي د ظهار او ایلاء ذکر هم سوی دی، د ظهار او ایلاء معنی او د هغه مسائل به انشاء الله تعالی مخته راسي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د حلالې صحيح كېدل ...

﴿۳۱۵۵﴾: عَنْ عَائِشَةَ قالت جَاءَتْ امْرَأَةُ رِفاعَةَ الْقُرَظِيّ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى

د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه روايت دی چي د رفاعه قرظي ښځه د رسول الله ﷺ په خدمت كي

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ اِنِّيْ كُنتُ عِندَ رِفَاعَةَ فَطَلَّقَنِي فَبَتَّ طَلَاقِي فَتَزَوَّجْتُ

حاضره سوه او عرض يې وكړ زه د رفاعه په نكاح كي وم او هغه ما ته درې طلاقه راكړه وروسته مي نكاح وكړه

بَعْدَهُ عَبْدَ الرَّحْمٰنِ بْنَ الزَّبِيرِ وَ مَا مَعَهُ اِلاَّ مِثْلُ هُدْبَةِ الثَّوْبِ فَقَالَ

د عبدالرحمن بن زبير رضي الله عنه سره او د هغه سره (مخصوصه عضوه) نسته خو د زړېدلي ټوكر په شان رسول الله ﷺ ورته وفرمايل:

أَتُرِيدِينَ أَنْ تَرْجِعِي إِلَى رِفَاعَةَ قَالَتْ نَعَمْ قَالَ لَا حَتَّى تَذُوقِي عُسَيْلَتَهُ وَيَذُوقَ عُسَيْلَتَكِ . متفق عليه

ايا ته د دويم وار لپاره اراده لرې چي د رفاعه په نكاح كي راسې؟ هغې ورته وويل : هو! وروسته نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل : ته تر هغه وخته پوري د رفاعه سره نكاح نسې كولاي تر څو چي ته د عبدالرحمن څخه خوند وانخلې او عبدالرحمن ستا څخه خوند وا نخلي . (بخاري او مسلم) .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۵\۲۴۹، رقم: ۲۶۳۹، ومسلم ۲\۱۰۵۵، رقم: ۱۱۱\۱۴۳۳

**تشريح**: د حديث د آخري جملې مطلب دادی چي تر څو پوري ستا دوهم خاوند ستا سره جماع ونه كړي (او بيا د هغه د طلاق څخه وروسته د عدې ورځي پوره نه سي) ته خپل مخكني خاوند يعني رفاعه رضي الله عنه سره نكاح نه سې كولای، دا حديث مشهور دی او پر دې خبره دلالت كوي چي حلاله يعني د مخكني خاوند لپاره د حلال كېدو لپاره د بل چا سره محض نكاح كول كافي نه دي بلكه د هغه سره جماع كول هم ضروري دي البته په جماع كي يوازي دخول كافي دی انزال شرط نه دی .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### پر محلل او محلل له باندي لعنت

﴿۳۱۵۶﴾: عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ لَعَنَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْمُحَلِّلَ وَالْمُحَلَّلَ لَهُ . رواه الدارمي ورواه ابن ماجه عن علي وابن عباس وعقبة بن عامر .

د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ په حلالونكي او چي ورته حلاليږي دواړو باندي لعنت ويلي دی (يعني كه يو سړی خپلي ښځي ته دري طلاقه وركړي بيا هغه و بل سړی ته ووايي چي ته د دې سره نكاح وكړه او زما دپاره يې حلاله كړه نبي كريم ﷺ پر دې دواړو باندي لعنت ويلي دی). (دارمي او ابن ماجه د حضرت علي رضي الله عنه حضرت ابن عباس رضي الله عنه او حضرت عقبه بن عامر رضي الله عنه څخه روايت نقل كړې دی).

**تخريج**: سنن الدارمي ۲\۲۱۱، رقم: ۲۲۵۸.

**تشريح**: د مثال په توګه دوه كسان دي چي د يوه نوم زيد دی او د بل نوم بكر دی، زيد خپل ښځي خالدې ته دري طلاقه وركړي دي او د هغې د عدې ورځي پوره سوي دي اوس زيد غواړي چي خالده بېرته په خپل زوجيت كي راولي نو دوهم سړی د خالدې سره په دې شرط نكاح كوي چي د جماع څخه وروسته به خالدې ته طلاق وركړي تر څو چي خالده د مخكني خاوند زيد سره بېرته نكاح وكړي او د خالدې اول خاوند ته محلل له ويل كيږي .

په حديث كي د دغه دواړو په باره كي ويل سوي دي چي رسول الله ﷺ پر هغوی لعنت ويلی دي پر حلاله كونكي باندي د لعنت ويلو وجه داده چي هغه په ژبه سره د تحليل د شرط اظهار او اقرار كولو څخه وروسته او محض د جلاوالي اختيارولو په قصد سره د هغه ښځي سره نكاح وكړه حال دا چي نكاح د دې لپاره مشروع سوې ده چي د دې په ذريعه سړی او ښځه د همېشه لپاره د يو بل د ژوند ملګري وي نو په دغه صورت كي نه يوازي دا چي د نكاح پر اصل مقصد باندي رد واقع كيږي بلكه د ښځي عزت او حرمت هم مجروح كيږي ځكه په يو حديث كي هغه ته د مستعار ميږي سره تشبيه وركړل سوې ده .

پر محلل له يعني اول خاوند باندي د لعنت ويلو وجه داده چي د دغه صورت حال او د دغه

نکاح اصل باعث هغه جوړ سوی دی مګر دا خبره دي په ذهن کي وي چي د حدیث څخه دا معلومیږي چي په دغه صورت کي عقد نکاح باطل کیږي بلکه د حدیث د الفاظو څخه دا ثابتیږي چي عقد صحیح کیږي ځکه چي په حدیث کي نکاح کونکي ته محلل ویل سوي دي او دا ظاهره خبره ده چي یو محلل په هغه صورت کي وي کله چي عقد صحیح وي په عقد فاسد سره نه محلل کیږي نو ثابته سوه چي په دغه ارشاد کي د لعنت د حقیقي مفهوم مراد نه دی بلکه دلته مراد د محلل او د محلل له بدوالی ظاهرول دي او دا واضح کول دي چي دا یو بد کار دی چي یو سلیم الطبع انسان یې نه سي زغملای.

**د حلاله د مکروه تحریمي کېدو صورت** : د هدایه او د فقه د نورو کتابو څخه معلومیږي که چیري حلاله په ژبه سره مشروط کړل سوې وي یعني محلل هغه ښځي ته چي د هغې خاوند ورته دري طلاقه ورکړي دي دا ووایي چي زه ستا سره له دې کبله نکاح کوم چي تا د هغه خاوند لپاره چي تا ته یې طلاق درکړی دی حلاله کړم (یعني زه یوازي ددې لپاره ستا سره نکاح کوم چي زه د جماع څخه وروسته تا طلاقه کړم او د اول خاوند لپاره ستا دوهم وار نکاح کول حلال سي) یا ښځه محلل ته دا ووایي چي زه ستا ددې لپاره نکاح کوم چي زه د خپل اول خاوند لپاره حلاله سم نو په دغه صورت کي به حلاله مکروه تحریمي وي مګر که چیري په ژبه سره دا ونه ویل سي مګر په نیت کي دا خبره وي نو بیا محلل به نه د مؤاخذې وړ وي او نه به د لعنت وړ وي ځکه چي په دغه صورت کي به دا ویل کیږي چي د هغه مقصد په اصل کي د حالاتو اصلاح ده.

ابن همام رحمة الله علیه ویلي دي که چیري هغه ښځه کومي ته چي درې طلاقه ورکړل سوي دي د غیر کفو (یعني غیر سیال) سره د خپل ولي د اجازې څخه پرته نکاح وکړي او بیا د هغه سره جماع هم وکړي نو په دغه صورت کي به هغه ښځه د اول خاوند لپاره حلاله نه وي او فتوا پر همدې باندي ده.

## د ایلاء مسئله

﴿۳۱۵۷﴾: وَعَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ قَالَ أَدْرَكْتُ بِضْعَةَ عَشَرَ مِنْ أَصْحَابِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّهُمْ يَقُوْلُ يُوْقَفُ الْمُؤْلِيْ. رواه في شرح السنة

د حضرت سلیمان بن یسار رضي الله عنه څخه روایت دی چي ما د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په صحابه وو کي تر لسو

كسانو زيات ليدلي دي چي د هغوی بيان دی چي ايلاء كونكي ته دي مهلت وركړل سي (يعني چاچي دا قسم كړی وي چي تر څلورو مياشتو پوري يا د دې څخه زيات د خپلي بي بي سره كوروالي ونه كړي نو د ميعاد تر تېرېدو وروسته و هغه ته وخت وركړل سي يا خو به خپله بي بي بيرته اخلي او كفاره دي اداء كړي يا دي طلاق وركړي) . (شرح السنة) .

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۹\۲۳۷، رقم: ۲۳۷۳.

**تشريح**: ايلاء دې ته وايي چي يو سړی دا قسم وكړي چي زه به څلور مياشتي يا تر دې زيات د خپل ښځي سره جماع نه كوم كه چيري هغه د خپل ښځي سره جماع ونه كړي تر دې چي څلور مياشتي تېري سوې نو په دغه صورت كي د اكثرو صحابه كرامو د قول سره سم د هغهِ سړي پر ښځه د محض څلورو مياشتو تېرېدو څخه وروسته طلاق نه واقع كيږي بلكه ايلاء كونكی به ودرول سي يعني قاضي او حاكم به هغه بندي كوي او هغه ته به دا وايي چي يا خو خپلي ښځي ته رجوع وكړه يعني د هغې سره جماع وكړه او د خپل قسم نه پوره كولو كفاره وركړه او يا خپلي ښځي ته طلاق وركړه، د امام مالک ، امام شافعي او امام احمد رحمة الله عليهم دا مذهب دی او امام شافعي رحمة الله عليه وايي كه چيري هغه سړی د حاكم او قاضي پر دغه خبره عمل ونه كړي يعني نه ښځي ته رجوع كوي او نه طلاق وركوي نو حاكم او قاضي ته اختيار دی چي د هغه ښځي ته يو طلاق وركړي .

د امام ابو حنيفة رحمة الله عليه مذهب دادی چي په دغه صورت كي كه چيري هغه سړی په څلور مياشتو كي دننه د خپل ښځي سره جماع وكړي نو د هغه ايلاء به ساقط سي مگر پر هغه به د قسم نه پوره كولو كفاره لازميږي او كه چيري هغه جماع ونه كړي تر دې چي څلور مياشتي تېري سي نو د هغه ښځه به په يوه طلاق بائن طلاقه سي ، د ايلاء نور مسائل او تفصيل د فقهي په كتابو كي كتلای سئ .

## د ظهار حكم

﴿۳۱۵۸﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَلْمَةَ أَنَّ سَلْمَانَ بْنَ صَخْرٍ وَيُقَالُ لَهُ سَلْمَةُ بْنُ صَخْرٍ

د حضرت ابو سلمه رضي الله عنه څخه روايت دی چي سليمان بن صخر خپله ښځه د ځان لپاره د خپلي

الْبَيَاضِيُّ جَعَلَ امْرَأَتَهُ عَلَيْهِ كَظَهْرِ أُمِّهِ حَتَّى يَمْضِيَ رَمَضَانُ فَلَمَّا مَضَى نِصْفٌ

مور د شا په شان وگرځوله (مثلا دا يې ورته وويل چي ته ما ته د خپلي مور د شا په شان يې) تر

هغه وخته پوري ترڅو چي روژه ختمه نسي وروسته روژه نه وه تیره سوی چي

مِنْ رَمَضَانَ وَقَعَ عَلَيْهَا لَيْلًا فَأَتَى رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ

سلیمان د خپلي ښځي سره کوروالي وکړه وروسته هغه د نبي کریم ﷺ په خدمت کي حاضر سو او واقعه یې ورته بیان کړه

ذٰلِكَ لَهُ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ أَعْتِقْ رَقَبَةً قَالَ لَا أَجِدُهَا قَالَ فَصُمْ شَهْرَيْنِ

رسول الله ﷺ ورته حکم وکړ چي ته یو غلام ازاد کړه هغه عرض وکړ چي زه د غلام د ازادېدو وس نه لرم نبي کریم ﷺ ورته وویل نو بیا دوې میاشتي مسلسل روژې و نیسه

مُتَتَابِعَيْنِ قَالَ لَا أَسْتَطِيعُ قَالَ أَطْعِمْ سِتِّينَ مِسْكِينًا قَالَ لَا أَجِدُ فَقَالَ

هغه وویل چي د روژو د نیولو هم طاقت نه لرم، نبي کریم ﷺ ورته وویل: په شپېتو مسکینانو باندي ډوډۍ وخوره عرض یې وکړ چي د دې هم را سره ګنجائش نسته نو رسول الله ﷺ

رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِفَرْوَةَ بْنِ عَمْرٍو أَعْطِهِ ذٰلِكَ الْعَرَقَ وَهُوَ مِكْتَلٌ

فروه بن عمر رضی اللہ عنہ ته حکم وکړ چي د خرماؤ یوه کڅوړه هغه ته ورکړه (چي هغه یوه سړی راوړې

يَأْخُذُ خَمْسَةَ عَشَرَ صَاعًا أَوْ سِتَّةَ عَشَرَ صَاعًا لِيُطْعِمَ سِتِّينَ مِسْكِينًا. رواه

وه) او په هغه کي ترپنځلسو صاعو او شپاړلسو کاسو پوري خرماوي وې چي ورکړې دي شپېتو مسکینانو ته. (ترمذي او ابو داؤد)

الترمذي و روى ابوداؤد وابن ماجة والدارمي عن سليمان بن يسار عن سلمة بن صخر نحوه قال كنت امراء اصيب من النساء ما لا يصيب غيري و في روايتهما اعني اباداؤد والدارمي فاطعم وسقا من تمر بين ستين مسكينا.

ابن ماجه او دارمي د سلیمان بن یسار څخه او هغه د سلمه بن صخر څخه هم په دې شان روایت

کړې دی هغه وویل چې د ښځو سره زما تعلق د نورو ځخه زیات دی او د ابوداؤد او دارمي په روایت کي بیان دی چې د خرماؤ یو وسق شپېتو مسکینانو ته ورکړه.

**تخریج**: الترمذي في السنن ۳\۵۰۳، رقم: ۱۲۰۰

**تشریح**: په دغه حدیث شریف کي د ظهار حکم بیان سوی دی، ظهار دې ته وایي چې یو سړی خپل ښځي ته یا د هغې د بدن یو داسي اندام ته چې د هغه په ویلو سره ټول بدن مراد کیږي یا د هغې د بدن یو داسي اندام ته چې غیر متعین وي محرمات ابدیه (یعني د مور، خور، عمه او داسي نور) د بدن د یو داسي اندام سره تشبیه ورکړي چې هغه ته کتل حلال نه وي لکه یو څوک خپل ښځي ته وو وایي چې ته پر ما زما د مور د شا په ډول حرامه یې، یا ستا د بدن نیمه برخه زما د مور د شا (ملا) یا نس په ډول ده یا زما د مور د ورون په ډول ده یا زما د خور یا زما د عمه د ملا په ډول ده، په همداسي ویلو سره د هغه ښځي سره جماع کول یا داسي فعل کول چې د جماع سبب جوړیږي لکه لاس ور وړل، مچه اخیستل او داسي نور تر هغه وخته پوري حرام دي تر څو چې د ظهار کفاره ادا نه کړل سي او که چیري یو څوک د ظهار د کفارې ادا کولو ځخه مخکي جماع وکړي نو پر هغه باندي د مخکني کفارې ځخه علاوه نور څه نه واجبیږي مګر هغه باید چې د الله تعالی ځخه بخښنه وغواړي او بیا تر څو چې کفاره ادا نه کړي دوهم وار د هغې سره جماع و نه کړي.

دا خبره باید په ذهن کي وي چې ظهار یوازي د ښځي او مینزي سره کیږي او ښځه که ازاده وي یا مینزه وي همدارنګه مسلمانه وي یا کتابیه یعني عیسائي یا یهودي وي، د ظهار نور مسائل د فقهي په کتابو کي کتلای سئ.

علامه طیبي رحمة الله علیه وایي چې د حدیث الفاظ (حتی یمضي رمضان) یعني تر څو چې رمضان ختم سي، دلته ظهار موقت صحیح کیږي او قاضي خان رحمة الله علیه ویلي دي چې کله یو سړی موقت ظهار کوي نو هغه تر هغه وخته پوري ظهار کونکی وي او کله چې هغه ټاکل سوی وخت تېر سي نو ظهار باطل کیږي.

علامه ابن همام رحمة الله علیه وایي که چیري یو سړی ظهار وکړي او د یو ورځي د مثال په توګه د جمعې د ورځي استثناء وکړي نو دا نه صحیح کیږي او که چیري د یوې ورځي یا یوې میاشتي لپاره ظهار وکړي نو تر هغه وخته پوري قید لګول صحیح دي او بیا د هغه وخت تېرېدو ځخه وروسته ظهار نه پاته کیږي.

اطعم ستين مسكينا : يعني شپېتو مسكينانو ته ډوډۍ ورکړه ، ددې څخه دوې خبرې مراد دي يا خو شپېته مسکينانو ته دوه وخته په ماړه نس خوراک ورکول دي او يا په هغوى کې هر يوه ته د صدقه فطر په اندازه غله يا د هغه قيمت ورکول دي او څرنګه چې د کفارې ادا کولو لپاره د غلام ازادولو په صورت کې د جماع څخه مخکې يو غلام ازادول ضروري دي يا د کفارې ادا کولو لپاره دوې مياشتې د روژې نېولو په صورت کې د جماع څخه مخکې دوې مياشتې پرله پسې روژې نيول ضروري دي همدا رنګه مسکينانو ته خوراک ورکول هم د جماع کولو څخه مخکې ضروري دی .

د حديث دغه جمله (شپېته مسکينانو ته خوراک ورکړه) په دې باره کې دا يو تردد پيدا کيداى سي چې رسول الله ﷺ شپېتو مسکينانو ته د خوراک ورکولو لپاره چې سلمه ابن صخر رضي الله عنه کومې خرماوې ورکړې د هغو مقدار خپله د روايت د وضاحت سره سم پنځلس يا شپاړلس صاع وو ، ددې څخه معلومه سوه چې هر مسکين ته يو صاع ورکول واجب نه دي حال دا چې د فقهې په کتابو کې دا ليکلي دي که چېرې خرماوې ورکړل سي نو د صدقه فطر د اندازې برابر يعني يو يو صاع دې ورکړل سي .

د حديث د جملې او د فقهې په حکم کې اختلاف واقع سو مګر ددغه جملې که چيرې دا ترجمه وکړل سي چې هغه خرماوې د شپېته مسکينانو په خوړلو کې صرف کړې نو بيا څه تعارض نه پاته کيږي ځکه چې په داسې ويلو سره به د ارشاد مطلب دا وي چې په دغه خرماوو کې د خپل طرف څخه د نورو خرماوو په يو ځاى کولو سره پر شپېته مسکينانو باندې وويشه .

ددغه څخه علاوه د ابوداؤد او دارمي د يو بل روايت دا الفاظ چې شپېته مسکينانو ته يو وسق خرماوې ورکړه ، دا هم ددې دليل دی چې ددغه جملې څخه دا مراد نه دی چې يوازې دغه خرماوې شپېته مسکينانو ته ورکړه بلکه مراد دادی چې په دغه خرماوو کې د خپل طرف څخه هم د خرما په يو ځاى کولو سره د يو وسق په اندازه پوره کړه او بيا هر مسکين ته يو يو صاع خرماوې ورکړه ، واضحه دې وي چې يو وسق د شپېته صاع په اندازه دی .

## د ظهار کفاره

﴿۳۱۵۹﴾ : وَعَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ عَنْ سَلَمَةَ بْنِ صَخْرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ

د حضرت سليمان بن يسار رضي الله عنه څخه او هغه د سلمه بن صخر څخه روايت کوي چې رسول الله

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمُظَاهِرِ يُوَاقِعُ قَبْلَ أَنْ يُكَفِّرَ قَالَ كَفَّارَةٌ وَاحِدَةٌ . رواه الترمذي وابن ماجة .

ﷺ د ظهار كونكي په اړه فرمايلي دی : كه هغه دكفاره وركولو څخه ترمخه د ښځي سره صحبت وكړي نو په هغه باندي يوه كفاره واجب ده . (ترمذي ابن ماجه) .

**تخريج**: الترمذي في السنن ۳\۵۰۲، رقم: ۱۱۹۸، وابن ماجه في السنن ۱\۶۶۶، رقم: ۲۰۶۴

**تشريح**: د اكثرو علماؤ دا مذهب دی كه چيري يو سړی ظهار وكړي او بيا د كفارې ادا كولو څخه مخكي جماع وكړي نو پر هغه هم يوه كفاره واجبيږي مگر ځيني علماء وايي چي د كفارې ادا كولو څخه مخكي د جماع كولو په صورت كي دوې كفارې واجبيږي .

كه يو سړی د خپلو ډېرو ښځو سره ظهار وكړي يعني هغوی ټولو ته داسي ووايي چي تاسو پر ما باندي زما د مور د ملا په ډول حرامي ياست نو په دغه صورت كي په اتفاق سره د ټولو علماء دادي چي دغه سړی به د هغه ټولو سره ظهار كونكی سي البته په دې باره كي اختلافي قولونه دي چي پر هغه به يوه كفاره واجبه وي كه زياتي ؟ د امام اعظم ابوحنيفة او امام شافعي رحمة الله عليهما په نزد پر هغه څو كفارې واجبيږي يعني په هغه ښځو كي چي د كومي سره د جماع اراده وكړي مخكي به كفاره ادا كول واجب وي، د حسن ، زهري ، ثوري او نورو حضراتو هم دا قول دی ، امام مالك او امام احمد رحمة الله عليهما فرمايي چي پر هغه يوه كفاره واجب ده يعني هغه دي اول يوه كفاره ادا كړي او د هغه څخه وروسته د ښځي سره جماع كول ورته جائز دي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

﴿۳۱۶۰﴾: عَنْ عِكْرِمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَجُلًا ظَاهَرَ مِنْ امْرَأَتِهِ فَغَشِيَهَا

حضرت عكرمه رضي الله عنه د ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت كوي چي يوه سړي د خپلي ښځي سره ظهار وكړ او بيا د كفارې د وركولو څخه وړاندي يې د هغې سره صحبت وكړ

قَبْلَ أَنْ يُكَفِّرَ فَأَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ ذَلِكَ لَهُ فَقَالَ مَا حَمَلَكَ

او وروسته د نبي كريم ﷺ په خدمت كي حاضر سو او واقعه يې ورته بيان كړه نبي كريم ﷺ

ورته و فرمایل ته په دا کار کولو باندي څه شي اماده کړې ؟

**عَلَى ذَلِكَ قَالَ يَا رَسُولَ اللهِ رَأَيْتُ بَيَاضَ حِجْلَيْهَا فِي الْقَمَرِ فَلَمْ أَمْلِكْ نَفْسِي**

هغه عرض وکړ یا رسول الله ! د سپوږمۍ په رڼا کي د هغې سپین پایزېب زما په نظر راغلی او زه یې په جماع کولو مجبور کړم

**أَنْ وَقَعْتُ عَلَيْهَا فَضَحِكَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَمَرَهُ أَلَّا يَقْرَبَهَا**

په دې اوربېدو سره نبي کریم ﷺ وخندل بیا یې حکم ورکړ ترڅو پوري چي دي کفاره نه وي ادا

**حَتَّى يُكَفِّرَ . رواه ابن ماجة و روى الترمذي نحوه وقال هذا حديث حسن صحيح غريب و روى ابوداؤد والنسائي ونحوه مسندا ومرسلا وقال النسائي المرسل اولى بالصواب من المسند .**

کړې هغې ته نژدې مه ورځه .(ابن ماجه) ترمذي ویلي چي دا حدیث حسن صحیح غریب دی . او ابو داؤد دا مسندا او مرسلا روایت کړی او ویلي یې دی چي مرسل بهتر دی د مسند څخه په حقوالي کي .

**تخریج**: سنن ابن ماجه ١\ ٦٦٦، رقم: ٢٠٦٥، والترمذي ٣\ ٥٠٣، رقم: ١١٩٩، وابوداود ٣\ ٦٦٦، رقم: ٢٢٢١، والنسائي ٦\ ١٦٧، رقم: ٣٤٥٧.

**د لغاتو حل**: حَجلَيها : اى خلخالها (پازېب)

===========

# بَابُ فِيْ وُجُوْبِ كَوْن الرّقَبَة الْمصتقة كَفارة مؤمنة

## (په کفاره ظهار کي چي کوم غلام آزاد کړل سي، د هغه مؤمن کېدل ضروري دي که یا؟)

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### کفاره ظهار

﴿۳۱۶۱﴾: عَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ الْحَكَمِ قَالَ أَتَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت معاویه بن حکم رضی الله عنه څخه روایت دی چي زه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوم

فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّ جَارِيَةً كَانَتْ لِي تَرْعَى غَنَمًا لِي فَجِئْتُهَا وَقَدْ فُقِدَتْ

او عرض مي وکړ یا رسول الله! زما یوه مینزه ده چي پسونه پیایي یوه ورځ زه و هغې ته ورغلم

شَاةٌ مِنَ الْغَنَمِ فَسَأَلْتُهَا عَنْهَا فَقَالَتْ أَكَلَهَا الذِّئْبُ فَأَسِفْتُ عَلَيْهَا وَكُنْتُ

نو یو پسه پکښې کم وو ما د هغې څخه د دې پوښتنه وکړه نو هغې را ته وویل چي شرموښ خوړلي دی ما ته په دې خبره غصه راغله او زه هم

مِنْ بَنِي آدَمَ فَلَطَمْتُ وَجْهَهَا وَعَلَيَّ رَقَبَةٌ أَفَأُعْتِقُهَا فَقَالَ لَهَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى

انسان یم (چي غصه کېږم) نو هغه مي پر مخ په چپلاخه ووهله او پر ما باندي د کفارې په ډول یو غلام ازادول واجب دی ایا زه د غه مینزه ازاده کړم؟ نبي کریم ﷺ مینزه را وغوښتل

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيْنَ اللّٰهُ فَقَالَتْ فِي السَّمَاءِ فَقَالَ مَنْ أَنَا فَقَالَتْ أَنْتَ رَسُولُ

او پوښتنه یې ځیني وکړه چي الله تعالي چیري دی؟ هغې وویل چي په اسمان کي. بیا نبي کریم ﷺ ورڅخه پوښتنه وکړه چي زه څوک یم؟ هغې ورته وویل ته د الله تعالي رسول یې

اللّٰهِ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْتِقْهَا رواه مالك . و في رواية

رسول الله ﷺ و فرمایل: دا ازاده کړه. (مالک) او د مسلم په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي

مسلم قَالَ كَانَتْ لِي جَارِيَةٌ تَرْعَى غَنَمًا لِي قِبَلَ أُحُدٍ وَالْجَوَّانِيَّةِ فَاطَّلَعْتُ ذَاتَ

معاويه وويل زما يوه مينزه ده چي د احد په جوانيه ځاى كي زما پسونه څروي يوه ورځ ما

يَوْمٍ فَإِذَا الذِّيبُ قَدْ ذَهَبَ بِشَاةٍ مِنْ غَنَمِنَا وَأَنَا رَجُلٌ مِنْ بَنِي آدَمَ آسَفُ كَمَا

خپل پسونه وليدل چي شرموښ يو ځيني خوړلي وو او زه يو انسان يم (د بشريت په تقاضا سره) ماته هم داسي غصه راځي

يَأْسَفُونَ لكن صَكَكْتُهَا صَكَّةً فَأَتَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَعَظَّمَ

څنګه چي نورو ته ما د هغې وهل وغوښتنه مګر يوازي په يوه چپلاخه باندي مي اكتفاء وكړه بيا زه د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر سوم او قصه مي ورته بيان كړه

ذٰلِكَ عَلَيَّ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَفَلَا أُعْتِقُهَا قَالَ ائْتِنِي بِهَا فَأَتَيْتُهُ بِهَا فَقَالَ لَهَا

نو رسول الله ﷺ زما په هكله دا كار لوى وبلي ما عرض وكړ يا رسول الله! ايا زه دغه مينزه ازاده كړم؟ نبي كريم ﷺ وفرمايل: هغه مينزه دلته راوله نو ما هغه راوستل نو نبي كريم ﷺ د

أَيْنَ اللّٰهُ قَالَتْ فِي السَّمَاءِ قَالَ مَنْ أَنَا قَالَتْ أَنْتَ رَسُولُ اللّٰهِ قَالَ أَعْتِقْهَا فَإِنَّهَا مُؤْمِنَةٌ.

هغې څخه پوښتنه وكړه چي خداي تعالي چيري دى؟ هغې وويل په اسمان كي بيا نبي كريم ﷺ ور څخه پوښتنه وكړه زه څوک يم؟ هغې عرض وكړ تاسو د خداي تعالى رسول ياست نبي كريم ﷺ وفرمايل: ازاده يې كړه دا مسلمانه ده.

**تخريج**: مالک في الموطا ۲\۶۶۷، رقم: ۸، ومسلم ۱\۳۸۱، رقم: ۳۳\۵۳۷

**تخريج**: والجوانية: موضع قريب من احد. (يو ځا ته نژدې). صككتها: اى لطمتها لطمة (چپلاخه وهل)

**تشريح**: په دغه باب كي د دغه حديث شريف په ذكر كولو سره د مصنف مقصد دا ظاهرول دي چي په ظهار كي د كفارې په توګه چي كوم برده (غلام يا مينځه) ازاد كړل سي د هغوى مسلمان كېدل ضروري دي، د امام شافعي رحمه الله مذهب دادى مګر په حنفي مذهب كي دا ضروري نه دي ځكه حنفيه دا حديث پر افضليت محمول كوي مګر د هغوى په نزد ددغه حديث څخه مراد

یوازي دا ظاهرول دي چي د ظهار په کفاره کي ازادېدونکې برده که مسلمان وي نو دا غوره او افضل دي

الله تعالی چیري دی؟ : ددغه الفاظو په ذریعه د رسول الله ﷺ مقصد د الله تعالی د ځای په باره کي سوال نه وو ځکه چي الله تعالی د مکان او زمان د قید څخه پاک دی بلکه دلته د رسول الله ﷺ مقصد دا پوښتنه کول وو چي وښیاست د الله تعالی حکم په کوم ځای کي جاري او ساري دی او د هغه پاچاهي او قدرت چیري ظاهر دی او ددغه سوال ضرورت دا وو چي هغه وخت د عربو کفارو به بُتان د عبادت وړ ګڼل او جاهلو خلکو به د هغه بُتانو څخه علاوه بل معبود نه ګڼی نو رسول الله ﷺ دا معلومول وغوښتل چي ایا دا مینزه مؤحده ده که مشرکه ده ، یعني د رسول الله ﷺ مقصد په اصل کي د هغه بې شمېره معبودانو نفي کول وه کوم چي پر مځکه موجود وه نه دا چي په آسمان کي د الله تعالی د مکان ثابتول وه ، هغه مینزي چي ذکر سوی جواب ورکړ نو رسول الله ﷺ ته معلومه سوه چي هغه مؤحده (توحید منونکې) ده او مشرکه نه ده .

د مالک رحمة الله علیه په روایت کي د حضرت معاویه رضي الله عنه څخه دا نقل سوي دي چي د یو بُرده ازادول په یو سبب سره واجب دي نو ایا زه هغه مینزه ازاده کړم چي هغه کفاره هم اداسي کوم چي واجب ده او د هغې د وهلو د وجي څخه چي ما ته پښیماني ده هغه هم ختمه سي، مګر مسلم چي کوم روایت نقل کړی دی د هغه د الفاظو څخه دا معلومیږي چي حضرت معاویه رضي الله عنه هغه مینزه محض ددې لپاره ازادول غوښتل چي هغه په غصه کي وهلې وه .

د دواړو روایتونو په مفهوم کي په ظاهره اختلاف معلومیږي مګر که چیري فکر وکړل سي نو په دواړو کي هیڅ اختلاف هم نه سته ځکه چي د مالک رحمة الله علیه په روایت کي دا مفهوم په صراحت سره بیان سوی دی چي په یو بل سبب سره پر ما باندي د بُرده ازادول واجب دي مګر د وهلو په وجه هم د هغې ازادول زما لپاره ضروري دي که زه هغه ازاده کړم نو ایا د هغه دواړو وجهو تقاضا به پوره سي ، ددې پر خلاف د مسلم په روایت کي مطلق دي چي د هغه مطلب دادی چي پر دغه دواړو خبرو باندي محمول کیدای سي نو دا به وویل سي چي د مسلم د روایت مطلق مفهوم د مالک د روایت پر مقید مفهوم باندي محمول دی مګر د مسلم د روایت د الفاظو مطلب هم هغه دی کوم چي د مالک د روایت د الفاظو مطلب دی که چیري زه هغه مینزه ازاده کړم نو ایا دواړه سببه به پوره سي که یا ،

## د ظهار د کفارې مسائل

د حنفي مذهب سره سم د ظهار په کفاره کي تر ټولو اوله درجه د بُرده (مينزي يا غلام) د ازادولو ده ، بُرده که مسلمان وي يا غير مسلمان ، ښځه وي که سړی وي کوچنی وي يا لوی او که څه هم کوڼ يا ړوند وي مګر دومره کوڼ وي که هغه په لوړ آواز سره مخاطب کړل سي نو هغه يې اوري او که چيري داسي برده وي چي د هغه يو لاس او يوه پښه پرې سوي دي نو د هغه ازادول به هم صحيح وي په شرط د دې چي دغه دواړه اندامونه د مختلف خواوو څخه پرې سوي وي مثلا که چيري راسته لاس پرې سوی وي نو چپه پښه به پرې سوی وي همدارنګه د هغه مکاتب ازادول هم صحيح دي چي هغه د خپل کتابت په بدل کي هيڅ نه وي ادا کړی .

کوم برده چي کونګی وي يا داسي کوڼ وي چي هغه بالکل هيڅ هم نه اوري نو د هغه په ازادولو سره د ظهار کفاره نه ادا کيږي همدارنګه د کوم برده چي دواړه لاسونه پرې سوي وي يا دواړي پښې يا د دواړو پښو بټې ګوتي پرې سوي دي يا يو لاس او يوه پښه د يوې خوا څخه پرې سوي وي مثلا راسته لاس يې هم پرې سوی وي او راسته پښه يې هم پرې سوی وي نو د داسي برده ازادول کافي نه دي ، داسي برده چي ليونی وي يعني پر هغه باندي همېشه ليونتوب خپور وي يا مدبر او ام ولد وي يا داسي مکاتب وي چي هغه د کتابت په بدله کي څه ادا کړي وي نو د هغوی په ازادولو سره د ظهار کفاره نه ادا کيږي .

دوهمه درجه د پرله پسې روژو نېولو ده يعني که چيري ظهار کونکي ته برده تر لاسه نه سي نو بيا هغه ته پرله پسې دوې مياشتي روژې نيول پکار دي په دې توګه چي هغه په دواړو مياشتو کي نه د رمضان روژه راسي او نه هغه ورځي راسي چي په هغه کي روژې نيول منع دي لکه د اخترو ورځي ، ايام تشريق او تر څو پوري چي روژې ختم نه سي (يعني تر څو چي دوې مياشتي پرله پسې روژې ختم نه سي) تر هغه پوري د ښځي سره صحبت نه کوي که چيري د روژو ختمېدو څخه مخکي د هغه ښځي سره (د کومي سره چي يې ظهار کړی دی) صحبت وکړي نو اوس به ټولي روژې بېرته د سره نيسي که څه هم د ورځي يې د هغې سره صحبت کړی وي يا په شپه کي، او که څه هم په قصد سره يې کړی وي يا په هېره د ټولو يو حکم دی همدارنګه که د يو عذر په وجه يې روژه ماته کړې وي يا بېله عذره يې روژه ماته کړې وي .

دريمه درجه شپېته مسکينانو ته خوراک ورکول دي يعني که چيري يو سړی د ذکر سوو شرطو سره د روژې طاقت نه لري نو بيا هغه دي شپېتو مسکينانو ته دوه وخته ډوډۍ ورکړي يا هغوی ته دي اومه غله ورکړي ، د اومې غلې صورت دا دی چي هر مسکين ته نيم صاع (پاو کم

دوه سېره ) غنم یا یو صاع یعني درې نیم سېره اوربشي یا خرماوي یا دهغه قیمت ورکړي همدارنګه که چیري د یوه شي د ورکولو پر ځای دوه شیان ورکړل سي نو دا هم جائز دي .

**په کفاره کي اباحت جائز دی** : د اباحت مطلب دادی چي د خوراک په پخولو سره د فقیر په مخکي کښېښودل سي چي د هغه څخه ځومره خوړل وغواړي وه یې خوري ، دا اباحت د کفاراتو په فدیه کي جائز دی مګر په واجب صدقاتو لکه زکوة او داسي نورو کي جائز نه دی ځکه چي واجب صدقې یعني زکوة وغیره کي فقیر د مالک کول ضروري دي ،

ددغه وضاحت څخه وروسته اوس په دې پوه سئ چي د ظهار په کفاره کي شپېته مسکینانو ته دوه وخته په ماړه نس خوراک ورکول کیږئ که څه هم هغه خوراک په یوه ورځ کي دوه وخته وي یعني په غرمه او په شپه کي په وخوړل سي ، همدارنګه په خوړولو کي د نس مړېدو اعتبار دی که څه هم په هر څومره لږ خوراک باندي د هغه نس موړ سي ، او کوم چي د خوراک د نوعیت سوال دی نو د هغه انحصار د ورکونکي پر حیثیت او توان باندي دی چي هغه څرنګه خوراک ورکولای سي ور دي یې کړي که په خوراک کي د اوربشو ډوډۍ وي نو د هغه سره کتغ ضروري دی البته د غنمو د ډوډۍ سره کتغ ضروري نه دی ، که چیري دوه وخته شپېته مسکینانو ته د خوراک ورکولو پر ځای یوه فقیر ته تر شپېته ورځو پوري دواړه وخته خوراک ورکړل سي نو دا هم جائز دي مګر یو فقیر ته په یوه ورځ د شپېته فقیرانو خوراک ورکول جائز نه دي په په دغه صورت کي به یوازي د یوې ورځي ادا سي .

که چیري ظهار کونکی د خوراک ورکولو په مینځ کي جماع وکړي نو په دغه صورت کي که څه هم هغه ګناه کار دی مګر د سره خوراک ورکول پکار نه دي که چیري پر یو سړی باندي د دوو ظهارو دوې کفارې واجب وي او هغه شپېتو فقیرانو ته نیم صاع غنم د کفارې په اعتبار سره یو یو صاع ورکړي نو د دواړو ظهارو کفاره به ادا نه سي بلکه د یوه ظهار کفاره به ادا سي مګر که چیري پر یو سړی باندي یوه کفاره د ظهار او یوه کفاره د روژې ماتولو واجب وي او هغه هر فقیر ته یو یو صاع غنم ورکړي نو دا به جائز وي او دواړي کفارې به ادا سي .

========

# بَابُ اللِّعَانِ (د لعان بيان)

**د لعان معنى او تعريف** : د لعان او ملاعنة معنى پر يو بل باندي لعنت ويل دي مگر د شريعت په اصطلاح كي لعان دې ته وايي چي خاوند پر خپل ښځه باندي د زنا تهمت ولگوي يا كوم كوچنى چي پيدا سوى دى د هغه په باره كي دا ووايي چي دا زما نه دى او ښځه ددې په جواب كي خاوند ته ووايي چي ته پر ما باندي تهمت لگوې نو هغه ښځه قاضي او حاكم ته فرياد وكړي ، قاضي د خاوند په را غوښتلو سره د الزام ثابتولو لپاره ورته ووايي كه چيري خاوند د شاهدانو په ذريعه دا ثابته كړي نو قاضي به پر هغه ښځي د زنا حد جاري كړي او كه چيري خاوند د څلورو شاهدانو په ذريعه الزام ثابت نه كړي نو قاضي به خاوند ته دا ووايي چي داسي ووايه چي زه د الله جَلَّ جَلَالُهُ په شاهد كولو سره وايم چي ما د زنا كوم نسبت دې ته كړيدى زه په هغه كي ريښتونى يم ، ښځي ته په اشاره كولو سره څلور واره به خاوند داسي وايي بيا په پنځم وار اشاره كولو سره به دا وايي چي ما دغه ښځي ته د زنا كوم نسبت كړى دى كه زه په هغه كي دروا غجن يم نو پر ما دي د الله جَلَّ جَلَالُهُ لعنت وي .

كله چي خاوند پنځه واره داسي ووايي نو بيا ښځه سړي ته په اشاره كولو سره څلور واره داسي ووايي چي زه د الله جَلَّ جَلَالُهُ په شاهد گرځولو سره وايم چي ده ما ته د زنا كوم نسبت كړى دى په هغه كي دى دروا غجن دى بيا په پنځم وار سړى ته په اشاره كولو سره داسي ووايي چي دغه سړي ما ته د زنا كوم نسبت كړى دى كه په هغه كي دى ريښتونى وي نو پر ما دي د الله جَلَّ جَلَالُهُ لعنت وي.

كله چي دواړه داسي ملاعنت وكړي نو حاكم به دواړو كي جلاوالى راولي او يو طلاق بائن به واقع كيږي او هغه ښځه به د هغه سړي لپاره همېشه حرامه سي كه ددې څخه وروسته سړى خپل ځان دروغجن وښيي يعني دا اقرار وكړي چي ما پر ښځه باندي د دروا غو تهمت لگولى وو نو په دغه صورت كي به پر هغه د تهمت حد جاري كيږي او د ښځي سره نكاح كول به هغه ته صحيح سي مگر امام ابويوسف رَحِمَهُ اللهُ عَلَيْهِ وايي كه چيري سړى خپل ځان دروا غجن و ښيي نو بيا هم ښځه د هغه لپاره همېشه حرامه ده .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د لعان يوه واقعه

﴿۳۱۶۲﴾: عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدِ السَّاعِدِيِّ قَالَ أَنَّ عُوَيْمِرَ الْعَجْلَانِيَّ قَالَ

د حضرت سهل رضي الله عنه بن سعد ساعدي ځخه روايت دی چي عويمر عجلاني د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او عرض يې وکړ

يَارَسُوْلَ اللهِ اَرَاَيْتَ رَجُلاً وَجَدَ مَعَ امْرَأَتِهِ رَجُلًا أَيَقْتُلُهُ فَيَقْتُلُوْنَهُ أَمْ كَيْفَ

يا رسول الله! تاسو د هغه سړي په باره کي ځه حکم ور کوئ چي د خپلي ښځي سره يو نا ولده سړی و نيسي ايا هغه وژني؟ نو د مقتول وارثان به ځوک وژني؟ يا په يو داسي صورت کي ځه

يَفْعَلُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ أُنْزِلَ فِيْكَ وَفِي صَاحِبَتِكَ

کول پکار دي؟ نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل: الله جل جلاله ستا او ستا د ښځي په باره کي حکم نازل

فَاذْهَبْ فَأْتِ بِهَا قَالَ سَهْلٌ فَتَلَاعَنَا فِي المسجد وَأَنَا مَعَ النَّاسِ عِنْدَ رَسُوْلِ

کړی دی ته ولاړ سه خپله ښځه راوله د سعد بن سهل بيان دی زموږ په مينځ کي د ښځي خاوند دواړو په جماعت کي لعان وکړ

اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا فَرَغَا قَالَ عُوَيْمِرٌ كَذَبْتُ عَلَيْهَا يَا رَسُوْلَ اللهِ

کوم وخت چي لعان وسو نو عويمر وويل: که زه دا ښځه د ځانه سره وساتم نو ګويا ما په دې

فَإِنْ جَاءَتْ بِهِ أَسْحَمَ أَدْعَجَ الْعَيْنَيْنِ عَظِيمَ الْأَلْيَتَيْنِ خَدَلَّجَ السَّاقَيْنِ فَلَا

باندي د دروا غو تور لګولي دی د دې ځخه وروسته هغه و خپلي ښځي ته درې طلاقه ورکړه بيا رسول الله ﷺ وفرمايل: که دا ښځه داسي بچی (اولاد) راوړي چي د هغه رنګ تور او سترګي يې توري وي د سترګو مردګي يې لوی وي او د دواړو پنډيو غوښه يې ډکه وي

أَحْسِبُ عُوَيْمِرًا إِلَّا قَدْ صَدَقَ عَلَيْهَا وَإِنْ جَاءَتْ بِهِ أُحَيْمِرَ كَأَنَّهُ وَحَرَةٌ فَلَا

نو عويمر رينښتني دی او د زنا تور لګول صحيح دي او که داسي بچی راوړي چي د هغه رنګ

سور بخن وي نو عویمر دروا غجن دی

أَحْسِبُ عُوَيْمِرًا إِلَّا قَدْ كَذَبَ عَلَيْهَا فَجَاءَتْ بِهِ عَلَى النَّعْتِ الَّذِي نَعَتَ رَسُولُ

نو ښځي هغسی بچی راوړ چي د هغه صفت رسول الله ﷺ بیان کړی وو او د عویمر بیان رینتني

اللهِ ﷺ مِنْ تَصْدِيقِ عُوَيْمِرٍ فَكَانَ بَعْدُ يُنْسَبُ إِلَى أُمِّهِ. متفق عليه.

ثابت سو د دې څخه وروسته هغه کوچنی د خپلي مور ولور ته منسوب سو. (بخاري او مسلم)

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۸\ ۴۴۹، رقم: ۴۷۴۵، ومسلم ۲\ ۱۱۲۹، رقم: ۱۴۹۲

**د لغاتو حل**: اسحَم: ای اسود: (تور). ادعج: السواد في العين. (تور سترګی). وحرة: دويبة حمراء تلتزق بالارض.

**تشريح**: كه يو څوک يو پردی سړی د خپل ښځي سره پر زنا كولو باندي ووينې او هغه سړی مړ كړي نو په دې باره كي د علماؤ اختلافي قولونه دي چي هغه سړی د خپل ښځي سره پر زنا كولو باندي ووينې نو د اسلامي قانون سره سم د قصاص يعني د مرګ د سزا وړ دی كه يا ؟ د جمهورو علماؤ قول دادی چي د مرګ سزا دي وركړل سي مګر كه چيري هغه سړی د دې په ثبوت كي چي مقتول د هغه ښځي سره زنا كړې ده څلور شاهدان وړاندي كړي يا خپله د مقتول وارثان د دې خبري اقرار وكړي نو په دغه صورت كي هغه ته د مرګ سزا نه سي وركول كيدای ، بيا هم دا خبره دي په ذهن كي وي چي د څلورو شاهدانو نه وړاندي كولو ياد مقتول د وارثانو د اقرار نه كولو په صورت كي هغه ته د مرګ سزا وركړل سي نو د واقعې په اعتبار كه چيري هغه رينتونی وي نو د الله تعالی په نزد به ګناه كار نه ګڼل كيږي .

الله تعالی وحي نازل كړي دي : د دې مطلب دادی چي په دغه مسئله كي دغه آياتونه نازل سوي دي :

وَالَّذِينَ يَرْمُونَ أَزْوَاجَهُمْ وَلَمْ يَكُن لَّهُمْ شُهَدَاءُ إِلَّا أَنفُسُهُمْ فَشَهَادَةُ أَحَدِهِمْ أَرْبَعُ شَهَادَاتٍ بِاللَّهِ إِنَّهُ لَمِنَ الصَّادِقِينَ ‎ وَالْخَامِسَةُ أَنَّ لَعْنَتَ اللَّهِ عَلَيْهِ إِن كَانَ مِنَ الْكَاذِبِينَ.... الخ.

سورة النور

ژباړه : او كوم كسان چي پر خپلو ښځو باندي د زنا تهمت ولګوي او د هغوی سره شاهد نه وي نو د هغوی شاهدي داده چي هغه څلور واره د الله ﷻ په قسم كولو سره ووايي چي پر ما دي د

الله ﷻ لعنت وي که چیري زه دروغجن یم ...

د ځینو مفسرینو د قول سره سم دغه آیت کریمه په نهم هجري کال کي د شعبان په میاشت کي نازل سوی دی، ابن مالک رحمة الله علیه وایي چي د دغه حدیث شریف څخه په ظاهره دا معلومیږي چي د لعان په باره کي ذکر سوی آیت د حضرت عویمر رضي الله عنه پر واقعه باندي نازل سوی دی او په اسلام کي تر ټولو اول لعان د هغه له خوا سوی وو، ځیني علماء وایي چي دغه آیت کریمه د یو بل صحابي حضرت هلال ابن امیه رضي الله عنه په باره کي نازل سوی دی او په دغه حکم کي تر ټولو مخکي هلال رضي الله عنه لعان کړی دی، مخته به د ابن عباس رضي الله عنه روایت راسي چي د هغه دا ثابتیږي، نو په دغه صورت کي به د ارشاد (ستاسو په باره کي وحي نازل سوي دي) مطلب دا وي چي ستاسو د معاملې په ډول یوه معامله کي وحي نازل سوي دي.

ځیني حضرات وایي چي دا احتمال هم کیدای سي چي دغه آیت د دواړو په باره کي نازل سوی وي چي د هغه صورت به دا سي وي چي مخکي په هغوی کي یو چا د رسول الله ﷺ څخه په خپل باره کي پوښتنه کړې وي بیا وروسته دوهمه قضیه وړاندي سوې وي او هغه هم د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه کړې وي تر دې چي د هغه دواړو په باره کي دغه آیت کریمه نازل سو، مګر په هغه دواړو کي حضرت هلال ﷺ اول لعان کړی دی.

ما پر هغې د دروغو تهمت لګولی دی: دا حضرت عویمر رضي الله عنه د درو طلاقو سبب بیان کړ چي د دغه صورت څخه وروسته که چیري زه دغه ښځه په خپل نکاح کي وساتم او طلاق ورنه کړم نو د دې څخه دا لازمیږي چي ما دغه ښځي ته د زنا نسبت په دروغو کړی دی ځکه د هغې په نکاح کي د ساتلو مطلب به دا وي چي ما څه ویلي دي هغه ټول دروغ دي او دا ښځه د بدکارۍ د ګناه څخه پاکه ده.

## د لعان په صورت کي د خاوند او ښځي په مینځ کي د تفریق مسئله

﴿۳۱۶۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَاعَنَ بَيْنَ رَجُلٍ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د یو سړي او ښځي په منځ کي لعان وکړ

وَامْرَأَتِهٖ فَانْتَفٰى مِنْ وَّلَدِهَا فَفَرَّقَ بَيْنَهُمَا وَأَلْحَقَ الْوَلَدَ بِالْمَرْأَةِ. متفق علیه

بیا یې د سړي او ښځي په مینځ کي جلا والي راوست او بچی یې د ښځي ولور ته منسوب کړ. (بخاري او مسلم)

وَفِيْ حَدِيْثِهِ لَهُمَا اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَظَهُ وَذَكَّرَهُ وَأَخْبَرَهُ

او په بخاري او مسلم کي يو بل روايت د ابن عمر رضي الله عنه څخه راغلې دی رسول الله ﷺ و هغه سړی ته نصيحت وکړ او د اخرت عذاب يې وریاد کړ

أَنَّ عَذَابَ الدُّنْيَا أَهْوَنُ مِنْ عَذَابِ الْآخِرَةِ ثُمَّ دَعَاهَا فَوَعَظَهَا وَذَكَّرَهَا

او پوه يې کړ چي د دنيا عذاب د اخرت د عذاب څخه ډېر اسانه دی (د دې لپاره چي هغه درواغ ونه وايي) بيا يې هغه ښځه را وغوښتل او هغې ته يې هم نصيحت وکړ او د اخرت عذاب يې

وَأَخْبَرَهَا أَنَّ عَذَابَ الدُّنْيَا أَهْوَنُ مِنْ عَذَابِ الْآخِرَةِ.

وریاد کړ او پوه يې کړه چي د دنيا عذاب د اخرت د عذاب څخه اسانه دی.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\۴۶۰، رقم: ۵۳۱۵، ومسلم ۲\۱۱۳۲، رقم: ۸\۱۴۹۴

**تشريح**: جلاوالی يې راوست: ددې مطلب دادی چي د لعان په صورت کي د ښځي او خاوند په مېنځ کي جلاوالی د حاکم او قاضي په حکم سره کيږي نه محض په لعان سره، د امام ابو حنيفة رحمه الله مذهب دادی او د هغه يو دليل دا هم دی که چيري په نفس لعان سره جلاوالی واقع کيدای نو بيا به درې طلاقه ولي ورکول کيدای لکه څرنګه چي په ذکر سوي حديث کي تېر سول چي حضرت عويمر رضي الله عنه د لعان څخه وروسته خپل ښځي ته درې طلاقه ورکړل.

د دنيا د عذاب څخه حد يعني شرعي سزا مراد ده، ددې وضاحت دادی که چيري يو سړی پر يو ښځه باندي (که خپل ښځه يې وي يا پردۍ ښځه وي) د زنا تهمت ولګوي او د هغه تهمت درواغ ثابت سي نو د شرعي قانون سره سم به پر هغه حد جاري کيږي يعني هغه به پر يو پاکي ښځي باندي د زنا د درواغو تهمت لګولو په سزا کي اتيا دُرې وهل کيږي او که چيري هغه سړی ريښتونی ثابت سي يعني دا خبره ثبوت ته ورسيږي چي هغه ښځي بدکاري کړې ده نو بيا پر هغه ښځي به حد جاري کيږي چي د واده کېدو په صورت کي به هغه سنګسار کيږي او د واده نه کېدو په صورت کي دا امکان کيدای سي که يو سړی د غلط فهمۍ په وجه يا د يو خاص جذبې په وجه پر ښځه باندي تهمت لګولی وي او بيا هغه ته دا يقين وسي چي ما پر ښځه کوم الزام لګولی دی هغه بې بنياده دی مګر اوس ددې بيري څخه چي پر يو پاکي ښځي باندي د درواغو تهمت لګولی دی يا دا چي په حقيقت کي ښځي بدکاري کړې وي مګر ددې بيري څخه چي زه به

سنگسار کړل سم یا سل دُرې به ووهل سم د خپل هغه گناه اعتراف او اقرار نه کوي بلکه ملاعنت ته تیاریږي نو رسول الله ﷺ د دغه امکاني صورت خلاف د دواړو په متنبه کولو سره وفرمایل چې د آخرت د عذاب په مقابله کي د دنیا عذاب ډېر اسانه او معمولي دی، څرنگه چې صورت حال وي او ریښتیا خبره وي د هغه اقرار وکړه او د دغه دنیا آسانه عذاب اختیار کړه او د آخرت د سخت عذاب څخه ځان وساته.

## د لعان کونکو محاسبه په اخرت کي کیږي

﴿۳۱۶۴﴾: وَعَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِلْمُتَلَاعِنَيْنِ حِسَابُكُمَا

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ لعان کوونکو ته وفرمایل: ستاسو

عَلَى اللّٰهِ أَحَدُكُمَا كَاذِبٌ لَا سَبِيلَ لَكَ عَلَيْهَا قَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ مَالِي قَالَ لَا

حساب به د خدای جل جلاله سره وي په تاسو کي خامخا یو دروغجن دی او س ستا د دې ښځي سره هیڅ اړیکي نسته (دا ښځه پر تا باندي د همېش لپاره حرامه ده) هغه سړی ورته وویل: زما مال (زما ورکول سوی مهر) نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل:

مَالَ لَكَ إِنْ كُنْتَ صَدَقْتَ عَلَيْهَا فَهُوَ بِمَا اسْتَحْلَلْتَ مِنْ فَرْجِهَا وَإِنْ كُنْتَ

ستا مال و تا ته نسي درکول کیدای که ته په دعوه کي ریښتني یې نو ستا مال د هغې د شرمگاه د حلالولو په بدله کي ولاړی

كَذَبْتَ عَلَيْهَا فَذَاكَ أَبْعَدُ وَأَبْعَدُ لَكَ مِنْهَا . متفق عليه.

او که ستا دعوه د دروغو وي نو د مهر بیرته اخیستل ستا څخه ډېر لیري دي. بخاري او مسلم

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\۴۹۶، رقم: ۵۳۵۰، ومسلم ۲\۱۱۳۱، رقم: ۵\۱۴۹۳

**تشريح**: ستا حساب به د الله جل جلاله سره وي: مطلب دادی چي په دغه دنیا کي خو موږ ستاسو دغه تنازعه د لعان په صورت کي ختمه کړې ده مگر ستاسو دواړو حقیقي محاسبه به په آخرت کي وي هلته به ستاسو د معاملې تحقیق کیږي او څوک چي دروغجن وي هغه ته به الله تعالی سزا ورکوي.

نو هغه مال د هغه بدله سوه... الخ: د دې خبري دلیل چي لعان کونکی دي مهر بېرته نه

اخلي ، په شرط ددې چې د هغې سره يې دخول كړى وي په دې باره كې د ټولو علماؤ په اتفاق سره دا مذهب دى البته د عدم دخول په باره كې اختلاف دى ، امام ابو حنيفة، امام شافعي او امام مالک رحمة الله عليهم وايي كه چيري لعان كونكى د هغه ښځې سره دخول نه وي كړى نو په دغه صورت كې هغه ښځه د نيم مهر حقداره ده .

## د لعان د آيت شان نزول

﴿٣١٦٥﴾ : وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ هِلَالَ بْنَ أُمَيَّةَ قَذَفَ امْرَأَتَهُ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دى چې هلال بن اميه د رسول الله ﷺ په حضور كې په

اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشَرِيكِ ابْنِ سَحْمَاءَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْبَيِّنَةَ

خپلې ښځې او شريک بن سحماء باندې د زنا تور ولګوى نبي كريم ﷺ وفرمايل : شاهدان

أَوْ حَدًّا فِي ظَهْرِكَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِذَا رَأَى أَحَدُنَا عَلَى امْرَأَتِهِ رَجُلًا يَنْطَلِقُ

راوله كنه په تا باندې به شرعي حد قائم سى هلال عرض وكړ يا رسول الله! كله چې په موږ كې يو سړى د خپلې ښځې سره يو څوک ويني نو ايا هغه به په شاهدانو پسې ګرځي ؟

يَلْتَمِسُ الْبَيِّنَةَ فَجَعَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ الْبَيِّنَةَ وَإِلَّا حَدٌّ فِي

نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل : شاهدان راوله كنې ستا په شا باندې به شرعي حد قائم كړل سي

ظَهْرِكَ فَقَالَ هِلَالٌ وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ إِنِّي لَصَادِقٌ فَلَيُنْزِلَنَّ اللَّهُ مَا يُبَرِّئُ

هلال عرض وكړ په هغه ذات دې مې قسم وي چې تاسو يې په حق سره را ليږلي ياست زه رېښتني يم نو ضرور به خداى تعالى احكام نازل كړي چې په هغه سره به خلاصه سي

ظَهْرِي مِنَ الْحَدِّ فَنَزَلَ جِبْرِيلُ وَأَنْزَلَ عَلَيْهِ {وَالَّذِينَ يَرْمُونَ أَزْوَاجَهُمْ

زما ملا له حده نو د جبرئيل عليه السلام په واسطه دا ايت نازل سو : والذين يرمون ازواجهم

فَقَرَأَ حَتَّى بَلَغَ إِنْ كَانَ مِنَ الصَّادِقِينَ} فَجَاءَ هِلَالٌ فَشَهِدَ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ

تر (ان كان من الصادقين) پورې. د دې څخه وروسته هلال حاضر سو او شاهدي يې وركړه يعني لعان يې وكړ نبي كريم ﷺ به د هغه شهادت اوريدى او فرمايل به يې :

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ أَنَّ أَحَدَكُمَا كَاذِبٌ فَهَلْ مِنْكُمَا تَائِبٌ ثُمَّ

خداي تعالي ته معلومه ده چي په تاسو كي خامخا يو دروغجن دى په تاسو كي به هغه څوك وي چي توبه وباسي بيا

قَامَتْ فَشَهِدَتْ فَلَمَّا كَانَتْ عِنْدَ الْخَامِسَةِ وَقَّفُوهَا وَقَالُوا إِنَّهَا مُوجِبَةٌ ابْنُ

هغه ښځه را ولاړه سوه هغې هم لعان وكړ يعني څلور واره يې د خپل ذات شاهدي وركړه په پنځم وار چي يې شاهدي وركوله نو اصحابو كرامو رض هغه منعه كړه ستا اخيري شاهدي وركول واجب كونكي دى (يعني د ښځي او خاوند په مينځ كي جدائي يا د اخرت عذاب). د

عَبَّاسٍ فَتَلَكَّأَتْ وَنَكَصَتْ حَتَّى ظَنَنَّا أَنَّهَا تَرْجِعُ ثُمَّ قَالَتْ لَا أَفْضَحُ قَوْمِي

ابن عباس رضي الله عنه بيان دى چي په دې اوريدو سره ښځه لږ ايساره سوه سوچ يې وكړ په هغې باندي زموږ خيال راغلى چي رجوع به وكړي او په پنځم وار به قسم و نه خوري

سَائِرَ الْيَوْمِ فَمَضَتْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَبْصِرُوهَا فَإِنْ جَاءَتْ

مگر بيا هغې وويل زه خپل قوم د ټول عمر لپاره نه ذليله كوم نو پنځمه شاهدي يې هم پوره كړه د دې څخه وروسته نبي كريم ﷺ و فرمايل: كه دا ښځه تورو سترگو لرونكي

بِهِ أَكْحَلَ الْعَيْنَيْنِ سَابِغَ الْأَلْيَتَيْنِ خَدَلَّجَ السَّاقَيْنِ فَهُوَ لِشَرِيكِ ابْنِ

او درانه كوناتي او غټو پنډيو لرونكي كوچنى راوړي نو هغه به د شريک بن سحماء زوى وي

سَحْمَاءَ فَجَاءَتْ بِهِ كَذٰلِكَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْلَا مَا مَضَى

نو هغسي بچى يې راوړ او نبي كريم ﷺ و فرمايل: كه د خداي تعالي په كتاب كي د لعان كوونكي دا حكم نه وي (نو تاسو به ليدلي واى چي)

مِنْ كِتَابِ اللّٰهِ لَكَانَ لِي وَلَهَا شَأْنٌ. رواه البخاري.

ما به دې ښځي ته كومه سزا وركولاى. (بخاري).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۸\۴۴۹، رقم: ۴۷۴۷

**د لغاتو حل**: خدلج الساقين: الغليظ الممتليء الساق. (پنډي پنډې)

**تشريح**: د دغه حديث شريف څخه دا ثابتيږي چي تر ټولو مخکي حضرت بلال رضي الله عنه لعان کړی دی او په دغه وخت کي د لعان په باره کي ذکر سوی آيت کريمه نازل سوی دی او په دې باره کي حقيقي تفصيل هغه دی کوم چي د حضرت سهل رضي الله عنه د روايت په تشريح کي بيان سوی دی.

بيله شکه الله تعالى پوهيږي ..الخ: دلته دا معلوميږي چي رسول الله صلى الله عليه وسلم دا خبره د هغه دواړو د لعان څخه د فارغه کېدو وروسته فرمايلې ده او مطلب دادی چي کوم څوک په درواغو خبره کوي يا پر چا باندي د درواغو تهمت لګوي نو پر هغه لازم دي چي هغه توبه وکړي، ځيني حضرات وايي چي رسول الله صلى الله عليه وسلم دا خبره د لعان څخه مخکي هغه دواړو ته د دروا غو د عواقبو څخه د بېرېدو لپاره فرمايلې ده.

په دغه حديث شريف کي د دې خبري دليل هم دی چي حاکم او قاضي دي په يو معامله کي د خپل ګمان او خيال په وجه حکم نه ورکوي بلکه هغه حکم دي ورکوي چي د هغه دلائل او شواهد تقاضا وکړي.

## د زنا تهمت د څلورو شاهدانو په ذريعه ثابتيږي

﴿۳۱۶۶﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ لَوْ وَجَدْتُ مَعَ أَهْلِي رَجُلًا

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي سعد بن عباده رضي الله عنه وويل: که زه د خپلي ښځي سره

لَمْ أَمَسَّهُ حَتَّى آتِيَ بِأَرْبَعَةِ شُهَدَاءَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَعَمْ

يو نا ولده سړی ووينم نو تر څو پوري چي ما څلور شاهدان نه وي را ټول کړي نو هغه ته به لاس ور نه وړم رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل: هو!

قَالَ كَلَّا وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ إِنْ كُنْتُ لَأُعَاجِلُهُ بِالسَّيْفِ قَبْلَ ذٰلِكَ قَالَ

سعد رضي الله عنه وويل: هيڅکله نه: په هغه ذات دي مي قسم وي چي ته يې په حقه سره رالېږلی يې شايد زه د شاهدانو د راټولولو څخه وړاندي په توره باندي د هغه خاتمه کوم

رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْمَعُوا إِلَى مَا يَقُولُ سَيِّدُكُمْ إِنَّهُ لَغَيُورٌ وَأَنَا أَغْيَرُ مِنْهُ وَاللهُ أَغْيَرُ مِنِّي. رواه مسلم.

رسول الله ﷺ وفرمایل: واورئ ستاسو مشر څه وایي؟ البته هغه غیرتمند دی او زه د ده څخه زیات غیرتمند یم او الله تعالی زما څخه زیات غیرت مند دی. (مسلم).

**تخریج**: مسلم في الصحیح ۲\۱۱۳۵، رقم: ۱۶\۱۴۹۸

**تشریح**: د رسول الله ﷺ د جواب په اورېدو سره حضرت سعد رضی الله عنه چې څه وویل په هغه سره د رسول الله ﷺ د قول تردید کول مقصد نه وو او نه د رسول الله ﷺ د حکم مخالفت مقصد وو هغه د خپل دغه خبرې په ذریعه په اصل کې د خپل طبعیت او مزاج په باره کې وښوول چې زما حال دادی او زما د غصې او غیرت حال دادی که زه د خپل ښځې سره پردی سړی ووینم نو سمدستي به یې قتل کړم، حال دا چې په دې باره کې د شریعت حکم دادی چې تر څو پورې څلور شاهدان پیدا نه سي نو هغه ته هیڅ مه وایاست نو په دغه صورت کې زما لپاره کومه لاره ده؟ رسول الله ﷺ د حضرت سعد رضی الله عنه د خبرې په اورېدو سره خلک هغه ته متوجه کړل چې واورئ ستاسو سردار څه وایي، یعني په دې سره د حضرت سعد رضی الله عنه صفت او تعریف کول مقصد وو او دې ته اشاره کول دي چې په طبیعت او مزاج کې دومره غیرت د بزرګانو صفت او د سردارانو عادت دی که څه هم په دې باره کې د شریعت حکم بل دی چې په هغه عمل کول د غیرت پر تقاضا باندې تر عمل کولو زیات ضروري دی.

خلاصه دا چې رسول الله ﷺ د دغه ارشاد په ذریعه د حضرت سعد رضی الله عنه د خبرې تائید ونه کړ بلکه رسول الله ﷺ د هغه عذر بیان کړ چې حضرت سعد رضی الله عنه کومه خبره کړې ده د هغه څخه په ظاهره زما د حکم مخالفت معلومېږي هغه په اصل کې د هغه د غیر معمولي غیرت په وجه د هغه د ژبې څخه وتلې ده.

حضرت مظهر رحمة الله علیه وایي چې د حضرت سعد رضی الله عنه رسول الله ﷺ ته جواب ورکول د رسول الله ﷺ د مخالفت یا د ارشاد نه قبلولو په توګه نه وو بلکه په حقیقت کې د هغه د خواهش د اظهار په توګه وو که چیرې غیرتمند سړی یو پردی سړی د خپل ښځې سره ویني نو هغه ته دې د وژلو اجازه ورکړل سي کله چې رسول الله ﷺ د دغه اجازې ورکولو څخه په یو بلیغ انداز کې انکار وکړ نو هغه پټه خوله سو.

غیرت د یو انسان د ننه کیفیت او حالت هغه تغیر ته وایي چې په خپل اهل کې د یو ناخوښه شي پر لیدو باندې پیدا کیږي، ظاهره ده چې د الله تعالی د غیرت نسبت د دې معنی د اعتبار څخه محال او ناممکن دی نو د الله تعالی د غیرتمند کېدو معنی داده چې هغه بندګان د ګناهو څخه منع کونکی دی چې د هغه د قربت او مقبولیت څخه لیرې نه سي.

## د الله ﷻ څخه زيات هيڅوک غيرتمند نسته

﴿۳۱۶۷﴾: وَعَنِ الْمُغِيرَةِ قَالَ قَالَ سَعْدُ بْنُ عُبَادَةَ لَوْ رَأَيْتُ رَجُلًا مَعَ امْرَأَتِي

د حضرت مغيره رضي الله عنه څخه روايت دی چي سعد بن عباده رضي الله عنه وويل: که زه يو نا ولده سړی د

لَضَرَبْتُهُ بِالسَّيْفِ غَيْرَ مُصْفَحٍ فَبَلَغَ ذٰلِكَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ

خپلي ښځي سره ووينم نو زه به يې په توره باندي قتل کړم په دې الفاظ اورېدو سره رسول الله ﷺ وفرمايل:

أَتَعْجَبُونَ مِنْ غَيْرَةِ سَعْدٍ وَاللّٰهِ لَأَنَا أَغْيَرُ مِنْهُ وَاللّٰهُ أَغْيَرُ مِنِّي وَمِنْ أَجْلِ غَيْرَةِ

ايا تاسو د سعد په غيرت باندي تعجب کوئ؟ قسم په خداي چي زه دده څخه زيات غيرتمند يم او الله تعالي زما څخه زيات غيرتمند دی او د الله تعالی د غيرت په وجه

اللّٰهِ حَرَّمَ الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ وَلَا أَحَدَ أَحَبُّ إِلَيْهِ الْعُذْرُ مِنَ

ګناهونه حرام سوي دي هغه ګناوي چي ظاهري وي او که پټي وي د خداي تعالی څخه زيات څوک عذر نه خوښوي

اللّٰهِ مِنْ أَجْلِ ذٰلِكَ بَعَثَ الْمُبَشِّرِينَ وَالْمُنْذِرِينَ وَلَا أَحَدَ أَحَبُّ إِلَيْهِ الْمِدْحَةُ

په دې وجه الله ﷻ بيرونکي او زيري ورکونکي (پيغمبران) رالېږلي دي دخداي ﷻ څخه

مِنَ اللّٰهِ وَمِنْ أَجْلِ ذٰلِكَ وَعَدَ اللّٰهُ الْجَنَّةَ. متفق عليه.

زيات هيڅوک تعريف نه خوښوي په دې وجه الله ﷻ د جنت وعده کوي. (بخاري او مسلم).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۱۳\۳۹۹، رقم: ۷۴۱۶، ومسلم ۲\۱۱۳۶، رقم ۱۷\۱۴۹۹

**تشريح**: او الله تعالی د خپل غيرت په وجه ګناهونه حرام کړي دي: دغه جمله په اصل کي د الله تعالی د غيرت د وضاحت لپاره ده چي د الله تعالی د غيرت معنی داده چي هغه خلک د حرامو کارو څخه منع کړي دي او د حرامو کارو پر کولو باندي يې عذاب ټاکلی دی.

د غيرت مطلب دادی چي سړی هغه خبره ناخوښه کړي او په هغه ناراضه سي چي څوک د هغه په ملکيت کي تصرف وکړي.

د غيرت مشهوري معناوي دادي چي سړی په هغه شي باندي په غصه سي چي د هغه د ښځي سره بدكاري وكړي يا هغه ته په بد نظر سره وګوري نو د الله تعالى غيرت دادی چي پر هغه چا باندي په غصه سي كوم چي ګناه كونكی وي .

امام نووي رحمة الله عليه وايي عذر د الله تعالى څخه زيات د هيچا نه دی خوښ ، دلته د عذر د اعذار يعني د عذر د ازالې په معنى دی ، مطلب دادی چي څرنګه الله تعالى عذر ختمول خوښوي همدارنګه يو بل عذر ختمول نه خوښوي ځكه الله تعالى دنيا ته پيغمبران او رسولان را استولي دي چي د هغه له خوا د حجت پوره والی وسي او بندګانو ته د عذر كولو موقع تر لاسه نه سي لكه څرنګه چي الله تعالى فرمايي :

لِئَلاَّ يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَى اللّٰهِ حُجَّةٌ بَعْدَ الرُّسُلِ

ژباړه : ددې لپاره چي خلكو ته د الله تعالى په وړاندي د پيغمبرانو څخه وروسته عذر پاته نه سي .

تعريف د الله تعالى څخه زيات هيڅوک نه خوښوي : ددې مطلب دادی چي تعريف كول څومره چي الله تعالى خوښوي هغومره بل څوک يې نه خوښوي ځكه الله تعالى خپل تعريف په خپله هم فرمايلی دی او د خپل محبوب بندګانو تعريف يې هم كړی دی او د هغه خلكو په جنت كي د داخلېدو دعوه يې هم كړې ده چي د هغه حمد او تعريف بيانوي او د هغه په احكامو باندي عمل كوي .

## د الله جل جلاله د غيرت تقاضا څه شی ده ؟

﴿۳۱۶۸﴾ : وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللّٰهَ يَغَارُ وَاِنَّ الْمُؤْمِنَ يَغَارُ وَغَيْرَةُ اللّٰهِ أَنْ لاَّ يَأْتِيَ الْمُؤْمِنُ مَا حَرَّمَ اللّٰهُ . متفق عليه

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : الله جل جلاله غيرت مند دی او مسلمان هم غيرتمند دی او د الله جل جلاله غيرت دادی چي مسلمان بنده هغه كار ونكړی كوم چي الله جل جلاله حرام كړی دی . (بخاري او مسلم) .

**تخريج** : البخاري في الصحيح (فتح الباري) : ۹\۳۱۹، رقم : ۵۲۲۳، ومسلم ۴\ ۲۱۱۴، رقم : ۳۶\ ۲۷۶۱

## د كوچني د نسبت څخه انكار مه كوئ

﴿۳۱۶۹﴾ : وَعَنْهُ أَنَّ أَعْرَابِيًّا أَتَى رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنَّ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي يو صحرائي د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر

امْرَأَتِي وَلَدَتْ غُلَامًا أَسْوَدَ وَإِنِّي أَنْكَرْتُهُ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

سو او عرض يې وکړ يا رسول الله! زما ښځي تور کوچنی راوړی دی او ما د هغه څخه انکار کړی دی (يعني دا کوچنی زما د نطفې څخه نه دی) رسول الله ﷺ ورته وفرمايل :

وَسَلَّمَ هَلْ لَكَ مِنْ إِبِلٍ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَمَا أَلْوَانُهَا قَالَ حُمْرٌ قَالَ هَلْ فِيهَا مِنْ

ايا ستا سره اوښان سته ؟ هغه عرض وکړ هو ! نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل : د هغو رنګونه څنګه دي ؟ هغه عرض وکړ چي سره دي . رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: ايا په هغو کي

أَوْرَقَ قَالَ إِنَّ فِيهَا لَوُرْقًا قَالَ فَأَنَّى تُرَى ذٰلِكَ جَاءَهَا قَالَ عِرْقٌ نَزَعَهَا قَالَ

خاکي اوښان هم سته ؟ هغه وويل : خاکي هم پکښي سته نبي کريم ﷺ وفرمايل : خاکي اوښان د کوم ځايه څخه پيدا سوه ؟ (يعني د سرو اوښانو بچئ خاکي څنګه سوه؟ ) هغه عرض وکړ يو رګ دی چي دا يې خاکي رنګه جوړ کړه نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل :

فَلَعَلَّ هٰذَا عِرْقٌ نَزَعَهُ وَلَمْ يُرَخِّصْ لَهُ فِي الِانْتِفَاءِ مِنْهُ . متفق عليه.

شايد دې رګ ستا په کوچني کي تور رنګ پيدا کړې وي رسول الله ﷺ هغه پوه کړ چي هغه دي د خپل کوچني څخه انکار نه کوي . (بخاري او مسلم) .

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۲۹۶\۱۳، رقم: ۷۳۱۴، رقم: ۱۵۰۰\۱۸

**تشريح**: علامه طيبي رحمه الله وايي چي ددغه حديث شريف څخه معلومه سوه چي د محض معمولي او کمزوري نښي په وجه د خپل کوچني څخه انکار کول يعني دا ويل چي دا زما کوچنی نه دی منع دي بلکه په دغه صورت کي د ټينګو دلائلو او وجهو کېدل ضروري دي مثلا د ښځي سره يې صحبت نه وي کړی او ددې سربېره ولادت وسي يا صحبت يې کړی وي مګر د صحبت څخه وروسته د شپږو مياشتو څخه په کم وخت کي کوچنی پيدا سوی وي نو په دغه صورتو کي د هغه کوچني څخه انکار کول جائز دي .

## د زنا په نتيجه کي د پيدا کېدونکي ماشوم نسب د زاني څخه نه ثابتيږي

﴿۳۱۷۰﴾ : وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ عُتْبَةُ بْنُ أَبِي وَقَّاصٍ عَهِدَ إِلَى أَخِيهِ سَعْدِ بْنِ

د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه روايت دی چې عتبه بن ابي وقاص رضي الله عنه خپل ورور سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه ته وصيت وکړ چې

أَبِي وَقَّاصٍ اَنَّ ابْنَ وَلِيدَةِ زَمْعَةَ مِنِّي فَاقْبِضْهُ اِلَيْكَ فَلَمَّا كَانَ عَامَ الْفَتْحِ

د زمعه د مينزې زوی زما د نطفې څخه دی ته هغه واخله د مکې د فتحې په کال هغه کوچنی

أَخَذَهُ سَعْدُ فَقَالَ اِنَّهُ ابْنُ أَخِي وَقَالَ عَبْدُ بْنُ زَمْعَةَ اَخِي فَتَسَاوَقَا إِلَى

رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ سَعْدٌ يَا رَسُولَ اللّٰهِ اِنَّ أَخِي كَانَ عَهِدَ

واخيستی او وه يې ويل چې هغه زما د ورور زوی دی او عبد بن زمعه رضي الله عنه وويل : چې دا کوچنی زما ورور دی دواړو خپله معامله نبي کريم ﷺ ته راوړه، سعيد وويل يا رسول الله!

إِلَيَّ فِيهِ وَقَالَ عَبْدُ بْنُ زَمْعَةَ أَخِي وَابْنُ وَلِيدَةِ أَبِي وُلِدَ عَلَى فِرَاشِهِ فَقَالَ

زما ورور ماته دا وصيت کړې وو چې دا زما کوچنی دی او عبد بن زمعه وويل چې دا کوچنی زما ورور دی او زما د پلار د مينزې زوی دی زما د پلار پر بستره پيدا سوی دی رسول الله ﷺ

رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُوَ لَكَ يَا عَبْدُ بْنَ زَمْعَةَ الْوَلَدُ لِلْفِرَاشِ

وفرمايل :اې عبد بن زمعه ! ته د دې کوچني وارث يې کوچنی د هغه دي چې د چا پر بستره چې

وَلِلْعَاهِرِ الْحَجَرُ ثُمَّ قَالَ لِسَوْدَةَ بِنْتِ زَمْعَةَ احْتَجِبِي مِنْهُ لِمَا رَأَى مِنْ شَبَهِهِ

پيدا سي او زنا کاره لپاره حجر دي يعني هغه د کوچني څخه محروم دی بيا رسول الله ﷺ خپلي بي بي سودې رض ته وويل : چې هغه د زمعه لور وه د دې کوچني څخه پرده کوه ځکه چې په

بِعُتْبَةَ فَمَا رَآهَا حَتَّى لَقِيَ اللّٰهَ و في رواية هُوَ اَخُوكَ يَا عَبْدُ بْنَ زَمْعَةَ مِنْ أَجْلِ

أَنَّهُ وُلِدَ عَلَى فِرَاشِ أَبِيهِ . متفق عليه.

دې ډي د عتبه سره مشابهت پيدا کيږي نو بي بي سودې رضي الله عنها د هغه کوچني څخه تر نه عمر پرده کوله او هيڅ کله يې ونه ليدی تر هغو چې وفات سو . او په يو ـ روايت کي دا الفاظ دي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل :اې عبد بن زمعه! دا ستا ورور دی ځکه چې ستا د پلار پر بستره پيدا

سوی دی. (بخاري او مسلم).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۵\ ۳۷۱، رقم: ۲۷۴۵، ومسلم ۲\ ۱۰۸۰، رقم: ۳۶\ ۱۴۵۷

**تشريح**: په دغه حديث شريف کي چي کوم نومونه ذکر سوي دي مخکي د هغو په باره کي دا ښوول ضروري دي چي د واقعې په پوهېدو کي اساني راسي ، عتبه د حضرت سعد ابن ابي وقاص رضي الله عنه حقيقي (سکه) ورور دی ، الله تعالی حضرت سعد رضي الله عنه د اسلام په دولت مشرف کړی وو او يو جليل القدر صحابي دی، مګر عتبه د کفر د تيارو څخه ونه تلای سو تر دې چي د کفر په حالت کي مړ سو او دا هغه بدبخت دی چي د احد د غزا په وخت کي يې د رسول الله ﷺ مبارک غاښ شهيد کړی وو ، زمعه د بي بي سوده رضي الله عنها د پلار نوم دی او عبد د زمعه زوی يعني د بي بي سوده سکه ورور دی ، بي بي سوده رضي الله عنها د رسول الله ﷺ بي بي مبارکه ده.

اوس حديث ته راسئ ، عتبه د زمعه د مينزي سره زنا وکړه چي د هغه په نتيجه کي هلک پيدا سو ، د جاهليت په زمانه کي دا رواج وو چي د زناکونکي په دعوه به د ولد الزنا نسب د هغه زناکونکي څخه ثابتيدی ځکه عتبه د هغه پخواني رواج سره سم د هغه کوچني په باره کي دعوه وکړه چي دا زما دی او خپل ورور حضرت سعد رضي الله عنه ته يې وصيت وکړی چي ته دغه هلک په خپل تحويل کي په اخيستو سره د هغه روزنه وکړه نو حضرت سعد رضي الله عنه د مکې د فتح په کال د خپل ورور د وصيت سره سم هغه هلک په خپل تحويل کي واخيستی او دا اعلان يې وکړی چي دا زما وراره دی ، بلې خوا ته د زمعه زوی عبد دا دعوه وکړه چي دا زما ورور دی ځکه چي زما د پلار د مينزي څخه پيدا دی ، مقصد دا چي د دواړو په مينځ کي د تنازعې يو صورت پيدا سو نو د دواړو دغه معامله د رسول الله ﷺ په خدمت کي وړاندي سوه ، رسول الله ﷺ عبد ابن زمعه ته وويل چي دا ستا ورور دی ځکه چي د کوچني نسب د صاحب فراش څخه ثابتيږي او زنا کونکی د دې څخه محروم وي.

الولد للفراش وللعاهر الحجر (کوچنی صاحب فراش ته منسوب وي او د زنا کونکي لپاره محرومي ده) د دغه جملې تفصيلي وضاحت د باب الوصايا په اول باب کي د حضرت ابو امامه رضي الله عنه د روايت په تشريح کي تېر سوی دی.

ام المؤمنين بي بي سوده رضي الله عنها د رسول الله ﷺ دغه حکم چي ته د دغه کوچني څخه پرده کوه د دې مطلب دا وو که څه هم دغه کوچنی د شرعي حکم سره سم ستا ورور سو په دې توګه چي د ده نسب ستا د پلار زمعه څخه ثابت دی او دا هم پر خپل ځای صحيح دی چي په شرعي معاملاتو

کي د مشابهت او قیافه او قرائنو اعتبار نه سته مګر هغه هلک د عتبه مشابه وو او د عتبه د دعوې په وجه هغه د عتبه د نطفې څخه کېدل تر یو حده د حقیقت سره سم دی ځکه د احتیاط تقاضا داده چي ته د هغه څخه پرده وکړې.

د دوهم روایت آخري الفاظ (انه ولد علی فراش ابیه) یعني ددې لپاره چي هغه کوچنی د هغه د پلار پر بستره پیدا سوی دی، دا په اصل کي د راوي خپل قول دی یعني راوي ددغه الفاظو په ذریعه دا واضح کړه چي رسول الله ﷺ د عبد ابن زمعه په حق کي دا حکم چي دا هلک ستا ورور دی ځکه ورکړی وو چي هغه د هغه د پلار پر بستره پیدا سوی وو او د هغه پر بستره باندي د پیدا کېدو مطلب دادی چي د حمل استقرار او د کوچني د ولادت په زمانه کي هغه مینزه د زمعه په ملکیت کي وه او د هغه تر تصرف لاندي وه او هغه کوچنی د هغه په کور کي پیدا سوی دی.

## د نسب په اثبات کي د قیافه شناس قول معتبر دی که یا؟

﴿۳۱۷۱﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ

د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه روایت دی یوه ورځ نبي کریم ﷺ په خوشحالي خوشحالي زما کره

مَسْرُورًا فَقَالَ اَیْ عَائِشَةُ اَلَمْ تَرَيْ اَنَّ مُجَزِّزًا الْمُدْلِجِيَّ دَخَلَ فَلَما رَأَى

راغلی او ویې فرمایل: اې عائشې! نن مجزز مدلجي (قیافه شناس) چي اسامه او زید ولیدل

اُسَامَةَ وَزَيْدًا وَعَلَيْهِمَا قَطِيفَةٌ قَدْ غَطَّيَا رُءُوسَهُمَا وَبَدَتْ اَقْدَامُهُمَا فَقَالَ اِنَّ هٰذِهِ الْاَقْدَامَ بَعْضُهَا مِنْ بَعْضٍ. متفق علیه.

چي یو شی یې اغوستي او بیده وو او پښې یې ښکارېدې نو هغه وویل: چي دا پښې ځیني د ځینو څخه دي (یعني په دې پښو کي نسبتي شرکت دی) عربو به ویله چي د اسامه رنګ د زید د رنګه څخه مختلف دی نو په دې وجه هغه د زید زوی نه دی نو دقیافه شناسه په دې ویلو سره د دې تردید وسو او نبي کریم ﷺ په دې ډېر خوشحاله سو د زید بن حارثه رضي الله عنه یعني د اسامه پلار د نبي کریم ﷺ متبني (جوړ سوی زوی) وو. (بخاري او مسلم)

**تخریج**: البخاري في الصحیح (فتح الباري): ۱۲\۵۶. رقم: ۶۷۷۱، ومسلم ۲\۱۰۸۲، رقم: ۳۸\۱۴۵۹

**تشریح** حضرت زید ابن حارثه رضي الله عنه چي د رسول الله ﷺ متبني وو (یعني خپل زوی کړی یې

وو) ډېر سپين و سور او ښائسته وو ، حال دا چي د هغه زوی حضرت اسامه رضي الله عنه تور وو او د خپل مور په رنګ وو ، د هغه مور چي ام ايمن نوميدل يوه مينزه او توره وه ، د پلار او زوی د رنګ د فرق په وجه به منافقانو د حضرت اسامه رضي الله عنه په نسب کي عيب وايه او دليل به يې دا ورکوی چي د داسي ښائسته پلار زوی دومره تور څرنګه کيدای سي ، رسول الله ﷺ به د منافقانو پر دغه خبره خفه کېدی نو په دغه دوران کي دغه واقعه پېښه سوه .

مجززمدلجي د عربو يو مشهور قيافه پيژندونکی او په خپل فن کي ډېر رسيدلی وو هغه به د سړي د صورت په لېدو سره د هغه حالات، کوائف او صفتونه معلومول ، هغه مسجد نبوي ته راغلی او د حضرت زيد او اسامه رضي الله عنهما پښې يې وليدلې هغه د خپل علم قيافه له مخي دا فيصله وکړه چي دغه پښې د کومو دوو کسانو دي دا دواړه په خپلو کي پلار او زوی کيدای سي ، رسول الله ﷺ په دې خبره ډېر خوشحاله سو ځکه چي د عربو په نزد د قيافه شناس قول معتبر وو او د هغه فيصلې ته به يې د سند درجه ورکول نو رسول الله ﷺ ته اطمينان وسو اچي اوس د اسامه رضي الله عنه نسب د سند څخه ثابت سوی دی او منافقان به هم د هغه د نسب په باره کي د پيغور کولو جرئت نه کوي.

مګر دا خبره بايد په ذهن کي وي چي د حديث څخه دا لازميږي چي د شرعي احکامو او نسب کي د قيافه پيژندونکي قول معتبر دی ، د امام ابوحنيفة رحمة الله عليه مذهب دادی البته امام شافعي، امام مالک او امام احمد رحمة الله عليهم د قيافه پيژندونکي قول معتبر ګڼي تر دې چي د هغوی په مذهب کي دا مسئله ده که يو مينزه د دوو خلکو په ملکيت کي وي او دهغې څخه کوچنی پيدا سي او هغه دواړه کسان د کوچني د نسب دعوه وکړي يعني هريو دا وايي چي دا زما زوی دی نو په دغه صورت کي به هغه دواړه قيافه پيژندونکي ته رجوع کوي او هغه قيافه پيژندونکي چي د خپل علم پر بنياد څه فيصله وکړي هغه به قبلوي ، د امام اعظم ابوحنيفة رحمة الله عليه په نزد په دغه صورت کي هغه کوچنی د شرعي حکم په اعتبار د دواړو دی که څه هم د واقعت په اعتبار هغه د يوه وي او هغه مينزه به د دواړو ام ولد وي .

## د خپل پلار څخه د انکار کونکي وعيد

﴿۳۱۷۲﴾ : وَعَنْ سَعْدِ بْنِ اَبِيْ وَقَّاصٍ وَاَبِيْ بَكْرَةَ قَالَا قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ ادَّعَى إِلَى غَيْرِ أَبِيهِ وَهُوَ يَعْلَمُ فَالْجَنَّةُ عَلَيْهِ حَرَامٌ . متفق عليه

د حضرت سعد بن ابي وقاص رضی اللہ عنہ او ابي بکره رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: کوم سړی چي د خپل پلار څخه پرته بل سړی ته ځان منسوبه کوي او هغه د دې حقیقت څخه خبر وي چي دی د پلار څخه دی نو په هغه جنت حرام دی. (بخاري او مسلم).

**تخریج**: البخاري في الصحیح (فتح الباري): ۱۲\ ۵۴، رقم: ۶۷۶۶، ومسلم ۱\ ۸۰، رقم: ۱۱۵\ ۶۳

**تشریح**: پر هغه جنت حرام دی: ددې مطلب دادی که چیري یو سړی د خبرتیا سربېره د خپل پلار پر ځای د بل سړی څخه خپل نسبت ثابتوي او هغه دې خبري ته بد نه وایي بلکه د هغه دا عقیده وي چي په خپل نسب کي داسي کول حلال دي نو د یو حرام شی د حلال کېدو عقیده درلودلو په وجه هغه د کفر حد ته ورسیدی او کله چي هغه د کفر حد ته ورسیدی او په همدغه حال کي مړ سو نو د هغه نتیجه به دا وي چي پر هغه به د جنت دروازې د همېشه لپاره بندي وي او که چیري هغه سړی دا عقیده نه لري یعني د خپل پلار پر ځای دوهم سړي ته نسبت کول حلال نه ګڼي بلکه حرام یې ګڼي نو په دغه صورت کي به پر هغه د جنت دحراموالي مطلب دا وي چي تر هغه وخته پوري به پر هغه د جنت دروازې بندي وي تر څو چي هغه د خپل ګناه سزا ونه څکي، او یا دا به ویل کیږي چي د رسول الله ﷺ دغه ارشاد چي پر هغه جنت حرام دی دا د زجر او توبیخ په توګه دی چي د هغه مقصد خلک د دغه بدۍ څخه منع کول دي.

﴿۳۱۷۳﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَرْغَبُوا عَنْ آبَائِكُمْ فَمَنْ رَغِبَ عَنْ أَبِيهِ فَقَدْ كَفَرَ. متفق علیه و قد ذکر حدیث عائشة ما من احد اغیر من الله في باب صلوة الخسوف.

د حضرت ابوهریره رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د خپلو پلرو څخه انکار مه کوئ (یعني د هغو د نسب څخه ځانونه مه بېګانه کوئ) ځکه چي کوم سړی د خپل نسب څخه انکار وکړ هغه د نعمت ناشکري وکړه. (بخاري او مسلم) او د بي بي عائشې رضی اللہ عنہا حدیث ما من احد الخ صلوة خسوف کي بیان سوې دی.

**تخریج**: ابوداود في السنن ۲\ ۶۹۵، رقم: ۲۲۶۳، والنسائي ۶\ ۱۷۹، رقم: ۱۴۸۱، والدارمي ۲\ ۲۰۴، رقم: ۲۲۳۸

**تشریح**: د جاهلیت په زمانه کي دا یو عامه خرابي وه چي خلکو به د خپل اصلي پلار څخه د خپل نسب په انکار کولو سره بل سړی به یې خپل پلار ګرځوی، رسول الله ﷺ ددې څخه منع وکړه.

په دې باره کې مسئله داده چې په قصد سره د خپل پلار پر ځای د بل سړي سره خپل نسب قائمول حرام دي که یو سړی د پردي سړي سره خپل نسب قائمول مباح وګڼي او دا عقیده ولري نو هغه کافر کیږي ځکه چې د داسې شي د حلال او مباح کېدو عقید درلودل چې ټول امت حرام ګرځولی وي کفر دی ، په دغه صورت کې د حدیث الفاظ (فقد کفر) دا پر خپل حقیقي معنی محمول وي او که چیرې یو شوک ددې د مباح کېدو عقیده ونه لري نو په دغه صورت کې به د کفر دوې معناوې وي یو خو دا چې هغه سړی د کفارو د فعل مشابهت اختیار کړی دوهم دا چې هغه د نعمت کفران (ناشکري) وکړه . د بي بي عائشې ﷺ حدیث (ما من احد اغیر من الله) په باب صلوة الخسوف کې نقل سوی دی .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د خپل کوچني ځخه انکار کونکی د الله ﷻ د دېدار ځخه محروم دی

﴿۳۱۷۴﴾ : عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَمَّا نَزَلَتْ

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه ځخه روایت دی چې د لعان دایت په نازلېدو هغه د رسول الله ﷺ ځخه دا

آيَةُ الْمُلاَعِنَةِ أَيُّمَا امْرَأَةٍ أَدْخَلَتْ عَلٰى قَوْمٍ مَّنْ لَيْسَ مِنْهُمْ فَلَيْسَتْ مِنَ اللهِ

اورېدلي وه چې کومه ښځه چې په یو قوم کې هغه بچی شامل کړي چې هغه د هغو ځخه نه وي (یعني په زنا یې کوچنی راوړي وي او هغه یې و خپل خاوند ته منسوب کړې وي ) هغه ښځه

فِيْ شَيْءٍ وَلَنْ يُّدْخِلَهَا اللهُ جَنَّتَهُ وَأَيُّمَا رَجُلٍ جَحَدَ وَلَدَهُ وَهُوَ يَنْظُرُ إِلَيْهِ

قابل اعتبار نه ده خداي تعالي به هغه په جنت کې داخله نه کړي او کوم سړې چې د خپل زوی ځخه انکار وکړي حال دا چې پوهیږي چې دا زما زوی دي خداي تعالي به د هغه ځخه پرده

احْتَجَبَ اللهُ مِنْهُ وَفَضَحَهُ عَلٰى رُؤُوْسِ الْخَلاَئِقِ فِي الْأَوَّلِيْنَ وَالْآخِرِيْنَ . رواه أبو داود والنسائي والدارمي

وکړي (یعني هغه ته به د خداي تعالي دیدار نصیب نسي) او خداي تعالي به هغه په اولینو او اخیرنیو خلکو کې رسوا کړي .(ابوداؤد نسائي دارمي).

**تخریج**: ابوداود في السنن ۲\ ۶۹۵، رقم: ۲۲۶۳، والنسائي ۶\ ۱۷۹، رقم: ۱۴۸۱، والدارمي ۲\ ۲۰۴، رقم: ۲۲۳۸

**تشریح**: د حدیث خلاصه داده چي نه باید ښځه په بدکارۍ کولو سره خپل حرام کوچنی خاوند ته منسوب کړي او نه باید سړی داسي وکړي چي هغه د خبرتیا سربېره د خپل کوچنی ځخه انکار وکړي او پر ښځي باندي د زنا تهمت لګوي.

**بدکاره ښځي ته طلاق ورکول غوره دي**

﴿۳۱۷۵﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه ځخه روایت دی چي یو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو

فَقَالَ إِنَّ لِي امْرَأَةً لاَ تَرُدُّ يَدَ لاَمِسٍ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَلِّقْهَا

او عرض یې وکړ یا رسول الله! زما ښځه د هیچا ځخه مخ نه اړوي (یعني کوم سړی چي ور سره جماع کوي د هغه ځخه انکار نه کوي)

قَالَ إِنِّي أُحِبُّهَا قَالَ فَأَمْسِكْهَا إِذًا. رواه أبو داود والنسائي وقال النسائي: رفعه أحد الرواة إلى ابن عباس وأحدهم لم يرفعه قال: وهذا الحديث ليس بثابت.

نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل: هغې ته طلاق ورکړه هغه عرض وکړ زما ور سره زیاته مینه ده نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل: نو د هغې ساتنه کوه او د ځان سره یې ساته. (ابوداؤد نسائي) نسائي وایي په راویانو کي یو راوي خو د ابن عباس رضي الله عنه ته مرفوع کوي او دویم نه کوي نسائي وایي دا حدیث ثابت نه دی.

**تخریج**: ابوداود في السنن ۲\ ۵۴۱، رقم: ۲۰۴۹، والنسائي ۶\ ۱۷۰، رقم: ۳۴۶۵

**د لغاتو حل**: ید لامس: ای لاتمنع نفسها عمن یقصدها بفاحشة.،

**تشریح**. دا حدیث شریف پر دې خبره دلالت کوي چي بدکاري ښځي ته طلاق ورکول غوره دي ځکه رسول الله ﷺ د طلاق ورکولو حکم اول ورکړ او د ساتني حکم یې وروسته ورکړ مګر که چیري په یو وجه طلاق ورکول اسان نه وي مثلا د هغې سره یې دومره زیاته مینه وي چي هغه د

ځان څخه جلا كول ممكن نه وي يا د هغې په نس كې يې كوچنى وي چې د مور جلا والى نه سي زغملاى يا د هغه ښځې پر ده باندې پور يا مهر واجب وي چې د هغه پر ادا كولو قادر نه وي نو په داسې صورت كې جائز دي چې هغې ته طلاق ور نه كړي مگر دا شرط دى چې هغه د بد كارۍ څخه منع كړي او كه چيرې هغه نه سي منع كولاى نو بيا د طلاق نه وركولو په صورت كې به گناه كار وي.

## د نسب د اثبات په اړه يو هدايت

﴿٣١٧٦﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

حضرت عمرو بن شعيب رضي الله عنه د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلاره څخه روايت كوي چې رسول

وَسَلَّمَ قَضَى أَنَّ كُلَّ مُسْتَلْحَقٍ اسْتُلْحِقَ بَعْدَ أَبِيهِ الَّذِي يُدْعَى لَهُ ادَّعَاهُ وَرَثَتُهُ

الله ﷺ د هغه كوچني په نسبت چې هغه د پلار د مرگ څخه وروسته د هغه په وارثانو كې شامل

فَقَضَى أَنَّ مَنْ كَانَ مِنْ أَمَةٍ يَمْلِكُهَا يَوْمَ أَصَابَهَا فَقَدْ لَحِقَ بِمَنْ اسْتَلْحَقَهُ

كړ د دې حكم د وركولو اراده يې وكړه چې كوم كوچنى د داسې مينزې څخه پيدا وي چې د هغه پلار په هغه ورځ د هغې مينزې مالک وي چې په كومه ورځ يې ورسره صحبت كړې وي نو هغه كوچنى د هغه په نسب كې شامل سو

وَلَيْسَ لَهُ مِمَّا قُسِمَ قَبْلَهُ مِنَ الْمِيرَاثِ شَيْءٌ وَمَا أَدْرَكَ مِنْ مِيرَاثٍ لَمْ

او د هغه وارث سو او د هغه د پيدا كېدو ترمخه چې كوم مال تقسيم سوې وي په هغه كې د هغه

يُقْسَمْ فَلَهُ نَصِيبُهُ وَلَا يَلْحَقُ إِذَا كَانَ أَبُوهُ الَّذِي يُدْعَى لَهُ أَنْكَرَهُ وَإِنْ كَانَ مِنْ

هيڅ برخه نسته او كه ميراث د هغه د پېدا كېدو څخه وروسته بيا پيدا سي او تقسيم سوې نه وي نو په هغه كې د هغه برخه نسته او هغه كوچنى چې د هغه پلار د هغه څخه انكار كړې وي د هغه

أَمَةٍ لَمْ يَمْلِكْهَا أَوْ مِنْ حُرَّةٍ عَاهَرَ بِهَا فَإِنَّهُ لَا يَلْحَقُ بِهِ وَلَا يَرِثُ وَإِنْ كَانَ الَّذِي

په نسب كې شاملېداى نسي كه څه هم هغه كوچنى د هغې مينزې څخه وي چې د هغې سره يې په هغه ورځ صحبت كړې وي په كومه ورځ چې د هغې مالک سوې نه وو كه د ازادې ښځې سره

يُدْعَى لَهُ الذي هُوَ ادَّعَاهُ فَهُوَ وَلَدُ زِنْيَةٍ مِنْ حُرَّةٍ كَانَ أَوْ أَمَةٍ. رواه ابوداؤد

يې زنا كړې وي هغه كوچنى نه د هغه په نسب كي شاملېداى سي او نه يې هم وارث كېداى سي كه څه هم پلار يې د هغه كوچني دعوا كړې وي چي دا د هغه كوچنى دى هغه كوچنى كه د مينزي څخه وي كه د ازاداي ښځي څخه وي حرامي به وي .(ابوداؤد) .

**تخريج**: ابوداود في السنن ٢\٦٩٦، رقم: ٢٢٦٥

**تشريح**: خطابي رحمة الله عليه وايي چي دا هغه احكام دي كوم چي د اسلام د شروع په زمانه كي رسول الله ﷺ جاري كړي وه ، په هغه زمانه كي د خلكو بدكاري مينزي وي چي زنا به يې كول او د هغوى مالكانو به هم د هغوى سره كوروالي كول او بيا چي به د هغوى څخه كوچنى پيدا سو نو مالک به د هغه دعوه كول او زنا كونكي به هم دعوه كول، د داسي جګړو په شرعي توګه سره د ختمولو لپاره رسول الله ﷺ پورتني احكام جاري كړل، په دې باره كي چي رسول الله ﷺ كوم شرعي قاعده وټاكل او د هغې ذكر په حديث شريف كي سوى دى د هغه وضاحت دادى چي د مثال په توګه زيد وفات سو او د هغه څخه وروسته د زيد وارثان به دا دعوه كولاى سي او د هغه كوچني نسب به د زيد سره په قائمولو سره د هغه د مېراث حقدار كيداى سي مګر دا په هغه صورت كي وي كله چي هغه هلک د يو داسي مينزي د نس څخه وي چي د زيد په ملكيت كي پاته سوې وي او زيد دهغې سره په جائز طريقه جماع كړې وي يا هغه د يو داسي ازادي ښځي دنس څخه وي چي د زيد په نكاح كي پاته سوې وي او خپله زيد هم په خپل ژوند كي دا اقرار كړى وي چي دا زما زوى دى .

لكه څرنګه چي په حديث كي وضاحت دى چي دغه هلک به د هغه وارثانو په حق كئ برخه لرونكى وي كومو چي دغه دعوه كړې وي او كه ځيني وارثان دعوه كوي نو يوازي دهغه ځينو وارثانو په حق كي به برخه لرونكى وي او دا كوچنى به يوازي په هغه ميراث كي برخمن وي كوم چي تر اوسه ويشل سوى نه وي او كوم مېراث چي د دغه دعوې څخه مخكي ويشل سوى وي په هغه كي به هيڅ برخه نه وركول كيږي او كه چيري دا صورت وي چي زيد په خپل ژوند كي د هغه كوچني دنسب څخه انكار كړى وي يعني دا يې ويلي وي چي دا زما زوى نه دى نو بيا د هغه د مرګ څخه وروسته كه چيري دهغه وارثان د هغه كوچني په ځان كي ګډول غواړي نو داسي نه سي كيدلاى او نه به هغه كوچني ته د مېراث څخه برخه وركول كيداى سي .

او كه چيري هغه كوچنى د يو داسي مينزي د نس څخه وي چي د زيد په ملكيت كي نه وي

یا د یو داسي ازادي ښځي د نس څخه وي چي هغه دزید په نکاح کي نه وه یعني هغه کوچنی د زنا په نتیجه کي پیدا سوی وي نو په دغه صورت کي هم هغه د زید په وارثانو کي نه سي ګڼډلای او نه به هغه ته د زید په میراث کي برخه ورکول کیږي بلکه که چیري زید په خپل ژوند کي دا وغواړي چي د هغه سره د خپل نسب په یو ځای کولو سره هغه په خپلو وارثانو کي شامل کړي نو هغه هم داسي نه سي کولای ځکه چي د ولد الزنا نسب د زناکونکي سره نه قائمیږي او نه هغه د زناکونکي وارث وي.

## غیرت په ځینو صورتو کي خوښ او په ځینو کي ناخوښه دی

﴿۳۱۷۷﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ عَتِيكٍ أَنَّ نَبِيَّ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مِنْ

د حضرت جابر بن عتیک رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د غیرت یو قسم چي

الْغَيْرَةِ مَا يُحِبُّ اللَّهُ وَمِنْهَا مَا يُبْغِضُ اللَّهُ فَأَمَّا الَّتِي يُحِبُّهَا اللَّهُ فَالْغَيْرَةُ فِي

خداي تعالي یې خوښوي او د غیرت یو قسم چي الله جل جلاله یې نه خوښوي کوم چي الله جل جلاله یې خوښوي هغه غیرت دی چي

الرِّيبَةِ وَأَمَّا الَّتِي يُبْغِضُهَا اللَّهُ فَالْغَيْرَةُ فِي غَيْرِ رِيبَةٍ وَإِنَّ مِنَ الْخُيَلَاءِ مَا

د شک او شبې په ځای وي (لکه په ښځي یا په مینزي باندي شک او شبه وي چي د دې اړیکي د بل سړي سره دي). او هغه غیرت چي الله جل جلاله یې نه خوښوي هغه غیرت دی چي د شک او شبهې په ځای نه وي (یعني ځاني ګمان یې وي او د شک څه قرینه نه وي) او ځیني لویي

يُبْغِضُ اللَّهُ وَمِنْهَا مَا يُحِبُّ اللَّهُ فَأَمَّا الْخُيَلَاءُ الَّتِي يُحِبُّ اللَّهُ فَاخْتِيَالُ

(تکبر) ښودل داسي دي چي د الله جل جلاله خوښ نه دي، او ځیني هغه ده چي خداي تعالي یې خوښوي کومه لویي چي خداي تعالي خوښوي هغه داده چي

الرَّجُلِ عِنْدَ الْقِتَالِ وَاخْتِيَالُهُ عِنْدَ الصَّدَقَةِ وَأَمَّا الَّتِي يُبْغِضُ اللهُ فَاخْتِيَالُهُ

فِي الْفَخْرِ وفي رواية فِي الْبَغْيِ. رواه احمد و ابوداؤد والنسائي.

د غزا په وخت یا دصدقې د ورکولو په وخت کي سړی ښکاره کړي او کومه چي د خداي تعالي

بد ايسي نو هغه په نسب باندي فخر كول دي او په يو بل روايت كي دا الفاظ دي چي تكبر د الله جَلَّ جَلَالُهُ خوښ نه دى هغه په ظلم كي تكبر كول دي. (احمد ابوداؤد نسائي).

**تخريج**: احمد في المسند ۵\ ۴۴۵، وابوداود في السنن ۳\ ۱۱۴، رقم ۲۶۵۹، والنسائي ۵\ ۷۸، رقم: ۲۵۵۷.

**تشريح**: پر خپل نسب باندي فخر او تكبر كول دادى چي يو سړى د لوړ او اعلى نسب او د ښه كورنۍ څخه وي او هغه دا وايي چي ما ته په نسب كي لوړوالى او امتياز حاصل دى او زما پلار او نيكه د لوړي كورنۍ كېدو په وجه بزرگ او افضل دى، دا يو داسي تكبر دى چي الله تعالى ته ناخوښه دى ځكه چي د الله تعالى په نزد غوره والى، فوقيت او بزرگي هغه سړي ته تر لاسه وي كوم چي د دين په اعتبار تر ټولو غوره وي، الله تعالى فرمايي:

إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِندَ اللَّهِ أَتْقَاكُمْ

ژباړه: بېله شكه د الله تعالى په نزد په تاسو كي زيات بزرگ او د لوړي مرتبې سړى هغه څوك دى چي په تاسو كي زيات متقي (پرهيزگاره) وي.

د مشكوة شريف په يوه نسخه كي په دغه روايت كي د (في الفخر) پر ځاى د (في الفقر) الفاظ دي يعني كوم تكبر چي د الله تعالى خوښ دى هغه د فقر تكبر دى، مطلب دا چي د الله تعالى دا خبره خوښه نه ده چي يو سړى دي د فقر په حالت كي پر خپل قناعت او خپل صبر باندي تكبر وكړي، علماء كرام وايي چي دا تكبر تر هغه تكبر بد دى كوم چي پر خپل غناء او مال باندي كيږي مگر د فقير تكبر په هغه صورت كي خراب او د الله تعالى په نزد ناخوښه دى كله چي هغه د فقر په مقابله كي وكړل سي مگر كه چيري هغه تكبر د شتمنو او خانانو په مقابله كي وكړي نو دا ښه او غوره دى ځكه چي داسي تكبر ته خو صدقه ويل كيږي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د ولد الزنا نسب

﴿۳۱۷۸﴾: عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ قَامَ رَجُلٌ فَقَالَ يَا

حضرت عمرو بن شعيب رضي الله عنه د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار ره څخه روايت كوي چي يو سړى ودرېدى او عرض يې وكړ يا

رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّ فُلَانًا ابْنِي عَاهَرْتُ بِأُمِّهِ فِي الْجَاهِلِيَّةِ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

رسول اللّٰه! فلانی زما زوي دی ما د هغه د مور سره د جاهلیت په زمانه کي زنا کړې وه نبي کریم

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا دَعْوَةَ فِي الْإِسْلَامِ ذَهَبَ أَمْرُ الْجَاهِلِيَّةِ الْوَلَدُ لِلْفِرَاشِ وَلِلْعَاهِرِ الْحَجَرُ . رواه ابوداؤد

ﷺ ورته وفرمایل : د جاهلیت د زمانې خبري تیري سوې په اسلام کي د هغه دعوا نه چلیږي کوچنی د صاحب فراش ( د بسترې د خاوند دی یعني د چا په بستره دي پیدا سوې وي) او د زنا کاره لپاره په کاڼو سنګسارول دي . (ابوداؤد) .

**تخريج**: سنن ابي داود ۲\۷۰٦، رقم: ۲۲۷۴.

**د لغاتو حل**: لا دعوة: ای لا دعوی نسب.

**تشريح**: د صاحب فراش څخه هغه سړی مراد دی چي د ولد الزنا د مور خاوند یا مالک وي، مطلب دا چي کومه ښځه د چا په نکاح کي وي (یا د مینزي کېدو په صورت کي) د یو چا په ملکیت کي وي نو د هغه د زنا په نتیجه کي چي کوم کوچنی پیدا سي د هغه نسب د هغه د خاوند یا مالک څخه ثابتیږي او که چیري هغه ښځه د یو چا په نکاح یا ملک کي نه وي نو بیا به کوچنی مور ته منسوب وي ، په هر صورت د زنا کونکي به د هغه کوچني سره هیڅ نسبي تعلق نه وي .

## هغه څلور ښځي چي د هغو څخه لعان نه کیږي

﴿۳۱۷۹﴾: وَعَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَرْبَعٌ مِنَ النِّسَاءِ لَا مُلَاعَنَةَ بَيْنَهُنَّ النَّصْرَانِيَّةُ تَحْتَ الْمُسْلِمِ وَالْيَهُودِيَّةُ تَحْتَ الْمُسْلِمِ وَالْحُرَّةُ تَحْتَ الْمَمْلُوكِ وَالْمَمْلُوكَةُ تَحْتَ الْحُرِّ . رواه ابن ماجة

د حضرت عمرو بن شعیب رضی اللّٰه عنه څخه روایت دی چي رسول اللّٰه ﷺ وفرمایل : څلور ښځي دي چي په هغوی باندي لعان نسته :(۱): یوه نصراني ښځه ده چي د یوه مسلمان په نکاح کي وي.(۲): بله یهودي ښځه ده چي د یوه مسلمان په نکاح کي وي .(۳): بله هغه ازاده ښځه ده چي د یوه غلام په نکاح کي وي . (۴): هغه مینزه ده چي د یوه ازاد په نکاح کي وي . (ابن ماجه)

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۱\۶۷۰، رقم: ۲۰۷۱

**تشریح**: مطلب دادی که چیري یو عیسائي یا یهودي ښځه د یو مسلمان په نکاح کي وي او د هغې خاوند پر هغې باندي د زنا تهمت ولګوي او هغه يې رد وکړي نو په دغه صورت کي د دواړو په مینځ کي لعان نه کیږي همدارنګه که چیري یو ازاده ښځه د یو غلام په نکاح کي وي یا یو مینزه د ازاد سړي په نکاح کي وي نو د هغوی په مینځ کي لعان نه کیږي او ددې وجه داده چي لعان په اصل کي شاهدي ده ځکه د لعان په صورت کي د سړي او ښځي دواړو د شهادت وړ کېدل ضروري دي حال دا چي مملوک او کافر د شهادت وړ نه دي یعني په هیڅ معامله کي د دوی شاهدي معتبره نه ده نو د دوی په مینځ کي د لعان هیڅ صورت نه سته .

**رسول الله ﷺ تر خپل امکان پوري د لعان څخه ځان ساتئ**

﴿۳۱۸۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ رَجُلًا حِينَ أَمَرَ الْمُتَلَاعِنَيْنِ أَنْ يَتَلَاعَنَا أَنْ يَضَعَ يَدَهُ عِنْدَ الْخَامِسَةِ عَلَى فِيهِ وَقَالَ إِنَّهَا مُوجِبَةٌ . رواه النسائي .

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دی چي د دوو کسانو لعان کېدی رسول الله ﷺ یوه سړي ته امر ورکړ کله چي دا خلک په پنځم وار شاهدي ورکوي نو ته د هغوی په خوله لاس کښېږده ځکه چي د پنځم وار شهادت واجب کېدونکي دی (یعني جلاوالي په مینځ کي راولي) . (نسائي) .

**تخریج**: سنن النسائي ۶\۱۷۵، رقم: ۳۴۷۲.

**تشریح**: کیدای سي یو خاوند پر خپل ښځه باندي د زنا تهمت لګولی وي او ښځي به د هغه تردېد کړی وي نو رسول الله ﷺ هغوی ته حکم ورکړ او هغه وخت یو بل سړي ته يې دا حکم ورکړ چي د پنځمي شاهدي پر وار د لعان کونکي پر خوله لاس کښېږده چي هغه د پنځمي شاهدۍ په ورکولو سره لعان پوره نه کړي .

ددغه حکم مقصد دا وو چي د هغه پر خوله لاس کښېښودل سي نو هغه ته به احساس وسي او کوم چي رېښتیا خبره وي د هغه په اقرار کولو سره به د پنځمي شاهدۍ څخه منع سي او کله چي پنځمه شاهدي پوره نه سي نو لعان نه واقع کیږي ، دا حدیث ددې دلیل دی چي رسول الله ﷺ تر خپل وس پوري د لعان څخه د منع کولو هڅه کول او دا يې غوښتل چي کومه رېښتیا خبره وي ښځه او خاوند دي د هغه اقرار وکړي او ددغه دنیا د آسانه عذاب یعني د زنا یا تهمت د حد په اختیارولو سره د آخرت د سخت عذاب څخه وساتل سي .

## شیطان د خاوند او ښځي په مینځ کي د بدګمانی پیدا کولو هڅه کوي

﴿۳۱۸۱﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ مِنْ عِنْدِهَا

د بي بي عائشي ﷞ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ یوه شپه (یعني د شعبان په پنځلسمه

لَيْلًا قَالَتْ فَغِرْتُ عَلَيْهِ فَجَاءَ فَرَأَى مَا أَصْنَعُ فَقَالَ مَا لَكِ يَا عَائِشَةُ أَغِرْتِ

شپه) زما څخه ولاړ شو او ولاړی د بي بي عائشي رض بیان دی په دې باندي ما ته غیرت راغلی (لږ وخت وروسته) رسول الله ﷺ بیرته تشریف راوړ او زه چي په کوم خلجان (تردد) کي مبتلا وم نبي کریم ﷺ هغه ملاحظه کړ (یعني محسوس یې کړ او ویې لیدل) او وې فرمایل:

فَقُلْتُ وَمَا لِي لَا يَغَارُ مِثْلِي عَلَى مِثْلِكَ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

اې عائشې! په تا څه وسوه ایا تا په ما باندي غیرت وکړ؟ ما عرض وکړ په ما څه وسوه چي زما ستاسو په ډول سړی باندي غیرت ونه کړم. نبي کریم ﷺ راته وفرمایل: هو،

لَقَدْ جَاءَكِ شَيْطَانُكِ قَالَتْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَمَعِيَ شَيْطَانٌ قَالَ نَعَمْ قلت وَمَعَكَ

تا ته شیطان راغلی دی او ته یې په وسوسه کي اچولې یې بي بي عائشه ﷞ وایي چي ما عرض وکړ یا رسول الله! ایا زما سره شیطان سته؟ نبي کریم ﷺ راته وفرمایل: هو. ما وویل:

يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ نَعَمْ وَلَكِنْ أَعَانَنِي اللّٰهُ عَلَيْهِ حَتَّى أَسْلَمَ. رواه مسلم.

او ستاسو سره (یا رسول الله!) نبي کریم ﷺ راته وفرمایل: زما سره هم شیطان سته مګر الله ﷻ ما ته په هغه باندي کومک را کړې دی. او زه یې د هغه څخه ساتلي یم. (مسلم).

**تخریج**: صحیح مسلم ۴\۲۱۶۸، رقم: ۷۰- ۲۸۱۵

**تشریح**: یو وخت د شعبان پر پنځلسمه شپه رسول الله ﷺ په آرامه د بي بي عائشي رضي الله عنها څخه په پورته کېدو سره جنت البقیع ته ولاړی چي هلته د مړو لپاره دعاء او مغفرت وکړي مګر بي بي عائشي ﷞ دا فکر وکړ چي رسول الله ﷺ زما څخه په ولاړېدو خپل یو بلي بي بي ته ورغلی دی، دا د شیطان چم وو چي هغه یې په دغه شک کي اخته کړه په دې وجه هغې ته ډېر غیرت راغلی د هغې د زړه کیفیت متغیر سو او بیا هغې ولیدل چي د رسول الله ﷺ منزل د یو بلي بي بي ځای نه دی بلکه جنت البقیع دی چیري چي رسول الله ﷺ د دغه دنیا څخه د تلونکو

مسلمانانو په دعاء او مغفرت كي بوخت دی ، يقيني خبره ده چي كوم شک او شبهې بي بي عائشه ﷞ په دومره بېره كي اخته كړه چي هغه د رسول الله ﷺ د ستنېدو څخه مخكي كور ته ورسيږي نو د هغه ځای څخه په منډه بېرته راغلل كله چي په كور كي داخله سوه نو يو څه د منډو په وجه او يو څه د پښيماني په وجه زړه يې دربېدی او ساه يې ژر ژر اخيستل ، د هغه وروسته رسول الله ﷺ كور ته راغلی او د بي بي عائشي ﷞ دا كيفيت يې وليدی چي ساه يې ژر ژر كښل او بېره پر خپره سوې ده ، ورته وه يې فرمايل ولي دومره بېره در باندي راغلې ده چي تا يوازي په دې وجه غيرت وكړ چي زه همداسي ولي ولاړم ، ددې په جواب كي چي بي بي عائشې رضي الله عنها څه وويل هغه په اصل كي د ښځو د فطري جذباتو ترجماني وه هغې وويل دا ناممكنه ده چي زما په ډول ښځه دي پر تاسو غوندي سړي باندي غيرت ونه كړي مگر كه څه هم ما ته ستاسو ډېر محبت تر لاسه دی مگر زما بني هم ځو دي او بيا تاسو په ټول ظاهري او باطني كمال سره متصف ياست نو په دغه صورت كي زه ولي په شک او غيرت كي اخته نه سم .

==========

## بَابُ الْعِدَّةِ (د عدې بيان)

**د عدت معنی** : د عدت لغوي معنی د شمېرلو ده او د شريعت په اصطلاح كي عدت دې ته وايي چي كله يو سړی خپل ښځي ته طلاق وركړي يا د خلع او ايلاء په ذريعه نكاح يا د نكاح په ډول شی (مثلا نكاح فاسد) مات سي په شرط ددې چي په نكاح كي جماع يا خلوت صحيحه سوی وي يا خاوند مړ سي نو هغه تر ټاكلي وخت پوري (چي د هغه تفصيل به مخته راسي) په كور كي پاته كيږي تر څو چي هغه وخت ختم نه سي تر هغه پوري چيري نه ځي او نه د بل چا سره نكاح كوي كله چي دغه وخت پوره سي نو چيري چي غواړي تللای سي او د چا سره چي وغواړي نكاح كولای سي .

**د عدت وخت** : كله چي ازادي ښځي ته د هغې خاوند طلاق وركړی وي يا نكاح فسخ سوې وي او هغې ته حيض راځي نو د هغې د عدې وخت درې حيضه دی يعني هغه به تر درو حيضو راتلو پوري د خاوند په كور كي (چيري چي طلاق وركړل سوی دی) ناسته وي او د هغه كور څخه د باندي به نه ځي او نه به د چا سره نكاح كوي ، همدارنگه د كومي ځي سره چي په شبه كي جماع سوې وي د هغې د عدت وخت هم درې حيضه دی يعني يو ځوک چي د بل ښځي سره د

خپل ښځي په ګمان سره په خطا کي جماع وکړي نو هغه ښځه به هم تر درو حیضو راتلو پوري په عده کي وي تر څو چي عده ختمه نه سي تر هغه وخته به د خاوند سره جماع نه کوي ، د کومي ښځي سره چي بې قاعدې یعني فاسده نکاح سوې وي لکه موقت نکاح او بیا جلاوالی وکړل سي یا د جلاوالي څخه مخکي خاوند مړ سوی وي نو د هغې د عدت وخت هم درې حیضه دی ، کله چي ام ولد ازاده سي یاد هغې بادار مړ سي نو د هغې عدت هم درې حیضه دی .

که یوې ښځي ته د کم عمرۍ په وجه یا د وچي کېدو په وجه او یا د سپین سرتوب په وجه حیض نه راځي نو د عدې عده درې میاشتي ده .

د کومي ازادي ښځي خاوند چي مړ سي نو د هغې عدت څلور میاشتي او لس ورځي دی که څه هم د هغه ښځي سره بې جماع سوې وي یا نه وي سوې او که څه هم هغه مسلمانه ښځه وي یا د مسلمان سړي په نکاح کي یهودي یا نصراني وي او که څه هم هغه بالغه وي یا نابالغه ، او که څه هم د هغې خاوند ازاد وي یا غلام وي او که څه هم په دغه وخت کي هغې ته حیض راځي یا نه راځي .

د حاملې ښځي عدت د حمل وضع دی ، که څه هم هغه ښځي ته خاوند طلاق ورکړی وي یا د هغې خاوند مړ سوی وي او که څه هم هغه ښځه ازاده وي یا مینزه وي ، د ولادت په کېدو سره د هغې عده پوره کیږي که څه هم د خاوند د طلاق ورکولو یاد خاوند د مړو کېدو څخه وروسته ولادت وسي تر دې چي په مبسوط نامي کتاب کي لیکلي دي که چیري د حاملې ښځي خاوند مړ سي او هغه ته غسل ورکول کیږي یا کفن ورکول کیږي که چیري د هغه ښځي ولادت وسو (یعني کوچنی یې پیدا سو) نو د هغې عده پوره سوه .

کومه ښځه چي ازاده نه وي یعني د یو چا مینزه وي او د هغې خاوند طلاق ورکړي نو د هغې عدت هغه حیض دی په شرط ددې چي هغې ته حیض راځي او که چیري هغې ته حیض نه راځي نو بیا د هغې عده یوه نیمه میاشت ده او که چیري دهغې خاوند مړ سي نو د هغې عده دوې میاشتي او پنځه ورځي ده که څه هم هغې ته حیض راځي یا نه راځي .

**د عدت د شروع وخت** : د طلاق په صورت کي د عدت شروع د طلاق څخه وروسته وي یعني د طلاق څخه وروسته چي درې حیضه راسي نو هغه به شمېرل کیږي که یو چا د حیض په حالت کي ښځي ته طلاق ورکړی وي نو هغه حیض نه شمېرل کیږي بلکه د هغه حیض څخه وروسته د درو حیضو اعتبار دی ، او په وفات کي د عدت شمېر د خاوند د وفات څخه وروسته وي که ښځي ته د طلاق یا د وفات خبر ونه سي تر دې چي د عدت وخت تېر سي نو د هغې عده پوره سوه ، دعدې په باره کي نور مسائل د فقهي په کتابو کي تر لاسه کولای سئ .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د عدت په ورځو کي پر خاوند نفقه واجب ده که یا؟

﴿۳۱۸۲﴾: عَنْ أَبِي سَلَمَةَ عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ أَنَّ أَبَا عَمْرِو بْنَ حَفْصٍ طَلَّقَهَا

د حضرت ابو سلمه رضی الله عنه څخه روایت دی چي فاطمه بنت قیس رضی الله عنها دا بیان و کړ چي ابو عمرو بن حفص رضی الله عنه د هغې خاوند و هغې ته طلاق ورکړ

الْبَتَّةَ وَهُوَ غَائِبٌ فَأَرْسَلَ إِلَيْهَا وَكِيلُهُ للشَعِيرٍ فَسَخِطَتْهُ فَقَالَ وَاللَّهِ مَا لَكِ

او ابو عمرو (یعني د هغې خاوند) د هغې سره موجود نه وو د هغه ځایه څخه یې طلاق را ولیږی بیا د ابو عمرو وکیل فاطمې رض ته څه اوربشي را ولیږلې فاطمه په هغه باندي ډیره خفه سوه وکیل و فاطمې ته وویل قسم په خدای چي

عَلَيْنَا مِنْ شَيْءٍ فَجَاءَتْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَتْ ذَلِكَ لَهُ

ستا پر موږ باندي حق نسته یعني ستا نفقه پر موږ باندي واجب نه ده موږ چي څه در کوو هغه د احسان په ډول در کوو د دې څخه وروسته فاطمه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کي حاضره سوه او

فَقَالَ لَيْسَ لَكِ نَفَقَةٌ فَأَمَرَهَا أَنْ تَعْتَدَّ فِي بَيْتِ أُمِّ شَرِيكٍ ثُمَّ قَالَ تِلْكِ امْرَأَةٌ

واقعه یې ورته بیان کړه نبي کریم صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل: ستا نفقه په خاوند باندي واجب نه ده بیا نبي کریم صلی الله علیه وسلم و فاطمې رضی الله عنها ته وفرمایل چي ته د ام شریک په کور کي د عدت ورځي تیري کړه بیا نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: ام شریک یوه داسي ښځه ده چي د

يَغْشَاهَا أَصْحَابِي اعْتَدِّي عِنْدَ ابْنِ أُمِّ مَكْتُومٍ فَإِنَّهُ رَجُلٌ أَعْمَى تَضَعِينَ

هغې په کور کي زما اصحاب (د ام شریک خپلوان) ځي او راځي په دې وجه ته د ابن مکتوم کره د عدت ورځي تیري کړه هغه یو ړوند سړی دی هلته در سره د اغوستلو کالي هم واخله

ثِيَابَكِ فَإِذَا حَلَلْتِ فَآذِنِينِي قَالَتْ فَلَمَّا حَلَلْتُ ذَكَرْتُ لَهُ أَنَّ مُعَاوِيَةَ بْنَ أَبِي

چي کله حلاله سې (د عدت ورځي دي ختمي سي) نو ما خبر کړه د فاطمې رض بیان دی کله چي زما د عدت ورځي تیري سوې نو ما رسول الله صلی الله علیه وسلم ته عرض وکړ معاویه بن ابو سفیان

سُفْيَانَ وَأَبَا جَهْمٍ خَطَبَانِي فَقَالَ أَمَّا أَبُو جَهْمٍ فَلَا يَضَعُ عَصَاهُ عَنْ عَاتِقِهِ

او ابو جهم ما ته د نكاح پيغام را وليږی نبي كريم ﷺ وفرمايل: ابو جهم خو يو داسي سړی دی چي هيڅ وخت يې لرګی د اوږې څخه نه كښته كيږي (يعني ډېر سخت مزاجه سړی دی)

وَأَمَّا مُعَاوِيَةُ فَصُعْلُوكٌ لَا مَالَ لَهُ انْكِحِي أُسَامَةَ بْنَ زَيْدٍ فَكَرِهْتُهُ ثُمَّ قَالَ

او معاويه يو مفلس سړی دی د هغه سره هيڅ نسته ته د اسامه بن زيد رضي الله عنه سره نكاح وكړه د فاطمې رض بيان دی ما د رسول الله ﷺ دغه مشوره خوښه نكړه د اسامه سره مي د نكاح تجويز

انْكِحِي أُسَامَةَ فَنَكَحْتُهُ فَجَعَلَ اللهُ فِيهِ خَيْرًا وَاغْتَبَطْتُ و في رواية عنها قال

زړه ته نه تلئ نبي كريم ﷺ راته وفرمايل: ته د اسامه سره نكاح وكړه نو ما د اسامه سره نكاح وكړه الله ﷻ زما په دې نكاح كي بركت واچوی او وروسته په ما باندي ښځو غبطه كول، په يو

فاما ابو جهم فرجل ضراب للنساء رواه مسلم و في رواية عنها ان زوجها طلقها ثلاثا فاتت النبي ﷺ فقال لا نَفَقَةَ لَكِ إِلَّا أَنْ تَكُونِي حَامِلًا.

روايت كي د فاطمې رضي الله عنها څخه دا الفاظ منقول دی د فاطمې رضي الله عنها خاوند درې طلاقه وركړه نو هغه د نبي كريم ﷺ په خدمت كي حاضره سوه نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل: (د خاوند د لوري څخه) ستا لپاره نفقه نسته البته كه حمل داره يې نو ستا نفقه پر خاوند باندي واجب ده. مسلم

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\ ۱۱۱۴، رقم: ۳۶- ۱۴۸۰.

**تخريج**: فسخطته: اى ما رضيت به.

**تشريح**: هلته جامې در سره واخله: ددې مطلب دادی چي ابن ام مكتوم رضي الله عنه ړوند دی ځكه نو هلته به تا ته د پردې ضرورت نه وي او كه دا ترجمه وكړل سي چي هلته ته خپل جامې اېږده نو بيا به مطلب دا وي چي هلته تر څو پوري ته په عده كي يې د زينت او ښكلا جامې مه اغونده، يا ددې جملې په ذريعه په كنايه سره دا اظهار كول مقصد دي چي د عدې په ورځو كي د كور څخه وتل جائز نه دي.

امام نووي رحمه الله عليه وايي چي ددغه حديث څخه ځينو علماؤ دا استدلال كړی دی چي د ښځي پردي سړي ته كتل جائز دي په شرط ددې چي هغه پردی سړی هغې ته ونه ګوري مګر دا

استدلال كمزوري او ضعيف دی ، صحيح خبره هغه ده كوم چې د اكثرو علماؤ قول دی چې ځرنګه د پردي سړي ښځې ته كتل حرام دي همدا رنګه د پردۍ ښځې پردي سړي ته كتل هم حرام دي ځكه ځرنګه چې الله تعالى د نارينوو په باره كې دا حكم كړی دی چې :

قُل لِّلْمُؤْمِنِينَ يَغُضُّوا مِنْ أَبْصَارِهِمْ ...الاية

ژباړه : (اې محمد ! ﷺ) ته مسلمانو نارينوو ته ووايه چې خپل نظرونه كښته كړئ ...

همدارنګه الله تعالى د ښځو په باره كې هم دا حكم وركړی دی چې :

وَقُل لِّلْمُؤْمِنَاتِ يَغْضُضْنَ مِنْ أَبْصَارِهِنَّ ... الاية

ژباړه : او مسلمانو ښځو ته هم ووايه چې هغوی خپل نظرونه كښته وساتي ...

په دې باره كې د حضرت ابن ام مكتوم رضي الله عنه په اړه د ام المؤمنين بي بي ام سلمه رضي الله عنها هغه روايت هم يو لوی دليل دی چې په هغه كې بي بي سلمه رضي الله عنها بيان كړی دی چې يو وار هغه او بي بي ميمونه رضي الله عنهما د رسول الله ﷺ سره وې چې ناڅاپه حضرت ابن ام مكتوم رضي الله عنه راغلی نو رسول الله ﷺ هغه دواړو ته وفرمايل چې پرده وكړئ ، بي بي ام سلمه رضي الله عنها وويل : دی خو ړوند دی موږ نه ويني چې موږ د هغه څخه پرده وكړو ، رسول الله ﷺ وفرمايل : (افعميا وان انتما الستما تبصرانه) ايا تاسو هم ړندې ياست ايا تاسو هغه نه وينئ .

د بي بي فاطمې رضي الله عنها د دغه روايت څخه په هيڅ ډول دا نه ثابتيږي چې رسول الله ﷺ ابن ام مكتوم رضي الله عنه ته كتل د بي بي فاطمې لپاره جائز ګرځولي دي ، بلكه د رسول الله ﷺ مقصد يوازې دا ظاهرول وو چې ته به ابن ام مكتوم رضي الله عنه سره په امن او حفاظت سره اوسيږې ځكه چې د هغه سره به تا هيڅوک نه ويني ، او كوم چې د بي بي فاطمې رضي الله عنها سوال دی نو هغې ته خپله د كتاب الله دا حكم معلوم وو چې پردي سړي ته كتل منع دي ځكه هغې ته دا ممكن نه وه چې هغه دې ابن ام مكتوم ته وګوري .

په هر حال د بي بي فاطمې رضي الله عنها د دغه روايت څخه ځيني علماء د ښځو لپاره د پردي سړي ته كتلو چې كوم جواز ثابت كړی دی د هغه په باره كې د اكثرو جمهورو علماؤ له خوا دا جواب وركول كيږي .

اوس پاته سوه د امام اعظم ابو حنيفة رحمه الله د فقهي مذهب خبره، نو دا په ذهن كې راوستل پكار دي چې د هغه په نزد پردي سړي ته د هغه د نامه څخه لاندې تر زنګنو پورې برخې څخه پرته كتل د ښځې لپاره جائز دي په شرط ددې چې هغه د جنسي ترغيب څخه محفوظ او خوندي

وي که چيري د جنسي ترغيب ځخه مامون نه وي نو بيا د پردي سړي پوره بدن ته کتل د هغې لپاره حرام دي .

ابو جهم رضي الله عنه خپل کوتک د اوږو ځخه نه کښته کوي : ددې ځخه د ابو جهم رضي الله عنه سخت مزاجۍ ته اشاره ده چي ابو جهم رضي الله عنه ډېر سخت سړی دی هغه ښځي وهي او د هغه سره ستا گزاره مشکل ده نو ددې ځخه معلومه سوه چي يو چا ته د يو ښځي يا يو سړي يو عيب معلوم وي نو د کوزدې پر وخت د هغه اظهار کول جائز دي چي د واده ځخه وروسته هغه دواړه په يو تکليف او پريشانۍ کي اخته نه سي .

بي بي فاطمې رضي الله عنها د حضرت اسامه رضي الله عنه انتخاب ځکه ناخوښه کړی چي اول خو هغه د رسول الله ﷺ د غلام زوی وو ، دوهم د هغه رنګ تور وو ، حال دا چي فاطمه رضي الله عنها قريشي وه او ښکلې وه مګر حضرت اسامه رضي الله عنه د رسول الله ﷺ ډېر محبوب وو ، د رسول الله ﷺ په دربار کي يو خاص فضيلت او تقرب ورته حاصل وو ځکه رسول الله ﷺ دوهم وار د هغه سفارش وکړ نو ددې ځخه وروسته د فاطمې انکار کول مناسب ونه ګڼل او د رسول الله ﷺ د حکم سره سم ئې حضرت اسامه رضي الله عنه سره نکاح وکړه او د هغه نتيجه دا سوه چي الله تعالی د هغوی په نکاح کي خير او برکت ورکړ او هغه ته د اسامه رضي الله عنه په زوجيت کي ارام او سکون په برخه سو .

په دې باره کي د علماؤ اختلافي قولونه دي چي کله ښځي ته طلاق بائن ورکړل سي او هغه حامله نه وي نو د عدې پوره کولو پوري د هغې نفقه او د اوسيدو ځای د خاوند پر ذمه دی که يا ؟ د امام اعظم ابو حنيفة رحمه الله او نورو علماؤ په نزد پر خاوند باندي د هغې نفقه او د اوسيدو ځای واجب دی ، سکنی (د اوسېدو ځای) په دغه آيت کريمه سره ثابت دی :

أَسْكِنُوهُنَّ مِنْ حَيْثُ سَكَنتُم مِّن وُجْدِكُمْ

ژباړه : تاسو هغه (طلاق سوي ښځي) ته خپل وس سره سم د اوسېدو ځای ورکړئ چيري چي تاسو اوسيږئ .

او د نفقې په اعتبار واجب دی چي هغه ښځه د هغه خاوند په وجه د ټولو پابنديو سره په عده کي ناسته وي، حضرت عمر فاروق رضي الله عنه ددې قائل وو بلکه هغه ددغه حديث په باره کي فرمايل چي موږ د يوې ښځي (فاطمه بنت قيس) په وينا چي رسول الله ﷺ ما ته وفرمايل چي ستا نفقه او د اوسيدو ځای ستا د خاوند پر ذمه نه سته ، موږ د الله جل جلاله کتاب او د رسول الله ﷺ سنت نه سو پرېښودلای چي د هغه ځخه نفقه او سکنی واجب کېدل ثابت دي کېدای سي چي

فاطمې ته اشتباه سوې وي يا هغې ته د رسول الله ﷺ اصل ارشاد ياد نه وي ، ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي د ښځي نفقه او سکنی د خاوند پر ذمه ده مګر ابن مالک رحمة الله عليه وايي چي دا واقعه د صحابه کرامو په وړاندې پېښه سوې وه ( او په هغه صحابه کرامو کي هيچا د فاطمې د قول ترديد نه دی کړی ځکه دا په منزله د اجماع سو ) .

امام احمد رحمة الله عليه وايي چي د هغه ښځي لپاره نه نفقه واجب ده او نه سکنی، او هغه ددغه حديث څخه استدلال کړی دی چي امام مالک، امام شافعي او نور علماء وايي چي دغه آيت (اسکنوهن ..الخ) په موجب د هغه ښځي لپاره سکنی واجب ده او نفقه واجب نه ده مګر که چيري ښځي ته د حمل په حالت کي طلاق ورکړل سوی وي نو ددغه حديث سره سم د هغې لپاره نفقه واجب ده .

﴿۳۱۸۳﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ إِنَّ فَاطِمَةَ كَانَتْ فِي مَكَانٍ وَحْشٍ فَخِيفَ عَلَى

د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه روايت دی چي فاطمه بنت قيس چي په کوم کور کي اوسېده هغه خرابه (زړه آبادي) وه او هلته هر وخت خطره وه

نَاحِيَتِهَا فَلِذَلِكَ رخص لَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تعني في النقلة و في

په دې وجه رسول الله ﷺ و هغې ته اجازت ورکړ چي هغه د عدت په ورځو کي د هغه ځايه څخه

رواية قالت ما لفاطمة الا نتقي الله تعني في قولها لا سكنى و لا نفقة .رواه البخاري

ولاړه سي او په يو بل روايت کي دا الفاظ دي چي بي بي عائشې رض و فاطمې رض ته وويل : چي ته د الله جل جلاله څخه نه بېرېږې چي دا وايي چي کومي ښځي ته درې طلاقه ورکړل سي د هغې لپاره نه خو د اوسېدو لپاره کور سته او نه نفقه (يعني ته دا قول و نبي کريم ﷺ ته منسوبوې د خدايه څخه نه بېرېږې چي دا نبي کريم ﷺ داسي ويلي دي). (بخاري

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\۴۷۷، رقم: ۵۳۲۴

**تشريح**: د حديث د اولو الفاظو مطلب دادی چي فاطمه بنت قيس رضي الله عنها په کوم ځای کي اوسېدل هغه په يو وران ځای کي وو چي هلته هر وخت د غلو بېره وه ځکه رسول الله ﷺ هغې ته د هغه سرای څخه د ابن ام مکتوم رضي الله عنه سرای ته د ورتلو ويلي وه ، ددغه بيان څخه د بي بي عائشې رضي الله عنها مقصد دا اګاه کول وو چي فاطمه د خپل عدې په ورځو کي د خپل خاوند د کور

په پرېښودو سره د بل په کور کي ناسته وي او څوک دا ونه وايي چي د درو طلاقو ښځي لپاره سکنی نه سته . او هغه چي چيري غواړي په عده کي دي کښيني بلکه فاطمه د خپل خاوند د سراى په پرېښودو سره د يو بل سړي په سرا يکی د عدې تېرولو سبب دغه دی کوم چي بيان سو د دوهم روايت د الفاظو مطلب دادی چي فاطمه بنت قيس د رسول الله ﷺ څخه دا نقل کړي دي چي کومي ښځي ته طلاق بائن ورکړل سوی وي د هغې لپاره نه نفقه سته او نه سکنی (د اوسېدو ځای)، بي بي عائشې رضي الله عنها د هغې ددغه خبري رد وکړ او وه يې ويل چي فاطمه دا قول رسول الله ﷺ ته په منسوب کولو سره د الله ﷻ څخه نه بيرېږي رسول الله ﷺ به هيڅکله داسي نه وي ويلي بلکه فاطمې ته به غلط فهمي سوې وي .

په دغه مسئله کي د بي بي عائشې رضي الله عنها هم هغه مذهب دی کوم چي د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه دی او دا حديث د امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه د مذهب تاکيد کونکی هم دی چي طلاق بائن والا ښځي لپاره سکنی هم سته او نفقه هم سته .

﴿٣١٨٤﴾: وَعَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ قَالَ اِنَّمَا نُقِلَتْ فَاطِمَةُ لِطُوْلِ لِسَانِهَا عَلٰى اَحْمَائِهَا . رواه في شرح السنة .

د حضرت سعيد بن مسيب رضي الله عنه څخه روايت دی چي فاطمه بن قيس رضي الله عنها د عدت په ورځو کي په دې وجه د خاوند د کور څخه وايستل سوه چي د خاوند د قريبانو سره به يې ژبه چلول .(شرح السنة)

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ٩\ ٢٩٤، رقم: ٢٣٨٤

**تشريح**: د عدې په وخت کي د خپل خاوند د کور څخه د فاطمې د تللو يو سبب خو هغه وو کوم چي په مخکي حديث کي تېر سوی دی يعني د هغې کور په يو وران ځای کي وو او دوهم سبب دادی کوم چي په دغه حديث کي ذکر سوی دی .

## د عدت په زمانه کي د ضرورت لپاره د کور څخه وتل جائز دي که يا؟

﴿٣١٨٥﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ طُلِّقَتْ خَالَتِي ثلاثا فَأَرَادَتْ أَنْ تَجُدَّ نَخْلَهَا

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي زما خاله ته درې طلاقه ورکول سوه هغې اراده وکړه

فَزَجَرَهَا رَجُلٌ أَنْ تَخْرُجَ فَأَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ بَلَى فَجُدِّي

نَخْلَكِ فَإِنَّه عَسَى أَنْ تَصَدَّقِي أَوْ تَفْعَلِي مَعْرُوفًا .رواه مسلم .

چي د كوره ځخه دباندي ولاړه سي او خپل خرماوي ووهي يو سړي د هغې د وتلو مخه و نيول او د رسول الله ﷺ په خدمت كي يې حاضره كړه او واقعه يې ورته بيان كړه نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل : ولاړه سه او خپلي د خرماؤ درختي ووهه شايد ته د دې خرماؤ ځخه صدقه وكړې يا د دې په ذريعه يو بل احسان وكړې .(مسلم) .

**تخريج**: مسلم في الصحيح ٢\١١٢١، رقم: ٥٥- ١٤٨٣

**د لغاتو حل**: تَجُد : اى تقطع تمر نخلها.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب دا وو كه چيري هغه خرماوي دومره وي چي پر هغه زكوة واجيبږي نو ته به د هغه زكوة ادا كوې او كه چيري د نصاب په اندازه نه وي نو ته به د هغه په ذريعه احسان او نيک چلن وكړې په دې توگه چي خپلو همسايگانو او مسكينانو ته به هغه د صدقې په توگه وركوې يا خلكو ته به يې د تحفې په توگه استوې ، ددې ځخه معلومه سوه كه چيري هغې صدقه نه كولاى نو د هغې لپاره بهٔ د كور ځخه وتل جائز نه واى .

امام نووي رحمة الله عليه وايي چي په دغه حديث كي ددې خبري دليل دى چي كومه ښځه د طلاق بائن په صورت كي ناسته وي نو د هغې ته د خپل يو ضرورت په وجه د كور ځخه وتل جائز دي ، په دغه مسئله كي چي د حنفيه كوم مذهب دى هغه به د بي بي ام عطيه په روايت كي راسي .

## د حاملي ښځي عدت

﴿٣١٨٦﴾: وَعَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ أَنَّ سُبَيْعَةَ الْأَسْلَمِيَّةَ نُفِسَتْ بَعْدَ وَفَاةِ

د حضرت مسور بن مخرمه رضي الله عنه ځخه روايت دى چي سبيعه اسلميه د خپل خاوند تر مرگ وروسته

زَوْجِهَا بِلَيَالٍ فَجَاءَتْ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَأْذَنَتْهُ أَنْ تَنْكِحَ فَأَذِنَ لَهَا فَنَكَحَتْ . رواه البخاري.

كوچنى راوړ بيا هغه د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضره سوه او د نكاح كولو اجازت يې وغوښت نبي كريم ﷺ ورته اجازه وركړه او هغې نكاح وكړه .(بخاري).

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ٨\٦٥٣، رقم: ٤٩٠٩،

**تشريح**: سبيعه اسلميه د خپل خاوند د وفات پر وخت حامله وه د خاوند دوفات ځخه ثو

وروستي د هغې کو چنی پیدا سو نو رسول الله ﷺ هغې ته د دوهمي نکاح کولو اجازه ورکړه. علماء کرام وايي که چيري د خاوند د وفات یا د طلاق څخه وروسته د ښځي اولاد وسي نو هغه د عدې څخه وځي او د هغې لپاره دوهمه نکاح کول جائز دي که څه هم ولادت د طلاق یا وفات څخه لږ وروسته وي.

## د عدت په زمانه کي د سترګو تورولو منع

﴿٣١٨٧﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ جَاءَتِ امْرَأَةٌ إِلَى النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د بي بي ام سلمه ﷞ څخه روایت دی چي یوه ښځه د نبي کریم ﷺ په خدمت کي حاضره سوه او

فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ ابْنَتِي تُوُفِّيَ عَنْهَا زَوْجُهَا وَقَدِ اشْتَكَتْ عَيْنَهَا

عرض يې وکړ یا رسول الله! زما د لور خاوند مړ سو او د هغې سترګي خوږيږي ایا زه د هغې

أَفَتَكْحُلُهَا فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا مَرَّتَيْنِ أَوْ ثَلَاثًا كُلَّ ذَلِكَ

سترګي توري کړم؟ نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل: یا! څو واره هغې ښځي داسي پوښتنه کوله

يَقُولُ لَا ثُمَّ قَالَ إِنَّمَا هِيَ أَرْبَعَةُ أَشْهُرٍ وَعَشْرٌ وَقَدْ كَانَتْ إِحْدَاكُنَّ فِي الْجَاهِلِيَّةِ تَرْمِي بِالْبَعْرَةِ عَلَى رَأْسِ الْحَوْلِ. متفق عليه

او نبي کریم ﷺ هر وار د یا جواب ورکوی بیا نبي کریم ﷺ وفرمایل: د عدت تېرول څلور میاشتي او لس ورځي دی او د جاهلت په زمانه کي به یو کال په عدت کي اوسېدلاست او پچه به مو ویشتل په تېرېدو د کال. بخاري او مسلم.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ٩\ ٤٨٤، رقم: ٥٣٣٦، ومسلم ٢\ ١١٢٤، رقم: ١٤٨٨

**تشريح**: دا حدیث په ظاهره د امام احمد رحمة الله عليه دلیل دی د هغه په نزد هغه ښځي ته رانجه په سترګو کي اچول جائز نه دي د کومي چي خاوند مړ سوی وي او هغه په عده کي ناسته وي که څه هم د سترګو خوږېدو په وجه هغې ته د رانجو استعمالولو ضرورت وي او که د ښکلا او زينت لپاره وي، د امام ابوحنيفة او امام مالک رحمة الله عليهما په نزد د مجبورۍ په حالت کي رانجه استعمالول جائز دي او امام شافعي رحمة الله عليه هم د سترګو خوږېدو په صورت کي اجازه ورکوي مګر په دې شرط چي د شپې يې ولګوي او د ورځي يې پريولي.

ددغه حديث په باره کي حنفي علماء وايي که چيري هغه ښځي د زينت او ښکلا لپاره رانجه لګولي واى مګر بهانه يې کړې وه چي سترګي يې خوږ دي او رسول الله ﷺ ته به ددې خبري علم وو ځکه نو رسول الله ﷺ د رانجو لګولو اجازه نه ورکړه.

د حديث د آخري جملې وضاحت دادى چي د جاهليت په زمانه کي دا رواج وو چي د کومې ښځي خاوند به مړ سو نو هغه به يو کوچنى او تاريکه خونه کي کښېنستل او ډيري خرابي جامې به يې اغوستلې ، د زينت او ښکلا هيڅ شی به يې نه استعمالوی خوشبويي به يې نه لګول غرض دا چي تر يوه کاله به په دغه حالت کي اوسېدل بيا کله چي به کال ختم سو په هغه ورځ به هغې ته خر ، پسه يا يو بل حيوان راوستل سو چي په هغه سره به يې خپل شرمګاه ومږل او د هغه څخه وروسته به د هغه خوني څخه راوتل بيا هغې ته په لاس کي يو څو پچي ورکول کېدی چي هغې به غورځولې او په هغو سره به يې د عدې څخه راووتل رسول الله ﷺ دغه رواج ته اشاره وفرمايل چي د پخوا په نسبت اوس د عدې وخت ډېر لږ دی يعني څلور مياشتي او لس ورځي او په دې کي خرابي او پريشاني هم نه سته نو بيا دومره اضطراب ولي وي.

## د عدت په زمانه کي دوېر کولو حکم

﴿۳۱۸۸﴾: وَعَنْ أُمِّ حَبِيْبَةَ وَزَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ عَنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د بي بي ام حبيبه رضي الله عنها او زينب بنت جحش رض څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هيڅ

وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَحِلُّ لِامْرَأَةٍ تُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ تُحِدَّ عَلَى مَيِّتٍ فَوْقَ ثَلَاثٍ إِلَّا عَلَى زَوْجٍ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا. متفق عليه

يو مسلمانه ښځه چي پر الله جل جلاله او په آخرت باندي ايمان لري په يو مړي باندي د درو ورځو څخه زيات وير نه کوي ماسوا د خاوند د وير څخه چي هغه تر څلورو مياشتو او لسو ورځو پوري کولای سي.

**تخريج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري): ۹\ ۴۸۴، رقم: ۵۳۳۴، ومسلم ۲\ ۱۱۲۳، رقم: ۵۸-۱۴۸۶

**تشريح**: د وير کولو مطلب دادى چي ښکلا او سنګار کول پرېږدي او د رانجو ، خوشبويي او داسي نورو شيانو څخه دي ځان وساتي، دغه ماتم پر يو مړي باندي تر درو ورځو زيات جائز نه دی مګر د خپل خاوند پر وفات څلور مياشتي او لس ورځي يعني د عدې تر پوره کېدو پوري ماتم کول واجب دی.

پاته سوه دا خبره چي ځلور میاشتي او لس ورځي یعني د عدې د وخت شروع کله ده ؟نو د جمهورو علماؤ په نزد ددغه وخت شروع د خاوند دمرګ ځخه وروسته وي مګر حضرت علي رضی اللہ عنہ ددې قائل دی چي د عدې شروع د هغه وخت ځخه وي کله چي ښځه د خاوند د مرګ ځخه خبره سي ، که چیري د یو ښځي خاوند په سفر یا بل ځای کي وفات سوی وي او هغه ښځه خبره نه وي تر دې چي ځلور میاشتي او لس ورځي تیري سوي وي نو د جمهورو علماؤ په نزد عده پوره سوه حال دا چي د حضرت علي رضی اللہ عنہ د قول مطابق د هغې عده نه پوره کیږي بلکه د هغې د خبرېدو د وخت ځخه ځلور میاشتي او لس ورځي به په عده کي ناسته وي .

﴿۳۱۸۹﴾ : وَعَنْ أُمِّ عَطِيَّةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تُحِدُّ امْرَأَةٌ

د بي بي ام عطیه رضی اللہ عنہا ځخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: هیڅ ښځه دي پر مړي باندي

عَلَى مَيِّتٍ فَوْقَ ثَلَاثٍ إِلَّا عَلَى زَوْجٍ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا وَلَا تَلْبَسُ ثَوْبًا مَصْبُوغًا

تر درو ورځو زیات ویر نه کوي خو د خاوند د ویر ځخه ما سوا چي هغه تر ځلورو میاشتو او لسو ورځو پوري کولای سي په دې ورځو کي دي نه رنګینه جامه اغوندي

إِلَّا ثَوْبَ عَصْبٍ وَلَا تَكْتَحِلُ وَلَا تَمَسُّ طِيبًا إِلَّا إِذَا طَهُرَتْ نُبْذَةً مِنْ قُسْطٍ أَوْ أَظْفَارٍ متفق علیه و زاد ابوداؤد وَلَا تَخْتَضِبُ .

مګر هغه ځادر چي د هغې په سوت رنګ سوی جوړ سوی وي هغه استعمالولای سي او نه دي په دې ورځو کي خوشبوئي او نه رانجه لګوي خو کله چي د حیض ځخه پاکه سي نو هغه وخت د قسط او اظفار معمولي خوشبوئي لګولای سي. (بخاري او مسلم) او د ابو داؤد په یوه روایت کي دا الفاظ دي په دغه ورځو کي دي ورېښتان هم په نکریځو نه سره کوي .

**تخریج**: البخاري في الصحيح (فتح الباري)؛ ۹\ ۴۹۲، رقم: ۵۳۴۲، ومسلم ۲\ ۱۱۲۷، رقم: ٦٦- ۹۳۸، وابوداود في السنن ۲\ ۷۲۵، رقم: ۲۳۰۲

**د لغاتو حل**: عصب: نوع من البرود . قُسط، اظفار: نوع من الطیب (یو دول خوشبویي)

**تشریح**: د رنګینو جامو ځخه مراد هغه جامه ده چي د کسم، زعفران او داسي نورو شیانو په رنګ سره رنګ سوې وي او په عامه توګه د زینت او ښکلا په توګه اغوستل کیږي ، په کافي نامي کتاب کي لیکلي دي که چیري ښځه د رنګینو جامو ځخه پرته نوري جامې نه لري نو هغه

هم اغوستلای سي ځکه چي د هغې د ستر پټول ضروري دي مګر شرط دادی چي هغه رنګيني جامې د ښکلا او زينت لپاره استعمال نه سي.

عصب په هغه زمانه کي يو خاص ډول ځادر ته ويل کېدل چي داسي به جوړ سوی وو چي مخکي د سوت په جمع کولو سره به يو ځای تړل کېدی بيا به يې هغه په کسم کي رنګ کړی او د هغه څخه وروسته به يې اوبدی نو هغه به سور ځادر سو، چي په هغه کي به سپيني ليکي هم وې ځکه چي د سوت په تړلو سره د رنګ کولو په وجه هغه برخه به سپينه پاته سوه کوم چي به تړل سوې وه.

ددې څخه هم معلومه سوه چي د عدې والا ښځي لپاره د رنګينو جامو اغوستلو منع د هغه جامو سره اړه ده چي د اوبدلو څخه وروسته رنګ سوي وي نو د هغه اغوستل هم صحيح دي.

علامه ابن همام حنفي رحمة الله عليه وايي چي زموږ د حنفي علماؤ په نزد د عدې والا ښځي لپاره عصب اغوستل هم صحيح نه دي د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد د عدې والا ښځي لپاره عصب اغوستل جائز دي که څه هم هغه غټ وي يا مهين وي حال دا چي امام مالک رحمة الله عليه د مهين عصب اغوستلو څخه منع کړې ده او د غټ عصب څخه منع نه کوي.

د رانجو استعمالولو په باره کي چي د امامانو کوم اختلافي قولونه دي هغه مخکي د بي بي ام سلمه د روايت په تشريح کي تېر سوی دي، علامه ابن همام رحمة الله عليه وايي چي د حنفي مذهب سره سم عدې والا ښځي ته د مجبوری په حالت کي رانجه استعمالول جائز دي او داغسي جائز نه دي.

قسط او اظفار: دا دواړه يو ډول خوشبويي ده، قسط عود ته وايي چي په عامه توګه سره ښځو او کوچنيانو ته دود کيږي، کرماني رحمة الله عليه وايي چي قسط عود هندي ته وايي.

اظفار: يو ډول عطر دي، دغه دواړه ډوله خوشبويي په هغه زمانه کي په عامه توګه عربو ښځو د حيض څخه د پاکېدو پر وخت د بدبويي ليري کولو لپاره په شرمګاه کي استعمالول، رسول الله صلى الله عليه وسلم عدې والا ښځي د خوشبويي د استعمال څخه منع کړي دي مګر حائضې ته د حيض څخه د پاکېدو په وخت کي د بدبويي ليري کولو لپاره ددغه دواړو خوشبويي د استعمالولو اجازه يې ورکړې ده.

دا حديث پر دې خبره دلالت کوي چي د کومي ښځي خاوند مړ سوی وي پر هغې باندي د عدې په وخت کي ماتم کول واجب دي پر دې باندي د ټولو علماؤ اجماع او اتفاق دی البته د ماتم په تفصيل کي اختلاف دی.

امام شافعي او جمهور علماء (رح) وايي چي د خاوند د وفات څخه وروسته پر هر عدې والا ښځي باندي ماتم کول واجب دي که څه هم هغه مدخول بها وي يا غير مدخول بها وي ، او که څه هم لويه وي يا کوچنۍ وي ، پيغله وي يا کونډه وي ازاده وي يا مينزه ، مسلمانه وي يا کافره .

امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه وايي چي پر اووه ډوله ښځو باندي ماتم واجب نه دی چي د هغه تفصيل د درمختار مطابق دادی : ۱: کافره، ۲: ليونۍ، ۳: صغيره، ۴: معتده عتق يعني هغه ام ولد چي د خپل بادار له خوا د ازاد کېدو يا د خپل بادار د مړ کېدو پر وخت په عده کي ناسته وي ۵: هغه ښځه چي د نکاح فاسد په وجه په عده کي ناسته وي ، ۶: هغه ښځه چي د وطي بشبه په عده کي ناسته وي ، يعني هغه ښځه چي يو پردي سړي په غلط فهمۍ کي جماع ورسره کړې وي او د هغه په وجه په عده کي ناسته وي ، ۷: هغه ښځه چي د طلاق رجعي په عده کي ناسته وي .

لکه څرنګه چي په حديث کي فرمايل سوي دي چي د خپل خاوند څخه علاوه د بل چا پر مرګ باندي ښځي ته تر درو ورځو زيات ماتم کول جائز نه دی او تر دور ورځو پوري هم يوازي مباح دی واجب نه دی که په دغه درو ورځو کي د هغې خاوند هغه د ماتم کولو څخه منع کړي نو هغه ته دا حق دی ځکه چي د ښځي د سنګار او ښکلا تعلق د خاوند د حق سره دی که په دغه درو ورځو کي هم د خاوند دا خواهش وي چي ښځه دي ماتم پرېږدي او ښکلا او سنګار دي وکړي او ښځه د خاوند خبره ونه مني نو ددغه ښځي وهل د خاوند لپاره جائز دي ځکه چي په ماتم کولو کي د خاوند حق فوت کيږي .

## د ماتم (غم کولو) احکام او مسائل

کومي ښځي ته چي طلاق رجعي ورکړل سوی وي د هغې عده يوازي دومره ده چي هغه تر ټاکلي وخت پوري د کور څخه د باندي ونه وځي او نه د بل چا سره نکاح وکړي ، د هغې لپاره سنګار کول صحيح دی او کومي ښځي ته چي مکلفه او مسلمانه وي درې طلاقه ورکړل سوي وي يا يو طلاق بائن يا په يو بله طريقه نکاح يې ماته سوې وي يا خاوند يې مړ سوی وي نو په دغه ټولو صورتو کي د هغې لپاره دا حکم دی چي تر څو پوري په عده کي وي تر هغه دي د کور څخه نه وځي نه دي خپله بله نکاح کوي او نه دي سنګار او ښکلا کوي دا ټولي خبري پر هغې حرامي دي ، دغه سنګار نه کولو او خيرني اوسيدو ته ماتم ويل کيږي .

تر څو چي عده ختم نه سي تر هغه وخته خوشبويي لګول ، زيورات استعمالول، رانجه لګول، خوله سره کول، په سر کي تېل اچول، سر ږمونځ کول، نکريزي لګول، ښه جامې

اغوستل، ریښمیني او رنګ داره جامې اغوستل دا ټول منع دي ، مګر د مجبورۍ په حالت کي که په دغه شیانو کي یو شی اختیار کړل سي نو څه پروا نه سته مثلا په سر کي د درد کېدو په وجه د تېلو استعمالولو ضرورت وي نو بېله خوشبویي تېل استعمالول صحیح دي همدارنګه د دوائي په توګه رانجه استعمالول هم صحیح دي .

د کومي ښځي چي نکاح نه وي سوې بلکه بې قاعدې نکاح سوې وي او هغه فسخ سوه یا خاوند یې مړ سو نو پر داسي ښځي باندي ماتم کول واجب نه دي ، همدارنګه کومه ښځه چي د عتق (یعني ازادۍ) په عده کي وي (لکه ام ولد چي بادار یې ازاده کړي او هغه په عدې کي ناسته وي) نو پر هغې باندي ماتم کول واجب نه دي .

کومه ښځه چي په عدې کي ناسته وي هغې ته د نکاح پیغام استول جائز نه دي مګر د نکاح کنایه یعني داسي ویل چي زه د هغه ښځي سره د نکاح خواهش لرم یا د هغې سره د نکاح کولو اراده لرم دا جائز دي مګر دا هم په هغه صورت کي جائز دي کله چي هغه ښځه د وفات په عده کي ناسته وي که چیري د طلاق په عده ناسته وي نو دا هم جائز نه دي .

کومه ښځه چي د طلاق په عده کي ناسته کي وي هغې ته په هیڅ وخت کي هم د کور څخه د باندي وتل جائز نه دي مګر کومه ښځه چي د وفات په عده کي ناسته وي هغې ته د ورځي وتل جائز دي او د شپې تر لږ وخت پوري وتلای سي مګر شپه به د خپل کور څخه پرته په بل ځای کي نه تېروي ، مینزه د خپل بادار د کار لپاره دباندي وتلای سي .

د عدې والا ښځي ته د خپل عدې ورځي په هغه سرای کي تېرول پکار دي چي په هغه کي د هغې طلاق یا د خاوند مرګ په وخت کي اوسېږي مګر که چیري هغه د سرای څخه په زور وایستل سي یا په هغه سرای کي د خپل مال او سامان د ضائع کېدو بېره وي یا د هغه سرای د نړېدو بېره وي یا د هغه سرای د کرایه پر ادا کولو باندي قادره نه وي نو په دغه صورتو کي په بل ځای کي عده تېرول جائز دي .

همدارنګه په دې کي پروا نه سته چي ښځه د خاوند په یو سرای کي اوسیږي که څه هم هغه د طلاق بائن په عده کي ناسته وي په شرط ددې چي د دواړو په مینځ کي پرده حائله وي مګر که چیري خاوند فاسق او د باور وړ نه وي یا ځای تنګ وي نو ښځه دي د هغه سرای څخه نقل سي که څه هم د خاوند نقل کېدل غوره دي ، او که چیري د ښځي او خاوند په یوه ځای کي د اوسیدو په صورت کي دواړه خاوند او ښځه د ځان سره یو بله داسي باوري ښځه وساتي چي د دواړو پر جلا ساتلو باندي قادره وي نو دا به ډېره ښه وي .

که یو ځوک خپل ښځه د ځان سره په سفر کي بوځي او بیاد سفر په دوران کي هغې ته طلاق بائن یا درې طلاقه ورکړي، یا سړی مړ سي او د ښځي ښار یعني د هغې د وطن د هغه ځای ځخه چیري طلاق یا وفات واقع سوی وي د شرعي سفر (یعني د درو ورځو د سفر) ځخه پر کم مسافت باندي واقع وي نو هغه دي خپل ښار ته بېرته راسي او که چیري د هغه ځای ځخه چیري طلاق یا وفات واقع سوی وي د هغه ښار د شرعي سفر په اندازه یا تر دې زیات فاصله وي او هغه منزل مقصود د هغه مسافت ځخه پر کمه فاصله وي نو خپل ښار ته د بیرته راتلو پر ځای منزل مقصود ته دي ولاړه سي او په دغه دواړو صورتو کي که د هغې ولي ورسره وي یا نه وي مگر غوره داده چي هغه ښځه خپل ښار ته بېرته راسي چي د خاوند په کور کي عده تېره کړي او که چیري هغه ښځه د طلاق یا وفات په وخت کي په یو ښار کي وي نو هلته د عدې تېرولو ځخه پرته دي نه وځي او که چیري ووځي نو د یو محرم کېدل ورسره ضروري دي مگر صاحبین وايي که چیري د هغې یو محرم ورسره وي نو بیا د عدې ځخه مخکي هم د هغه ښار ځخه وتلای سي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### په عدت کي د یوه ځای ځخه بل ځای ته نقل کېدل جائز نه دي

﴿۳۱۹۰﴾: عَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ كَعْبٍ أَنَّ الْفُرَيْعَةَ بِنْتَ مَالِكِ بْنِ سِنَانٍ وَهِيَ أُخْتُ

د بي بي زینب بنت کعب رضی الله عنها ځخه روایت دی چي ماته فریعه بنت مالک بن سنان چي د

أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ أَخْبَرَتْهَا أَنَّهَا جَاءَتْ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

ابو سعید خدري رضی الله عنه خورده خبر راکړی دی چي هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کي د دې خبري

تَسْأَلُهُ أَنْ تَرْجِعَ إِلَى أَهْلِهَا فِي بَنِي خُدْرَةَ فَإِنَّ زَوْجَهَا خَرَجَ فِي طَلَبِ أَعْبُدٍ لَهُ

د پوښتني لپاره حاضره سوه چي د هغې خاوند د تښتېدلو غلامانو په لټه پسي وتلی وو

أَبَقُوا فَقَتَلُوهُ قَالَتْ فَسَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ أَرْجِعَ إِلَى

نو غلامانو هغه وواژه اوس هغې ته د خپل خاوند په کور کي د عدت ورځي تېرول پکار دي مگر

أَهْلِي فَإِنَّ زَوْجِي لَمْ يَتْرُكْنِي فِي منزل يَمْلِكُهُ وَلَا نَفَقَةٍ فقَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ

هغه غواړي چي خپلې قبېلې حدره ته ولاړه سي او هلته د عدت ورځي تيري کړي د فريعې بنت مالک بيان دی هغه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضره سوه او عرض يې وکړ چي ايا هغه د عدت ورځي د خپلو قريبانو کره تيري کړي ؟ ځکه چي د هغې خاوند خپل ذاتي کور نه دی پرېښئ او نه ورسره نفقه سته رسول الله ﷺ ورته وفرمايل :

ﷺ نَعَمْ فَانْصَرَفْتُ حَتَّى إِذَا كُنْتُ فِي الْحُجْرَةِ أو في المسجد دعاني فقال

هو ! (ته د خپل کور والاؤ کره تللای سې) فريعه وايي زه و خپل کور ته ولاړم کوم وخت چي زه صحن يا مسجد نبوي ته ورسېدم نو نبي کريم ﷺ زه واپس راوغوښتم او را ته يې وفرمايل: ته

امْكُثِي فِي بَيْتِكِ حَتَّى يَبْلُغَ الْكِتَابُ أَجَلَهُ قَالَتْ فَاعْتَدَدْتُ فِيهِ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا . رواه مالك و الترمذي وابوداؤد والنسائي وابن ماجة والدارمي .

خپل و هغه کور ته ولاړه سه کوم چي ستا د خاوند څخه پاته سوی دی . تر څو پوري چي ستا عده پوره کيږي فريعه وايي زه د څلورو مياشتو او لسو ورځو پوري په هغه ځای کي پاته سوم. (مالک ترمذي ابوداؤد نسائي ابن ماجه دارمي) .

**تخريج**: مالک في الموطا ٢\ ٥٩١، رقم: ٨٧، وابوداود في السنن ٢\ ٧٢٣، رقم: ٢٣٠٠، والترمذي في السنن ٣\ ٥٠٨، رقم: ١٢٠٤، والنسائي ٦\ ٢٠٠، رقم: ٣٤٣٠، وابن ماجه في السنن ١\ ٦٥٤، رقم: ٢٠٣١، والدارمي ٢\ ٢٢١، رقم: ٢٢٨٧.

**تشريح**: د دغه حديث شريف څخه معلومه سوه چي عدې والا ښځي ته بېله ضرورته د يوه ځای څخه بل ځای ته تلل صحيح نه دي، په شرح السنه کي ليکلي دي چي په دې باره کي د علماؤ اختلاف دی چي کومه ښځه د خاوند د مړ کېدو په وجه په عده کي ناسته وي د هغې لپاره سکنی (يعني د خاوند په سرای کي عده تېرول) ضروري دي که يا، په دې باره کي د امام شافعي رحمة الله عليه دوه قوله دي او په هغو کي صحيح قول دادی چي د هغې لپاره سکنی ضروري ده ، حضرت عمر فاروق، حضرت عثمان ، حضرت عبدالله ابن مسعود او عبدالله ابن عمر رضي الله عنهم هم د دې قائل وه د هغوی له خوا هم دا حديث د دليل په توګه وړاندي کيږي او رسول الله ﷺ مخکي خو فريعه ته د سرای د منتقل کولو اجازه ورکړې وه مګر بيا رسول الله ﷺ هغه د منتقل کېدو څخه منع کړه او دا حکم يې وکړ چي هغه دي د خاوند په سرای کي د عدې ورځي تېري کړي ، د دې څخه ثابته سوه چي فريعه ته اول د رسول الله ﷺ اجازه ورکول د (امکثي في بيتک ...) په

ذریعه منسوخ سو .

د امام شافعي رحمة الله عليه دوهم قول دادی چي د خاوند د مړ کېدو په وجه د عدې والا ښځې لپاره سکنی ضروري نه ده بلکه هغه چي چیري غواړي په عده کي کښېنستلای سي او دا قول د حضرت علي، حضرت ابن عباس او بي بي عائشې رضي الله عنهم هم دی ، ددغه قول دلیل چي رسول الله ﷺ فریعه ته د سرای د منتقل کېدو اجازه ورکړې وه بیا وروسته رسول الله ﷺ په خپل سرای کي د عدې تېرولو چي کوم حکم ورکړی وو هغه د استحباب په توګه وو ، په دغه مسئله کي د امام ابو حنیفة رحمة الله عليه مذهب به په باب النفقات کي په تفصیل سره بیان سي .

## په عدت کي سنګار کول نه دي پکار

﴿۳۱۹۱﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ دَخَلَ عَلَيَّ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د بي بي ام سلمه رضي الله عنها څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ زموږ کور ته راغلی

حِينَ تُوُفِّيَ أَبُو سَلَمَةَ وَقَدْ جَعَلْتُ عَلَيَّ صَبِرًا فَقَالَ مَا هٰذَا يَا أُمَّ سَلَمَةَ قُلْتُ إِنَّمَا

کوم وخت چي زما خاوند ابو سلمه رضي الله عنه وفات سو . ما هغه وخت په خپل مخ باندي مصبر لګولي وو نبي کریم ﷺ پوښتنه وکړه :ام سلمه ! دا څه دي ؟ ما عرض وکړ دا

هُوَ صَبِرٌ لَيْسَ فِيهِ طِيبٌ فَقَالَ إِنَّهُ يَشُبُّ الْوَجْهَ فَلَا تَجْعَلِيهِ إِلَّا بِاللَّيْلِ

مصبر دی چي هیڅ یو قسم خوشبوئي پکښې نسته نبي کریم ﷺ وفرمایل: مصبر مخ روښانه کوي که یې په دې وجه ته لګوې نو د شپې یې لګوه

وَتَنْزَعِيهُ بِالنَّهَارِ وَلَا تَمْتَشِطِي بِالطِّيبِ وَلَا بِالْحِنَّاءِ فَإِنَّهُ خِضَابٌ قُلْتُ بِأَيِّ

او د ورځې یې مینزه خوشبوئي مه لګوه او مه په نکروځو باندي لاسونه سره کوه ځکه چي د

شَيْءٍ أَمْتَشِطُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ بِالسِّدْرِ تغلفين بِهِ رَأْسَكِ . رواه ابوداؤد والنسائي

نکروځو رنګ سور وي ما عرض وکړ یا رسول الله! نو بیا یې په څه شي باندي سره کوم نبي کریم ﷺ وفرمایل: د بیرو پاڼي په سر دومره اچوه چي هغه ستا سر پټ کړي . ابو داؤد ، نسائي

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲\ ۷۲۷، رقم: ۲۳۰۵، والنسائي ٦\ ۲۰۴، رقم: ۳۴۳۹

**د لغاتو حل**: صَبِرا: دواء مر (يو ډول ترخه درمل).

**تشريح**: د خوشبويي لرونكو تېلو په باره كي د علماء اتفاق او اجماع ده چي عدې والا ښځه دې دا نه استعمالوي البته د يو بېله خوشبويي والا تېلو په باره كي اختلاف دی ، امام اعظم ابوحنيفة او امام شافعي رحمة الله عليهما د بېله خوشبويي والا تېلو څخه هم منع كوي البته د ضرورت او مجبورۍ په حالت كي د هغه اجازه ده او امام مالک، امام احمد او علماء ظواهر د عدې والا ښځي لپاره د داسي تېلو استعمال جائز ګڼي چي په هغه كي خوشبويي نه وي .

﴿۳۱۹۲﴾: وَعَنْهَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّهُ قَالَ الْمُتَوَفّٰى عَنْهَا زَوْجُهَا

د بي بي ام سلمه رضي الله عنها څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د كومي ښځي خاوند چي مړ

لَا تَلْبَسُ الْمُعَصْفَرَ مِنَ الثِّيَابِ وَلَا الْمُمَشَّقَةَ وَلَا الْحُلِيَّ وَلَا تَخْتَضِبُ وَلَا تَكْتَحِلُ . رواه ابوداؤد والنسائي .

سي هغه دې د كسم (يو قسم ګل چي سور رنګ څيني جوړيږي) رنګه جامې اغوندي او نه دې د ګيرو (يو ډول ژړ خاوره ژړ رنګ) (بلكه د هر ډول شوخ رنګه جامه) نه دې زېور اچوي نه دې نكريځي لګوي او نه رانجه .(ابوداؤد نسائي).

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲\ ۷۲۷، رقم: ۲۳۰۴، والنسائي ٦\ ۲۰۳، رقم: ۳۴۳۷.

**تشريح**: كه توري او خړې جامې واغوندي نو په دې كي څه پروا نه سته، همدارنګه په كسم سره رنګ سوي جامې چي د رنګ كېدو يې زيات وخت كيږي او خوشبويي ونه لري اغوستل هم صحيح دي ، په هدايه كي ليكلي دي چي عدې والا ښځي ته د يو عذر په وجه د مثال په توګه خارش، سپږي يا يو ناروغۍ په وجه د ريښمو جامې اغوستل هم جائز دي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د مطلقه د عدت په اړه يو بحث

﴿۳۱۹۳﴾: عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ اَنَّ الْاَحْوَصَ هَلَكَ بِالشَّامِ حِيْنَ دَخَلَتْ

د حضرت سليمان بن يسار رحمه الله څخه روايت دی چي احوص په شام كي هغه وفات سو چي د

امْرَأَتُهُ فِي الدَّمِ مِنَ الْحَيْضَةِ الثَّالِثَةِ وَقَدْ كَانَ طَلَّقَهَا فَكَتَبَ مُعَاوِيَةُ بْنُ أَبِي

هغه ښځه د عدت په وخت کي وه او د عدت اخيري ورځ يعني د دريم حيض ورځي پوره سوې او احوص و هغې ته د خپل مرګ څخه وړاندي طلاق ورکړې وو معاويه بن ابو سفيان د دې د

سُفْيَانَ إِلَى زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ يَسْأَلُهُ عَنْ ذَلِكَ فَكَتَبَ إِلَيْهِ زَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ إِنَّهَا إِذَا

مسئلې د پوښتني لپاره و زيد بن ثابت رضي الله عنه ته خط وليکی (يعني د دې خبري د پوښتني لپاره يې پوښتنه وکړه چي ايا په دې صورت کي ښځه د خپل خاوند په ميراث کي پاته کېداى سي؟ او که يا ؟) زيد بن ثابت په جواب کي وليکل کله چي

دَخَلَتْ فِي الدَّمِ مِنَ الْحَيْضَةِ الثَّالِثَةِ فَقَدْ بَرِئَتْ مِنْهُ وَبَرِئَ مِنْهَا لَا يَرِثُهَا وَلَا تَرِثُهُ. رواه مالك.

ښځه د دريم حيض ورځي تېروي نو د هغې اړيکي د خاوند څخه قطعه سوې (يعني خاوند ور څخه جلا سو )اوس نه خاوند د هغې د مال وارث کېداى سي او نه ښځه د خاوند د مال وارث کېداى سي . (مالک) .

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۲\۵۷۷، رقم: ۵٦.

**تشريح**: د مسئلې صورت دا وو چي احوص رضي الله عنه خپلي ښځي ته طلاق ورکړ او هغه تر درې حيضه راتلو پوري په عده کي کښېنستل لکه څرنګه چي د طلاق د عدې حکم دی اوس د هغې عده پوره سوې نه وه چي دريم حيض شروع سوی وو چي احوص وفات سو ، په دغه صورت کي هغې ته څلور مياشتي او لس ورځو پوري د وفات په عده کي کښېنستل پکار وه نو معاويه رضي الله عنه د زيد ابن ثابت رضي الله عنه څخه دا مسئله وپوښتل چي په دغه صورت کي ښځه د خاوند وارثه کيږي که يا ؟ حضرت زيد رضي الله عنه معاويه رضي الله عنه ته وليکل چي کله دريم حيض شروع سوی دی نو محض د دريم حيض دويني په لېدو سره د هغې تعلق قطع سو او د زوجيت د پابندۍ څخه ازاده سوه ځکه چي په دغه صورت کي د طلاق عده يا خو په دې اعتبار چي د هغې د عدې زياته برخه تېره سوې ده يا په دې اعتبار چي دريم حيض يې شروع سوی دی پوره سوي دي ، په دغه صورت کي د وفات عده ساقط سول ، نو څرنګه چي د طلاق د عدې پر پوره کېدو باندي که چيري يو سړی ژوندي وي نو د هغه ښځي وارث کېداى نه سي همدارنګه اوس په دغه مسئله کي کله چي سړی

مړ سوی دی نو ښځه به د هغه وارثه نه وي .

ددې څخه معلومه سوه چي د حضرت معاويه ﷛ مقصد دا معلومول وو چي هغه ښځه به د احرص ﷛ وارثه وي که يا ؟ حال دا چي دا احتمال هم دی چي د حضرت معاويه مقصد د عدې په باره کي معلومول وو چي ايا دا ښځه د خپل طلاق عده جاري وساتي يعني دريم حيض چي شروع سوی دی د هغه څخه په پاکېدو سره د عدې څخه ووځي يا اوس د وفات په عده کي کښيني .

ملا علي قاري ﷬ وايي چي په دې باره کي طيبي شافعي ﷬ ليکلي دي چي ددې څخه صريحا دا ثابتيږي چي الله تعالی په قرآن کريم کي د طلاقي سوي ښځي د عدې په باره کي چي کوم حکم ورکړی دی چي :

وَالْمُطَلَّقَاتُ يَتَرَبَّصْنَ بِأَنفُسِهِنَّ ثَلاَثَةَ قُرُوَءٍ

ژباړه : او طلاقي سوي ښځي دي خپل ځان تر درو حيضو ختمېدو پوري منع وساتي .

نو دلته د قروء څخه مراد طهر دی، يعني د طيبي ﷬ مقصد دا واضح کول دي چي دغه حديث د شوافعو دليل دی ځکه چي د هغوی په نزد د طلاقي سوي ښځي عده درې حيضه نه ده بلکه درې طهره ده حالانکه د طيبي ﷬ دا خبره چي ددغه حديث څخه د شوافعو مذهب ثابتيږي تېښګه خبره نه ده ځکه چي اول خو دا د يو صحابي يعني حضرت زيد ابن ثابت ﷛ مذهب دی، دوهم دا چي خپله حضرت زيد ﷛ څخه ددې پر خلاف هم منقول دي د هغه څخه دا نقل سوي دي چي (عدة الامة حيضتان) يعني د مينزي عده دوه حيضه ده، او بيا ددې څخه علاوه دا بالکل نه معلوميږئ چي حضرت معاويه د حضرت زيد په قول عمل کړی دی که يا .

د حنيفه په نزد د ثلثة قروء څخه مراد درې حيضه دی ، د خلفاء راشدينو او اکثرو صحابه کرامو هم دا قول دی ، او د ديارلسو صحابه کرامو څخه منقول دي چي هغوی به دا ويل چي ښځه تر څو پوري چي د دريم حيض څخه پاکه نه سي سړي ته (يعني چا چي طلاق ورکړی دي) د هغه زيات حق ساتل دي مطلب دا که چيري د دريم حيض څخه د پاکېدو وروسته د عدې وخت پوره کيږئ او د هغه ښځي سره د سړي پوره انقطاع کيږي نو ددې څخه دا خبره ثابتيږي چي د قروء څخه حيض مراد دی ، ملا علي قاري ﷬ په خپل کتاب کي په دې باره کي تفصيلي بحث کړی دی او د حنفيه حضراتو ډېر دلائل يې ليکلي دي .

## د مطلقې د عدت مسئله

﴿۳۱۹۴﴾: وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ قَالَ قَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ أَيُّمَا امْرَأَةٍ

د حضرت سعيد بن مسيب رضي الله عنه څخه روايت دی چې عمر بن خطاب رضي الله عنه وفرمايل: کومې ښځې

طُلِّقَتْ فَحَاضَتْ حَيْضَةً أَوْ حَيْضَتَيْنِ ثُمَّ رَفِعَتْهَا حَيْضَتُهَا فَإِنَّهَا تَنْتَظِرُ

ته چې طلاق ورکړل سي او د هغې د دوو حيضو موده پوره سوې وي او وروسته يې حيض بند سي

تِسْعَةَ أَشْهُرٍ فَإِنْ بَانَ بِهَا حَمْلٌ فَذَلِكَ وَإِلَّا اعْتَدَّتْ بَعْدَ التِّسْعَةِ أَشْهُرٍ ثَلَاثَةَ أَشْهُرٍ ثُمَّ حَلَّتْ. رواه مالك

نو هغه دې د نهو مياشتو انتظار وکړي که حمل ظاهر سي نو خير کنې د نهو مياشتو وروسته دې بيا د درو مياشتو عدت تيرې کړي او د دې څخه وروسته بيا د عدت څخه وځي. مالک

**تخريج**: الامام مالک في الموطا ۲\۵۸۲، رقم: ۷۰.

**د لغاتو حل**: رُفعتها: ای رفعت عنها. (له هغې څخه يې پورته کړي).

==========

# بَابُ الْاِسْتِبْرَاءِ (د پاکۍ طلب کولو بيان)

په شريعت کې د استبراء مطلب دادی چې د مينزې د رحم د حمل څخه پاکې طلب کول، د دې فقهي تفصيل دادی چې کله د يو سړي په ملکيت کې يو مينزه راسي که هغه رانيولې وي يا په يو وصيت کې تر لاسه سوې وي يا يو چا په تحفه کې ورکړې وي او يا په مېراث کې تر لاسه سوې وي نو هغه سړی ته د هغه مينزې سره تر هغه وخته پورې جماع کول يا مس کول يا مچه اخيستل وغيره حرام دي تر څو چې استبراء ونه کړي. يعني د هغه په قبضه کې د راتلو څخه وروسته يو حيض ورته را نه سي که هغې ته حيض راځي يا د حيض نه راتلو په صورت کې پر هغې د يوې مياشتې وخت تېر نه سي يا د حامله کېدو په صورت کې ولادت ونه سي او دا استبراء په هر حال کې کول ضروري دي که هغه پيغله وي يا هغه يې د يو ښځې څخه رانيولې وي يا هغه د يو محرم يا نابالغ کوچني د مال څخه د وراثت په ذريعه تر لاسه سوې وي که څه هم په

دغه صورتو کي د قياس تقاضا داده چي استراء واجب کېدل نه دي پکار ځکه چي په استبراء کي حکمت دادی چي په دغه طريقه سره د رحم پاکېدل معلوم سي چي د هغه د نطفې سره د بل چا نطفې اختلاف نه وي کړی او ظاهره ده چي په دغه صورت کي د يو چا د نطفې احتمال نه سته مګر دا صريح نص دی چي رسول الله ﷺ د اوطاس پر موقع د حاصليدونکو مينځو په باره کي دا وفرمايل چي خبردار! د حامله مينزي سره تر هغه وخته پوري صحبت مه کوئ تر څو چي د هغې ولادت ونه سي او د غير حامله مينزي سره تر هغه وخته پوري صحبت مه کوئ تر څو چي د هغې يو حيض را نه سي او ظاهره ده چي په هغه ميځو کي به پيغلي هم وې او داسي مينزي به هم وې چي د پيغلو په ډول د نطفې د اختلاط احتمال يې نه وي ځکه د قياس په نظر اندازه کولو سره په دغه صورتو کي استبراء واجب وګرځول سوه.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د استبراء پرته د مينزي سره جماع کول...

﴿۳۱۹۵﴾: عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ مَرَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِامْرَأَةٍ مُجِحٍّ

د حضرت ابو درداء رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د يوې مينزي سره نژدې تير سو چي هغه د کوچني د پيدا کېدو په درد کي وه

فَسَأَلَ عَنْهَا فَقَالُوا اَمَةٌ لِفُلَانٍ قَالَ أَيُلِمَّ بِهَا قَالُوا نَعَمْ قَالَ لَقَدْ هَمَمْتُ أَنْ

پوښتنه يې وکړه چي دا د چا ښځه ده؟ عرض وکړل سو چي دا د فلاني مينزه ده. نبي کريم ﷺ پوښتنه وکړه ايا هغه سړي د دې سره صحبت کوي؟ خلکو وويل: هو. نبي کريم ﷺ وفرمايل: ما اراده کړې وه چي

أَلْعَنَهُ لَعْنًا يَدْخُلُ مَعَهُ فِي قَبْرِهِ كَيْفَ يَسْتَخْدِمُهُ وَهُوَ لَا يَحِلُّ لَهُ ام كَيْفَ يورثه وَهُوَ لَا يَحِلُّ لَهُ. رواه مسلم

پر هغه سړي لعنت ولېږم چي د هغه سره و قبر ته ولاړ سي هغه به څنګه خپل زوی ته د خدمت کولو لپاره وايي لکه څنګه چي د زوی څخه د خدمت کار اخيستل جائز نه دی يا زوی غلامول صحيح نه دی يا څنګه به هغه دی خپل وارث کوي دا چي هغه د ده زوی نه وي (يعني د مينزي

سره د هغې د حمل په ورځو کي جماع کول او هغه پاکېدو ته نه پرېښودل يو داسي خراب کار دی چي پر هغه لعنت ويل صحيح دی په داسي حال کي چي هغه حمل د بل سړي وي يعني هغه په داسي حالت کي رانيسي چي هغه حامله وي). مسلم

**تخريج**: مسلم في الصحيح ۲\۱۰۶۵، رقم: ۱۳۹- ۱۴۴۱.

**د لغاتو حل**: مُجِح: اى حامل تقرب ولادتها. (هغه حامله ښځه چي ولادت يې نژدې وي).

**تشريح**: رسول الله ﷺ پر هغه سړي باندي د لعنت اراده ځکه وکړه چي د يو مينزي سره جماع کړې وه چي د حمل په حالت کي د هغه په ملکيت کي راغلې وه نو هغه استبراء ترک کړه حالنکه هغه فرض وه.

هغه به څرنګه خپل زوی ته د خدمت لپاره وايي ..الخ: رسول الله ﷺ ددغه ارشاد په ذريعه د استبراء پر پرېښودونکي باندي د لعنت سبب ته اشاره فرمايلې ده، خلاصه دا چي کله يو سړی د خپل مينزي سره بېله استبراء صحبت وکړي او بيا د هغې څخه کوچنی پيدا سي نو د هغه کوچني په باره کي به دا احتمال وي چي هغه ددغه سړي د نطفي څخه کوم چي د هغه د ملکيت څخه په وتلو سره دا مينزه بېله استبراء د صحبت کونکي په ملکي کي راغلې ده نو په دغه صورت کي که چيري هغه سړی چا چي بېله استبراء د هغه مينزي سره جماع کړې ده د هغه کوچني نسب اقرار وکړي يعني دا ووايي چي دا زما زوی دی (حال دا چي په حقيقت کي د هغه د نطفي څخه نه وي) نو هغه کوچنی به د هغه وارث وي، همدارنګه به د يو بل چا کوچنی خپل وارث ګرځول لازم سي چي حرام دي په دې سره به هغه د لعنت مستحق وي يا به دا صورت وي چي هغه به د هغه کوچني د نسب څخه انکار وکړي يعني دا به ووايي چي دا کوچنی زما د نطفي څخه نه دی حال دا چي دا احتمال هم کيدای سي چي هغه کوچنی د هغه د نطفې څخه وي نو په دغه صورت کي به هغه کوچني غلام وي (حال دا چي د هغه احتمال مطابق په حقيقت کي هغه کوچنی به د هغه زوی نه وي) همدارنګه پر خپل کوچني باندي غلامي کول او خپل نسب منقطع کول لازميږي او دا هم د لعنت مستحق کوونکی صورت دی نو ثابته سوه چي استبراء ډېره ضروري ده.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

﴿۳۱۹۶﴾: عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَفَعَهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِي سَبَايَا أَوْطَاسَ لَا تُوطَأُ حَامِلٌ حَتَّى تَضَعَ وَلَا غَيْرُ ذَاتِ حَمْلٍ حَتَّى تَحِيضَ

حَيْضَةً . رواه احمد وابوداؤد والدارمي .

د حضرت ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د هغو بنديانو په هکله چي د اوطاس په غزا کي نيول سوي وه دا حکم جاري کړ چي د حاملو ښځو سره تر هغه وخته چي د هغې کوچنی پيدا سوی نه وي جماع نسي کولای او د غير حاملې سره تر هغه وخته پوري جماع نسي کولای تر څو چي د هغې يو حيض پوره نسي .(احمد ابوداؤد دارمي).

**تخريج**: احمد في المسند ۳\۶۲، رقم: ۲۱۵۷، والدارمي ۲\۲۲۴، رقم: ۲۲۹۵.

**تشريح**: که چيري يو غير حاملې ته د هغې د کم عمرۍ په وجه يا د زيات عمر کېدو په وجه حيض نه راځي نو د هغې استبراء داده چي تر يوې مياشتي پوري هغې ته د ورتللو څخه پرهيز وکړي کله چي يوه مياشت تېره سي بيا دي د هغې سره جماع وکړي، دغه صورت په حديث کي ځکه ذکر نه سو چي دا قليل الوجود او نادر صورت دی.

که چيري مينزه د حيض په حالت کي د يو چا په ملکيت کي راسي نو په استبراء کي به د هغه حيض اعتبار نه وي بلکه د بل پوره حيض اعتبار به کيږي .

دا حديث ددې دليل دی چي د مينزي لپاره د نوي ملکيت لپاره استبراء واجبوي د څلورو امامانو دا مذهب دی او دا حديث پر دې دلالت کوي چي د دارالحرب څخه يو کافره د مينزه په توګه ونيول سي نو د هغې اولنی نکاح ختميږي مګر په دې باره کي د حديث ظاهر مفهوم مطلق دی که څه هم د هغوی خاوندان د هغوی سره نه وي ، د امام شافعي او امام مالک رحمة الله عليهما دا مذهب دی حال دا چي امام ابوحنيفة رحمه الله وايي که چيري ښځه او خاوند دواړه يو ځای ونيول سي نو په دغه صورت کي د هغوی نکاح باقي ده .

﴿۳۱۹۷﴾: وَعَنْ رُوَيْفِعِ بْنِ ثَابِتٍ الْأَنْصَارِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

د حضرت رويفع بن ثابت انصاري رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل

وَسَلَّمَ يَوْمَ حُنَيْنٍ لَا يَحِلُّ لِامْرِئٍ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ يَسْقِيَ مَاءَهُ

د حنين په غزا کي :کوم سړی چي پر الله جل جلاله او د آخرت پر ورځ ايمان لري د هغه لپاره دا خبره جائز نه ده چي هغه خپلي اوبه (مني)

زَرْعَ غَيْرِهِ يَعْنِي إِتْيَانَ الْحَبَالَى وَلَا يَحِلُّ لِامْرِئٍ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ

د بل په کښت کي واچوي (يعني کوم ښځه چي د بل د نطفې څخه حامله سوې وي د هغې سره جماع و کړي) او کوم سړی چي پر الله جل جلاله او د آخرت پر ورځ ايمان لري د هغه لپاره دا هم جائز

أَنْ يَقَعَ عَلَى امْرَأَةٍ مِنَ السَّبْيِ حَتَّى يَسْتَبْرِئَهَا وَلَا يَحِلُّ لِامْرِئٍ يُؤْمِنُ بِاللَّهِ

نه ده چي هغه په جګړه کي د نيول سوي مينزي سره تر هغه وخته پوري جماع و کړي تر څو چي هغه پاکه سوې نه وي او کوم سړي چي پر الله جل جلاله

وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ يَبِيعَ مَغْنَمًا حَتَّى يُقْسَمَ . رواه ابوداؤد رواه الترمذي الى قوله زرع غيره

او د آخرت په ورځ ايمان لري د هغه لپاره دا جائز نه ده چي د غنيمت مال تر تقسيم وړاندي خرڅ کړي . (ابوداؤد) خو ترمذي (زرع غيره) پوري روايت کړې دی .

**تخريج**: ابوداود في السنن ۲\۶۱۵، رقم: ۲۱۵۸، ومسلم ۳\۱۳۳۸، رقم ۷- ۱۷۱۴.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د غير حائضې مينزي د استبراء مدت

﴿۳۱۹۸﴾: عَنْ مَالِكٍ قَالَ بَلَغَنِي أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَأْمُرُ

د حضرت مالک رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله صلى الله عليه وسلم به د مينځو د پاکولو حکم ورکوی

بِاسْتِبْرَاءِ الْإِمَاءِ بِحَيْضَةٍ إِنْ كَانَتْ مِمَّنْ تَحِيضُ وَثَلَاثَةِ أَشْهُرٍ إِنْ كَانَتْ مِمَّنْ لَا تَحِيضُ وَيَنْهَى عَنْ سَقْيِ مَاءِ الْغَيْرِ .

يعني که هغه به د حيض والا ښځه وه نو تر يوه حيض راتلو پوري او چاته چي به حيض نه راتلی نو هغه به تر درو مياشتو مودې پوري انتظار کيدی او نبي کريم صلى الله عليه وسلم د بل په اوبو کي د اوبو د يو ځای کولو څخه (يعني د دويم سړي د حاملې سره د جماع کولو څخه) منعه فرمايلې ده . (رزين).

**تخريج**: رواه رزين.

**تشريح**: د حديث په آخري جمله کي د حامله مينزي د استبراء حکم دی که چيري يو مينزه د حمل

په حالت کي په ملکيت کي راسي نو د هغې سره دي تر هغه وخته پوري جماع نه کوي تر څو چي هغه د ولادت څخه فارغه نه سي کوم چي د هغې په رحم کي د بل سړي د نطفې څخه دي تر څو د هغه سره د خپل نطفې او نسب اختلاط ونه سي.

د غير حائضه مينزي په باره کي د جمهورو علماؤ مذهب دادی چي کومي مينزي ته حيض نه راځي د هغې استبراء داده چي د هغې سره هغه وخت جماع وکړل سي کله چي په خپل ملکيت کي د راتلو وروسته پر هغې پوره يوه مياشت يا تر دې زيات وخت تېر سي او ځيني حضرات ددغه حديث سره سم وايي چي د غير حائضه مينزي استبراء داده چي د هغې سره هغه وخت جماع وکړل سي کله چي په خپل ملکيت کي د راتلو څخه وروسته پر هغې درې مياشتي يا تر دې زيات وخت تېر سي.

## د پيغلي مينزي لپاره استبراء واجب ده که يا؟

﴿۳۱۹۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّهُ قَالَ إِذَا وُهِبَتِ الْوَلِيدَةُ الَّتِيْ تُوْطَأُ أَوْ بِيْعَتْ أَوْ أُعْتِقَتْ فَلْتَسْتَبْرِئْ رَحِمَهَا بِحَيْضَةٍ وَلَا تَسْتَبْرِئُ الْعَذْرَاءُ. رواهما رزين

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي هر کله يوه مينزه چي د هغې سره جماع کيدلای سي هغه يو چا ته هبه کړه سي يا و پلورل سي يا آزاده کړل سي نو هغې ته پکار ده چي خپل رحم په يو حيض سره پاک کړي او پيغلي انجلۍ مينزي ته د پاکولو ضرورت نسته. رزين.

**تخريج**: رواه رزين.

**تشريح**: په دغه حديث شريف باندي ابن شريح رحمة الله عليه عمل کړی دی هغه وايي چي د پيغلي مينزي لپاره استبراء واجب نه ده حال دا چي د جمهورو علماؤ مذهب دادی چي د هغې لپاره هم استبراء واجب ده ځکه چي رسول الله ﷺ د اوطاس په غزا کي د نيول سوو مينځو په باره کي د استبراء حکم عام ورکړی دی چي په هغه کي د پيغلو استثناء نه سته.

**د أم ولد عدت**: د هدايه صاحب ليکلي دي که چيري د أم ولد بادار مړ سي يا هغه يې ازاده کړي نو د هغې د عدې وخت درې حيضه دی او که چيري هغې ته حيض نه راځي نو د هغې عده به درې مياشتي وي.

علامه ابن همام رحمة الله عليه وايي چي دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي ام ولد حامله نه وي او نه د بل سړي په نکاح کي وي او نه د چا په عده کي وي که چيري هغه حامله وي نو بيا

دهغې عده د حمل تر وضع پورې ده او که چیرې هغه د بل چا په نکاح کې وي یا د یو چا په عده کې وي نو په دغه صورتو کې د هغې سره د جنسي اختلاط هیڅ سوال نه پیدا کیږي ځکه د بادار د ازادولو په وجه یا د بادار د مړ کیدو په وجه پر هغې عده واجب نه وي دا د حنفیه مذهب دی ، د امام شافعي او امام مالک رحمة الله علیهما مذهب دادی چې د بادار له خوا د ازاد کیدو یا د بادار د مړ کیدو په صورت کې د ام ولد عده یو حیض دی په حنفیه کې د امام محمد رحمة الله علیه هم دا قول دی.

==========

# بَابُ النَّفَقَاتِ وَحَقِّ الْمَمْلُوْكِ

## (د نفقې او غلامانو او مینځو د حقوقو بیان)

نفقات د نفقه جمع ده او نفقه هغه شي ته وایي چې مصرف کیږي ، او د شریعت په اصطلاح کې خوراک، جامې او د اوسیدو ځای ته نفقه وایي .

د نفقې څو ډولونه او نوعیتونه دي لکه د ښځې نفقه، د اولاد نفقه او د قریبانو نفقه ځکه د نفقې ددغه انواعو په اعتبار په عنوان کې نفقات یعني د جمع صیغه استعمال سوې ده او دلته د نفقې څخه دغه عام مفهوم مراد دی که هغه واجب وي یا غیر واجب وي .

**د ښځې د نفقې احکام او مسائل** : پر سړي باندې خپل ښځې ته نفقه یعني خوراک، څښناک، جامې او د اوسیدو ځای ورکول واجب دي که څه هم سړی په عمر کې د خپل ښځې څخه کوچنی وي او که څه هم ښځه مسلمانه وي یا کافره وي که بالغه وي یا داسې نابالغه وي چې د هغې سره جماع نه کیږي مګر د نفقې د واجب کیدو شرط دادی چې هغه ښځې خپل ځان د خاوند په کور کې خاوند ته سپارلی وي او که چیرې سپارلې یې نه وي نو د هغه وجه یا خو د هغې یو حق وي چې د هغه د ادا کولو څخه انکار کوي یا خپله خاوند د سپارلو غوښتنه نه کوي .

غوره داده چې خاوند خپل ښځه د دسترخوان ملګرې کړي او دواړه یو ځای اوسیږي او د حیثیت سره سم څه چې پیدا سي په هغه دواړه ګزاره وکړي او څرنګه چې د شریفو کورنیو قاعده ده چې خاوند په هر حال کې کسب او کار کوي او ښځه د کور د انتظام ذمه داره سي ، خاوند چې څه ګټي د هغه سره سم سامان کور ته راوړي او ښځه هغه سامان د کور په اړتیاوو کې مصرف کوي او که چیرې په یو وجه د خاوند او ښځې داسې اوسیدل ممکن نه وي او ښځې قاضي ته دا

خواست وکړي چي زما لپاره دي زما پر خاوند نفقه و ټاکل سي نو د قاضي له خوا د ښځي لپاره میاشتنۍ نفقه ټاکل کیږي او هغه ټاکل سوی مقدار دي هغې ته حواله کیږي همدارنګه په یوه کال کي دوه واره جامې ورکول ټاکل کیږي او هغه ټاکل سوي جامې په شپږو میاشتو کي هغې ته حواله کیږي که چیري قاضي د ښځي لپاره میاشتنۍ نفقه وټاکي نو خاوند دي هغې ته میاشتنۍ نفقه ورکوي او که چیري خاوند میاشتنۍ نفقه نه ورکوي او ښځه یې هره ورځ غواړي نو د ماښام په وخت کي ښځي ته د غوښتني کولو اختیار وي.

د نفقې د ټاکلو په باره کي باید د هغه اندازي لحاظ وساتل سي کوم چي د ښځي لپاره کافي دي او بېله اسرافه او تنګۍ خپل ګزاره وکړلای سي، پاته سوه د معیار خبره نو په دې کي د ښځي او خاوند دواړو د حالت او حیثیت اعتبار دی که دواړه په مالي توګه د ښه حالت او کیفیت خاوندان وي نو د هغه حیثیت نفقه به هم واجب وي او که دواړه غریبان او مفلس وي نو نفقه به هم په هغه اعتبار واجب وي او که چیري دا صورت وي چي خاوند شتمن وي او ښځه مفلسه وي یا خاوند مفلس وي او ښځه شتمنه وي نو بیا به د درمیانه درجې نفقه واجب وي یعني هغه نفقه به ورکول کیږي چي د شتمنۍ د درجې څخه کمه وي او د غریبۍ د درجې څخه زیاته وي او ځیني حضرات وایي چي په هر صورت د خاوند د حالت اعتبار کیږي هغه چي د کوم حیثیت او حالت خاوند وي د هغه سره سم به نفقه ټاکل کیږي که څه هم ښځه هر ډول وي.

که د ښځي او خاوند په مینځ کي د شتمنۍ او غریبۍ په باره کي اختلاف پیدا سي یعني خاوند وایي چي زه غریب یم ځکه نو د غریبۍ نفقه به درکوم او ښځه وایي چي ته شمتن یې ځکه زه به د شتمنۍ نفقه اخلم او بیا دا معامله د قاضي عدالت ته ورسیږي او ښځه خپل دعوه وړاندي کړي نو د شاهدانو په اعتبار کولو سره د ښځي لپاره به د شتمنۍ نفقه ټاکل کیږي او که ښځي شاهدان پیدا نه کړل نو بیا د خاوند اعتبار کیږي.

که چیري د ښځي سره یو خادم یا خادمه هم وي او خاوند شتمن وي نو د ښځي د نفقې سره د هغه خادم یا خادمي نفقه به هم پر خاوند واجب وي او که غریب وي نو د هغه خادم یا خادمي نفقه به پر خاوند لازم نه وي.

که قاضي د خاوند د غریبۍ په وجه د ښځي لپاره د غریبۍ نفقه وټاکل او بیا خاوند شتمن سو او ښځي د شتمنۍ د نفقې دعوه وکړه نو د هغې لپاره به د شتمنۍ نفقه ټاکل کیږي.

کومه ښځه چي د خاوند د وفات په عده کي وي هغې ته نفقه نه ورکول کیږي که څه هم حامله وي یا غیر حامله وي، همدارنګه کومه ښځه چي نافرمانه سي یعني د خاوند د اجازې

ځخه پرته يا په يو بل وجه د خاوند د كور ځخه ووځي نو د هغې نفقه هم پر خاوند واجب نه ده او كومه ښځه چي د پور يا بل شي د نه ادا كولو په وجه په بندي خانه كي اچول سوې وي يا د خپل پلار ګني په كور كي داسي ناروغه سي چي د واده ځخه وروسته د خاوند كور ته نه وي استول سوې يا يو غصب كونكي تښتولې وي يا هغه دومره كم عمره وي چي د هغې سره جماع نه كيږي يا ښځه خاونده حج ته تللې وي نو د هغې د حضر نفقه به پر خاوند باندي واجب وي او د سفر مصرف او د سپرلۍ كرايه وغيره به پر خاوند واجب نه وي كه چيري ښځه په خپل پلار ګنۍ كي ناروغه سي او د نكاح ځخه وروسته ناروغه د خاوند كور ته استول سوې وي نو د هغې نفقه به هم پر خاوند باندي واجب نه وي البته كومه ښځه چي د خاوند كور ته د تللو ځخه وروسته ناروغه سي نو د هغې نفقه به پر خاوند واجب وي.

خاوند بايد د ښځي لپاره د اوسيدو ځاى د شرعي مقاصدو د لحاظ ساتلو سره د خپل حيثيت او استطاعت سره سم برابر كړي او هغه بايد داسي سراى وي چي د سړي د كورنۍ او د ښځي د كورنۍ ځخه خالي وي او كه چيري ښځه د خپل كورنۍ سره اوسيدل غواړي نو بيا داسي سراى وركول واجب نه دي.

كه د خاوند په كور كي ځو خوني وي نو يوه خونه ښځي ته په خالي كولو سره هغې ته وركول كافي دي ښځي ته به د دوهمي خوني د غوښتني حق نه وي.

كه خاوند غواړي چي په كور كي د ښځي سره د هغې قريبان د راتلو ځخه منع كړي نو خاوند ته دا حق سته چي هغه منع كړي، مګر كه چيري د ښځي هغه قريبان وي چي هغه محرم وي نو هغوى ښځي ته د راتلو ځخه يا د هغې سره د خبرو كولو ځخه د منع كولو حق نه سته همدارنګه خاوند ته دا حق هم نه سته چي هغه په مياشت كي يو وار ښځه د خپل مور او پلار كور ته د ورتلو ځخه يا دهغې مور او پلار كور ته د راتلو ځخه منع كړي (يعني په هفته كي تر يو وار زيات تللو او راتللو ځخه يې منع كولاى سي) او د مور او پلار ځخه علاوه نورو قريبانو ته په كال كي يو وار د ښځي د تللو ځخه د منع كولو حق نه سته يعني په كال كي يو وار ځخه زيات پر هغوى پابندي لګولاى سي.

كومه ښځه چي د طلاق په عده كي وي نو هغه د خاوند ځخه د نفقي، د اوسيدو لپاره د ځاى د تر لاسه كولو مستحقه ده كه ځه هم طلاق رجعي وي يا بائن يا مغلظه وي او كه ځه هم ښځه حامله وي يا غير حامله وي همدارنګه كومه ښځه چي د داسي جلاوالي په عده كي وي چي د يو معصيت په وجه نه بلكه د يو شرعي حق په وجه واقع سوى وي نو د هغې نفقه او د

اوسيدو ځاى به هم د خاوند پر ذمه وي مثلا يو ام ولد يا مدبره د يو چا په نكاح كي وي او بيا د خيار عتق په وجه جلاوالى راغلى يا د يوې نابالغي نكاح د هغې يو سرپرست كړې وه او بيا هغې د بالغ كېدو څخه وروسته د خيار بلوغ په وجه د هغه خاوند څخه جلاوالى اختيار كړ نو په دغه صورتو كي هم ښځه د نفقې او د اوسيدو د ځاى حقداره ده ، كه چيري ښځه د يو داسي جلاوالي په عده كي وي چي د يو معصيت په وجه واقع سوى وي نو د هغې نفقه او د اوسيدو ځاى د خاوند پر ذمه نه دى مثلا ښځه (نعوذبالله) مرتده سوه يا هغې د خپل خاوند د زوى سره داسي بد فعل وكړ چي په هغه سره پر خاوند حرامه سوه لكه د هغه سره كوروالي وكړي يا هغه يې په شهوت سره مس كړى يا مچه يې ځيني واخيستل او د هغه په وجه د ښځي او خاوند په مينځ كي جلاوالى واقع سو او هغه په عده كي كښېنستل نو په دغه صورتو كي به هغه د خاوند څخه د خوراك او اوسيدو د ځاى د غوښتلو حقداره نه وي .

كه يوې ښځي ته درې طلاقه وركړل سوي وي او هغه په عده كي كښېنستل مګر بيا د عدې په وخت كي (نعوذبالله) مرتده سوه نو د هغې د نفقې او اوسيدو د ځاى حق به ساقط سي او كه چيري ښځه د خپل عدې په وخت كي د خاوند د زوى يا د خاوند د پلار سره ناجائز تعلق قائم كړي نو د نفقې او سكنى مستحقه به وي په شرط ددې چي هغه عده د طلاق رجعي نه وي بلكه د طلاق بائن يا طلاق مغلظه وي .

**د اولاد د نفقې احكام او مسائل** : د نابالغ اولاد (چي د هغوى په ذاتي ملكيت كي هيڅ هم مال او سامان نه وي) مصرف د پلار پر ذمه دي كه څه هم پلار غريب او مفلسه وي .

كه چيري يو كوچنى تى روي او د هغه مور د هغه د پلار په نكاح كي وي او هغه كوچنى د بلي ښځي تى روي او د هغه مور هغه تى وركول نه غواړي نو د هغه مور به پر تي وركولو باندي نه سي مجبوره كېداى مګر كه چيري كوچنى د بلي ښځي تى نه روي يا د مور څخه پرته بل تى وركونكې ښځه نه وي نو په دغه صورت كي به هغه پر تي وركولو باندي مجبوره كيږي .

كه چيري مور د تي وركولو څخه انكار وكړي او بله تى وركونكي ښځه وي نو دا حكم دى چي پلار دى تى وركونكې وتاكي چي كوچني ته تى وركوي اوس كه چيري د هغه كوچني په ذاتي ملكيت كي مال موجود وي نو هغه تى وركونكي ته به د كوچني مال څخه روپۍ وركول كيږي او كه چيري د كوچني په ذاتي ملكيت كي مال موجود نه وي نو بيا د تي وركولو مزدوري به د پلار پر ذمه وي .

كه پلار د كوچني مور د تي وركولو لپاره په اجاره و تاكي او هغه دده په نكاح كي وي يا د طلاق رجعي په عده كي وي نو دا جائز نه دي مگر كه چيري هغه مور د طلاق بائن يا د طلاق مغلظ په عده كي وي نو بيا د هغې د تي وركولو پر مزدوري باندي ساتل جائز دي بلكه په دغه صورت كي هغه مور د بلي ښځي په نسبت د زياتي مزدوري مطالبه دي نه كوي كنه نو دا به د هغې بې عقلي وي.

كه يو سړی خپل منكوحه يا معتده ښځه د خپل كوچني لپاره د تي وركولو په مزدوري و تاكي چي هغه كوچنی د بلي ښځي څخه وي نو دا اجاره جائز ده.

كه د يو چا بالغه غريبه لور وي يا بالغ زوی يې گوډ او شل وي نو د هغه مصرف هم د پلار پر ذمه دی او فتوا پر دې باندي ده، ځيني حضرات وايي چي د هغوی د مصرف دوې برخې د پلار پر ذمه ده او يوه برخه د مور پر ذمه ده.

**د مور او پلار د نفقې احكام او مسائل** : اصول يعني پلار، نيكه، ورنيكه او داسي نور كه چيري محتاج وي نو د هغوی د مصرف ذمه داري پر اولاد ده په شرط ددې چي اولاد شتمن او مالداره وي، د شتمن او مالدار كېدو مطلب دادی چي هغوی په مالي توگه ددې حيثيت ولري چي هغو ته د صدقې او زكوة اخيستل حرام وي كه چيري په شتمنو كي لور او زوی دواړه وي نو د هغو د نفقې ذمه داري به پر دواړو باندي په مساوي توگه وي.

د محتاج سړي د نفقې د واجب كېدو په باره كي د قرب او جزئې اعتبار دی نه د ارث مثلا كه د يو محتاج سړي لور او ملسی دواړه شتمن وي نو د هغه نفقه به پر لور واجب وي سره ددې چي د هغه سړي ميراث دواړو ته رسيږي همدارنگه كه د يو محتاج سړي ملسی او ورور دواړه شتمن وي نو د هغه نفقه به پر ملسی واجب وي كه څه هم د هغه سړي د ميراث مستحق به يوازي ورور وي.

**د ذوي الارحامو د نفقې احكام او مسائل** : پر هر شتمن سړي باندي د هر ذي رحم نفقه واجب ده په شرط ددې چي هغه ذي رحم محتاج يا نابالغ وي او يا غريبه ښځه وي يا گوډ، شل، ړوند او طالب د علم وي يا د جهل او ناپوهی يا بل يو عذر په وجه د گټي وړ نه وي، كه چيري شتمن خلک ددغه كسانو مصرف ونه كړي نو هغه دي پر د هغو پر مصرف مجبور كړل سي، د ذي رحم قريبانو نفقه د ميراث د مقدار په اعتبار واجبيږي.

د ميراث د مقدار مطلب دادی چي كوم څوک د خپل غريبی په وجه د خپل ذي رحم قريبانو څخه د نفقې تر لاسه كولو مستحق دی كه هغه تصور كړل سي او د هغه ميراث د هغه په هغه ذي رحم وارثانو كي وويشل سي نو د كوم وارث په برخه كي چي كوم مقدار راسي هغه مقدار به د

هغه د نفقې په توګه پر هغه ذي رحم واجب وي، د مثال په توګه زيد يو غريب او مفلس سړی دی د هغه په قريبانو کې يوازې درې خويندې دي يعني يوه حقيقي خور، يوه ميريزه او يوه اخيافي خور ده په دغه درو خويندو باندې دزيد نفقه واجب ده چې هغه درې سره به يې داسې پوره کوي چې د زيد پوره نفقه به پر پنځه برخو ويشي او بيا درې پر پنځه برخه به د حقيقي خور پر ذمه وي او يوه پر پنځه برخه به د ميريزه خور پر ذمه وي او يو پر پنځه برخه به د اخيافي خور پر ذمه وي، د ميراث وېش بالکل داسې دی لکه څرنګه چې د زيد د ترکې څخه ددغه خويندو د برخو ميراث تقسيم کيږي.

په دې باره کې د ميراث د مقدار په حقيقت کې هر وخت متعين او معلوم کېدل شرط نه دی بلکه محض د وراثت اهل کېدل شرط دي که چيرې د زيد يو ماما وي او يو د اکا زوی يې وي او هغوی دواړه شتمن وي نو د زيد نفقه به د هغه پر ماما واجب وي.

د پلار د ښځې نفقه د هغه پر زوی واجب ده او د مړور نفقه پر خسر واجب ده په شرط ددې چې هغه هلک (يعني زوی) يې نابالغ وي يا ګوډ، شل او معذور وي.

کوم څوک چې غريب وي پر هغه د چا نفقه واجب نه ده که څه هم د هغه مور او پلار يا ذي رحم قريبان وي مګر د ښځې او اولاد نفقه پر هغه په هر حال کې واجب ده.

د دين او مذهب د اختلاف په صورت کې پر يو بل باندې نفقه واجب نه ده مګر ښځه، مور او پلار، نيکه، انا، اولاد او د اولاد اولاد که نارينه وي که ښځينه دا خلک ددغه حکم څخه مستثنی دي ددغه کسانو نفقه د دين او مذهب د اختلاف سربېره واجب ده.

د غريب لپاره دا جائز ده چې هغه د خپل نفقې لپاره د خپل زوی مال مصرف کړي مګر د عقار (يعني غير منقوله شيان لکه مځکې، باغ او داسې نورو) شيانو د خرڅولو اختيار ورته نه سته همدارنګه که چيرې پر هغه زوی باندې د پلار د نفقې څخه پرته پور وي نو د هغه لپاره د زوی د منقوله شيانو د خرڅولو اختيار به ورته نه وي او مورته د خپل زوی د مال د خرڅولو اختيار نه سته او د صاحبينو په نزد پلار ته هم د منقوله شيانو د خرڅولو اختيار نه سته.

**د مينزې او غلام د نفقې احکام او مسائل**: پر بادار باندې د خپل غلام او مينزې د مصرف پوره کول ضروري دي که هغوی يې په ملکيت کې پوره وي لکه خالص غلام او يا نيم وي لکه مدبر او ام ولد او که څه هم هغه کم عمره وي يا د لوی عمر والا وي.

که يو څوک د خپلو غلامانو د کفالت څخه انکار وکړي نو هغه غلام په دې کې مختار دی چې محنت او مزدوري وکړي او څه چې وګټي د هغه څخه خپل مصرف پوره کړي او که چيرې د

هغوی لپاره د مزدورۍ کار نه وي او هغوی په ګټلو سره خپل مصرف نه سي پوره کولای نو بیا د قاضي له خوا بادار مجبور کېدای سي چي هغه غلامان خرڅ کړي.
که یو څوک یو حیوان رانیسي نو پر هغه باندي د حیوان د خوراک او څښاک بندوبست کول واجب دي که چیري هغه د حیوان د خوراک او څښاک څخه انکار وکړي نو هغه به په قانوني توګه سره د هغه حیوان پر خرڅولو مجبوره کیدای نه سي مګر دیانتا او په اخلاقي توګه سره هغه ته حکم ورکول کیدای سي چي هغه حیوان خرڅ کړي یا د هغه د خوراک او څښاک بندوبست وکړي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د ښځي او اولاد نفقه پر خاوند واجب ده

﴿۳۲۰۰﴾: عَنْ عَائِشَةَ قالت أَنَّ هِنْدَ بِنْتَ عُتْبَةَ قَالَتْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّ أَبَا

د بي بي عائشي ﷺ څخه روایت دی چي د عتبه لور هنده د نبي کریم ﷺ په خدمت کي حاضره سوه او عرض يې وکړ یا رسول الله! (زما خاوند)

سُفْيَانَ رَجُلٌ شَحِيحٌ وَلَيْسَ يُعْطِينِي مَا يَكْفِينِي وَوَلَدِي إِلَّا مَا أَخَذْتُ مِنْهُ

ابو سفیان ډېر بخیل سړی دی ما ته دومره نه راکوي چي زما او زما د زوی د نفقې د اخراجاتو کافي سي که زه د هغه د مال څخه د ضرورت په اندازه یو څه وکاږم

وَهُوَ لَا يَعْلَمُ فَقَالَ خُذِي مَا يَكْفِيكِ وَوَلَدَكِ بِالْمَعْرُوفِ. متفق عليه.

په داسي ډول چي هغه خبر نسي نو اخراجات پوره کیږي ؟(نو ایا دا صورت جائز دی ؟) نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل: د هغه د مال څخه د ضرورت په اندازه اخله او خپل او د خپل زوی د شرعي حقوقو په اندازه يې خرڅوه. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۹\۵۹۷، رقم: ۵۳۶۴، ومسلم ۳\۱۳۳۸، رقم: ۷- ۱۷۱۴.

**تشریح**: د دغه حدیث څخه معلومه سوه چي د ضرورت په اندازه نفقه واجب ده د ټولو علماؤ پر دې اجماع او اتفاق دی، امام نووي رحمه الله وايي چي د دغه حدیث څخه څو مسئلې ثابتیږي ۱: پر سړي باندي د ښځي او نابالغ اولاد (چي د هغه په ذاتي ملکیت کي مال نه وي) نفقه واجب ده، ۲: نفقه د ضرورت او اړتیا په اندازه واجب ده، ۳: د فتوا ورکولو پر وخت یا د یو شرعي

حکم د جاري کولو پر وخت د پردی ښځي خبري اوريدل جائز دي، ۴: د يو چا په باره کي يو داسي خبره بيانول چي هغه يې واوري نو ناخوښي به محسوس کړي دا جائز دي په شرط ددې چي دا بيانول د يو مسئلې د پوښتلو يا فتوا ورکولو په قصد وي، ۵: که پر يو چا باندي يو مالي مطالبه وي او هغه يې نه ادا کوي نو مطالبې والا ته جائز دي چي د هغه سړي د اجازې څخه پرته د هغه د مال څخه د خپل مطالبې په اندازه مال واخلي، ۶: ښځه هم د خپل خاوند د مال په ذريعه پر خپل اولاد باندي مصرف کولو او د هغوی د کفالت کولو ذمه داره ده، ۷: ښځي ته د خپل ضرورت موافق د کور څخه د باندي وتل جائز دي که څه هم خاوند هغې ته صريحا اجازه ورکړې وي يا ښځي ته د هغه د رضا علم وي، ۸: قاضي ته اختيار دی که هغه په يو معامله کي مناسب وګڼي نو محض د خپل علم او معلوماتو په وجه حکم جاري کړي لکه څرنګه چي ددغه حديث څخه معلومه سوه چي رسول الله ﷺ د بي بي هند څخه شاهد ونه غوښتي بلکه د خپل معلومات په وجه يې حکم ورکړ.

### د الله ﷻ ورکړی دولت بايد اول پر خپله کورنۍ مصرف کړل سي

﴿۳۲۰۱﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَعْطَى اللّٰهُ أَحَدَكُمْ خَيْرًا فَلْيَبْدَأْ بِنَفْسِهِ وَأَهْلِ بَيْتِهِ . رواه مسلم .

د حضرت جابر بن سمره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کله چي الله ﷻ په تاسو کي يو چا ته مال ورکړ نو هغه ته پکار ده چي اول هغه په خپل ځان خرڅ کړي او په خپل کورنۍ (يعني په ښځي او کوچنيانو). (مسلم).

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\۱۴۵۳، رقم: ۱۰- ۱۸۲۲.

### د غلام نفقه پر مالک واجب ده

﴿۳۲۰۲﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِلْمَمْلُوكِ طَعَامُهُ وَكِسْوَتُهُ وَلَا يُكَلَّفُ مِنَ الْعَمَلِ إِلَّا مَا يُطِيقُ . رواه مسلم .

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په مالک باندي د غلام ډوډۍ جامه فرض ده او د غلام څخه دي دومره کار اخلي چي هغه يې توان او طاقت ولري.(مسلم)

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\ ۱۲۸۴، رقم: ۴۱- ۱۶۶۲.

**تشريح**: په دغه حديث کي د غلام په باره کي دوې لارښووني دي يو خو دا چي د غلام نفقه د هغه پر مالک واجب ده ځکه مالک بايد چي دهغه خپل غلام ته د هغه د اړتيا په اندازه او د خپل ښار د عام رواج مطابق ډوډۍ او جامې ورکړي يعني په هغه ښار کي چي په عامه توګه غلام ته په کومه اندازه او د کوم معيار ډوډۍ او جامې ورکول کيږي د هغه سره سم دي يې هغه ته هم ورکوي، دوهم هدايت دادی چي خپل غلام ته دي د يو داسي کار حکم نه کوي چي هغه يې نه سي کولای او د هغه د توان او طاقت څخه وتلی وي يا د هغه په وجه د هغه بدن ته تاوان رسيږي ددغه هدايت په ذريعه دا احساس ورکړل سوی دی چي انسان د خپل غلام په باره کي دا حقيقت بايد په ذهن کي ولري چي ځرنګه مالک حقيقي يعني الله تعالی پر خپلو بندګانو باندي د هغوی د طاقت او توان څخه زيات د هيڅ عمل او کار بار نه دی اچولی او هغوی يې د هغه کار پابند کړي دي چي دهغوی د فکر او عمل مطابق وي همدارنګه بندګانو ته هم چي مالک مجازي دي دا پکار دي چي هغوی پر خپل غلام باندي چي د هغوی په ډول انسان دی د هغه د توان او طاقت څخه زيات د کار کولو بار نه واچوي.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه دغه حديث مرفوع نقل سوی دی چي د غلام په باره کي د مالک لپاره درې شيان ضروري دي ۱: کله چي غلام لمونځ کوي نو هغه ته دي د تلوار کولو حکم نه ورکوي، ۲: کله چي هغه خوراک کوي نو هغه دي د خپل يو کار نه وايي، ۳: هغه ته دي دومره خوراک ورکوي چي د هغه نس په ښه ډول موړ سي.

## د غلام سره د ښه چلن حکم

﴿۳۲۰۲﴾: وَعَنْ اَبِيْ ذَرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِخْوَانُكُمْ

د حضرت ابوذر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: ستاسو غلامان ستاسو

جَعَلَهُمُ اللّٰهُ تَحْتَ أَيْدِيكُمْ فَمَنْ جَعَلَ اللّٰهُ أَخَاهُ تَحْتَ يَدِيهِ فَلْيُطْعِمْهُ مِمَّا

ورونه دي چي الله جل جلاله ستاسو تر لاس لاندي کړي دی کوم سړی چي الله جل جلاله د يوه ورور او خادم مالک کړي نو هغه ته پکار ده چي په خپل غلام باندي هغه څه وخوري کوم چي يې

يَأْكُلُ وَلْيُلْبِسْهُ مِمَّا يَلْبَسُ وَلَا يُكَلِّفُهُ مِنَ الْعَمَلِ مَا يَغْلِبُهُ فَإِنْ كَلَّفَهُ مَا يَغْلِبُهُ

فَلْيُعِنْهُ عَلَيْهِ .متفق عليه .

مالک خوري او هغه جامه به وراغوندي کومه چي خپله يې اغوندي او د هغه څخه دي دومره کار نه اخلي کوم چي د هغه په توان کي نه وي او که داسي څه کار د هغه څخه اخلي چي د هغه په توان کي نه وي نو په هغه کي دي ورسره خپله کومک وکړي .(بخاري او مسلم)

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٠\٤٦٥، رقم: ٦٠٥٠، ومسلم ٣\١٢٨٢، رقم: ٣٨- ١٦٦١.

**تشريح**: امام نووي رحمه الله وايي چي د دغه حديث په ذريعه مالک ته دا حکم ورکول دي چي هغه دي خپل غلام ته هغه څه ورکوي کوم چي په خپله يې خوري او هغه دي په اغوندي کوم چي په خپله اغوندي دا د وجوب په توګه نه بلکه د استحباب په توګه دي، پر مالک باندي د هغه غلام د حيثيت سره سم نفقه واجب ده کوم چي په عام رواج کي وي که څه هم هغه د مالک د خوراک او جامو برابر وي يا د هغه څخه کم او زيات وي تر دې که چيري مالک د خپل زهد او تقوا په وجه يا د خپل بخل په وجه په خپل خوراک او جامو کي داسي تنګي کوي چي هغه د خلکو د معيار خلاف وي نو داسي تنګي د غلام په حق کي جائز نه ده .

د حديث د آخري جملې مطلب دا دی چي کوم کار د غلام لپاره مشکل وي او د هغه په پوره کولو کي تکليف وي نو د هغه کار په پوره کولو کي د غلام مرسته کوه که په خپله مرسته ورسره وکړي او يا بل څوک د مرستي کولو لپاره وټاکي ، د ځينو بزرګانو په باره کي نقل سوي دي چي هغوی به پر مېچن باندي په اوړه کولو کي د خپلو مينځو مرسته کول په دې توګه چي د هغه مينځو سره به يې په ګډه ميچن کول .

## د غلام روزي منع کول ګناه ده

﴿٣٢٠٤﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو جَاءَهُ قَهْرَمَانٌ لَهُ فَقَالَ لَهُ أَعْطَيْتَ

د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي هغه ته قهرمان را غلی نو هغه ځيني پوښتنه وکړه چي ده و خپلو غلامانو ته د خوراک سامان ورکړی دی

الرَّقِيقَ قُوتَهُمْ قَالَ لَا قَالَ فَانْطَلِقْ فَأَعْطِهِمْ فَإِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

هغه عرض وکړ يا هغه ورته وويل بيرته ولاړ سه د هغوی د خوراک سامان فورًا ورکړه دا چي

وَسَلَّمَ قَالَ كَفَى بِالْرجل إِثْمًا أَنْ يَحْبِسَ عَمَّنْ يَمْلِكُ قُوتَهُ و في رواية كفى

بالمرء اثما ان یضیع من یقوت . رواہ مسلم .

رسول الله ﷺ فرمایلي دی چې د انسان لپاره دا گناه کافي ده چې د چا روزي د هغه په لاس کي وي چې هغه د هغه روزي ضائع کړي . (مسلم)

**تخریج**: صحیح مسلم ۲\ ۶۹۲، رقم: ۴۰- ۹۹۶.

**د لغاتو حل**: قهرمان: ای وکیل، وهو الخازن والوکیل الحافظ لما تحت یده والقائم بامور الرجل.

## د خپل خادم او مزدور سره په خوراک کولو کي شرم مه کوئ

﴿۳۲۰۵﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَنَعَ

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل : کله چې په تاسو کي یو

لِأَحَدِكُمْ خَادِمُهُ طَعَامَهُ ثُمَّ جَاءَهُ بِهِ وَقَدْ وَلِيَ حَرَّهُ وَدُخَانَهُ فَلْيُقْعِدْهُ مَعَهُ

غلام یو خوراک تیار کړي او مالک ته یې راوړي نو په کومه گرمي او دود چې هغه خوراک تیار کړې وي نو د هغه غوښتنه داده چې خپل مالک یې د ځانه سره کښېنوي

فَلْيَأْكُلْ فَإِنْ كَانَ الطَّعَامُ مَشْفُوهًا قَلِيلًا فَلْيَضَعْ فِي يَدِهِ مِنْهُ أُكْلَةً أَوْ أُكْلَتَيْنِ .

رواہ مسلم .

او د ځان سره یې په وخوري او که خوراک لږ وي او خوړونکي زیات وي نو یو یا دوه نوړئ دي دهغه په لاس کي کښېږدي . (مسلم) .

**تخریج**: صحیح مسلم ۳\ ۱۲۸۴، رقم: ۴۲- ۱۶۶۳.

**د لغاتو حل**: مشفوها: ای کثیرا اکلوه. أکلة: اللقمة: (گوله، مړی).

**تشریح**: د دغه حدیث شریف خلاصه داده چې یو سړي دي د خپلو خادمانو او مزدورانو سره پر یوه دسترخوان باندي په خوراک کولو کي پیغور نه محسوس کوي ځکه چې خادم او مزدور هم د یو انسان او مسلمان کېدو په حیثیت سره د هغه ورور دی ، او بیا په دې کي دا حکمت دئ چې پر یوه دسترخوان باندي چې څومره زیات خلک یو ځای خوراک کوي نو په هغه کي هغومره برکت وي ، په یوه روایت کي فرمایل سوي دي چې خوراک هغه دی چې په هغه کي زیات لاسونه لویږي ، دا خبره باید په ذهن کي وي چې په حدیث کي د خادم او مزدور د ځان سره پر

دسترخوان کښېښول يا د هغه خوراک څخه د لرېيا ډېر وركولو حكم د استحباب په توګه دى.

## غلام ته دوه چنده ثواب

﴿۳۲۰۶﴾: وَعَنِ عَبدِاللهِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ الْعَبْدَ إِذَا نَصَحَ لِسَيِّدِهِ وَأَحْسَنَ عِبَادَةَ اللهِ فَلَهُ أَجْرُهُ مَرَّتَيْنِ . متفق عليه .

د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : كله چي يو غلام په ښه طور سره د خپل مالک خدمت وكړي او د الله جل جلاله عبادت هم په ښه ډول سره كوي نو د هغه لپاره دوه چنده ثواب دى . (بخاري او مسلم)

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۵\ ۱۷۵، رقم: ۲۵۴۶، ومسلم ۳\ ۱۲۸۴، رقم: ۴۶- ۱۶۶۷.

**تشريح**: هغه ته د دوه برابر ثواب تر لاسه كېدو صورت دا وي چي يو ثواب خو د خپل بادار د خدمت په وجه وي او يو ثواب د الله تعالى د عبادت په وجه تر لاسه كيږي، ددې څخه معلومه سوه چي د خپل بادار خيرخواهي يعني د هغه خدمت كول هم عبادت دى بلكه په حقيقت كي هغه هم د الله تعالى عبادت دى ځكه چي د عبادت مطلب دى د الله تعالى د حكم فرمانبرداري كول او د الله تعالى حكم دادى چي د خپل بادار خدمت او خيرخواهي دي وكړل سي ځكه كوم غلام چي د خپل بادار خدمت كوي نو هغه په حقيقت كي د الله تعالى د حكم فرمانبرداري كوي لكه څرنګه چي د مور او پلار خدمت او فرمانبرداري كونكي ته ثواب وركول كيږي چي هغه د مور او پلار د خدمت او طاعت په ذريعه د الله تعالى د حكم فرمانبرداري كوي ، ځيني حضرات ددغه حديث تاويل دا كوي چي غلام ته د هغه پر هر عمل باندي دوه برابر ثواب وركول كيږي.

## د غلام لپاره غوره خبره څه شي ده ؟

﴿۳۲۰۷﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نِعِمَّا لِلْمَمْلُوكِ أَنْ يُتَوَفَّاهُ اللهُ بِحُسْنِ عِبَادَةِ رَبِّهِ وَطَاعَةِ سَيِّدِهِ نِعِمَّا لَهُ . متفق عليه .

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د غلام لپاره تر ټولو څخه بهترينه خبره دا ده چي هغه د الله جل جلاله په عبادت او د خپل مالک په خدمت كي وفات سي . (بخاري او مسلم)

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۵\ ۱۷۵، رقم: ۲۵۴۹، ومسلم ۳\ ۱۲۸۵، رقم: ۴۶- ۱۶۶۷.

## د تښتېدلي غلام لمونځ نه قبلېږي

﴿۳۲۰۸﴾: وَعَنْ جَرِيرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَبَقَ الْعَبْدُ

د حضرت جریر رضی اللہ عنہ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: کله چي یو غلام وتښتي نو د

لَمْ تُقْبَلْ لَهُ صَلَاةٌ وفي رواية عنه قَالَ أَيُّمَا عَبْدٍ أَبَقَ فَقَدْ بَرِئَتْ مِنْهُ الذِّمَّةُ

هغه لمونځ نه قبلېږي او د جریر رضی اللہ عنہ په یو بل روایت کي دا الفاظ دی کوم غلام چي وتښتي نو د هغه څخه د اسلام ذمه داري ختمه سوه

وفي رواية قَالَ أَيُّمَا عَبْدٍ أَبَقَ مِنْ مَوَالِيهِ فَقَدْ كَفَرَ حَتَّى يَرْجِعَ إِلَيْهِمْ. رواه مسلم

او د جریر رضی اللہ عنہ په بل روایت کي دا الفاظ دي کوم غلام چي د خپل مالکانو څخه وتښتي تر څو پوري چي بیرته رانسي هغه کافر سو. (مسلم).

**تخریج**: صحیح مسلم ۱\ ۸۳، رقم: ۱۲۴- ۷۰.

**تشریح**: د هغه څخه د اسلام ذمه داري ختمه سوه: ددې مطلب دادی چي کله غلام په تښتېدو سره دارالحرب ته ولاړ سي او مرتد سي نو د هغه څخه د اسلام ذمه داري ختمه سوه او د هغه د مسلمان په حیثیت سره چي د هغه او د اسلام په مینځ کي کوم عهد او امان وو او د هغه په وجه اسلامي قانون د هغه د سر او مال ضامن وو هغه قطع سو نو د هغه قتل کول جائز سول مګر که چیري هغه د خپلو مالکانو څخه په تښتېدو سره دار الحرب ته نه وي تللی بلکه د مسلمانانو په یو ښار کي وي او مرتد سوی نه وي نو د هغه قتلول جائز نه دي په دغه صورت کي ددغه جملې (د هغه ذمه ختمه سوه) مطلب به دا وي چي د تښتېدو په جرم کي به اسلامي قانون د هغه هیڅ مدافعت نه کوي.

هغه کافر سو: ددې مطلب دادی که چیري هغه تښتېدل حلال وګڼي یعني هغه په دې عقیده سره وتښتېږي چي د مالک څخه تښتېدل څه ګناه نه لري بلکه دا جائز دي نو هغه کافر سو او که چیري هغه تښتېدل حلال ونه ګڼي بیا ددغه جملې مطلب به دا وي چي هغه کفر ته نژدې سو یعني د هغه په کفر کي د داخلېدو بیره ده یا هغه د کافرانو په ډول عمل وکړ یا دا چي هغه د خپل مالک ناشکري وکړه.

## پر غلام د زنا تهمت لګولو مسئله

﴿۳۲۰۹﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا الْقَاسِمِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ قَذَفَ مَمْلُوكَهُ وَهُوَ بَرِيءٌ مِمَّا قَالَ جُلِدَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلَّا أَنْ يَكُونَ كَمَا قَالَ. متفق عليه.

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د ابو قاسم ﷺ څخه دا اورېدلي دي څوک چي په خپل غلام باندي د زنا تهمت ولګوي او غلام د هغه څخه پاک وي نو د قيامت په ورځ به يې مالک په درو ووهل سي که چيري تهمت ويل بې ځايه نه وو نو داسي به نه کيږي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۲\۱۸۵، رقم: ۶۸۵۸، ومسلم ۳\۱۲۸۲.

**تشريح**: مطلب دادی که چيري يو سړی پر خپل غلام باندي د زنا تهمت په دروغو ولګوي نو د هغه په سزا کي که څه هم هغه ته په دنيا کي سزا نه ورکول کيږي مګر په آخرت کي به د ټول مخلوق په مخکي داسي ذليل کړل سي چي په دُرو به ووهل سي، ددې څخه معلومه سوه چي د غلام د عزت دومره خيال ساتل پکار دي لکه څرنګه چي د يو ازاد سړي د عزت او حرمت خيال ساتل کيږي او هغه خلک ډېر ناپوهان دي چي خپلو مزدورانو او غلامانو ته بې ځايه ښکنځل کوي او د آخرت د عذاب څخه نه بيريږي.

## د غلام بېله خطا وهلو کفاره

﴿۳۲۱۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ ضَرَبَ غُلَامًا لَهُ حَدًّا لَمْ يَأْتِهِ أَوْ لَطَمَهُ فَإِنَّ كَفَّارَتَهُ أَنْ يُعْتِقَهُ. رواه مسلم

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اورېدلي دي څوک چي خپل غلام بې ګناه ووهي يا په مخ باندي چپه ورکړي نو د هغه کار کفاره داده چي ازاد يې کړي. (مسلم)

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\۱۲۷۹، رقم: ۳۰-۱۶۵۷.

**تشريح**: بېله وجه د هر چا په چپلاخه وهل حرام دي مګر دلته په خاصه توګه د غلام ذکر سوی دی چي د هغه پر بې ګناه وهلو باندي په چپلاخه وهلو سره تاوان دادی چي هغه غلام ازاد کړي.

﴿۳۲۱۱﴾: وَعَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ قَالَ كُنْتُ أَضْرِبُ غُلَامًا لِي فَسَمِعْتُ

د حضرت ابو مسعود انصاري رضي الله عنه ځخه روايت دی چي ما خپل غلام ووا هه نو ما تر شا دا اواز

مِنْ خَلْفِي صَوْتًا اعْلَمْ أَبَا مَسْعُودٍ لَلّٰهُ أَقْدَرُ عَلَيْكَ مِنْكَ عَلَيْهِ فَالْتَفَتُّ فَإِذَا هُوَ

وا وریدی ابو مسعوده ! اګاه سه ! الله جل جلاله پر تا باندي د دې ځخه زيات قدرت لري ځومره چي

ته پر دغه غلام باندي قدرت لرې ما چي تر شا وکتل نو

رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ هُوَ حُرٌّ لِوَجْهِ اللَّهِ فَقَالَ

أَمَا لَوْ لَمْ تَفْعَلْ لَلَفَحَتْكَ النَّارُ أَوْ لَمَسَّتْكَ النَّارُ . رواه مسلم .

رسول الله صلی الله علیه وسلم وو ما عرض وکړ يا رسول الله! دی د خداي جل جلاله لپاره ازاد دی نو نبي کريم صلی الله علیه وسلم

راته وفرمايل :که تا دی ازاد کړی نه وای نو د دوږخ اور به ته سوځلی وای . (مسلم) .

**تخريج**: صحيح مسلم ۳\ ۱۲۸۱، رقم: ۳۵- ۱۶۵۹.

**تشريح**: د رسول الله صلی الله علیه وسلم د ارشاد مطلب دا وو چي تا د خپل غلام په وهلو سره يوه لويه ګناه کړې ده ، دا ښه سو چي تا هغه ازاد کړی او د هغه ګناه د بار ځخه دي ځان خلاص کړی کنه نو تا هغه ناحقه وهلی دی که ده ستا کوتاهي معاف کړې نه وای نو دده د نه ازادولو په صورت کي به ته په دوږخ کي اچول سوی وای .

امام نووي رحمه الله وايي چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم ددغه ارشاد په ذريعه په اصل کي د خپل مملوک سره د نرمۍ کولو او د هغه سره د حلم معاملې کولو ترغيب ورکړل سوی دی او په دې باره کي مسئله داده چي کوم غلام ووهل سي د هغه ازادول واجب نه دي بلکه مستحب دي او هغه هم په دې اميد چي ازادول په ناحقه د وهلو د ګناه کفاره سي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د اولاد پر ګټه د پلار حق دی

﴿۳۲۱۲﴾: عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ رَجُلًا أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى

حضرت عمرو بن شعيب رضي الله عنه د خپل پلار ه او هغه د خپل پلار ه ځخه روايت کوي چي يو سړی د

اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لِي مَالًا وَإِنَّ وَالِدِي يَحْتَاجُ الى مَالِي قَالَ أَنْتَ وَمَالُكَ

نبي کريم ﷺ په خدمت کي حاضر سو او عرض يې وکړ زما سره مال دی او زما پلار زما د مال

لِوَالِدِكَ إِنَّ أَوْلَادَكُمْ مِنْ أَطْيَبِ كَسْبِكُمْ كُلُوا مِنْ كَسْبِ أَوْلَادِكُمْ . رواه ابوداؤد وابن ماجة .

محتاجه دی رسول الله ﷺ ورته فرمایل : ته او ستا مال دواړه ستا د پلار دي بېشکه چي ستاسو اولاد ستاسو بهترينه ګټه ده د خپل اولاد ګټه خورئ . (ابو داؤد ابن ماجه) .

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\۸۰۱، رقم: ۳۵۳۰، وابن ماجه ۲\۷۶۹، رقم: ۲۲۹۲.

**تشريح**: ته او ستا مال دواړه ستا د پلار دي: ددې مطلب دادی چي څرنګه پر تا باندي د خپل پلار خدمت او فرمانبرداري واجب ده همدارنګه پر تا باندي دا هم واجب دي چي خپل مال پر خپل پلار باندي مصرف کړې او د هغه د ژوند اړتياوي پوره کړې او ستا د پلار لپاره دا جائز ده چي هغه ستا په مال کي تصرف وکړي .

دا حديث ددې خبري دليل دی چي د پلار نفقه پر زوی واجب ده ، ددغه حديث په ضمن کي دا مسئله هم بيانيږي که د يو چا پلار د زوی د مال څخه يو شی پټ کړي (غلا يې کړي) يا د هغه د مينزي سره جماع وکړي نو پر هغه باندي حد نه جاري کيږي.

ستاسو اولاد ستاسو تر ټولو لويه ګټه ده : ددې مطلب دادی چي انسان د محنت او تکليف کولو سره چي څه ګټي په هغه کي تر ټولو حلاله او غوره ګټه د هغه اولاد دي ، اولاد چي څه وګټي هغه د پلار لپاره حلال دي او هغه د پلار په حق کي د خپل ګټي په ډول ده ، اولاد ته د پلار ګټه په دې اعتبار ويل سوي دي چي په اصل کي اولاد د پلار په ذريعه او د هغه د تکليف او فعل په نتيجه کي په وجود راځي .

## د مربي په حق کي د يتيم د مال حکم

﴿۳۲۱۳﴾: وَعَنْهُ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ رَجُلًا أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

حضرت عمرو بن شعيب رضي الله عنه د خپل پلاره او هغه د خپل پلاره څخه روايت کوي يو سړی د نبي

فَقَالَ إِنِّي فَقِيرٌ لَيْسَ لِي شَيْءٌ وَلِي يَتِيمٌ فَقَالَ كُلْ مِنْ مَالِ يَتِيمِكَ غَيْرَ

كريم ﷺ په خدمت كي حاضر سو او عرض يې وكړ يا رسول الله! زه مفلس او فقير يم زما سره هيڅ هم نسته او زما په ذمه باندي يو يتيم كوچنى دى (ايا زه د هغه د مال څخه يې خورم) نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل: د يتيم د مال څخه يې خوره مگر فضول خرڅي مه كوه او مه په

مُسْرِفٍ وَلَا مُبَادِرٍ وَلَا مُتَأَثِّلٍ . رواه بوداؤد والنسائي وابن ماجة .

خرڅولو كي د تلوار څخه كار اخله او مه يې د ځان لپاره مال جمعه كوه . (ابوداؤد نسائي ابن ماجه

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\ ۲۹۲، رقم: ۲۸۷۲، والنسائي ٦\ ۲۵٦، رقم: ۳٦۷۰، وابن ماجه ۲\ ۹۰۷، رقم: ۲۷۱۸.

**د لغاتو حل**: مُبادر: اى مستعجل. (تلواري) مُتاثل: اى غير جامع مالا في مال اليتيم.

**تشريح**: د يتيم كوچني د مال څخه د يتيم روزونكي ته د خپل اړتياوو پوره كولو اجازه رسول الله ﷺ په درو خبرو سره مشروط كړه اول شرط دا چي د هغه د مال څخه يوازي دومره واخيستل سي چي د ژوند د اړتياوو په اندازه وي ، اسراف او د خپل ضرورت او حاجت څخه زيات مصرف كولو سره د هغه يتيم مال دي نه ضائع كيږي، دوهم شرط دا چي د هغه د مال څخه څه اخيستل كيږي نو هغه دي د ضرورت په وخت كي واخيستل سي دديږ بيړي څخه چي كله يتيم بالغ سي نو خپل ټول مال به په خپل قبضه كي واخلي د ضرورت څخه مخكي دي هيڅ شى نه اخلي، دريم شرط دا چي د خپلي اړتيا په نامه د هغه د مال په اخيستلو سره دي د ځان سره نه جمع كوي .

په هر حال د حديث څخه دا معلومه سوه چي د يتيم د روزونكي لپاره دا جائز دي كه چيري هغه غريب وي نو د هغه يتيم د مال څخه دي د خپل ضرورت او اړتيا په اندازه په خپل ځان مصرف كړي مگر كوم مربي چي شتمن وي هغه ته دا جائز نه دي ، دا مسئله د قرآن كريم څخه هم ثابته ده.

## د غلامانو د حق ادا كولو تاكيد

﴿۳۲۱۴﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ فِيْ مَرَضِهِ اَلصَّلَاةَ وَمَا مَلَكَتْ أَيْمَانُكُمْ . رواه البيهقي في شعب الإيمان وروى أحمد وأبو داود عن علي نحوه .

د بي بي ام سلمه رضي الله عنها څخه روايت دى چي نبي كريم ﷺ د خپلي ناروغي په حالت كي وفرمايل: د

لمانځه ډېر زيات خيال ساتئ او د هغو غلامانو او مينځو چي ستاسو په قبضه کي دي . (بيهقي په شعب الايمان کي) خو احمد او ابو داؤد د حضرت علی رضی الله عنه څخه هم په دغه شان نقل کړی دی .

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ٦\ ٣٦٩، رقم: ٨٥٥٣.

**تشريح**: د لمانځه ډېر زيات خيال ساتئ : ددې مطلب دادی چي پر لمانځه باندي همېشتوب اختيار کړئ هيڅ يو لمونځ بېله يو شرعي عذره مه قضاء کوئ او د لمانځه چي کوم حقوق او اداب دي هغه پوره پوره ادا کوئ .

د مينزي او غلام حق دادی چي د هغوی مالک هغوی ته په ماړه نس خوراک ورکړي د حيثيت سره سم هغوی ته جامې ورکړي د ناحق وهلو او بد رد ويلو څخه پرهېز وکړي ، همدارنګه د حيوانانو د حق ادا کولو هم دغه حکم دی چي د کوم چا په ملکيت کي حيوان وي د هغه د خوراک او څښناک بندوبست دي کوي او د هغوی د ناحقه وهلو څخه دي ځان ساتي ، علماء کرام وايي چي د قيامت په ورځ به د ذمي او حيوان خصومت د مسلمانانو د خصومت (دښمنۍ) څخه سخت وي .

## د غلام سره د بد چلن کونکو وعيد

﴿۳۲۱۵﴾: وَعَنْ أَبِي بَكْر الصديق عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ سَيِّئُ الْمَلَكَةِ . رواه الترمذي وابن ماجة .

د حضرت ابو بکر صديق رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل : څوک چي د خپلو ماتحت سره بد چلن کوي هغه په جنت کي نه داخلېږي . (ترمذي ابن ماجه)

**تخريج**: سنن الترمذي ٤\ ٢٩٥، رقم: ١٩٤٦، وابن ماجه ٢\ ١٢١٧، رقم: ٣٦٩١.

## د غلام سره ښه چلن کول د خير او برکت باعث دی

﴿۳۲۱۶﴾: وَعَنْ رَّافِعِ بْنِ مَكِيْثٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ حُسْنُ الْمَلَكَةِ يُمْنٌ وَسُوءُ الْخُلُقِ شُومٌ . رواه ابوداؤد و لم ار في غير المصابيح ما زاد عليه فيه من قوله والصدقة تمنع ميتة السوء والبر زيادة في العمر .

د حضرت رافع بن مکيث رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل : د غلامانو سره ښه

چلن او نیکي د خیر او برکت باعث ده او د غلامانو سره بد اخلاقي د بې برکتی عامل دی. (ابوداؤد) او په مصابیح کي د دې حدیث سره دا الفاظ هم لیکلي دي چي په بل کتاب کي زما تر نظر نه دي تیر سوی او صدقه کول انسان د بد مرګ څخه ساتي او نیکي کول عمر زیاتوي.

**تخریج**: سنن ابي داود ۵\۳۶۱، والمصابیح ۲\۴۷۸، رقم: ۲۵۱۴.

**تشریح**: اکثر داسي کیږي چي کله مالک د خپل غلام سره نیکي او ښه چلن کوي نو هغوی د خپل مالک ډېر تابعدار او خیر خواه کیږي او کوم کار چي هغه ته سپاري هغه یې په پوره شوق او ایمانداری سره تر سره کوي او دا شیان د خیر او برکت باعث کیږي د دې برعکس که چیري یو څوک د خپل غلام سره بد چلن کوي نو د هغه په زړه کي د مالک له خوا د بغض او نفرت جذبات پیدا کیږي او آخر هغوی د خپل مالک د سر او مال د هلاکت او تاوان څخه هم منع نه کوي.

د خراب مرګ څخه یا خو ناڅاپه مرګ مراد دی او یا د توحید او د حق څخه په غفلت سره مړ کېدل مراد دي، ناڅاپه مرګ ځکه خراب مرګ دی چي انسان ناڅاپه د مرګ غېږ ته ولاړ سي نه د حقوق الله او نه د حقوق العباد کي د کوتاهیو د کمۍ پوره کولو موقع تر لاسه کړي او نه د توبه کولو مهلت ورپه برخه سي.

د نیکۍ څخه مراد د مخلوق سره ښه چلن او نیکي کول دي او د خالق طاعت او عبادت هم مراد کېدای سي د نیکۍ په وجه د عمر زیاتېدل حقیقتا هم ممکن دي په دې توګه چي الله تعالی د یو چا عمر معلق کړي چي د دغه بنده عمر دومره کاله دی مګر که چیري هغه نیکي کوي یعني د خپل پروردګار طاعت او عبادت او د مخلوق سره ښه چلن او خیرخواهي کي بوخت وي نو د هغه په عمر کي به هغومره کاله زیاتوب وسي نو د نیکۍ کولو په صورت کي به د هغه عمر هغومره زیات سي.

دا وضاحت د عمر د زیاتوب د حقیقي مفهوم په صورت کي دی او د معنوي مفهوم وضاحت یې دا دی چي د نیکۍ په وجه په عمر کي خیر او برکت تر لاسه کیږي یا نیکۍ کونکي ته د هغه د مرګ څخه وروسته خلک یې په نیکۍ سره یادوي نو په معنوي توګه سره دا هم د عمر زیاتېدل دي.

د روایت په آخر کي د مشکوة مصنف چي کوم اعتراض کړی دی هغه د میرک رحمة الله علیه د تحقیق سره سم د شیخ جزري رحمة الله علیه پر دغه قول باندي ختمیږي چي دغه روایت صاحب مصابیح ځرنګه نقل کړی دی بالکل همدا سي امام احمد رحمة الله علیه هم روایت کړی دی.

## كه غلام د خداى روى دركړى نو خپل لاس ودروئ

﴿۳۲۱۷﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا ضَرَبَ

د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: كله چي په تاسو كي يو

أَحَدُكُمْ خَادِمَهُ فَذَكَرَ اللَّهَ فَارْفَعُوا أَيْدِيَكُمْ. رواه الترمذي و البيهقي في شعب الايمان لكن عنده فليمسك بدل فارفعوا ايديكم.

څوک خپل غلام وهي او هغه و تاته خداي تعالي وسيله کړي يا د خداي تعالي په نوم باندي معافي وغواړي نو خپل لاس ځيني پورته کړئ او د غلام وهل پرېږدئ .(ترمذي د بيهقي په نيزد)فارفعوا ايديكم پر ځاي : فليمسک راغلي دى .

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۲۹۷، رقم: ۱۹۵۰، البيهقي في شعب الايمن ۶\۳۷۷، رقم: ۸۵۸۴.

**تشريح**: علامه طيبي رحمة الله عليه وايي چي د (ته خپل لاس منع کړه) ددې تعلق د هغه صورت سره دى كله چي يو څوک خپل غلام د ادب لپاره وهي او که چيري پر هغه حد جاري کوي يعني د شراب څښنلو يا پريو چا باندي د درواغو تهمت ويلو په سزا کي هغه وهل کيږي نو بيا دي لاس نه منع کوي بلکه حد دي پوره کړي .

## کم عمره کوچنی د مور څخه مه بېلوئ

﴿۳۲۱۸﴾: وَعَنْ أَبِي أَيُّوبَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ

د حضرت ابو ايوب رضي الله عنه څخه روايت دى چي ما د رسول الله ﷺ اورېدلي دي څوک چي د مور او

مَنْ فَرَّقَ بَيْنَ وَالِدَةٍ وَوَلَدِهَا فَرَّقَ اللَّهُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ أَحِبَّتِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. رواه الترمذي والدارمي

زوى په مينځ کي جلاوالي راولي (يعني د مينزي زوى خرڅ يا هبه کړي او د هغې څخه يې جلا کړي )نو الله جل جلاله به د قيامت په ورځ د هغه او د هغه د قريبانو په مينځ کي جلاوالي راولي .(ترمذي دارمي).

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۵۸۰، رقم: ۱۲۸۳، والدارمي ۲\۲۹۹، رقم: ۲۴۷۹.

**تشریح**: د مور او زوی څخه مراد مینزه او د هغې زوی دی، همدارنګه د جلا والي مطلب دادی چي یو څوک یو مینزه خرڅه کړي یا هغه یو چا ته تحفه کړي او کوچنی د ځان سره وساتي یا کوچنی خرڅ کړي یا یې تحفه کړي او د هغه مور د ځان سره وساتي، که یو څوک مور او زوی د یو بل څخه جلا کړي نو د قیامت په ورځ به هغه په موقف کي چیري چي ټول مخلوق سره د خپلو قریبانو جمع وي او خلک به خپل پروردګار ته د یو بل شفاعت کوي نو الله تعالی به هغه سړی او د هغه قریبان مثلاً مور، پلار یا د اولاد وغیره په مینځ کي جلا والی راولي.

علماء کرام وایي چي په دغه حدیث کي یوازي د مور او زوی ذکر محض اتفاقي دی کنه نو هر کم عمره غلام او د هغه ذي رحم قریبان لکه مور، پلار، نیکه، انا، ورور، خور یا داسي نورو په مینځ کي د جلا والي دا حکم دی، د حنفیه په نزد د دوو وړونو د یو بل څخه جلا کول جائز دي. د ذکر سوي وضاحت څخه دا خبره ثابته سوه چي د کوچني په بندي کولو سره د لوی استثناء وسوه یعني که لوی عمر والا غلام د هغه د مور یا د هغه پلار یا بل قریب څخه جلا کړل سي نو جائز دي اوس سوال دا پیدا کیږي چي د لوی تعریف څه شي دی؟ نو په دې باره کي د علماؤ اختلافي قولونه دي چي کوم غلام ته د کم عمر والا ویل کیږي د امام شافعي رحمة الله علیه په نزد اووه کاله یا ته کاله عمر والا ته لوی ویل کیږي حال دا چي د امام ابو حنیفة رحمة الله علیه مذهب دادی چي څوک بالغ سي هغه ته لوی ویل کیږي او د امام ابو حنیفة رحمة الله علیه او امام محمد رحمة الله علیه په نزد کوچنی او د هغه قریب د یو بل څخه په جلا کولو سره خرڅول مکروه دي حال دا چي امام ابو یوسف رحمة الله علیه وایي که د هغه دواړو یعني کوچني او د هغه په قریبانو کي د ولادت قرابت وي نو په دغه صورت کي د هغه دواړو په جلا کولو سره خرڅول جائز نه دي او د هغوی قول دا هم دی چي د ولادت د قرابت د استثناء څخه پرته د ټولو قریبانو په باره کي دا حکم دی.

﴿۳۲۱۹﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ وَهَبَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غُلَامَيْنِ

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم و ماته دوه غلامان راکړل چي په خپلو

أَخَوَيْنِ فَبِعْتُ أَحَدَهُمَا فَقَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا عَلِيُّ مَا

کي وړونه وه ما په هغوی کي یو خرڅ کړ بیا نبي کریم صلی الله علیه وسلم زما څخه پوښتنه وکړه اې علي! ستا

فَعَلَ غُلَامُكَ فَأَخْبَرْتُهُ فَقَالَ رُدَّهُ رُدَّهُ. رواه الترمذي وابن ماجة.

هغه دويم غلام څه سو؟ نو ما ورته واقعه بيان کړه نو نبي کريم ﷺ راته وفرمايل: اې علي! هغه بيرته را وله. (ترمذي ابن ماجه).

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\ ۵۸۰، رقم: ۱۲۸۴. وابن ماجه ۲\ ۷۵۵، رقم: ۲۲۴۹.

**تشريح**: هغه بېرته را وله: مطلب دادی چي تا کومه بيع کړې ده هغه فسخ کړه او هغه غلام ځان ته را وله چي د دواړو په مينځ کي جلاوالی واقع نه سي د دغه جملې په دوه واره ويلو کي دې ته اشاره ده چي کوم حکم درکول سوی دی هغه د وجوب په توګه دی او بيع مکروه تحريمي ده د دغه حديث څخه معلومه سوه چي د يو بل د جلاوالي حکم يوازي د مور او زامنو سره خاص نه دی.

﴿۳۲۲۰﴾: وَعَنْهُ أَنَّهُ فَرَّقَ بَيْنَ جَارِيَةٍ وَّوَلَدِهَا فَنَهَاهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذٰلِكَ فَرَدَّ الْبَيْعَ. رواه أبو داود منقطعا

د حضرت علي ﷛ څخه روايت دی چي هغه د يوې مينځي او د هغې د کوچني په مينځ کي جلاوالي راوستی يعني په دواړو کي يې يو خرڅ کړ رسول الله ﷺ د دې څخه منعه وکړه نو هغه بيع يې بيرته فسخ کړه. (ابوداؤد).

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\ ۱۴۴، رقم: ۲۶۹۶.

**تشريح**: ذکر سوي حديثونه د امام ابويوسف ﷫ د مذهب دليل دی چي کوچنی غلام او د هغه مور يا د هغه پلار د يو بل څخه جلا کول او خرڅول نا جائز دي.

## پر غلام باندي د احسان کولو اجر

﴿۳۲۲۱﴾: وَعَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ثَلَاثٌ مَنْ كُنَّ فِيهِ يسر الله حتفه وَأَدْخَلَهُ جَنَّتَهُ رِفْقٌ بِالضَّعِيفِ وَشَفَقَةٌ عَلَى الْوَالِدَيْنِ وَإِحْسَانٌ إِلَى الْمَمْلُوكِ. رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب.

د حضرت جابر ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: که په چا کي دا درې خبري پيدا سوې نو الله ﷻ به پر هغه باندي مرګ اسانه کړي او هغه به خپل جنت ته داخل کړي (۱): يو د کمزور او نادار سره نرمي کول. (۲): پر مور او پلار باندي شفقت کول. (۳): د غلامانو سره احسان کول. (ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دی).

**تخریج**: سنن الترمذي ۴\۵٦٦، رقم: ۲۴۹۴.

**تشریح**: د ضعیف او کمزوري څخه هر هغه څوک مراد دی چي هغه د بدن په اعتبار ضعیف او کمزوری وي یا په مالي حیثیت سره کمزوری وي.

د احسان کولو مطلب دادی چي پر مالک باندي د هغه د غلام څه چي واجب وي تر هغه زیات د هغه سره ښه چلن وکړي.

### لمونځ گزار غلام مه وهئ

﴿۳۲۲۲﴾: وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهَبَ لِعَلِيٍّ

د حضرت ابو امامه رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ و حضرت علي رضي الله عنه ته یو غلام هبه کړ

غُلَامًا فَقَالَ لَا تَضْرِبْهُ فَإِنِّيْ نُهِيْتُ عَنْ ضَرْبِ أَهْلِ الصَّلَاةِ وَقَدْ رَأَيْتُهُ يُصَلِّيْ.

چي دی به نه وهې ځکه چي زه د لمونځ کونکي د وهلو څخه منعه سوی یم او ما دا غلام په لمونځ کولو باندي لیدلی دی.

هذا لفظ المصابیح وفي المجتبی للدارقطني أَنَّ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ نَهَانَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ضَرْبِ الْمُصَلِّيْنَ.

(او په مصابیح کي دا الفاظ دي) مگر په مجتبي دار قطني کي د عمر رضي الله عنه څخه نقل سوی دي چي هغه وویل چي نبي کریم ﷺ موږ د لمونځ کونکي د وهلو څخه منعه کړی یو.

**تخریج**: المصابیح ۲\۴۸۰، رقم: ۲۵۲۰.

**تشریح**: د لمونځ کونکو د وهلو څخه منع د الله تعالی په نزد د هغوی د شرف او فضیلت په وجه او د مخلوق په مینځ کي د هغوی د عزت او وقار د لحاظ ساتلو په وجه دي.

علامه طیبي رحمة الله علیه دلته دا نکته بیان کړې ده چي کله الله تعالی په دنیا کي د لمونځ کونکو د وهلو څخه منع فرمایلې ده نو د هغه د بې پایه فضل او کرم څخه امید دی چي هغه به په آخرت کي هغوي په عذاب کي په اخته کولو سره ذلیل او خوار نه کړي انشاء الله.

### د مملوک د خطاوو معاف کولو حکم

﴿۳۲۲۳﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبد الله بن عمر رضی الله عنه څخه روایت دی چي یو سړی د نبي کریم ﷺ په خدمت کي حاضر

فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ كَمْ نَعْفُو عَنِ الْخَادِمِ فَسكت ثُمَّ أَعَادَ عَلَيْهِ الْكَلَامَ

سو او عرض يې وکړ یا رسول الله! موږ د خپلو غلامانو غلطیاني تر کومه اندازې پوري ور

فَصَمَتَ فَلَمَّا كَانَت الثَّالِثَة قَالَ اعْفُوا عَنْهُ فِي كُلِّ يَوْمٍ سَبْعِينَ مَرَّةً. رواه ابوداؤد و رواه الترمذي عن عبدالله بن عمرو.

معاف کړو؟ په دې اوریدو سره نبي کریم ﷺ خاموشه سو هغه سړی د دویم وار لپاره پوښتنه ئېني وکړه مګر نبي کریم ﷺ بیا هم جواب ورنکړ په دریم وریې پوښتنه وکړه نو نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل: د خپل غلام غلطي هره ورځ اویا واره ور معافوه. (ابو داؤد ترمذي)

**تخریج**: سنن ابي داود ۵\۳۶۲، رقم: ۵۱۶۴.

**تشریح**: د اوویا واره څخه دا خاص عدد مراد نه دی بلکه د عربو په نزد د یو شي زیاتوب او کثرت بیانولو لپاره په عامه توګه د اوویا عدد ذکر کیږي، د رسول الله ﷺ مقصد هم دا واضح کول دي چي د هغوی خطاوي زیات معاف کړل سي.

د سوال کونکي پر پوښتنه باندي د رسول الله ﷺ پټه خوله کېدل د سوال د نزاکت په وجه وو چي عفو خو مطلقا مستحب او غوره ده نه دا چي د هغه په یو خاص عدد سره مقید کول او دا هم ممکن ده چي رسول الله ﷺ د وحي په انتظار کي پټه خوله سوی وي.

## د مملوک په اړه یو هدایت

﴿۳۲۲۴﴾: وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ لَاءَمَكُمْ

د حضرت ابو ذر رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: ستاسو په غلامانو کي چي

مِنْ مَمْلُوكِيكُمْ فَأَطْعِمُوا مِمَّا تَأْكُلُونَ وَاكْسُوهُ مِمَّا تكسون وَمَنْ لَا يُلَائِمُكُمْ

کوم غلام ستاسو د طبیعت کارکوي نو په هغه باندي هغه څه خوری کوم چي تاسو يې خورئ او هغه کالي ورباندي اغوندئ کوم چي تاسو يې اغوندئ او کوم غلام چي ستاسو د طبیعت کار نه کوي نو هغه ته تکلیف مه ورکوئ

مِنْهُمْ فَبِيعُوهُ وَلَا تُعَذِّبُوا خَلْقَ اللّٰهِ. رواه احمد و ابوداؤد.

بلکه خرڅ يې کړئ د خداي تعالي و مخلوق ته تکليف ورکول صحيح کار نه دی .احمد ابو داؤد

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۵\۱٦٨، وابوداود ۵\۳۵۹، رقم: ۵۱۵۷.

## د حيوانانو سره د ښه چلن کولو حکم

﴿۳۲۲۵﴾: وَعَنْ سَهْلِ ابْنِ الْحَنْظَلِيَّةِ قَالَ مَرَّ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت سهل بن حنظليه رضی الله عنه څخه روايت دی رسول الله ﷺ يو اوښ وليدی چي د هغه شا د

بِبَعِيرٍ قَدْ لَحِقَ ظَهْرُهُ بِبَطْنِهِ فَقَالَ اتَّقُوا اللّٰهَ فِي هٰذِهِ الْبَهَائِمِ الْمُعْجَمَةِ

فَارْكَبُوهَا صَالِحَةً واتركوها صالحة . رواه ابوداؤد .

نس سره مښتي وه (يعني ډېر وږي او تږي وو کار ورڅخه زيات اخيستل کېدی چي د هغه له وجي زيات کمزوره سوی وو) نبي کريم ﷺ وفرمايل: په دې بې زبانه حيوان باندي رحم کوئ او دخدايه څخه و بېرېږئ په دوی باندي په هغه حالت کي سپرېږئ چي د سپرتيا قابله وي او پرېږدئ يې چي زيات ستړی نه وي . (ابوداؤد) .

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\۴۹، رقم: ۲۵۴۸.

**تشريح**: په بې زبانه حيوانانو رحم کوئ او د خدايه څخه و بيرېږئ : ددې مطلب دادی چي هغوی پر وينا کولو باندي قادر نه دي چي د خپل لوږي او تندي حال خپل مالک ته بيان کړي ځکه د هغوی د واښو او اوبو په ورکولو کي کوتاهي مه کوئ ، دا ددې خبري دليل دی چي د حيوانانو خوراک او اوبه د هغوی پر مالکانو واجب دي .

پر هغوی باندي په داسي حالت کي سپرتيا مه کوئ : ددغه جملې په ذريعه د خوراک او څښاک د ورکولو ترغيب دی چي د هغوی په خوراک او څښاک .کي کوتاهي مه کوئ تر څو هغوی قوي او د سپرتيا وړ سي او کله چي ستړي کېدو ته نژدې سي نو هغوی پرېږدئ کله چي واښه او اوبه وڅښي او طاقت پکښي راسي نو د هغه څخه وروسته پر هغوی سپرتيا کوئ يا بار باندي وړئ ځکه چي په داسي کولو سره حيوانان غځېږي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د يتيم د مال په اړه د الله جل جلاله قول

﴿۳۲۲۶﴾: عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَمَّا نزل قوله تعالى { وَلَا تَقْرَبُوا مَالَ الْيَتِيمِ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی کوم وخت چي الله جل جلاله دا فرمان نازل کړ ولاتقربوا مال

إِلَّا بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ }وَ قوله تعالى { إِنَّ الَّذِينَ يَأْكُلُونَ أَمْوَالَ الْيَتَامَى

اليتيم الا بالتي هي احسن (د يتيم و مال ته مه نژدې کيږئ مګر په هغه طريقه سره چي هغه نيکه وي) او د الله جل جلاله دا قول : ان الذين .......ظلما : (کوم خلک چي د يتيمانو مال په ظلم سره

ظُلْمًا } الْآيَةَ انْطَلَقَ مَنْ كَانَ عِنْدَهُ يَتِيمٌ فَعَزَلَ طَعَامَهُ مِنْ طَعَامِهِ وَشَرَابَهُ

خوري) نو د کومو خلکو تر نګراني لاندي چي کوم کوچنيان وه هغوی سخت احتياط شروع کړی د هغوی خوراکي مواد يې د خپلو خوراکي موادو څخه جلا کړه او خپل د څښنلو شيان يې

مِنْ شَرَابِهِ فاذا فضل مِنْ طَعَامِ اليتيم وشرابه شي حبس لَهُ حَتَّى يَأْكُلَهُ أَوْ

د هغوی د څښنلو د شيانو څخه جلا کړه او کومه خوراکه چي به د يتيمانو څخه پاته سوه نو هغه به يې د دويم وار لپاره په يتيمانو خوړل او يا به يې

يَفْسُدَ فَاشْتَدَّ ذَلِكَ عَلَيْهِمْ فَذَكَرُوا ذَلِكَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

خيرات کړه دا خبره د يتيمانو د سرپرستانو لپاره تکليف سوه نو هغوی و رسول الله صلى الله عليه وسلم ته د دې

فَأَنْزَلَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ { وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الْيَتَامَى قُلْ إِصْلَاحٌ لَهُمْ خَيْرٌ وَإِنْ

ذکر وکړ نو په دې معامله الله جل جلاله دا حکم نازل کړ : ويسئلونک .....فاخوانکم . (اې محمده! ستا څخه خلک د يتيمانو مسئلې پوښتي د هغوی په اړه ورته ووايه چي د هغوی مال جلا په ديانت سره اېښودل بهتره ده او که تاسو د هغوی مال د خپلو سره يوځای کوئ نو هغوی ستاسو

تُخَالِطُوهُمْ فَإِخْوَانُكُمْ } فَخَلَطُوا طَعَامَهُمْ بِطَعَامِهِمْ وَشَرَابَهُمْ بِشَرَابِهِمْ . رواه ابوداؤد والنسائي .

ورونه دي د دواړو د مال په یو ځای کېدو سره که په دیانت سره خرڅ سي نو په دې کي څه حرج نسته.) د دې ایت په نازلېدو خلکو د یتیمانو خوراک چیښاک د خپل خوراک او چیښاک سره یو ځای کړ. (ابوداؤد نسائي).

**تخریج**: سنن ابي داود ۳\۲۹۱، رقم: ۲۸۷۱، والنسائي ۶\۲۵۶، رقم: ۳۶۷۱.

**تشریح**: په حدیث شریف کي ذکر سوی دوهم آیت کریمه دادی:

إِنَّ الَّذِينَ يَأْكُلُونَ أَمْوَالَ الْيَتَامَى ظُلْمًا إِنَّمَا يَأْكُلُونَ فِي بُطُونِهِمْ نَارًا وَسَيَصْلَوْنَ سَعِيرًا. سورة النساء

ژباړه: بېله شکه کوم خلک چي د یتیمانو مال په ظلم سره خوري هغوی په اصل کي په خپل نس کي د دوږخ اور اچوي او هغوی به ډېر ژر په تاوده اور کي داخل سي.

په حدیث شریف کي ذکر سوی آخري آیت کریمه داسي دی:

وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الْيَتَامَى قُلْ إِصْلَاحٌ لَّهُمْ خَيْرٌ وَإِنْ تُخَالِطُوهُمْ فَإِخْوَانُكُمْ وَاللَّهُ يَعْلَمُ الْمُفْسِدَ مِنَ الْمُصْلِحِ وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَأَعْنَتَكُمْ. سورة البقرة

ژباړه: او پوښتنه کوي ستا څخه د یتیمانو (د جلا کولو) په باره کي نو هغوی ته ووایه چي د هغوی د مصلحت رعایت کول زیات غوره دي که تاسو د هغوی سره مصرف شامل کړئ او هغه کوچنیان ستاسو (دیني) وروڼه دي او الله تعالی مصلحت ضائع کونکي او د مصلحت رعایت کونکي جلا جلا پیژني او که الله تعالی غوښتلای نو د سخت قانون په ټاکلو سره به یې تاسو په مصیبت کي اچولي واست.

د حدیث خلاصه داده چي د یتیمانو د مال په باره کي د قرآن کریم د ذکر سوي هدایت سره سم د یتیمانو روزونکو او څارنکو سخت احتیاط کول شروع کړل او د یتیمانو مال یې د خپل مال او سامان څخه د جلاکولو په وجه نه یوازي دا چي د ذمه دارو په مشکلاتو کي زیاتوب وسو بلکه د یتیمانو د مال تاوان هم شروع سو نو د هغه روزونکو پر وینا الله تعالی دا اجازه ورکړه چي د یتیمانو روزونکي د یتیمانو مال او سامان د خپل مال او سامان سره یو ځای کولای سي.

والله یعلم المفسد ...الخ: د دغه آیت کریمه په ذریعه دې ته اشاره ده چي د هغوی مال د خپل مال سره ګډ کړئ مګر په هر حال د هغوی خیر خواه او همدرد اوسئ خپل نیت مه خرابوئ د هغوی مال ته په چم سره تاوان مه رسوئ ځکه چي الله تعالی د مصلحت رعایت کونکي او نه رعایت کونکي ډېر ښه پېژني که یو روزونکی په بدنیتۍ او بدخواهۍ سره د یتیم په مال کي تصرف وکړي نو هغه ته به سخته سزا ورکړل سي.

نقل سوي دي چي د امام محمد رحمة الله عليه يو شاګرد وفات سو نو د هغه د کتابو په پلورلو سره د هغه د کفن او ښخولو بندوبست وکړل سي ، خلکو وويل چي ستا سو شاګرد خو ددې وصيت نه وو کړی نو تاسو داسي ولي وکړل ؟ امام محمد رحمة الله عليه په جواب کي دغه آيت کريمه وو ايه : والله يعلم المفسد من المصلح ...الخ .

## د پلار او زوی او دوو وروڼو په مينځ کي بېلوالی مه راولئ

﴿۳۲۲۷﴾: وَعَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ لَعَنَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ فَرَّقَ بَيْنَ الْوَالِدِ وَوَلَدِهِ وَبَيْنَ الْأَخِ وَبَيْنَ أَخِيهِ . رواه ابن ماجة والدار قطني .

د ابو موسى رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله صلى الله عليه وسلم په هغه سړي باندي لعنت ويلې دی چي د پلار او د زوی په مينځ کي جلاوالي راولي او يا دوه وروڼه سره جلا کوي . (ابن ماجه دار قطنی)

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\۷۵۶، رقم: ۲۲۵۰، والدار قطني ۳\۶۷، رقم: ۲۵۵.

**تشريح**: د جلاوالي راويستلو څخه مراد په دواړو کي د يو خرڅول يا تحفه کول او يا داسي نور دي په شرط ددې چي يو زوی يا ورور کم عمره وي ، ددې تفصيل د ابويوب رضي الله عنه د روايت په تشريح کي تېر سوی دی ، او يا د جلاوالي مطلب دا هم کېدای سي چي د يوه پلار او زوی يا دوو وروڼو په مينځ کي ناراضګي پيدا کړل سي .

﴿۳۲۲۸﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أُتِيَ بِالسَّبْيِ أَعْطَى أَهْلَ الْبَيْتِ جَمِيعًا كَرَاهِيَةَ أَنْ يُفَرِّقَ بَيْنَهُمْ . رواه ابن ماجة

د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چي کله رسول الله صلى الله عليه وسلم ته به د يو کور قيديان راوستل سول نو هغوی ټول به يې و يوه سړي ته سپارل د دې لپاره چي نبي کريم صلى الله عليه وسلم د هغوی په مينځ کي جلاوالي راوستل بد ګڼل . (ابن ماجه)

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\۷۵۵، رقم: ۲۲۴۸.

## بد خلک څوک دي؟

﴿۳۲۲۹﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَلَا أُنَبِّئُكُمْ

بِشَرَارِكُمْ ؟ اَلَّذِيْ يَأْكُلُ وَحْدَهُ وَيَجْلِدُ عَبْدَهُ وَيَمْنَعُ رِفْدَهُ. رواه رزين

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ايا زه تاسو د هغو خلکو څخه اګاه کړم چي په تاسو کي ډېر بد دي ؟ دا هغه خلک دي چي په ځان يې خوري او غلامان وهي او چاته خيرات نه ورکوي . (رزين) .

**تخريج**: رواه رزين.

**د لغاتو حل**: رِفدَه: اى عطيته عن مستحقها. (ورکړه)

**تشريح**: په دغه حديث کي د يو څو د اسي شيانو ذکر سوی دی کوم چي ناخوښه او خراب دي او دغه شيان چي د کومو خلکو عادت وي هغه خلک خراب او ناخوښه وي، د ټولو څخه په جلا کېدو خوراک کول خراب کار دی خلاصه دا چي کوم خلک بد او بخيل دي هغوی خراب دي .

په جامع صغير کي ابن عساکر د حضرت معاويه رضي الله عنه څخه دا روايت نقل کړی دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ايا زه تاسو ته دا ونه ښيم چي په خلکو کي څوک خراب دي ؟ خراب سړی هغه دی چي خوراک يوازي کوي ، چا ته په بخښني او ورکړي سره ګټه نه رسوي ، يوازي سفر کوي او خپل غلام په ناحقه وهي ، او ايا زه تاسو ته دا ونه ښيم چي تر هغه خراب سړی څوک دی ؟ تر هغه خراب سړی هغه دی چي د هغه د شر او فتنې څخه خلک بيرېږي او د هغه څخه د هيڅ خير اميد نه لري، او ايا زه تاسو ته تر هغه هم بد سړی ونه ښيم ؟ تر هغه بد سړی هغه دی چي خپل آخرت د دنيا په عوض کي خرڅ کړي ، او ايا زه تاسو ته دا ونه ښيم چي تر دغه هم زيات خراب سړی څوک دی ؟ تر دغه هم زيات خراب سړی هغه دی چي د دين په ذريعه دنيا ګټي .

## غلامان د خپل اولاد او ورور په ډول وساتئ

﴿۳۲۳۰﴾ : وَعَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا

د حضرت ابو بکر صديق رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

يَدْخُلُ الْجَنَّةَ سَيِّئُ الْمَلَكَةِ قَالُوا يَا رَسُولَ اللهِ أَلَيْسَ أَخْبَرْتَنَا أَنَّ هٰذِهِ الْأُمَّةَ

څوک چي د خپل مملوک (غلام او مينزه ) سره بد چلن کوي هغه په جنت کي نه دا خليږي اصحابو کرامو عرض وکړ يا رسول الله! ايا تاسو و موږ ته نه دي فرمايلي چي ستاسو په دې

أَكْثَرُ الْأُمَمِ مَمْلُوكِينَ وَيَتَامَى قَالَ نَعَمْ فَأَكْرِمُوهُمْ كَكَرَامَةِ أَوْلَادِكُمْ

امت كي به تر ټولو امتو زيات غلامان او يتيمان وي ؟(ايا د دومره كثرت په حالت كي د هر يوه سره په ښو سره چلن كول ممكن دى؟) نبي كريم ﷺ وفرمايل: هو ! تاسو د هغوى سره داسي چلن كوئ ځنګه چي يې د خپلو اولادو سره كوئ

وَأَطْعِمُوهُمْ مِمَّا تَأْكُلُونَ قَالُوا فَمَا تَنْفَعُنَا فِي الدُّنْيَا قَالَ فَرَسٌ تَرْتَبِطُهُ تُقَاتِلُ

په هغوى باندي هغه څه خورئ څه چي خپله خورئ اصحابو كرامو عرض وكړ موږ ته په دنيا كي خير رسونكي كوم شى دى؟ نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل: هغه آس چي تاسو د ښمن د

عَلَيْهِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَمملوك يَكْفِيكَ فَإِذَا صَلَّى فَهُوَ أَخُوكَ . رواه ابن ماجة .

جګړې لپاره د ځانو سره تړلى وي او هغه غلام چي تا ته د لمانځه او عبادت لپاره وخت در كړي او ستا كارونه و سر ته رسوي او كله چي ستاسو غلام لمونځ كوي نو هغه ستاسو ورور دى . (ابن ماجه) .

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\ ۱۲۱۷، رقم: ۳۶۹۱.

**تشريح**: په امت كي به مينځي، غلامان او يتيمان ډېر زيات وي: د دې سبب دا دى چي كله جهاد ډېر سي نو كفار به ډېر بنديان كيږي او د جهاد په كثرت سره به مسلمانان هم شهيدان كيږي او كله چي مسلمانان شهيدان كيږي نو د هغوى ماشومان به يتيمان سي .

==========

# بَابُ بُلُوْغِ الصَّغِيْرِ وَ حِضَانَتِهِ فِي الصِّغْرِ

## ( د نابالغه كوچنيانو د بلوغ او په وړكتوب كي د هغوى د روزني بيان )

په دغه باب كي دا بيان كيږي چي د هلك او انجلۍ د بالغ كېدو نښه او حد څه شي دى، او دا چي د كوچني روزنه د چا پر ذمه ده ؟

**د بلوغ نښه او حد** : د هلک د بالغ كېدو نښه داده چي هغه ته احتلام وسي او په هغه كي د ښځي د حامله كېدو صلاحيت پيدا سي او انزال كيږي، همدارنګه د انجلۍ د بالغ كېدو نښه داده چي هغې ته مياشتنۍ ناروغۍ (حيض) راځي احتلام ورته كيږي او د هغې حمل كيداى سي، كه چيري دا نښي نه وي نو بيا كله چي د هلک او انجلۍ دواړو عمر پنځلس كاله سي نو

هغوی د بالغ په حکم کي داخل دي، فتوا پر همدغه قول ده ، د هلک د بالغ کېدو کمه وخت دوولس کاله دی او د انجلۍ د بالغ کېدو کم وخت نهه کاله دی .
که هلک او انجلۍ بالغ کېدو ته نژدې وي او هغوی دا ووايي چي موږ بالغ سوي يو نو د هغوی د وارو خبره به صحيح ګڼل کيږي او هغوی دواړه به د بالغ په حکم کي وي .
**د کوچني د روزني حق د چا دی** ؟ د کوچني د روزني حق تر ټولو زيات پر مور دی که هغه د قائم کېدو په حالت کي وي يا هغې ته طلاق ورکړل سوی وي مګر که چيري مور مرتده يا بدکاره وي نو بيا به د هغې تر ټولو زيات حق نه وي ، که چيري مور د طلاق څخه وروسته د کوچني د روزني څخه انکار وکړي نو صحيح خبره داده چي هغه به نه مجبوره کيږي ځکه کيدای سي چي هغه عاجزه وي، مګر د هغه کوچني ذي رحم قريب چي د مور څخه علاوه نه وي نو د کوچني د ضائع کېدو د ساتني لپاره مور پر روزنه کولو باندي مجبوره کيدای سي ، که چيري مور (د خاوند د وفات يا طلاق څخه وروسته) د هغه کوچني د غير محرم سره واده وکړي نو بيا د هغه کوچني روزنه تر ټولو زيات د هغې حق نه دی او که چيري هغه د يو محرم سره واده وکړي مثلا د کوچني د اکا سره يې نکاح کړې وي نو په دغه صورت کي د هغه حق نه ساقط کيږي همدارنګه که چيري مور مخکي د يو غير محرم سره نکاح وکړي او د هغه په وجه د هغه حق ساقط سو مګر بيا مور د يو محرم سره واده وکړ نو اوس به هغه ته د روزني تر ټولو زيات حق د مور وي .
که د کوچني مور د روزني حق نه لري په دې وجه چي هغې د غير محرم سره واده کړی وي يا مرتده سوې وي يا مړه سوې وي نو بيا د هغه کوچني د روزني حق تر ټولو زيات د انا (د مور د مور) وي که چيري انا نه وي نو د هغه څخه پورته درجې والا ته به حق وي ، د انا څخه وروسته د روزني تر ټولو زيات حق انا (د پلار مور) ته دی که چيري انا هم نه وي نو د روزني تر ټولو زيات حق به د هغه کوچني حقيقي خور او د هغه څخه وروسته د اخيافي خور او د هغه څخه وروسته به د ميريزي خور وي او که چيري په هغوی کي هم څوک نه وي يا د روزني اهليت نه وي نو بيا د کوچني د روزني تر ټولو زيات حق د کوچني د خاله او د هغه څخه وروسته د کوچني د عمه دی او خورزه به د وريرې او وريره به د خاله څخه غوره وي .
د روزني د حق په باره کي چي د کومو قريبانو ذکر سوی دی د هغوی ازاد کېدل شرط دي نو مينزي او ام ولد د روزني هيڅ حق نه سته مګر ذميه د مسلماني په حکم کي ده چي ذميه ته هم د روزني حق حاصل دی په شرط د دې چي د دين د پوهي عمر ته نه وي رسيدلې که چيري داسي هيڅ يو ښځه نه وي چي هغې ته د روزني حق حاصل وي نو بيا د هغه کوچني روزنه به د عصباتو

حق وي او د هغوی روزنه به پر هغوی وي کوم چي مېراث تر لاسه کوي، مګر انجلۍ به د یو داسي عصبه په روزنه کي نه ورکول کیږي چي هغه غیر محرم وي لکه د اکا زوی یا فاسق او بې پروا وي.

**د روزني د حق وخت** : د روزني د حق وخت نهه کاله یا اووه کاله عمر تاکل سوی دی او په قدوري کي لیکلي دي چي کله چي کوچني یوازي خوراک او څښناک کول شروع کړي، جامې اغوندي او خپله استنجاء کوي نو د روزني حق ختمیږي، ددې څخه وروسته د هغه پلار هغه کوچنی په خپل ساتنه کي اخیستلای سي او د انجلۍ په صورت کي مور یا انا تر هغه وخته پوري د روزني حقدار وي تر څو چي هغه انجلۍ ته حیض را نه سي او د امام محمد رحمه الله په نزد د انجلۍ د شهوت وړ کېدو پوري مور او انا ته د روزني حق دی لکه څرنګه چي مور، انا او داسي نورو ښځو د حق په باره کي دا شرط دی چي کله انجلۍ د سړي وړ سي نو هغه د دوی د روزني څخه وځي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د بلوغ عمر پنځلس کاله دی

﴿۳۲۲۱﴾: عَنْ ابْنِ عُمَرَ قَالَ عُرِضْتُ عَلَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دی چي زه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته وړاندي سوم

عامَ أُحُدٍ وَأَنَا ابْنُ أَرْبَعَ عَشْرَةَ سَنَةً فَرَدَّنِيْ ثُمَّ عُرِضْتُ عَلَيْهِ عَامَ الْخَنْدَقِ

د احد د غزا په کال کي او زما عمر څوارلس کاله وو. هغوی زه بیر ته ولېږم بیا د خندق په غزا

وَأَنَا ابْنُ خَمْسَ عَشْرَةَ سَنَةً فَأَجَازَنِي فَقَالَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِالْعَزِيْزِ هٰذَا فَرْقٌ مَا بَيْنَ الْمُقَاتَلَةِ وَالذُّرِّيَّةِ. متفق عليه

کي چي عمر مي پنځلس کاله وو د دویم وار وړاندي سوم نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم و ماته اجازه را کړه عمر بن عبدالعزیز رضي الله عنه وایي دا عمر (یعني د پنځلسو کلو عمر) د فوجي خدمت او کوچنیوالي تر مینځ فرق کونکي دی. (بخاري او مسلم).

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۵\۲۷۶، رقم: ۲۶۶۴، ومسلم ۳\۱۴۹۰، رقم: ۹۱– ۱۸۶۸.

**تشريح**: کله چي حضرت عمر بن عبدالعزيز رحمة الله عليه دا حديث واوريدى نو مذکوره جمله يې وويل، ددې څخه د هغه مراد دا وو چي کله هلک د پنځلس کالو عمر ته ورسيږي او کوم چي د پنځلس کالو عمر ته ونه رسيږي هغه به په نابالغو هلکانو کي شمېرل کيږي، ددې څخه معلومه سوه چي د بالغ کېدو عمر پنځلس کاله دى.

## د حضرت حمزه د لور روزنه

﴿۳۲۳۲﴾: وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ صَالَحَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ

د حضرت براء بن عازب رضي الله عنه څخه روايت دى چي د حديبې په کال کي نبي کريم صلى الله عليه وسلم په درو خبرو

الْحُدَيْبِيَةِ عَلٰى ثَلَاثَةِ أَشْيَاءٍ عَلٰى أَنَّ مَنْ أَتَاهُ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ رَدَّهُ إِلَيْهِمْ وَمَنْ

باندي معاهده کړې وه: (۱): يو خو دا چي په مشرکانو کي کوم سړى نبي کريم صلى الله عليه وسلم ته راغلى نو هغه بيرته دوى ته واپس کوي.

أَتَاهُمْ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ لَمْ يَرُدُّوْهُ وَعَلٰى أَنْ يَّدْخُلَهَا مِنْ قَابِلٍ وَّيُقِيْمَ بِهَا ثَلَاثَةَ

(۲): دويم دا چي په مسلمانانو کي کوم سړى و مشرکانو ته ولاړسي نو مشرکان به هغه و مسلمانانو ته نه سپاري. (۳): دريم دا چي نبي کريم صلى الله عليه وسلم په راتلونکي کال کي چي مکې معظمې ته راسي نو يوازي به تر درو

أَيَّامٍ فَلَمَّا دَخَلَهَا وَمَضَى الْأَجَلُ خَرَجَ فَتَبِعَتْهُ ابْنَةُ حَمْزَةَ تُنَادِيْ يَا عَمِّ يَا

ورځو پوري په مکه کي قيام کوي کله چي نبي کريم صلى الله عليه وسلم و مکې ته تشريف راوړ نو د درو ورځو وروسته يې د بيرته تلو اراده وکړه نو د حضرت حمزه رضي الله عنه لور په اکا اکا نعرو و هلو په نبي کريم

عَمِّ فَتَنَاوَلَهَا عَلِيٌّ فَأَخَذَ بِيَدِهَا فَاخْتَصَمَ فِيْهَا عَلِيٌّ وَزَيْدٌ وَجَعْفَرٌ قَالَ عَلِيٌّ

صلى الله عليه وسلم پسي را وغځستل حضرت علي زيد او حضرت جعفر (رض) په مينځ کي د دې کوچني د روزني پر سر سره جګړې سوې حضرت علي رضي الله عنه وويل

أَنَا أَخَذْتُهَا وَهِيَ بِنْتُ عَمِّيْ وَقَالَ جَعْفَرُ بِنْتُ عَمِّيْ وَخَالَتُهَا تَحْتِيْ وَقَالَ زَيْدُ

ما دا کوچنۍ اخيستي دى او بل دا چي دا زما د اکا زوي دى جعفر رضي الله عنه وويل چي دا کوچنۍ زما

د اكا زوى دى او د دې خاله زما په نكاح كې ده زيد رضي الله عنه ووېل چې

بِنْتُ أَخِيْ فَقَضٰى بِهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِخَالَتِهَا وَقَالَ اَلْخَالَةُ

دا كوچنۍ زما د ورور لور ده نبي كريم ﷺ د دې جګړې پرېكړه په داسي وكړه چې د حضرت حمزه رضي الله عنه لور يې د هغې و خاله ته وسپارل او و يې فرمايل: خاله

بِمَنْزِلَةِ الْأُمِّ وَقَالَ لِعَلِيٍّ أَنْتَ مِنِّيْ وَأَنَا مِنْكَ وَقَالَ لِجَعْفَرٍ أَشْبَهْتَ خَلْقِيْ وَخُلُقِيْ وَقَالَ لِزَيْدٍ أَنْتَ أَخُوْنَا وَمَوْلَانَا . متفق عليه .

د مور په شان ده او حضرت علي رضي الله عنه ته يې وفرمايل: ته زما څخه يې او زه ستا څخه يم او زيد ته يې وفرمايل: ته زموږ ورور يې او زموږ محبوب پالل سوې يې . (بخاري او مسلم) .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۴۹۹، رقم: ۴۲۵۱، ومسلم ۳\۱۴۰۹، ۱۴۰۹، رقم: ۹۰- ۱۷۸۳.

**تشريح**: حديبيه د مكې څخه پر پنځلس ميله فاصله باندي جدې ته د يو ځاى نوم دى، په شپږم هجري كال كي رسول الله ﷺ د خپلو صحابه كرامو په ملګرتيا كي د عمرې كولو لپاره د مدينې څخه مكې ته روان سو كله چي حديبيه ته ورسيدى نو د مكې كفارو هلته وګرځول او مكې ته يې نه پرېښودل او بيا په دغه ځاى كي د رسول الله ﷺ او د مكې د كفارو په مينځ كي د يوې معاهدې د درو بنيادي نكتو ذكر په حديث شريف كي سوى دى ، دا د حديبې صلح ډېره مشهوره واقعه او ددې تفصيلي بيان به په كتاب الجهاد كي راسي .

حضرت حمزه رضي الله عنه د رسول الله ﷺ اكا او رضاعي ورور دى ځكه چي رسول الله ﷺ او حضرت حمزه رضي الله عنه د ابولهب د مينزي ثوبيه تى رودلى دى ، ددغه رضاعت په وجه د حضرت حمزه رضي الله عنه لور رسول الله ﷺ ته په اكا ووېل.

حضرت جعفر د رسول الله ﷺ د اكا زوى يعني د ابوطالب زوى او د حضرت علي رضي الله عنه ورور وو او په عمر كي د حضرت علي رضي الله عنه څخه لس كاله مشر وو .

حضرت زيد ابن ثابت رضي الله عنه يو غلام وو چي رسول الله ﷺ ازاد كړى وو او خپل زوى يې ګرځولى وو ، د هغه سره د رسول الله ﷺ ډېره مينه وه رسول الله ﷺ د نورو صحابه كرامو په ډول د حضرت حمزه او حضرت زيد رضي الله عنهما په مينځ كي ورورولي قائمه كړې وه ځكه حضرت زيد د حضرت حمزه رضي الله عنه لور ته وريره ووېل .

حضرت علي ﷺ چي د حضرت حمزه ﷺ لور مديني ته راوستل نو د هغې د روزني په باره کي د ذکر سوو درو سره حضراتو په مينځ کي تنازعه پيدا سوه ، په هغوی کي هر يوه دا دعوه کول چي ددغه کوچني د روزني تر ټولو زيات حق زما دی او هر سړي دا غوښتل چي دا زما په روزنه کي وي نو رسول الله ﷺ ددغه تنازعې فيصله داسي وفرمايل چي هغه کوچنۍ يې د هغه خاله ته ورکړی چي د حضرت جعفر ﷺ په نکاح کي وه او د هغه درو سره حضراتو د ډاډ او زړه خوشحاله کولو لپاره يې ذکر سوي الفاظ وفرمايل چي هغوی خفه نه سي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د يو ماشوم د روزني تر ټولو زياته حقداره مور ده

﴿۳۲۲۳﴾: عَنْ عَمْرُو بْنُ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّ

حضرت عمرو بن شعيب ﷺ د خپل پلار څخه او هغه بيا د خپل پلار ه څخه روايت کوي چي

امْرَأَةً قَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ ابْنِي هَذَا كَانَ بَطْنِي لَهُ وِعَاءً وَثَدْيِي لَهُ سِقَاءً

يوې ښځي وويل: يا رسول الله! زما د زوي په موده کي زما نس د ده لوښي وو او زما تيان د ده ژی وو

وَحِجْرِي لَهُ حِوَاءً وَإِنَّ أَبَاهُ طَلَّقَنِي وَأَرَادَ أَنْ ينزعَهُ مِنِّي فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْتِ أَحَقُّ بِهِ مَا لَمْ تَنْكِحِي . رواه احمد وابوداؤد .

او زما غېږه د ده ځانګوه اوس د ده پلار و ماته طلاق را کړی دی او دا کوچنی زما څخه په زور اخيستل غواړی رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : تر څو پوري چي ته بله نکاح و نکړې نو د کوچني د روزني ته زياته حقداره يې .(احمد ابو داؤد) .

**تخريج**: الامام احمد في مسنده ۲\۱۸۲، وابوداود ۲\۷۰۷، رقم: ۲۲۷۶.

**تشريح**: ددغه حديث څخه وروسته چي کوم حديث راځي په هغه کي دا ذکر سوي دي چي رسول الله ﷺ هلک ته اختيار ورکړی وو که چيري هغه غواړي نو د خپل مور سره دي واوسيږي او که غواړي د خپل پلار سره دي سي، همدارنګه د دواړو حديثو په مفهوم کي په ظاهره اختلاف معلوميږي، علامه طيبي رحمه الله وايي چي په دغه حديث کي د کوم هلک ذکر سوی دی کيدای سي چي هغه کم عمره وو او د تميز عمر ته نه وو رسيدلی ځکه رسول الله ﷺ د هغه د

روزني تر ټولو زيات حق مور ته ورکړ ، حال دا چې په راتلونکي حديث کي چې د کوم هلک ذکر سوی دی کيدای سي چې هغه د تميز عمر ته رسيدلی وي ځکه رسول الله ﷺ هغه ته دا حق ورکړ چې هغه د خپل اختيار په وجه د هر يوه سره چې غواړي او سيدلای سي او د هغه سره ولاړ سي ،

تر څو چې ته د چا سره نکاح ونه کړې : په دې باره کي دا حديث مطلق دی مګر علماؤ دا مسئله د غير محرم سره مقيد کړې ده يعني که طلاقه سوې مور يا بل څوک د يو داسي سړي سره واده وکړي چې د هلک غير محرم وي نو هغې ته د هغه کوچني د روزني حق نه رسيږي او که چيرته د يو داسي سړي سره واده وکړي چې د هلک محرم وي لکه د هغه اکا سره نکاح وکړي نو په دغه صورت کي هغې ته د روزني حق سته ځکه چې هغه محرم به د هلک په حق کي يقينا شفيق او مهربان وي .

## د روزني وروسته کوچني ته اختيار ورکول

﴿۳۲۲۴﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيَّرَ غُلَامًا بَيْنَ أَبِيهِ وَأُمِّهِ . رواه الترمذي.

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ و يوه هلک ته د دې اختيار ورکړ که هغه د مور سره او سيږي او که د پلار سره . (ترمذي)

**تخريج**: سنن الترمذي ۳\۶۳۸، رقم: ۱۳۵۷.

**تشريح**: لکه څرنګه چې په مخکني حديث کي ښوول سوي دي چې کيدای سي دغه هلک د تميز عمر ته رسيدلي وي يعني بالغ سوی وي ځکه هغه ته دا اختيار ورکړل سوی دی چې هغه د پلار سره غواړي يا د مور سره او سيدل غواړي ، نو د دې تعلق د حضانة يعني د روزني د مسئلې سره اړه نه لري حال دا چې په اول حديث کي چې د کوم هلک ذکر سوی دی د هغه تعلق د حضانة د مسئلې سره متعلق دی ځکه چې رسول الله ﷺ حضانة يعني د روزني په باره کي مور مقدمه کړل.

د حنفيه حضراتو په نزد دا مسئله ده چې د روزني په وخت کي هلک ته دا اختيار نه سته که هغه غواړي نو د خپل مور سره دي وي او که غواړي د پلار سره دي وي حال دا چې د امام شافعي رحمه الله په نزد هلک ته د روزني په باره کي هم دا اختيار حاصل دی .

﴿۳۲۲۵﴾: وَعَنْهُ قَالَ جَاءَتْ امْرَأَةٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چې يو ښځه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضره سوه

إِنَّ زَوْجِي يُرِيدُ أَنْ يَذْهَبَ بِابْنِي وَقَدْ سَقَانِي وَنَفَعَنِي فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ

او عرض يې وكړ يا رسول الله! زما خاوند غواړي چې زما زوي بوځي حالانكه هغه اوس د دې قابله دى چې په ما اوبه وڅيښي او نفعه راته ورسوي. رسول الله ﷺ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَذَا أَبُوكَ وَهَذِهِ أُمُّكَ فَخُذْ بِيَدِ أَيِّهِمَا شِئْتَ فَأَخَذَ بِيَدِ أُمِّهِ

فَانْطَلَقَتْ بِهِ. رواه ابوداؤد والنسائي والدارمي.

هلك ته وفرمايل: دا ستا پلار دى او دا ستا مور ده په دوى كې چې ستا كوم يو خوښ وي نو د هغه لاس و نيسه هلك د مور لاس و نيوي او د هغې سره ولاړ. (ابوداؤد نسائي دارمي).

**تخريج**: سنن ابي داود ۲\۷۰۸، رقم: ۲۲۷۷، والنسائي ٦\۱۸۵، رقم: ۳۴۹٦، والدارمي ۲\ ۲۲۳، رقم: ۲۲۹۳.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

﴿۳۲۳٦﴾: عَنْ هِلَالِ بْنِ أُسَامَةَ عَنْ أَبِي مَيْمُونَةَ سُلَيْمَانَ مَوْلًى لِأَهْلِ الْمَدِينَةِ

حضرت هلال بن اسامه رضي الله عنه د ميمونې رضي الله عنها څخه روايت كوي كوم وخت چې سليمان د مدينې

قَالَ بَيْنَمَا أَنَا جَالِسٌ مَعَ أَبِي هُرَيْرَةَ جَاءَتْهُ امْرَأَةٌ فَارِسِيَّةٌ مَعَهَا ابْنٌ لَهَا وَقَدْ

حاكم وو او زه د ابو هريره رضي الله عنه سره ناست وم نو هغه ته يوه ښځه راغله چې د فارس (ايران) اوسېدونكې وه او د هغې سره خپل زوى وو

طَلَّقَهَا زَوْجُهَا فَادَّعَيَاهُ فَرَطَنَتْ لَهُ تَقُولُ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ زَوْجِي يُرِيدُ أَنْ يَذْهَبَ

د هغې خاوند طلاق وركړى وو او د ښځې او خاوند تر مينځ جګړه وه ښځې په فارسي باندې و ابو هريره رضي الله عنه ته وويل اې ابو هريره! زما خاوند زما د زوى بېول غواړي

بِابْنِي فَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ اسْتَهِمَا عَلَيْهِ رَطَنَ لَهَا بِذَلِكَ فَجَاءَ زَوْجُهَا وَقَالَ مَنْ

ابو هريره رضي الله عنه ورته وفرمايل: تا سو په دې هلك باندې پچه وكړې ابو هريره رضي الله عنه و هغې ته دا الفاظ په فارسي وويل وروسته د هغې خاوند راغلى او هغه وويل

يُحَاقُّنِي فِي ابْنِي فَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ اللَّهُمَّ إِنِّي لَا أَقُولُ هَذَا إِلَّا أَنِّي كُنْتُ قَاعِدًا

زما د زوي په اړه څوک زما سره جګړه کوي ابو هريره رضي الله عنه وويل يا الله! زه چي څه وايم د خپله ځانه څخه نه وايم واقعه داده چي يوه ورځ زه

مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَتَتْهُ امْرَأَةٌ فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ

د نبي کريم ﷺ په خدمت کي ناست وم يوه ښځه راغله او هغې ووېل يا رسول الله! زما دا

زَوْجِي يُرِيدُ أَنْ يَذْهَبَ بِابْنِي وَقَدْ نَفَعَنِي وَسَقَانِي مِنْ بِئْرِ أَبِي عِنَبَةَ وعند

خاوند زما زوي را څخه په زوره بيايي حالانکه دی وماته نفعه رسوي او دا بو عتبه د څاه څخه راته اوبه راوړي او د

النسائي مِنْ عَذْبِ الْمَاءِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اسْتَهِمَا عَلَيْهِ

نسائي په يو روايت کي دا الفاظ دي چي په ما خوږې اوبه څښني نو رسول الله ﷺ وفرمايل: چي دواړه ورباندي پچه اچونه وکړئ

فَقَالَ زَوْجُهَا مَنْ يُحَاقُّنِي فِي وَلَدِي فَقَالَ رسول الله ﷺ هَذَا أَبُوكَ وَهَذِهِ

نو خاوند يې ووېل چي څوک سته چي زما په زوي کي دي را سره جګړه وکړي؟ نو رسول الله ﷺ هغه هلک ته وفرمايل: دا ستا پلار دي او دا

أُمُّكَ فَخُذْ بِيَدِ أَيِّهِمَا شِئْتَ فَأَخَذَ بِيَدِ أُمِّهِ . رواه ابوداؤد والنسائي والدارمي

ستا مور ده په دوی کي چي دي کوم يو خوښ وي د هغه لاس ونيسه هلک د مور لاس ونيوي. ابوداؤد، نسائي، دارمي).

**تخريج**: سنن ابي داود ۲\ ۷۰۸، رقم: ۲۲۷۷، والنسائي ٦\ ۱۸۵، رقم: ۳۴۹٦، والدارمي ۲\ ۲۲۳، رقم: ۲۲۹۳.

**د لغاتو حل**: فرطنت: كلام لايفهمه الجمهور والمعنى انها تكلمت. استهما: اى اقترعي انت وابوه. يُحاقني: اى من ينازعني: څوک چي زما سره جګړه کوي.

**تشريح**: حضرت ابو هريره رضي الله عنه د هغې ښځي سره په فارسي ژبه خبري وکړې، ددې څخه معلومه

سوه چي ځینو صحابه کرامو د عجمو سره تعلق درلودی او د هغوی سره د اوسیدو په وجه د هغوی ژبه یې زده کړې وه .

په دغه حدیث کي چي د کوم هلک ذکر سوی دی هغه هم بالغ وو او بالغ ته دا حق سته چي هغه د چا سره غواړي د هغه سره اوسیدلای سي ځکه رسول الله ﷺ هغه ته دا حق ورکړ او هغه د مور سره اوسیدل اختیار کړل .

د هلک د بالغ کېدو دلیل دادی چي هغه د ښار ځخه لیري اوبه راوړلې که چیري هغه نابالغ وای نو نه یوازي دا چي هغه به د خپل کم عمرۍ په وجه د ښار ځخه دباندي دومره لیري نه تللای بلکه د هغه مور به هم ددې بیري ځخه چي هغه د خپل ناپوهۍ په وجه په څاه کي ونه لوېږي هغه د دومره لیري اوبو راوړلو لپاره نه استولای .

===========